# د قران عظیم الشان

## پښتو ژباړه

ژباړونکی: مولوي قيام الدين كشاف

## فهرست

## (مکي) پرانستنه - فاتحه ۱

**۱:۱ -** شروع کوم د الله په نامه چې  مهربان رحم کوونکی دی

**۲:۱ -** صفتونه د الله لپاره دي چې د عالَمونو ښه پالونکی دی

**۳:۱ -** مهربان،  رحم کوونکی دی

**۴:۱ -** د بَدلې د ورځې مالك دی

**۵:۱ -** مونږ ستا عبادت کوو او له تا نه مدد غواړو

**۶:۱ -** مونږ ته سَمَه (نېغه) لاره وښیَه

**۷:۱ -** د هغو خلقو لاره چې تا پر هغوی باندې انعام کړی دی؛ نه پر هغوی باندې چې غضب شوی او نه گمراهان دي

## (مدني) غوا - سورة البقرة ۲

۱:۲ - الف، لام، میم

۲:۲ - دا  کتاب دی، هېڅ شك نشته پکې، د پرهېزگارانو لپاره هدایت دی

۳:۲ - هغه خلق چې په غیب ایمان راوړي او لمونځ قایموي او له هغه (مال) نه څه (حصه) خرچ کوي؛ چې مونږ دوی ته ورکړی دی

۴:۲ - او هغه خلق چې ایمان راوړي په هغه (کتاب) چې تا ته نازل کړی شوی دی او په هغو (کتابونو) چې له تا نه مخکې نازل کړی شوي دي، او په اخرت همدوی یقین لري

۵:۲ - دغه خلق د خپل رب له طرفه په راغلي هدایت باندې دي او همدغه خلق پوره کامیاب دي

۶:۲ - بېشکه هغه (خاص) کسان چې کافر شوي دي؛ دوی ته یو شان ده که ته دوی ووېروې یا ته دوی ونه وېروې، دوی ایمان نه راوړي

۷:۲ - الله د هغوی په زړونو او د هغوی په غوږونو مهر لګولی دی، او د هغوی په سترګو (یوه خاصه) پرده ده، او د هغوی لپاره ډېر لوی عذاب دی

۸:۲ - او په خلقو کې ځینې هغه څوك دي چې وايي: مونږ پر الله او د اخرت پر ورځ ایمان راوړی دی، حال دا چې دوی له سَره مومنان نه دي

۹:۲ - دوی له الله سره دوکه کوي، او له هغو خلقو سره چې ایمان یې راوړی دی، حال دا چې دوی یواځې له هم خپلو ځانونو سره دوکه کوي، او شعور نه لري

۱۰:۲ - د دوی په زړونو کې بېماري ده، نو الله دوی ته بېماري ورزیاته کړه، او د دوی لپاره ډېر دردوونکی عذاب دی؛ په دې سبب چې دوی به همېشه دروغ ویل

۱۱:۲ - او کله چې دوی ته وویل شي چې په ځمکه کې فساد مه کوئ، دوی وايي: یقینًا همدا خبره ده چې مونږ بس اصلاح کوونکي یو

۱۲:۲ - خبردار! بېشکه همدوی فساد کوونکي دي، او لېکن دوی شعور نه لري

۱۳:۲ - او کله چې دوی ته وویل شي: تاسو ایمان راوړئ، لکه څنګه چې خلقو (صحابه وو) ایمان راوړی دی، نو دوی وايي: ایا مونږ ایمان راوړو، لکه څنګه چې بې وقوفو (کم عقلو) ایمان راوړی دی؟ خبردار! یقینًا همدوی بې وقوفه دي، او لېکن دوی نه پوهېږي

۱۴:۲ - او کله چې دوی له مومنانو سره ملاقات وکړي، نو وايي چې مونږ ایمان راوړی دی، او کله چې له خپلو شیطانانو (مشرانو) سره یواځې شي، نو (بیا) وايي: په رښتیاخو مونږ له تاسو سره یو، خبره همدا ده چې مونږ خو بس استهزا (خندا) کوونکي یو

۱۵:۲ - الله په دوی پورې استهزا کوي او دوی ته په خپلې سرکشۍ کې ترقي ورکوي، په داسې حال کې چې حیران سرګردان ګرځي

۱۶:۲ - دا هغه خلق دي چا چې د نېغې لارې په بدل کې ګمراهي اخیستې ده، نو د دوی سوداګرۍ هېڅ ګټه ونه کړه او دوی نېغه لار موندونکي نه وو،

۱۷:۲ - د دوی مثال د هغه کس په شان دی چې اور یې بل کړ، نو کله چې دغه (اور) د هغه ګېرچاپېره (ځایونه) روښانه کړل، نو الله د هغوی رڼا ختمه کړه، او هغوی یې په

تيارو کې پرېښودل، داسې چې نه ويني

۱۸:۲ - (دوی) کاڼه دي، گونگيان دي، ړانده دي، نو دوی نه راگرځي

۱۹:۲ - يا (مثال د دوی) په شان له اسمان نه د ورېدونکي تېز باران دی، چې په هغه کې تيارې او گړزاری او برېښنا وي، دوی د تندرونو په وجه د مرگ له وېرې نه خپلې گوتې په خپلو غوږونو کې نَنَباسي، او الله کافرانو لره راگېرووونکی دی

۲۰:۲ - نژدې ده چې برېښنا د دوی نَظَرونه وتښتوي، کله هم چې هغه د دوی لپاره رڼا کوي، نو دوی په هغې کې مزل کوي او کله چې پر دوی تياره شي، نو ودرېږي، او که الله غوښتلی، نو خامخا به يې د دوی اَورېدل او د دوی نظرونه ختم کړي وی، بېشکه الله پر هر شي باندې ښه قادر دی

۲۱:۲ - ای خلقو! د خپل رب عبادت کوئ، هغه (رب) چې تاسو يې پيدا کړي يئ او هغه کسان چې له تاسو نه مخکې وو، د دې لپاره چې تاسو پرهېزگاره شئ

۲۲:۲ - هغه (رب) چې ستاسو لپاره يې ځمکه فرش او اسمان چت جوړکړی دی او له بره نه يې اوبه نازلې کړي دي، بيا يې په دغو سره له مېوو نه ستاسو لپاره رزق راوېستلی دی، نو له الله سره هېڅ قسمه شريکان مه جوړوئ، حال دا چې تاسو پوهېږئ

۲۳:۲ - او که تاسو د هغه (قرآن) په هکله په کوم شك کې يئ چې مونږ پر خپل بنده نازل کړی دی، نو د ده غوندې يو وړوکی سورت راوړئ، او له الله نه سِوا خپل مددگاران راوغواړئ، که تاسو رښتوني يئ

۲۴:۲ - نو که تاسو (دا کار) ونه کړ او کله به يې هم ونه کړی شئ، نو له هغه اور نه ځان بچ کړئ چې خشاك يې انسانان او کاڼي دي، د کافرانو لپاره تيار کړی شوی دی

۲۵:۲ - او زېری ورکړه هغو کسانو ته چې ايمان يې راوړی دی او نېك عمل يې کړی دی، چې يقينًا د دوی لپاره (داسې) جنتونه دي چې د هغو له لاندې وَلې بهېږي، هر ځلې چې دوی ته له هغو (جنتونو) نه څه مېوه د خوراك لپاره ورکړی شي، نو دوی به وايي: دا خو هماغه ده چې مونږ ته مخکې راکړی شوې وه، او دوی ته به هغه يو له بله مُشابه (يو شانته) ورکول کېږي، او د دوی لپاره په دغو (جنتونو) کې ډېرې پاکې

بیبیانې (ښځې) دي، او دوی به په دغو کې همېشه وي

٢٦:٢ - بېشکه الله د هېڅ مثال په بیانولو نه شرمېږي، د ماشي وي، یا که له ده نه د زیات (شي) وي، نو هر چې هغه خلق دي چې ایمان یې راوړی دی، نو هغوی پوهېږي چې یقینًا دا د هغوی د رب له طرف نه حق (مثال) دی، او پاتې شو هغه خلق چې کفر یې کړی دی، نو هغوی وایي: الله په دې مثال ورکولو سره څه اراده کړې ده؟ (نو) هغه (الله) په دې سره ډېرخلق گمراه کوي او ډېرو ته په دې سره هدایت ورکوي او نه گمراه کوي په دې سره مگر فاسقان

٢٧:٢ - هغه خلق چې د الله (سره کړی) لوظ ماتوي وروسته د هغه (لوظ) له مضبوطولو (او پخلي) نه او پرېکوي هغه څه چې الله یې د پیوست ساتلو حکم کړی دی، او په ځمکه کې ورانی کوي، همدغه خلق تاوانیان دي

٢٨:٢ - څنگه تاسو له الله نه منکرېږئ، حال دا چې تاسو نِشت وئ، نو هغه تاسو راژوندي کړئ، بیا به هغه تاسو مړه کوي، بیا به تاسو راژوندي کوي، بیا به خاص د هغه په طرف ستنولی شئ

٢٩:٢ - همدی هغه ذات دی چې ستاسو لپاره یې هغه ټول څه پیدا کړل چې په ځمکه کې دي، بیا یې پورته قصد وکړ، نو هغه یې ښه برابر اوه اسمانونه جوړ کړل، او هغه په هر شي ښه عالم دی

٣٠:٢ - او کله چې ستا رب ملایکو ته وویل: بې شکه زه په ځمکه کې یو خلیفه پیدا کوونکی یم، هغوی وویل: ایا ته په هغې کې داسې څوك پیدا کوې چې په هغې کې به ورانی کوي او وینې به تُویَوي؟ حال دا چې مونږ ستا له ستایلو سره تسبیح وایو او ستا پاکوالی بیانوو، (الله) وویل: یقینًا زه پوهېږم په هغه څه چې تاسو پرې نه پوهېږئ

٣١:٢ - او ادم ته یې ټول نومونه وښودل، بیا یې هغه ملایکو ته وړاندې کړل، نو ویې ویل: ما د دوی په نومونو خبر کړئ که تاسو (په خپله خبره کې) رښتوني یئ

٣٢:٢ - هغوی وویل: ته پاك یې، مونږ ته هېڅ علم نشته سِوا له هغه نه چې تا مونږ ته راښودلی دی، بېشکه، خاص ته، ښه عالم، ښه حکمت والا یې

۳۳:۲ - (الله) وویل: ای ادمه! دوی د هغو (څیزونو) په نومونو خبر کړه، نو کله چې یې دوی د هغو په نومونو خبر کړل، (الله) وویل: ایا ما تاسو ته نه و ویلي چې بېشکه زه د اسمانونو او ځمکې په غیبو (پټو څیزونو) پوهېږم، او پوهېږم په هغه څه چې تاسو یې ښکاره کوئ او په هغه څه چې تاسو پټول

۳۴:۲ - او کله چې مونږ ملایکو ته وویل: ادم ته سجده وکړئ، نو هغوی سجده وکړه خو ابلیس نه، هغه انکار وکړ او تکبر یې وکړ، او هغه و له کافرانو نه

۳۵:۲ - او مونږ وویل: ای ادمه! اوسېږه ته او ستا ښځه په جنت کې، او دواړه له هغه (د جنت له مېوو) نه پرېمانه (په مزې سره) خوراك کوئ کوم ځای چې مو خوښه وي، او تاسو دواړه دې ونې ته مه نژدې کېږئ، ګنې تاسو به له ظالمانو نه شئ

۳۶:۲ - پس شیطان دوی دواړه د دغې (ونې) په سبب، وښوېول، نو له هغه (ځای) نه یې راوویستل چې دوی په کې وو، او مونږ وویل: تاسو ټول کوز شئ، ستاسو ځینې به د ځینو نورو لپاره دښمنان وي، او ستاسو لپاره په ځمکه کې تر یو وخته پورې استوګنه او فایده اخیستل دي

۳۷:۲ - نو ادم له خپل رب نه څو کلمې زده کړې، نو د هغه توبه یې قبوله کړه، بېشکه هم هغه ښه توبه قبلوونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۳۸:۲ - مونږ وویل: تاسو ټول له دې (جنت) نه کوز شئ، نو که زما له طرف نه تاسو ته کوم هدایت راغی، نو چا چې زما د هدایت پیروي وکړه، نو پر هغوی باندې نه هېڅ وېره شته او نه به هغوی غمژن کېږي

۳۹:۲ - او هغه خلق چې کفر یې کړی دی او زمونږ ایتونه یې دروغ ګڼلي دي، همدغه کسان د (دوزخ د) اور والا دي، دوی به په هغه کې همېشه وي

۴۰:۲ - ای بني اسرائیلو! زما هغه نعمتونه یاد کړئ چې ما پر تاسو باندې پېرزو کړي دي او زما لوظ پوره کړئ، زه به ستاسو لوظ پوره کړم، او خاص له ما نه وېرېږئ

۴۱:۲ - او تاسو ایمان راوړئ په هغه (کتاب) چې ما نازل کړی دی، چې د هغه (کتاب) تصدیق کوونکی دی چې له تاسو سره دی، او په ده سره اول کفر کوونکي مه جوړېږئ، او زما په ایتونو سره لږ قیمت مه اخلئ او خاص له ما نه وېرېږئ

۴۲:۲ - او تاسو حق له باطل سره مه ګډوئ، او حق مه پټوئ، حال دا چې تاسو پوهېږئ

۴۳:۲ - او تاسو لمونځ قايموئ او زکات ورکوئ او له رکوع کوونکو سره رکوع کوئ

۴۴:۲ - ايا تاسو (نورو) خلقو ته د نېکۍ حکم کوئ او خپل ځانونه هېروئ، سره له دې چې تاسو کتاب لولئ، ايا نو تاسو عقل نه لرئ؟

۴۵:۲ - او په صبر او لمانځه سره مدد غواړئ او بېشکه چې يقينًادا (کار) ډېر ګران دی مګر پر عاجزي کوونکو باندې (نه دی)

۴۶:۲ - هغه کسان چې يقين کوي چې بېشکه دوی د خپل رب سره ملاقات کوونکي دي او دا چې بېشکه دوی خاص د هغه په طرف واپس ورتلونکي دي

۴۷:۲ - ای بني اسرائيلو! زما هغه نعمتونه ياد کړئ چې ما پر تاسو باندې انعام کړي دي او دا چې يقينًا همم مَا تاسو پر عالَمونو باندې غوره کړي وئ

۴۸:۲ - او له هغې ورځې نه ووېرېږئ چې هېڅ يو نفس به د بل نفس هېڅ په کار نه راځي او نه به له هغه نه څه سفارش قبلېږي او نه به له هغه نه څه (مالي) بدله اخيستل کېږي او نه به له هغوی سره مدد کېږي

۴۹:۲ - او کله چې مونږ له فرعونيانو نه تاسو خلاص کړئ چې تاسو ته به يې سخت عذاب درکاوه، ستاسو زامن به يې حلالول او ستاسو ښځې به يې ژوندۍ پرېښودلې، او په دې کې ستاسو د رب له طرف نه ډېر لوی ازمېښت و

۵۰:۲ - اوکله چې مونږ ستاسو لپاره سمندر څېرې کړ او تاسو ته مو خلاصی درکړ او فرعونيان مو ډوب کړل او تاسو کتل

۵۱:۲ - او کله چې مونږ له موسىٰ سره د څلوېښتو شپو وعده وکړه، بيا تاسو له هغه نه پس سخی (معبود) جوړکړ او تاسوظالمان وَئ

۵۲:۲ - بيا مونږ له دې نه پس تاسو معاف کړئ، د دې لپاره چې تاسو شکر وباسئ

۵۳:۲ - او کله چې مونږ موسىٰ ته کتاب او فرقان (حق او باطل سره بېلونکی) ورکړ، د دې لپاره چې تاسو نېغه لار ومومئ

۵۴:۲ - او (یاد کړه) هغه وخت چې موسٰی خپل قوم ته وویل: ای زما قومه! یقینًا تاسو د سخي په (معبود) نیولوسره په خپلو ځانونو باندې ظلم کړی دی، لهٰذا خپل خالق ته توبه وباسئ، نو خپل ځانونه قتل کړئ، دا (وژل) تاسو لپاره ستاسو د خالق په نیز بهتر دي، بیا هغه ستاسو توبه قبوله کړه، یقینًا هم هغه ښه توبه قبلوونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۵۵:۲ - او کله چې تاسو وویل: ای موسٰی! مونږ به هیڅ کله هم پر تا ایمان را نه وړو تر هغه پورې چې مونږ الله ښه ښکاره ووینو، نوتاسو تندر ونیولئ او تاسوکتل

۵٦:۲ - بیا مونږ تاسو ستاسو له مرگ نه پس راژوندي کړئ، د دې لپاره چې تاسو شکر وباسئ

۵۷:۲ - او مونږ په تاسو وریځ سیوری کړه او مَن او سلوٰی (ترنجبین او مړز ډوله مرغان) مو په تاسو نازل کړل، هغه پاکیزه څیزونه خورئ، چې مونږ تاسو ته درکړي دي، او هغوی پر مونږ ظلم نه و کړی، او لېکن هم پر خپلو ځانونو یې ظلم کاوه

۵۸:۲ - او کله چې مونږ وویل: دې کلي ته ورننوځئ، نو چرته چې مو خوښه شي، ترې پرېمانه یې خورئ او په دروازه کې داخل شئ، چې سجده کوونکي یئ او وایئ ''مونږ وبخښه'' مونږ به تاسو ته ستاسو گناهونه وبخښو، او ژر ده چې مونږ به نېکانو ته (ثواب) نور زیات ورکړو

۵۹:۲ - نو هغو کسانو چې ظلم یې کړی و، هغه خبره چې ورته ویلی شوې وه، په بل شان بدله کړه، نو په هغو ظالمانو باندې مونږه د اسمان نه عذاب نازل کړ، ځکه چې نافرماني یې کوله

٦۰:۲ - او کله چې موسٰی د خپل قوم لپاره اوبه وغوښتې، نو مونږ وویل: په خپلې امسا سره تیږه (گټه) ووهه، نو له هغې نه دُولس چینې جارې شوې، یقینًا ټولو خلقو خپل خپل گودر (د څښاك ځای) وپېژنده، د الله له رزق نه خورئ او څښئ، او په ځمکه کې له حده مه تېرېږئ، چې ورانی کوونکي اوسئ

٦۱:۲ - او کله چې تاسو وویل: ای موسٰی! مونږ به په یو خوراك باندې کله هم صبر ونه کړی شو، لهذا زمونږ لپاره له خپل رب نه دُعا وغواړه چې زمونږ لپاره هغه څیزونه

راوباسي چې ځمکه يې زرغونوي (لکه) د هغې سبزي (ساگ) بادرنگ، هوږه، مسور او پیاز، هغه وویل: ایا تاسو په بدل کې هغه څیز اخیستل غواړئ چې هغه ادنٰی دی د هغه څیز په ځای چې هغه بهتر دی، نو تاسوکومه ښار ته کوز شئ، پس بېشکه ستاسو لپاره هغه څه دي چې تاسو غوښتي دي، او پر هغوی ذلت او محتاجي مسلط کړی شوه، او راستانه (اخته) شول په غضب سره د الله له طرف نه، دا په دې سبب چې یقینًا دوی د الله له ایتونو نه انکار کاوه، او نبیان یې ناحقه وژل، دا په دې چې دوی نافرماني کوله، او زیاتی یې کاوه

٦٢:٢ - یقینًا هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی، او هغه کسان چې یهودیان شوي دي، او نصرانیان او صابیان (بې دینه) دي، هر هغه چا چې په الله او په ورځ د اخرت ایمان راوړ او نېك عمل یې وکړ، نو د خپل رب په نیز د دوی لپاره اجر دی او نه په دوی باندې څه وېره شته او نه به دوی غمژن کېږي

٦٣:٢ - او کله چې مونږ (له تاسو نه) ستاسو پخه وعده واخیسته او راپورته موکړ ستاسو له پاسه (غرد) طُور (او درته ومو ویل:) کلك ونیسئ هغه څه چې مونږ تاسو ته درکړي دي؛ او څه چې په ده کې دي، (هغه) یاد کړئ، د دې لپاره چې تاسو پرهېزگاره شئ

٦٤:٢ - بیا له دې نه بعد تاسو (له وعدې نه) وگرځېدئ، نو که پر تاسو باندې د الله فضل او د هغه رحمت نه وی، نو تاسو به خامخا تاوانیان شوي وی

٦٥:٢ - او یقینًا یقینًا هغه خلق تاسو ته معلومه دي، چې له تاسو ځنې یې د خالي د ورځې په هکله زیاتی کړی و، نو مونږ هغوی ته وویل: تاسو ذلیله بیزوگان (شادوگان) شئ

٦٦:٢ - نو مونږه دا (واقعه) هغې ته د حاضرو (خلقو) او له هغې نه وروسته راتلونکو لپاره عبرت او د پرهېزگارولپاره نصیحت وگرځوله

٦٧:٢ - او کله چې موسٰی خپل قوم ته وویل: بېشکه الله تاسو ته حکم کوي چې یوه غوا حلاله کړئ، هغوی وویل: ایا ته مونږ مسخره گرځوې (په مونږ پورې ټوقې کوې)؟ هغه وویل: زه د الله پناه غواړم له دې نه چې زه شم له جاهلانو نه

۶۸:۲ - هغوی وویل: زمونږ لپاره له خپل رب نه دُعا وغواړه چې مونږ لپاره واضحه کړي چې هغه (غوا) څنګه ده؟ هغه وویل: یقینًا هغه وایي چې بېشکه هغه یوه داسې غوا ده چې نه زَړه ده او نه نوې ځوانه، (بلکې) د دې دواړو په مینځ کې مِیانَه حاله ده۔، نو هغه کار وکړئ چې تاسو ته یې حکم کېږي

۶۹:۲ - هغوی وویل: زمونږ لپاره له خپل رب نه دُعا وغواړه چې مونږ ته بیان کړي چې د هغې رنګ څنګه دی؟ هغه وویل: یقینًا هغه وایي چې بېشکه هغه یوه زېړه غوا ده، رنګ یې تك زېړ دی، کتونکي خوشحالوي

۷۰:۲ - هغوی وویل: زمونږ لپاره له خپل رب نه دُعا وغواړه چې زمونږ لپاره بیان کړي چې هغه څه قسم ده؟ بېشکه چې غواګانې پر مونږه ګډې وډَې (مشتَبِه) شولې، او که الله وغواړي، بېشکه مونږ خامخا لارموندونکي یو

۷۱:۲ - (موسٰی) وویل: یقینًا هغه وایي چې بېشکه هغه یوه داسې غُوا ده چې نه کار کوونکې ده، چې ځمکه قُلبه کوي او نه فصل اوبه کوي، روغه رَمَټه ده، هېڅ داغ ټکی په کې نشته، هغوی وویل: اوس دې واضحه خبره راوړه۔، نو هغه یې حلاله کړه، او دوی نژدې نه وو چې دا کار یې کړی وی

۷۲:۲ - او کله چې تاسو یو کس ووژلو، نو د هغه په باره کې تاسو په خپل مینځ کې په جګړه شوئ، او الله د هغه څه ښکاره کوونکی و چې تاسو پټول

۷۳:۲ - نو مونږ وویل: دا د ده په څه حصې سره ووهئ، الله همداسې مړي ژوندي کوي او تاسو ته خپلې نښې درښَیِي، د دې لپاره چې تاسو له عقل نه کار واخلئ

۷۴:۲ - بیا له دې نه بعد ستاسو زړونه سخت شول، نو هغه د تیږو په شان دي، یا په سخت والي کې نور هم زیات دي او بېشکه یقینًا ځینې تیږې هغه دي چې له هغو نه وَلِې بهېږي او بې شکه یقینًا ځینې هغه دي چې چوي، نو له هغو نه اوبه راوځي، او خامخا یقینًا ځینې هغه دي چې د الله له وېرې نه رارغړي، او الله ستاسو له عملونو نه کله هم غافل نه دی

۷۵:۲ - ایا نو تاسو تمه کوئ چې دوی به ستاسو (د وینا) له وجې ایمان راوړي، او یقینًا په دوی کې یوه ډله وه چې د الله کلام به یې اورېده، بیا به یې په هغه کې له

پوهېدو نه وروسته تحريف کاوه، حال دا چې دوی به پوهېدل

۷٦:۲ - او کله چې دوی له مومنانو سره ملاقات وکړي، نو وايي: مونږ ايمان راوړی دی او کله چې د دوی ځيني له ځينو نورو سره يواځې شي (بيا) وايي: ايا تاسو دوی (مومنانو) ته هغه خبرې بيانوئ چې الله تاسو ته ښودلي دي؟ د دې لپاره چې پر تاسو باندې په دغو (خبرو) سره د خپل رب په وړاندې غالبه شي، ايا نو تاسو عقل نه لرئ!

۷۷:۲ - ايا دغه (خلق) په دې نه پوهېږي چې يقيناً الله په هغو خبرو پوهېږي چې دوی يې پټوي او په هغو چې دوی يې ظاهروي

۷۸:۲ - او په دوی کې ځيني اَميان دي، په کتاب نه پوهېږي، مگر په تشو بې دليله ارزوگانو، او دوی يواځې تش گمانونه کوي

۷۹:۲ - نو د هغوکسانو لپاره هلاکت دی چې په خپلو لاسونو (له ځانه) کتاب ليکي، بيا وايي: دا د الله له جانبه دی، د دې لپاره چې د هغه په بدل کې لږ قيمت واخلي، نو د دوی لپاره هلاکت دی په سبب د هغه څه چې د دوی لاسونو ليکلي دي، او د دوی لپاره هلاکت دی په سبب د هغه چې دوی څه عمل کوي

۸۰:۲ - او دوی وايي: له څو په شمار ورځو نه سوا به مونږ ته کله هم اور را و نه رسېږي، ته (ورته) ووايه: ايا تاسو له الله نه څه وعده اخيستې ده؟ (که داسې وي)، نو الله به کله هم د خپلې وعدې خلاف و نه کړي، بلکې تاسو په الله باندې هغه دروغ تپئ (اړوئ) چې تاسو پرې نه پوهېږئ

۸۱:۲ - ولې نه! چا چې بدي وکړه او په ده خپله گناه راچاپېره شوه، نو همدغه کسان د اور والا دي، دوی به په هغه (اور) کې تل ترتله وي

۸۲:۲ - او هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی او نېك عملونه يې کړي دي، همدغه کسان د جنت والا دي، دوی به په هغه (جنت) کې تل ترتله وي

۸۳:۲ - او کله چې مونږ د بني اسرائيلو (نه) پخه وعده واخيسته چې عبادت به يواځې او يواځې د الله کوئ، او له مور او پلار سره به ښېگړه کوئ او له خپلوانو او يتيمانو او مسکينانوسره (به هم ښېگړه کوئ) او خلقو ته ښايسته خبرې کوئ، او لمونځ

قایموئ او زکات ورکوئ، بیا تاسو (له خپلې وعدې نه) وګرځېدئ مګر ډېر لږکسان (ونه ګرځېدل) او تاسو مخ ګرځونکي یئ

۸۴:۲ - اوکله چې مونږ ستاسو (نه) پخه وعده واخیسته چې خپلې وینې به نه تُویَوَئ او له خپلو کورونو نه به خپل ځانونه (یو بل) نه وباسئ، بیا تاسو اقرار وکړ، په دې حال کې چې تاسو ګواه یئ

۸۵:۲ - بیا هم تاسو هغه کسان یئ چې خپل ځانونه وژنئ، او خپله یوه ډله د هغوی له کورونو نه وباسئ، په ګناه او ظلم سره د هغوی په خلاف د یو بل مدد کوئ، او که چېرې هغوی تاسو ته بندیان راشي، نو د هغوی (دخلاصون لپاره) فدیه ورکوئ، حال دا چې شان دا دی چې پر تاسو باندې دهغوی وېستل حرام دي.، ایا نو د کتاب په ځینې (حکمونو) ایمان راوړئ او په ځینو یې کافر کېږئ؟ نو د دغه کس څه سزا ده چې په تاسو کې دا کار کوي مګر په دنیایي ژوند کې ښه رسوایي او د قیامت په ورځ به تر ټولو سخت عذاب ته ورګرځولی شي، او الله له هغه څه نه چې تاسو یې کوئ کله هم غافل نه دی

۸۶:۲ - دا هغه کسان دي چې دنیایي ژوند یې د اخرت په بدل کې اخیستی دی، نو نه به له دوی نه عذاب سپك (کم) کړی شي او نه به له دوی سره مرسته کېږي

۸۷:۲ - یقینًا یقینًا مونږ موسٰی ته کتاب ورکړی و، او له هغه نه بعد مو پرله پسې رسولان لېږلي وو، او مونږه د مریمې زوی عیسٰی ته څرګندې نښې ورکړې وې. او مونږه هغه په پاك روح سره قوي کړی و، ایا نو کله چې به هم کوم رسول تاسو ته هغه (احکام) راوړل چې ستاسو نفسونو به نه خوښوَل، تاسو به ډېره لویي وکړه؛ نو (د پیغمبرانو) یوه ډله مو دروغژنه وګڼله او بله ډله به تاسو وژله

۸۸:۲ - دوی ویل: زمونږ زړونه پرده بَند دي، (داسې نه ده) بلکې د دوی د کفر په سبب الله پر دوی لعنت کړی دی، نو هغه (خلق) چې ایمان راوړی ډېر لږ دي

۸۹:۲ - او کله چې دوی ته د الله له جانبه کتاب (قرآن) راغی چې د هغه څه تصدیق کوونکی دی چې له دوی سره دي، او له دې نه مخکې به دوی پر هغو خلقو باندې چې کافر شوي دي، فتح غوښتله، نو کله چې دوی ته هغه (رسول، کتاب) راغی چې دوی پیژنده، نو په هغه باندې کافر شول، نو په کافرانو باندې د الله لعنت دی

۹۰:۲ - بد دی هغه شی چې دوی د هغه په بدل کې خپل ځانونه خرڅ کړل، چې په هغه څه باندې کافر شول چې الله نازل کړی دی، د دې کینې (او حسد) له وجې چې (ولې) الله خپل فضل په خپلو بنده ګانو کې پر هغه چا نازلوي چې يې غواړي، نو راوګرځېدل (اخته شول) په يو غضب له پاسه د بل غضب، او د کافرانو لپاره سپکوونکی عذاب دی

۹۱:۲ - او کله چې دوی ته وويل شي: ايمان راوړئ په هغه (کتاب) چې الله نازل کړی دی، نو دوی وايي: مونږ په هغه (کتاب) ايمان راوړو چې پر مونږ باندې نازل کړی شوی دی، او چې له هغه (کتاب) نه علاوه دي؛ په هغو (کتابونو) باندې کافر کېږي، حال دا چې هم دغه (قرآن) حق دی، د هغه (کتاب) تصديق کوونکی دی چې له دوی سره دی، ته (ورته) ووايه چې تاسو پخوا (له دې نه) د الله نبيان ولې وژل؟ که تاسو مومنان وئ

۹۲:۲ - اويقينًا يقينًا تاسو ته موسٰی ښکاره دليلونه راوړي وو، بيا له هغه نه بعد تاسو سخی (معبود) وګرځاوه او تاسو ظالمان يئ

۹۳:۲ - او کله چې مونږه ستاسو (نه) پخه وعده واخيسته او مونږه طُور (غر) ستاسو له پاسه راپورته کړ (مونږ وويل:) څه چې مونږ تاسو ته درکړي دي هغه په قوت سره ونيسئ او واورئ، دوی وويل: مونږ اَورېدلي دي او مونږ نافرماني کړې ده او د دوی د کفر په سبب د دوی په زړونو کې د سخي (مينه) ورڅښول شوې وه.، ته (ورته) ووايه: هغه شی بد دی چې ستاسو ايمان تاسو ته د هغه حکم درکوي، که تاسو مومنان يئ

۹۴:۲ - ته (ورته) ووايه: که د الله په نيز د اخرت کور له نورو خلقو نه په غير، يواځې هم ستاسو لپاره وي، نو (بيا خو) د مرګ ارزو وکړئ که تاسو رښتوني يئ

۹۵:۲ - او دوی به کله هم د هغه ارزو و نه کړي هېڅ کله، په سبب د هغو (عملونو) چې د دوی لاسونو وړاندې لېږلي دي. او الله په ظالمانو باندې ښه پوه دی

۹۶:۲ - او خامخا ته به له ټولو خلقو نه زيات د ژوند پسې حرصناك هم دوی مومې، او تر دې چې له مشرکانو نه هم (زيات حرصناك)، د دوی (د يهوديانو) هر يو کس دا ارزو کوي چې ارمان! که زرکاله عمر ورکړی شي، او نه دی هغه خَلاصَوُنکی ده لره له

عذاب نه، دا چې (دومره) عمر ورکړی شي، او الله هغه څه لره ښه ليدونکی دی چې دوی يې کوي

۹۷:۲ - ووايه: هر څوك چې د جبريل دښمن دی، نو يقيناً هغه دا (قرآن) د الله په حکم سره ستا په زړه نازل کړی دی، چې د هغو (کتابونو) تصديق کوونکی دی، چې له ده نه مخکې دي، او د مومنانو لپاره هدايت او زيری دی

۹۸:۲ - هر څوك چې د الله دښمن دی او د هغه د ملايکو او د هغه د رسولانو او د جبريل او د ميکائيل، نو يقيناً الله د کافرانو دښمن دی

۹۹:۲ - او يقيناً په تحقيق سره مونږ ستا په طرف روښانه ايتونه نازل کړي دي اوپه هغو باندې يواځې او يواځې فاسقان (بدکاران) کافر کېږي

۱۰۰:۲ - ايا هرکله چې دوی به وعده وکړه، کومه وعده، نو په دوی کې يوې ډلې به هغه وغورځوله، بلکې د دوی اکثره خلق ايمان نه راوړي

۱۰۱:۲ - او کله چې دوی ته د الله له جانب نه رسول راغی، چې تصديق کوونکی دی د هغه څه چې له دوی سره دي، نو له هغو کسانو نه چې کتاب (تورات) ورته ورکړی شوی و (اهل کتاب وو) يوې ډلې د الله کتاب د خپلو شاګانو وروسته (داسې) وغورځاوه، ګوياکې دوی نه پوهېږي

۱۰۲:۲ - او دوی د هغه څه تابع شول چې د سليمان په بادشاهت کې شيطانانو لوستل، او سليمان کفر نه و کړی او لېکن شيطانان کافر شوي وو، خلقو ته به يې جادو (سحر) ښوده. او (دوی تابع شول) د هغه څه چې په بابل ښار کې په دوه ملايکو هاروت او ماروت نازل کړی شوی و او دغو دواړو به هيچا ته ښودنه نه کوله، مګر چې ويل به يې: اصل خبره دا ده چې مونږ يَوْ ازمېښت يو، نو ته مه کافر کېږه، نو هغوی به له دغو دواړو نه هغه څه زده کول چې په هغه سره به يې د سړي او د هغه د ښځې په مينځ کې جدايي راوستله، او په دې (جادو) سره دوی هيچا ته هم ضرر نه شو رسولی مګر د الله په حکم سره، او دوی به هغه څه زده کول چې دوی ته به يې ضرر رساوه او فايده به يې ورته نه رسوله. او يقيناً يقيناً دوی په دې پوه وو چې چا دا (سحر) واخيسته، نو د هغه لپاره په اخرت (جنت) کې هېڅ برخه نشته، او يقيناً بد دی هغه څيز چې د هغه په بدل کې دوی خپل ځانونه خرڅ کړل، که چېرې دوی

پوهېدلی

۱۰۳:۲ - او که یقینًا دوی ایمان راوړی وی او پرهېزګاره شوي وی، نو خامخا د الله له جانبه بدله ډېره ښه ده، که دوی پوهېدلی

۱۰۴:۲ - ای هغو کسانو چې ایمان يې راوړی دی! تاسو 'رَاعِنَا' (لفظ) مه وایئ او 'اُنْظُرْنَا' (مونږ ته وګوره) وایئ او (خبره) اورئ.او د کافرانو لپاره ډېر دردوونکی عذاب دی

۱۰۵:۲ - دا خبره نه هغه کسان خوښوي چې په اهل کتابو کې کافر شوي دي او نه يې مشرکان، چې ستاسو د رب له جانبه په تاسو څه خیر نازل کړی شي، او الله په خپل رحمت سره خاص کوي هغه څوك چې يې وغواړي، او الله د عظیم فضل خاوند دی

۱۰۶:۲ - مونږ چې کوم ایت منسوخ کوو، یا يې (د مومنانو له زړونو نه) هیرَوُو، نو له هغه نه غوره، یا د هغه په شان راوړو، ایا ته پوه نه يې چې یقینًا الله پر هر شي باندې ښه قادر دی

۱۰۷:۲ - ایا ته پوه نه يې چې یقینًا الله چې دی، د اسمانونو او ځمکې بادشاهي خاص د هغه لپاره ده، او تاسو لپاره له الله نه غیر (بل) هېڅ کارساز نشته او نه مددګار

۱۰۸:۲ - ایا تاسو اراده لرئ چې له خپل رسول نه (داسې) سوال وکړئ لکه څنګه چې له دې نه مخکې له موسٰی نه سوال شوی و؟ او هغه څوك چې د ایمان په بدل کې کفر واخلي، نو یقینًا هغه له سمې لارې نه بې لارې شو

۱۰۹:۲ - په اهل کتابو کې ډېر خلق د خپلو نفسونو د حسد په وجه، د حق له واضحه کېدو نه بعد (هم)، دا ارزو لري چې له ایمان راوړو نه پس تاسو بیا کافران کړي، نو (لا دوی ته) معافي کوئ او مخ ترې واړوئ، تر هغې چې الله خپل حکم راوړي، بېشکه الله پر هر شي باندې ښه قادر دی

۱۱۰:۲ - او تاسو لمونځ قایموئ او زکات ورکوئ، او هر هغه خیر (نېکي) چې تاسو يې د خپلو ځانونو لپاره مخکې لېږئ، هغه به له الله سره ومومئ، بېشکه الله هغه

عمل لره ښه ليدونکی دی چې تاسو يې کوئ

۱۱۱:۲ - او دوی (اهل کتاب) وايي: جنت ته به هيڅکله هم (څوك) داخل نشي، مگر هغه څوك چې يهودي وي، يا نصراني.، دا د دوی (باطلې) ارزوگانې دي، ته (ورته) ووايه: (په دې دعوا) خپل دليل راوړئ، که تاسو رښتوني يئ

۱۱۲:۲ - ولې نه! چا چې خپل مخ د الله تابع کړو او نېکي کوونکی و، نو د هغه لپاره د خپل رب په نيز اجر دی، او په دوی باندې نه هيڅ وېره شته او نه به دوی غمژن کيږي

۱۱۳:۲ - او يهوديانو ويل: نصرانيان (د دين) په هېڅ څيز باندې (قايم) نه دي او نصرانيانو ويل: يهوديان (د دين) په هېڅ څيز باندې (ولاړ) نه دي، حال دا چې دوی کتاب لولي، همدارنگه، د دوی د خبرې په شان خبره هغو کسانو هم کړې وه چې بې علمه وو، نو الله به د قيامت په ورځ د دوی په مينځ کې د هغو خبرو په هکله فيصله کوي چې دوی به په کې اختلاف کاوه

۱۱۴:۲ - او له هغه کس نه بل زيات ظالم څوك دی چې د الله جوماتونه بندوي (له دې خبرې نه) چې په دغو (جوماتونو) کې د هغه (الله) نوم ياد کړی شي او د دغو (جوماتونو) په ورانولو کې کوشش کوي، دغه کسان چې دي، دوی ته دا حق نشته چې دې (جوماتونو) ته ننوځي مگر دا چې وېرېدونکي وي.، د دوی لپاره په دنيا کې رسوايي ده او د دوی لپاره په اخرت کې ډېر لوی عذاب دی

۱۱۵:۲ - او خاص د الله لپاره مشرق او مغرب دی، نو کوم طرف ته چې تاسو مخ کوئ، نو هلته د الله مخ دی، بېشکه الله ډېر فراخی والا، ښه پوه دی

۱۱۶:۲ - او هغوی وويل: الله (د ځان لپاره) اولاد نيولی دی، (داسې نه ده) هغه (له دې خبرو نه) پاك دی، بلکې څه چې په اسمانونو او ځمکه کې دي، هغه (ټول) خاص د هغه لپاره دي، ټول د هغه حکم منونکي دي

۱۱۷:۲ - بې له نمونې پيدا کونکی د اسمانونو او ځمکې دی، او کله چې د کوم کار فيصله وکړي، نو همدا خبره ده چې هغه ته ووايي: ''وشه'' نو هغه وشي

۱۱۸:۲ - او وويل هغو کسانو چې (په هيڅ) نه پوهيږي: زمونږ سره الله ولې خبرې نه کوي، يا مونږ ته ولې کومه نښه نه راځي؟ همدارنگه د دوی د خبرې په شان خبره

هغو کسانو (هم) کړې وه؛ چې له دوی نه مخکې وو، د دوی زړونه له یو بل سره مشابه (یوشان) شوي دي، یقینًا مونږ د هغو خلقو لپاره ایتونه بیان کړي دي چې یقین کوي

۱۱۹:۲ - یقینًا (ای نبي!) ته مونږه په حقه سره زېری ورکوونکی او وېروونکی لېږلی یې، او د دوزخیانو په باره کې به له تا نه تپوس نه کېږي

۱۲۰:۲ - او له تا نه خو به هیڅکله نه یهودیان راضي شی، او نه نصرانیان، تر دې چې ته د دوی د دین پیروي وکړې.، ته ووایه: بېشکه د الله هدایت، هُم هغه (اصل) هدایت دی، او یقینًا که تا، له دې نه پس چې تا ته علم راغی، د هغوی د خواهشاتو پیروي وکړه، (نو) تا لره د الله (له عذاب) نه (خلاصونکی) نه څوك دوست شته او نه کوم مددګار

۱۲۱:۲ - هغه کسان چې مونږ هغوی ته کتاب ورکړی دی، هغوی د دې (کتاب) تلاوت کوي (څنګه) چې یې د تلاوت حق دی، هم دغه کسان په ده ایمان راوړي، او څوك چې په دې (کتاب) باندې کافر شه، نو هم دغه کسان تاوانیان دي

۱۲۲:۲ - ای بني اسرائیلو! زما هغه نعمتونه یاد کړئ چې ما پر تاسو باندې لَورَولي دي او دا چې بېشکه ما تاسو پر عالَمونو باندې غوره کړي وئ

۱۲۳:۲ - او له هغې ورځې نه ووېرېږئ چې هېڅ یو نفس به د بل نفس هېڅ په کار رانشي، او نه به له هغه نه فدیه (بدل) قبلېږي او نه به هغه ته څه سفارش فایده ورکوي او نه به له هغوی سره مرسته کېږي

۱۲۴:۲ - او (یاد کړه) هغه وخت چې خپل رب یې ابراهیم په څو خبرو سره وازمایه، نو (ابراهیم) هغه پوره کړې. (الله) وویل: یقینًا زه تا د خلقو لپاره امام جوړوم، هغه وویل: او زما په اولاد کښې (هم امامان جوړکړه) (الله) وویل: زما عهد (د امامت وعده) ظالمانو (کافرانو) ته نه رسېږي

۱۲۵:۲ - او کله چې مونږه بیت الله د خلقو لپاره د جمع کېدو او د امن ځای وګرځاوه، او (مونږ وویل:) له مقامِ ابراهیم نه"لمونځ ځای" جوړ کړئ، او مونږ ابراهیم او اسمٰعیل ته کلك حکم وکړ دا چې تاسو (دواړه) زما کور د طواف کوونکو او اعتکاف

کوونکو او رکوع کوونکو، سجده کوونکو لپاره ښه پاك کړئ

۱۲۶:۲ - او کله چې ابراهیم وویل: ای زما ربه! دا (ځای) امن ناکه ښار جوړ کړه، او د ده اوسېدونکوته له مېوو نه روزي ورکړه، (خو) په دوی کې یواځې هغه چا ته چې په الله او په ورځ د اخرت یې ایمان راوړی وي. (الله) وویل: او څوك چې كافر شو، نو هغه ته به لږه فایده ورکړم، بیا به هغه په زوره د اور عذاب ته بوځم او هغه د ورتلو بد ځای دی

۱۲۷:۲ - او کله چې ابراهیم د بیت الله بنیادونه اوچتول او (ورسره) اسمٰعیل (هم) (دواړو دا دعا کوله) ای زمونږه رَبه! زمونږ نه (دا عمل) قبول کړه، ته چې یې، خاص ته، ښه اورېدونکی، ښه عالم یې

۱۲۸:۲ - ای زمونږه ربه! مونږ ستا (حکم) منونکي جوړکړه او زمونږه په اولاد کې (هم) یوه ډله ستا حکم منونکې (جوړه کړه) او مونږ ته زمونږ د عبادت طریقې وښَیَه او زمونږه توبه قبوله کړه، یقینًا همدا ته ډېر ښه توبه قبلوونکی، بې حده رحم کوونکی یې

۱۲۹:۲ - ای زمونږه ربه! دې (خلقو) ته له هم دوی نه یو رسول ولېږه، چې دوی ته ستا ایتونه تلاوت کوي او دوی ته کتاب (قرآن) او حکمت (سنت) ښَیي او دوی پاکوي، یقینًا، هم دا ته، ډېر غالب، ښه حکمت والا یې

۱۳۰:۲ - اوڅوك دی چې د ابراهیم له ملت نه مخ اړوي، سِوا له هغه کس نه چې خپل ځان یې جاهل کړی وي او یقینًا یقینًا مونږه هغه (ابراهیم) په دنیا کې غوره کړی دی او بېشکه هغه په اخرت کې خامخا له صالحانو ځنې دی

۱۳۱:۲ - کله چې هغه ته خپل رب وویل: حکم منونکی شه، هغه وویل: زه د رب العلمین لپاره حکم منونکی شوم

۱۳۲:۲ - او ابراهیم خپلو زامنو ته د دې وصیت وکړ او یعقوب (هم، ویې ویل:) ای زما زامنو! بېشکه الله تاسو لپاره دا دین غوره کړی دی، نو ښخي مه مرئ مګر په داسې حال کې چې مسلمانان یئ

۱۳۳:۲ - ایا تاسو هغه وخت موجود وئ چې یعقوب ته مرګ حاضر شو؟ کله چې

هغه خپلو زامنو ته وویل: له ما نه بعد به د څه شي عبادت کوئ؟ هغوی وویل: مونږ به ستا د اِلٰه (معبود) او ستا د پلرونو ابراهیمٖ، او اسمٰعیل او اسحٰق د اِلٰه عبادت کوو، د یو حق معبود، او مونږه (ټول) د هغه حکمٖ منونکي یو

۱۳۴:۲ - دغه یوه ډله وه چې یقینًا تېره شوې ده، څه (عمل) چې هغوی کړی دی؛ هغه د هغوی لپاره دی او څه چې تاسو کړی دی؛ هغه تاسو لپاره دی، او له تاسو نه به د هغوی د عملونو په باره کې تپوس نه کېږي

۱۳۵:۲ - او دوی ویل چې تاسو یهودیان شئ، یا نصرانیان، نو نېغه لار به ومومئ.، ته (دوی ته) ووایه: (داسې نه ده) بلکې (مونږ) د ابراهیمٖ د ملت (تابع کېږو) چې حنیف (توحید والا) و او دی له مشرکانو څخه نه و

۱۳۶:۲ - تاسو ووایئ: مونږ په الله ایمان راوړی دی او په هغه څه چې مونږ ته نازل کړی شوي دي، او په هغه څه چې ابراهیمٖ او اسمٰعیل او اسحٰق او یعقوب او (د هغوی) اولادې ته نازل کړی شوي دي، او (مونږ ایمان راوړی دی) په هغه څه چې موسٰی او عیسٰی ته ورکړی شوي دي، او په هغه څه چې د خپل رب له جانبه (نورو) نبیانو ته ورکړی شوي دي. مونږ په دوی کې د هېڅ یو په مینځ کې فرق نه کوو، او مونږ خاص د هغه (الله) حکمٖ منونکي یو

۱۳۷:۲ - نو که دوی هغه شان ایمان راوړي څنګه چې تاسو په دې (کتاب) ایمان راوړی دی، نو یقینًا دوی سمه لاره وموندله او که مخ یې وګرځاوه، نو همدا خبره ده چې دوی په سخت مخالفت کې دي، نو ژر ده چې د دوی مقابلې ته به تا لپاره الله کافي شي او همٖ هغه ښه اورېدونکی، ښه پوه دی

۱۳۸:۲ - (مونږ) د الله رنګ (قبول کړی دی) او له الله نه په رنګ کې څوك ډېر ښه دی! او مونږ خاص د هغه عبادت کوونکي یو

۱۳۹:۲ - ته (دوی ته) ووایه: ایا تاسو زمونږ سره د الله په باره کې جګړه کوئ؟ حال دا چې هغه زمونږ رب دی او ستاسو (همٖ) رب دی.، زمونږ لپاره زمونږ عملونه دي او تاسو لپاره ستاسو عملونه دي اومونږ خاص د هغه لپاره اخلاص کوونکي یو

۱۴۰:۲ - ایا تاسو (دا) وایئ چې بېشکه ابراهیمٖ او اسمٰعیل او اسحٰق او یعقوب او (د

هغه) اولاده یهودیان، یا نصرانیان وو؟ ته (دوی ته) ووایه: ایا تاسو ډېر پوه یئ، یا که الله؟ او له هغه کس نه زیات ظالم څوك دی چې هغه گواهي پټوي چې له ده سره د الله له جانبه ده؟ او الله ستاسو له عملونو نه کله هم غافل نه دی

۱۴۱:۲ - دغه یوه ډله ده چې یقینًا تېره شوې ده، څه (عمل) چې هغوی کړی دی؛ هغه د هغوی لپاره دی او څه (عمل) چې تاسو کړی دی؛ هغه تاسو لپاره دی او له تاسو نه به د هغوی د عملونو په باره کې تپوس نه کېږي

۱۴۲:۲ - له خلقو څخه بې وقوفان به ژر ووایي چې دوی له خپلې هغه قبلې نه څه شي واړول چې دوی په هغې باندې وو؟ ته (ورته) ووایه: خاص د الله لپاره مشرق او مغرب دی، سمې (نېغې) لارې ته هدایت کوي چا ته چې یې وغواړي

۱۴۳:۲ - او همدارنگه مونږه تاسو غوره امت جوړ کړي یئ، د دې لپاره چې تاسو په خلقو باندې شاهِدان (گواهان) شئ، او رسول پر تاسو باندې گواه شي. اوهغه قبله چې ته په هغې باندې وې؛ مونږه نه وه مقرره کړې مگر د دې لپاره چې مونږ هغه څوك معلوم (څرگند) کړو چې د رسول پیروي کوي له هغه چا نه چې په خپلو پوندو باندې بېرته گرځي، او یقینًا دا (خبره) ډېره درنه ده، مگر په هغو کسانو چې الله ورته هدایت کړی دی (درنه نه ده) او الله کله هم داسې نه دی چې ستاسو ایمان (لمونځونه) ضابع کړي، یقینًا الله په خلقو باندې خامخا ډېر نرمي کوونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۱۴۴:۲ - یقینًا اسمان ته ستا د مخ گرځېدل (اوړېدل) مونږ وینو، نو مونږ به تا خامخا د هغې قبلې په طرف وگرځوو چه ته یې خوښَوې، نو خپل مخ د مسجد حرام (کعبې) په طرف وگرځوه. او تاسو چې په هر ځای کې یئ، نو خپل مخونه د هغه په طرف وگرځوئ، او بېشکه هغه کسان چه هغو ته کتاب ورکړی شوی دی؛ هغوی خامخا پوهېږي چې یقینًا دا (د قبلې بدلول) د دوی د رب له جانبه حق دي، او الله له هغه څه نه چه دوی یې کوي کله هم غافل نه دی

۱۴۵:۲ - او یقینًا که ته هغو کسانو ته چې ورته کتاب ورکړی شوی دی، هره نښه (هر قسمه دلیل) راوړې (بیا به هم) هغوی ستا د قبلې تابع نشي او ته (هم) د هغوی د قبلې تابع کېدونکی نه یې، او د دوی بعضې د بعضو نورو د قبلې تابع

کېدونکي نه دي، او يقيناً له دې نه پس چې تا ته علم راغی، که چېرې ته د هغوی د خواهشاتو تابع شوې (نو) يقيناً يقيناً ته به په دغه وخت کې له ظالمانو نه يې

۱۴۶:۲ - هغه کسان چه مونږ هغوی ته کتاب ورکړی دی، هغوی دا (محمدﷺ، قرآن، اسلام) پېژني لکه چې دوی خپل زامن پېژني، او يقيناً له دوی نه يوه ډله لازماً حق پټوي، حال دا چې دوی پوهېږي

۱۴۷:۲ - حق ستا د رب له جانبه دی، نو کله هم له شك کوونکو نه مه کېږه

۱۴۸:۲ - او د هر چا لپاره يو جانب دی چې دا هغه ته مخ گرځوونکی دی، نو نېکيو ته له يو بل نه مخکې کېږئ، په هر ځای کې چې تاسو يئ الله به تاسو (ټول) په جمع راولي، يقيناً الله په هر شي باندې ښه قادر دی

۱۴۹:۲ - او له کوم ځای نه چه ته وځې، نو خپل مخ د مسجد حرام په طرف وگرځوه، او يقيناً همدا ستا د رب له جانبه خامخا حق دي، او الله له هغه څه نه چه تاسو يې کوئ کله هم غافل نه دی

۱۵۰:۲ - او له کوم ځای نه چې ته وځې، نو خپل مخ د مسجد حرام (قبلې) په طرف وگرځوه، او تاسو چې په هر ځای کې يئ، نو خپل مخونه د هغه په طرف وگرځوئ، د دې لپاره چې د خلقو لپاره په تاسوباندې څه حجت (او اعتراض) نه وي، مگر له دوی څخه هغه کسان چې ظلم يې کړی دی، نو له هغو نه مه وېرېږئ، او له ما نه وېرېږئ، او د دې لپاره چې زه خپل نعمتونه پر تاسو باندې پوره کړم او د دې لپاره چې تاسو هدايت ومومئ

۱۵۱:۲ - لکه چې مونږه په تاسو کې له هم تاسو نه رسول درلېږلی دی چې پر تاسو باندې زمونږه ايتونه تلاوت کوي، او تاسو پاکوي او تاسو ته کتاب او حکمت (سنت) ښَيي، او تاسو ته د هغه څه تعليم درکوي چې تاسو پرې نه پوهېدلئ

۱۵۲:۲ - نو تاسو ما يادوی زه به تاسو يادکړم او زما شکر وباسئ او په ما باندې مه کافر کېږئ

۱۵۳:۲ - ای هغو کسانو چه ايمان يې راوړی دی! په صبر او لمانځه سره مدد غواړئ، يقيناً الله د صبر کوونکو ملگری دی

۱۵۴:۲ - او تاسو هغه چا ته مړه مه وایئ چې د الله په لاره کې ووژل شي بلکې (هغوی) ژوندي دي او لېکن تاسو (د هغوی په ژوند) نه پوهېږئ

۱۵۵:۲ - او خامخا مونږ به تاسو ضرور په یو شي سره له وېرې او له لوږې او د مالونو او د ځانونو او دمېوو په نقصان (کمي) سره ازمایو، اوصبر کوونکو ته زېری ورکړه

۱۵٦:۲ - هغه کسان چې کله دوی ته څه مصیبت ورسي (نو) وایي: یقینًا مونږ د الله (مملوك) یو او بېشکه مونږه خاص هغه ته ورګرځېدونکي یو

۱۵۷:۲ - دغه خلق، پر همې دوی باندې د خپل رب له جانبه عنایتونه دي او رحمت دی، او همدغه خلق هدایت موندونکي دي

۱۵۸:۲ - یقینًا صفا او مروه د الله له نښو څخه دي، نو هر څوك چې د بیت الله حج کوي، یا عمره کوي، نو په هغه باندې هېڅ ګناه نشته چې د دې دواړو طواف وکړي، او هر څوك چې په خپله خوښه څه نېکي وکړي، نو الله شکر قبلوونکی، ښه عالم دی

۱۵۹:۲ - یقینًا کوم خلق چې هغه څه پټوي چې مونږ نازل کړي دي، چې هدایت او ښکاره دلیلونه دي، له دې نه پس چې مونږ هغه په کتاب کې خلقو ته بیان کړي دي، دغه خلق (چې دي)، الله په دوی لعنت کوي اولعنت ویونکي په دوی لعنت وایي

۱٦۰:۲ - مګر هغه کسان چې توبه وباسي او (د ځان) اصلاح وکړي او (د حق) بیان وکړي، پس دغه کسان، زه د هغوی توبه قبلوم او زه ښه توبه قبلوونکی، بې حده رحم کوونکی یم

۱٦۱:۲ - بېشکه هغه کسان چې کفر یې کړی دی او په داسې حال کې مړه شول چې کافران وو، (نو) دغه کسان، په دوی باندې د الله لعنت دی او د ملایکو او د خلقو ټولو (لعنت دی)

۱٦۲:۲ - په دې حال کې چې همېشه به وي په دې (لعنت) کې، له دوی نه به نه عذاب سپك کړی شي او نه به دوی ته مهلت ورکړی شي

۱٦۳:۲ - او ستاسو حق معبود یو معبود دی، هېڅ لایق د عبادت نشته مګر یواځې هغه دی چې ډېر زیات مهربان، بې حده رحم کوونکی دی

۱۶۴:۲ - يقيناً د اسمانونو او د ځمکې په پېدا کولو کې، او د شپې او ورځې په بدلېدو کې، او په هغو بېړيو کې چې په سمندر کې يې هغه څه روان کړي وي چې خلقو ته نفع رسوي، او په هغه څه کې چې الله له اسمان (بره) نه راورَولي دي، چې اوبه دي، نو په دې سره يې ځمکه د هغې د مَړه کېدو (وچېدو) نه پس ژوندۍ کړه، او په دې کې يې هر قسمه خوځنده (شيان) خواره کړل، او د بادونو په گرځولو (راگرځولو) کې او په هغې وريځ کې چې د اسمان او ځمکې په مينځ کې مُسَخَّره کړی شوې ده، خامخا د (هغه) قوم لپاره نښې دي چې عقلمند وي

۱۶۵:۲ - او په خلقو کې ځېنې هغه څوك دي چه له الله نه غير شريکان نيسي، له هغوی سره مينه کوي له الله سره د مينې په شان، او هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی؛ له الله سره په مينه کې ډېر سخت (او کلك) دي، او که چېرى هغه کسان چې ظلم يې کړی دی؛ دا ووينې، کله چې دوی عذاب ويني، چې يقيناً قوت ټول خاص د الله لپاره دی او دا چې يقيناً الله ډېر سخت عذاب ورکوونکی دی

۱۶۶:۲ - کله چې هغه کسان چې اتباع يې کړی شوې وه، له هغو کسانو نه بېزاره شي چې اتباع يې کړې وه، او عذاب ووينې او په دوی (ټولې) وسيلې غوڅې شي

۱۶۷:۲ - او چا چې پيروي کړې ده، هغوی به وايي: ارمان! که مونږ لپاره (دنيا ته) بيا تلل وي، نو له دوی نه به مونږ بېزاره شو لکه چي دوی له مونږ نه بېزاره شول، همدارنگه به الله دوی ته خپل عملونه په دوی باندې د حسرتونو لپاره ښکاره کوي او دوی له اور نه کله هم وتونکي نه دي

۱۶۸:۲ - ای خلقو! له هغو څيزونو نه چي په ځمکه کې دي، حلال پاك خورئ او د شيطان د قدمونو پيروي مه کوئ، يقيناً هغه ستاسو ښکاره دښمن دی

۱۶۹:۲ - يقيناً همدا خبره ده چې هغه تاسو ته د بدۍ او بې حيايۍ حکم کوي او دا چې تاسو په الله باندې هغه خبرې وتړئ (وتپئ) چې تاسو پرې نه پوهېږئ

۱۷۰:۲ - او کله چې دوی ته وويل شي: د هغه څه پيروي وکړئ چې الله نازل کړی دی، (نو) وايي: (نه) بلکې مونږه د هغه څه پيروي کوو چې په هغه باندې مونږ خپل پلرونه (مشران) موندلي دي، ايا اگر که د دوی پلرونه (داسې) وو چې په هيڅ شي نه پوهېدل، اونه يې سمه لار موندلې وه

۱۷۱:۲ - د هغو کسانو مثال چې کفر یې کړی دی؛ د هغه کس په شان دی چې هغه (څارویو) ته ناري وهي چې نه اوري مګر یواځې تشه بلنه او غږ، (دوی) کاڼه دي، ګونګیان دي، ړانده دي، نو دوی هېڅ نه پوهیږي

۱۷۲:۲ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! له هغو پاکو حلالو څیزونو څخه خورئ چې مونږ تاسو ته درکړي دي، او د الله شکر وباسئ، که تاسو داسې یئ چې خاص د هغه عبادت کوئ

۱۷۳:۲ - بېشکه خبره دا ده چې هغه په تاسو باندې همدا مرداره او وینه او د خنزیر غوښه حرامه کړې ده او هغه څه (یې حرام کړي دي) چې په هغه باندې د غیرالله لپاره اواز کړی شوی وي، نو هغه څوك چې مجبورکړی شي، په دې حال کې چې نه سرکشي کوونکی وي او نه (له حد نه) تېرېدونکی وي، نو په هغه باندې هېڅ ګناه نشته، یقینًا الله ډېر بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۱۷۴:۲ - یقینًا هغه کسان چې هغه څه پټوي چې الله له (خپل) کتاب نه نازل کړي دي، او د دې په بدل کې لږ قیمت اخلي، (نو) دغه کسان، نه خوري (نه اچوي) په خپلو خېټو کې مګر اور، او د قیامت په ورځ به الله نه له دوی سره خبرې وکړي او نه به دوی پاك کړي او د دوی لپاره ډېر دردوونکی عذاب دی

۱۷۵:۲ - دا هغه کسان دي چې د هدایت په بدله کې یې ګمراهي اخیستې ده او دمغفرت په بدله کې عذاب، نو (تعجب دی) دوی په اور باندې څومره صبر کوونکي دي!

۱۷۶:۲ - دا ځکه چې بېشکه الله کتاب په حقه نازل کړی دی او یقینًا هغه کسان چې په کتاب کې یې اختلاف کړی دی؛ خامخا په ډېر لرې مخالفت کې دي

۱۷۷:۲ - نېکي دا نه ده چې خپل مخونه د مشرق او مغرب په طرف وګرځوئ، او لېکن نېکي (د هغه چا) ده چې په الله او په ورځ د اخرت او په ملایکو او په کتابونو او په نبیانو یې ایمان راوړی دی او د هغه په مینه (کې) خپلوانو او یتیمانو او مسکینانو او مسافرو او سوالګرو ته مال ورکوي او په (ازادولو د) څټونو کې (یې لګوي) او لمونځ قایموي او زکات ورکوي او د خپلو وعدو پوره کوونکي وي کله چې وعده وکړي، (خصوصًا) چې په سختۍ او تکلیف کې او د جنګ په وخت کې صبر کوونکي دي، دا

هغه خلق دي چې رښتيني دي او همدغه خلق متقيان دي

۱۷۸:۲ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! پر تاسو باندې د وژل شویو په باره کې (د) قصاص (قانون) فرض کړی شوی دی، ازاد د ازاد په بدل کې، او غلام د غلام په بدل کې، او ښځه د ښځې په بدل کې (قصاصېږي)، پس هغه څوك چې هغه ته د خپل ورور له جانبه د څه شي معافي وکړی شي، نو په ښې طریقې سره مطالبه (لازم) ده، او هغه (د مقتول ولي) ته په نېکې طرېقې سره اداکول (لازم) دي، دا ستاسو د رب له جانبه اساني او مهرباني ده، نو له دې نه پس چې چا زیاتی وکړ، نو د هغه لپاره ډېر دردوونکی عذاب دی

۱۷۹:۲ - او تاسو لپاره په قصاص کې لوی ژوند دی، ای د خالص عقل خاوندانو! د دې لپاره چې تاسو (ځان) وساتئ

۱۸۰:۲ - پر تاسو باندې فرض کړی شوي دي د مور او پلار او خپلوانو لپاره په ښې طریقې سره وصیت کول، کله چې په تاسو کې یو کس ته مرگ راشي، په دې شرط چې مال یې پرېښی وي.، دا په متقیانو ډېر لازم (حکم) دی

۱۸۱:۲ - نو چا چې دا (وصیت) له اورېدلو نه پس بدل کړ، نو یقینًا همدا خبره ده چې د دې (بدلولو) گناه په هغو کسانو ده چې دا (وصیت) بدلوي، یقینًا الله ښه اورېدونکی، ښه عالم دی

۱۸۲:۲ - بیا چې څوك له وصیت کوونکي نه (په خطا سره) د ظلم، یا (په قصد سره) د گناه وېره لري، نو د هغوی په مینځ کې یې جوړه وکړه، نو په هغه باندې هېڅ گناه نشته، یقینًا الله ډېر بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۱۸۳:۲ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! پر تاسو باندې روژه فرض کړی شوې ده لکه چې فرض کړی شوې وه پر هغو کسانو چې له تاسو نه مخکې وو، د دې لپاره چې تاسو متقیان شئ

۱۸۴:۲ - یو څو ورځې شمېرل شوې، نو څوك چې په تاسو کې مریض وي، یا په سفر وي، نو (په هغه باندې) د نورو ورځو شمېرل دي، اوپه هغو کسانو باندې چې د دې (روژې) طاقت لري، د یو مسکین خوراك فدیه لازم ده، پس څوك چې په

خوښۍ سره نېکي وکړي، نو د ده لپاره هغه بهتره ده، او دا چه روژه ونیسئ (دا) تاسو لپاره ډېر غوره دي، که چېرې یئ تاسو چې پوهېږئ

۱۸۵:۲ - د رمضان میاشت هغه ده چې په هغې کې قرآن نازل کړی شوی دی، چې د خلقو لپاره هدایت دی، او د هدایت او د فرقان (حق او د باطل بېلوونکي) ښکاره دلیلونه دي، نو په تاسو کې چې څوك دې میاشتې کې حاضر و، نو هغه دې د دې روژې ونیسي، او څوك چې مریض وي، یا په سفر وي، نو (په هغه) د نورو ورځو شمېرل دي، الله په تاسو د اسانتیا اراده لري او پر تاسو باندې د سختۍ اراده نه لري او د دې لپاره چې تاسو شمېره پوره کړئ او د دې لپاره چې تاسو د الله لویي بیان کړئ، په دې چې هغه تاسو ته هدایت کړی دی، او د دې لپاره چې تاسو شکر وباسئ

۱۸٦:۲ - او کله چې زما په باره کې له تا نه زما بنده گان تپوس وکړي، نو یقینًا زه قریب یم، د دعا کوونکي دعا قبلوم کله چې له ما نه دعا غواړي، پس دوی دې زما حکم ومني، او په ما دې ایمان راوړي، د دې لپاره چې دوی سمه لار ومومي

۱۸۷:۲ - تاسو لپاره د روژې په شپه کې له خپلو ښځو سره یو ځای کېدل حلال کړی شوي دي، هغوی تاسو لپاره لباس (جامې) دي او تاسو د هغوی لپاره لباس (جامې) یئ، الله ته معلوم دي چې یقینًا تاسو له خپلو ځانونو سره خیانت کاوه، نو په تاسو یې (د مهربانۍ) رجوع وکړه، او تاسو ته یې معافي وکړه، نو اوس له هغوی سره مباشرت (کوروالی) کوئ او څه چې الله تاسو لپاره لیکلي دي هغه لټوئ، او خورئ، اوڅښئ تر هغه چې تاسو ته سپین تار د سبا له تور تار نه ښه ښکاره (او بېل) شي۔، بیا روژه تر شپې پورې پوره کړئ، او له هغوی سره مباشرت (کوروالی) مه کوئ، په داسې حال کې چې تاسو په جوماتونو کې اعتکاف کوونکي یئ، دا د الله پُولې (حدونه) دي، نو دې ته مه نژدې کېږئ، هم په دې شان الله خپل ایتونه خلقو ته واضحه بیانوي، د دې لپاره چې دوی متقیان شي

۱۸۸:۲ - او خپل مالونه په خپل مینځ کې په ناحقه سره مه خورئ او حاکمانو ته یې د دې لپاره مه ورکوئ چې د خلقو له مالونو نه څه حصه په ظلم سره وخورئ، حال دا چې تاسو پوهېږئ

۱۸۹:۲ - دوی له تا نه د نويو مياشتو په باره کې تپوس کوي، ته (ورته) ووايه: دا (مياشتې) د خلقو او د حج لپاره ټاکلي وختونه دي، او (دا) نېکي نه ده چې کورونو ته د هغو له شاګانو نه راشئ، او لېکن نېکي د هغه چا ده چې متقي شي، او تاسو کورونو ته د هغو له دروازو نه راځئ، او له الله نه وېرېږئ، د دې لپاره چې کامياب شئ

۱۹۰:۲ - او د الله په لاره کې له هغو کسانو سره جنګ کوئ چې له تاسو سره جنګېږي، او له حد نه مه تېرېږئ، يقينًا الله له حد نه تېرېدونکي نه خوښوي

۱۹۱:۲ - او دوی وژنئ کوم ځای چې دوی ومومئ، او دوی له هغه ځای نه وباسئ چې تاسو يې وېستلي وئ، او فتنه (شرك، له دين نه اړول) له قتل نه ډېره سخته (ګناه) ده او له دوی سره د مسجد حرام په خوا کې جنګ مه کوئ، تر دې چې دوی له تاسو سره په ده کې جنګ شروع کړي، نو که دوی له تاسو سره جنګ شروع کړي، نو بيا دوی قتل کړئ، د کافرانو سزا همداسې ده

۱۹۲:۲ - پس که چېرې دوی منع شول، نو يقينًا الله ښه بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۱۹۳:۲ - او له دوی سره جنګېږئ تر هغه چې فتنه (د کافرانو زور) پاتې نشي، او دين (ټول) د الله لپاره شي، نوکه دوی منع شول، نو هېڅ زياتی نشته مګر په ظالمانو باندې

۱۹۴:۲ - حرامه مياشت په بدل د مياشتې حرامې کې ده، او حرمتونه (عزتونه) په بدله دي، پس چا چې پر تاسو باندې تېری وکړ، نو تاسو په هغه باندې (په جواب کې) تېری وکړئ په مثل د هغه چې هغه پر تاسو باندې تېری کړی دی، او له الله نه وېرېږئ او پوه شئ چې يقينًا الله د متقيانو ملګری دی

۱۹۵:۲ - او د الله په لاره کې خرڅ کوئ اوپه خپلو لاسونو هلاکت ته غورځول مه کوئ، او نېکي کوئ، يقينًا الله له نېکي کوونکو سره مينه کوي

۱۹۶:۲ - او حج او عمره خاص د الله لپاره پوره کړئ، بيا که چېرې (له حج، يا عمرې نه) ايسار کړی شوئ، نو (بيا لازم ده) هغه هَدي (د حرم قرباني) چې په اسانۍ سره ترلاسه شي او خپل سرونه مه خرَوئ تر هغه چې قرباني خپل (د حلالې) ځای ته

ورسي، پس څوك چې په تاسو كې ناجوړه وي، يا ده ته په خپل سر كې څه تكليف وي، نو (په ده) فديه لازمه ده په روژې سره، يا په صدقې سره، يا په قربانۍ سره، نو كله چې تاسو په امن شئ، پس كه چا فايده واخيسته په عمرې سره حج ته، نو (په هغه لازمه ده) هغه قرباني چې په اسانۍ سره ترلاسه شي، پس كه چا (قرباني) ونه موندله، نو درې ورځې روژې په حج كې (واجبې) دي او اوه روژې هغه وخت دي چې تاسو راوګرځئ، دا پوره لس (ورځې) دي، دا (حكم د تمتع) د هغه چا لپاره دى چې د هغه ټبر د مسجد حرام اوسېدونكي نه وي، او له الله نه وېرېږئ او پوه شئ چې يقيناً الله سخت عذاب وركونكى دى

۱۹۷:۲ - (وخت د احرام د) حج څو معلومې مياشتې دي، نو چا چې په دې (مياشتو) كې (په ځان باندې) حج فرض كړ، نو په حج كې نه د ښځو د شهوت خبرې كول شته او نه (د الله) نافرماني او نه جګړه ـ او تاسو چې څه نېكي كوئ، الله په هغې پوهېږي، اوتوښه واخلئ، پس يقيناً بهترينه توښه تقوىٰ ده، اى د صفا عقل خاوندانو! له ما نه وېرېږئ

۱۹۸:۲ - پر تاسو باندې په دې كې هېڅ ګناه نشته چې د خپل رب څه فضل ولټوئ، نو كله چې له عرفات نه راكوز شئ، نو په مشعرحرام كې د الله ذكر كوئ، او د هغه ذكر كوئ لكه څنګه چې يې تاسو ته ښودنه كړې، او يقيناً تاسو له دې نه مخكې خامخا له ګمراهانو څخه وئ

۱۹۹:۲ - بيا راكوزېږئ له هغه ځاى نه چې خلق ترې راكوزېږي او له الله نه مغفرت غواړئ، يقيناً الله ښه مغفرت كوونكى، بې حده رحم كوونكى دى

۲۰۰:۲ - نو كله چې تاسو خپل د حج عبادتونه (اعمال) ادا كړئ، نو الله يادوئ په شان د يادولو ستاسو خپلو پلرونو لره، بلكې زيات يادول، نو په خلقو كې ځينې هغه څوك دي چې وايي: اى زمونږه ربه! ته مونږ ته (هر څه) په دنيا كې راكړه، او د دغه كس لپاره په اخرت كې هېڅ برخه نشته

۲۰۱:۲ - او په دوى كې بعضې هغه څوك دي چې وايي: اى زمونږه ربه! مونږ ته په دنيا كې نعمت راكړه او په اخرت كې (هم) نعمت راكړه او مونږ د اور له عذابه وساته

۲۰۲:۲ - دغه كسان دي چې د دوى لپاره د دوى د كړو (نېكو) عملونو په سبب لويه

برخه ده، او الله ډېر ژر حساب کوونکی دی

۲۰۳:۲ - په شمېرل شویو ورځو کې الله یادوئ، پس څوك چې په دوه ورځو کې ژر لاړ، نو په هغه هېڅ گناه نشته، او چا چې تاخیر وکړ، نو په ده (هم) هېڅ گناه نشته، د هغه چا لپاره چې تقویٰ یې غوره کړې وي او له الله نه وېرېږئ، او په دې پوه شئ چې یقینًا تاسو به خاص هغه ته ورجمع کولی شئ

۲۰۴:۲ - او بعضې له خلقو نه هغه څوك دي چې د دنیایي ژوند په باره کې د هغه خبرې تا په تعجب کې اچوي او دی په هغه څه باندې الله گواه کوي چې د ده په زړه کې دي، حال دا چې دی ډېر زیات جگړه مار دی

۲۰۵:۲ - او کله چې بېرته وگرځي، نو په ځمکه کې گرځندی گرځي، د دې لپاره چې په دې کې فساد وکړي او فصل او نسل تباه کړي، حال دا چې الله فساد نه خوښوي

۲۰۶:۲ - او کله چې هغه ته وویل شي: له الله نه ووېرېږه، نو ده لره تکبر ونیسي په گناه کولو سره، نو د ده لپاره جهنم بس دی او یقینًا هغه بده استوگنه ده

۲۰۷:۲ - او بعضې له خلقو نه هغه څوك دي چې د الله د رضا لټولو لپاره ځان خرڅوي، او الله په بنده گانو باندې ډېر نرمي کوونکی دی

۲۰۸:۲ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! په اسلام کې پوره پوره داخل شئ او د شیطان د قدمونو پسې مه ځئ، یقینًا هغه ستاسو ښکاره دښمن دی

۲۰۹:۲ - بیا که چېرې تاسو له دې نه پس وښوئیدلئ؛ چې تاسو ته ښکاره دلیلونه (هم) راغلل، نو پوه شئ چې یقینًا الله ډېر غالب، ښه حکمت والا دی

۲۱۰:۲ - دوی انتظار نه کوي مگر د دې چې الله دوی ته د ورېځو په سیورو کې راشي او ملایك (هم) او معامله فیصله کړی شي، او ټول کارونه خاص الله ته ورگرځول کېږي

۲۱۱:۲ - له بني اسرائیلو نه تپوس وکړه چې مونږ څومره ډېرې واضحې نښې دوی ته ورکړې وې، او څوك چې د الله نعمت بدل کړي، له دې نه پس چې ده ته راغی، نو یقینًا الله سخت عذاب ورکوونکی دی

۲۱۲:۲ - او هغو کسانو ته چې کافران شوي دي دنیایي ژوند ښایسته کړی شوی

دی، او دوی په هغو کسانو پورې مسخرې کوي چې ایمان یې راوړی دی، او هغه کسان چې متقیان دي د قیامت په ورځ به د دوی له پاسه وي او الله چې چا لره وغواړي بې حسابه رزق ورکوي

۲۱۳:۲ - ټول خلق (په شروع کې) یو امت و (بیا په کې ځینې کافر شول) نو الله نبیان راولېږل چې زېری ورکوونکي او وېروونکي وو او له هغوی سره یې په حقه سره کتاب نازل کړ، د دې لپاره چې هغه د خلقو په منځ کې د هغه شي فیصله وکړي چې دوی په کې اختلاف کړی دی، او په هغه کې اختلاف نه دی کړی مګر هغو کسانو چې هغوی ته هغه (کتاب) ورکړی شوی و، په خپل منځ کې د لویي او ظلم په وجه (یې اختلاف کړی و)، له دې نه پس چې هغوی ته ښې څرګندې نښې راغلې، نو الله هغو کسانو ته چې ایمان یې راوړی و، په خپل حکم سره هغه حق ته هدایت وکړ چې هغوی (کافرانو) په کې اختلاف کړی و او الله د سمې لارې هدایت کوي هغه چا ته چې ویې غواړي

۲۱۴:۲ - ایا تاسو دا ګمان کوئ چې جنت ته به داخل شئ؟ حال دا چې پر تاسو باندې لا تر اوسه د هغو خلقو حالت نه دی راغلی چې له تاسو نه مخکې تېر شوي دي، هغوی ته سختي او بیماري رسېدلې وې، او جړقول شوي وو تر دې چې رسول او له هغه سره ایمان راوړونکو به وویل: د الله مدد به کله راځي؟ خبردار شئ! یقینًا د الله مدد ډېر نژدې دی

۲۱۵:۲ - دوی له تا نه پوښتنه کوي چې څه شی خرچ (انفاق) کړي؟ ته (ورته) ووایه: څه چې خرڅ کوئ له مال نه، نو (هغه) د مور او پلار لپاره او نژدې خپلوانو او او مسکینانو او مسافر لپاره دي، او تاسو چې څه نېکي هم کوئ، نو یقینًا الله په هغې ښه عالم دی,

۲۱۶:۲ - پر تاسو باندې جنګ کول فرض کړی شوي دي، حال دا چې دا ستاسو بدې شي، او کېدی شي چې تاسو به یو شی بد ګڼئ، حال دا چې هغه به تاسو لپاره ډېر غوره وي. او کېدی شی چې تاسو به یو شی خوښوئ، حال دا چې هغه به تاسو لپاره ډېر بد وي. او الله پوهېږي او تاسو نه پوهېږئ

۲۱۷:۲ - دوی له تا نه د حرامو میاشتو په باره کې تپوس کوي، په هغې کې د جنګ

کولو (په باره کې)، ته (ورته) ووایه: په هغې کې جنګ کول لویه ګناه ده۔ او د الله له لارې نه منع کول او په هغه (الله) سره کافر کېدل او له مسجد حرام نه منع کول او له هغه (مسجد) نه د هغه اهل (حقدار) وېستل د الله په نېز ډېره لویه ګناه ده، او فتنه (شرك) له قتل نه ډېره لویه ګناه ده، او دوی به همېشه له تاسو سره جنګ کوي تر هغه پورې چې تاسو له خپل دین نه واړوي، که وس یې وشي، او په تاسو کې چې څوك له خپل دین نه وګرځېده، بیا په داسې حال کې مړ شو چې کافر و، نو دغه کسان (چې دي) د دوی عملونه په دنیا او اخرت (دواړو) کې ضایع شوي دي او دغه کسان د اور ملګري دي، دوی به په هغه کې تل ترتله (همېشه) وي

۲۱۸:۲ - یقینًا هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او هغه کسان چې هجرت یې کړی دی او جهاد یې کړی دی د الله په لاره کې، دغه کسان د الله د رحمت امېد لري، او الله ډېر بخښونکی، ډېر مهربانه دی

۲۱۹:۲ ... - دوی له تا نه د شرابو او جوارۍ په باره کې تپوس کوي، ووایه: په دې دواړو کې ډېره لویه ګناه ده، او د خلقو لپاره په کې فایدې دي، او د دې دواړو ګناه ډېره لویه ده، د دې دواړو له فایدو نه۔ او دوی له تا نه پوښتنه کوي چې څه خرچ (انفاق) کړي؟ ته (ورته) ووایه: له نفقې (اخراجاتو) نه زیاتي (څیز خرچ کړئ) الله همداسې تاسو لپاره ایتونه بیانوي، د دې لپاره چې تاسو ښه فکر وکړئ†

۲۲۰:۲ - د دنیا او اخرت په باره کې، او دوی له تا نه د یتیمانو په باره کې پوښتنه کوي، ووایه: د دوی اصلاح کول ډېر ښه دي، او که تاسو هغوی (له ځان سره) شریك کړئ، نو ستاسو وروڼه دي، او الله پېژني ورانکاری له اصلاح کوونکي نه، او که الله غوښتلی، نو تاسو به یې خامخا په مشقت کې اچولي وی، یقینًا الله ډېر غالب، ښه حکمت والا دی‡

۲۲۱:۲ - او له مشرکو ښځو سره نکاح مه کوئ تر هغه پورې چې دوی ایمان راوړي، او خامخا مومنه وینځه ښېخي غوره ده له ازادې مشرکې نه اګر که هغه تاسو حیران کړي (د خوښېدو په وجه) او مشرکانو ته (مسلمانې ښځې) په نکاح مه ورکوئ تر هغه پورې چې دوی ایمان راوړي، او خامخا مومن مَرَیی ښېخي غوره دی له ازاد مشرك نه، اګر که هغه تاسو (د خوښېدو په وجه) حیران کړي، دغه کسان اور ته بلنه

کوي، او الله په خپل اذن سره جنت او مغفرت طرف ته بلنه کوي، او خلقو ته خپل ایتونه بیانوي، د دې لپاره چې دوی نصیحت قبول کړي

۲۲۲:۲ - او دوی له تا نه د حیض په باره کې پوښتنه کوي، ته ووایه: دا یوه پلیتي ده، نو په حیض کې د ښځو له جماع نه په ډډه شئ، او دوی ته مه نژدې کېږئ له (د جماع لپاره) تر هغه پورې چې پاکې شي، نو کله چې ښې پاکې شي، بیا له دوی سره جماع کوئ، په هغه ځای کې چې الله تاسو ته حکم کړی دی، یقینًا الله ډېرې توبې وېستونکي خوښوي او ښه پاك اوسېدونکي خوښوي%

۲۲۳:۲ - ستاسو ښځې تاسو لپاره فصل دي، نو خپل فصل ته راځئ څنګه چې ستاسو خوښه وي، او د خپلو ځانونو لپاره (نېك عمل) وړاندې ولېږئ، او له الله نه وېرېږئ او په دې پوه شئ چې یقینًا تاسو له هغه سره ملاقات کوونکي یئ، او مومنانو ته زېری ورکړه

۲۲۴:۲ - او تاسو الله د خپلو قسمونو لپاره هدف مه ګرځوئ (د الله نوم مه استعمالوئ) چې نه به کوئ نېکي او پرهېزګاري او د خلقو په منځ کې صلح، او الله ښه اورېدونکی، ښه پوه دی

۲۲۵:۲ - الله تاسو نه نیسي په خپلو قسمونو کې په لغو سره، او لېکن نیسي تاسو په هغه (قسم) چې ستاسو زړونو یې قصد (نیت) کړی وي، او الله ډېر بخښونکی، ښه تحمل کوونکی دی

۲۲٦:۲ - د هغو کسانو لپاره چې خپلو ښځو (ته له ورتلو) نه قسم خوري، د څلورو میاشتو مهلت دی، بیا که دوی رجوع وکړه، نو یقینًا الله ډېر بخښونکی، ډېر مهربان دی

۲۲۷:۲ - او که دوی د طلاقو عزم کړی وي، نو یقینًا الله ښه اورېدونکی، ښه پوه دی

۲۲۸:۲ - او طلاقې کړی شوې ښځې دې په خپلو ځانونو درې حیضه انتظار کوي، او د دوی لپاره حلال نه دي چې پټ کړي هغه څه چې الله د دوی په رَحِمونو کې پیدا کړي دي، که دوی په الله او په ورځ د اخرت ایمان لري. او په دې موده کې د دوی خاوندان د دوی د بیا راوستلو اصل حقدار دي که هغوی د اصلاح (جوړښت) اراده

لري، او د دستور مطابق د هغو (ښځو) لپاره (په خاوندانو باندې حقونه) دي په شان د هغو (حقونو) چې په دوی باندې لازم دي (د خپلو خاوندانو لپاره) او په دوی باندې د سړیو لپاره درجه شته، او الله ډېر غالب، ښه حکمت والا دی

۲۲۹:۲ - طلاق دوه ځله دي، بیا په ښې طریقې سره (ښځې لره) ساتل دي، یا په ډېرې ښې طریقې سره رخصتول دي او (ای سړو!) تاسو لپاره دا حلال نه دي چې له هغه (مال) نه چې تاسو دوی ته ورکړی دی؛ څه لږ شی هم واخلئ، مگر دا چې دواړه له دې نه ووېرېږي چې دوی به د الله حدونه (حکمونه) قایم نه کړي، نو که تاسو وېرېږئ چې دوی دواړه به د الله حکمونه پوره نه کړي، بیا نو په دې دواړو باندې هېڅ گناه نشته په هغه (مال) کې چې هغه ښځه یې د جداوالي لپاره ورکوي. دا د الله حدونه دي، نو له دغو نه مه تېرېږئ، او څوك چې د الله له حدونو نه تېر شي، نو همدغه کسان ظالمان دي

۲۳۰:۲ - که بیا یې هغه (په درېیم ځلې) طلاقه کړه، نو له دې نه پس هغه د ده لپاره حلاله نه ده تر هغه پورې چې هغه (ښځه له عدت نه پس) له ده نه غیر بل خاوند سره نکاح وکړي، بیا که هغه (دویم خاوند) دا طلاقه کړه، نو په دې دواړو (ښځه او پخواني خاوند) باندې هېڅ گناه نشته چې دواړه (له عدت نه پس په نوي نکاح سره) یو بل ته رجوع وکړي، که دواړه دا خیال کوي چې دوی به د الله حکمونه پوره کړي، او دا د الله حکمونه دي، دا د هغه قوم لپاره بیانوي چې پوهېږي•

۲۳۱:۲ - او کله چې تاسو ښځې طلاقې کړئ، بیا هغوی خپلې (د عدت اخري) مودې ته نژدې شي، نو دوی په ښې طریقې سره ایسارې کړئ (په رجوع کولو سره)، یا هغوی په ښې طریقې سره رخصت کړئ، او د ضرر رسولو لپاره هغوی مه ایساروئ چې زیاتی وکړئ، او چا چې دغه (کارونه) وکړل، نو یقینًا هغه په ځان ظلم وکړ. او د الله ایتونه مسخره مه جوړوئ او پر تاسو باندې (شوي) د الله نعمتونه یاد کړئ او هغه چې الله پر تاسو باندې نازل کړی دی چې کتاب (قرآن) او حکمت (سنت) دی، هغه تاسو ته په دې سره وعظ کوي، او له الله نه ووېرېږئ او پوه شئ چې یقینًا الله په هر شي باندې ښه پوه دی-

۲۳۲:۲ - او کله چې تاسو ښځو ته (رجعي) طلاق ورکړئ، بیا هغوی خپلې نېټې ته

ورسېږي (او عدت يې پوره شي) نو تاسو دوی مه منع کوئ (له دې نه) چې دوی له خپلو پخوانيو خاوندانو سره نکاح وکړي، کله چې دوی په خپل منځ کې د دستور مطابق راضي شي، دا (حکم چې دی)، په ده سره هغه چا ته وعظ کولی شي چې په تاسو کې په الله او په ورځ د اخرت ايمان لري، دا تاسو لپاره ډېر غوره او ډېر پاکيزه دی، او الله پوهېږي او تاسونه پوهېږئ—

۲۳۳:۲ - او میندې دې خپل اولاد ته پوره دوه کاله تی ورکوي، (دا حکم) د هغه چا لپاره دی چې د تي ورکولو موده پوره کول غواړي او د چا لپاره چې بچی دی په هغه باندې د دغو (ښځو) نفقه ده او د دوی جامه ده په ښې طريقې سره، هيڅوك هم مکلف کولی نشي مگر د هغه د وَس سره سم.، ضرر دې ونه رسول شي مور ته د هغې د بچي په وجه، او نه د بچې پلار ته د هغه د بچي په وجه ـ او په وارث باندې د دې په مثل لازم دي.، پس که دواړه د خپل منځي رضامندۍ او مشورې سره له تي نه د پرېکولو اراده وکړي، نو په دې دواړه باندې هيڅ گناه نشته. او که تاسو خپل اولاد ته مُرضِعه (دائيه) نيول غواړئ بيا (هم) پر تاسو باندې هيڅ گناه نشته، کله چې هغه (مال) سپارئ چې تاسو يې ورکول غواړئ، په ښې طريقې سره، او له الله نهووېرېږئ او پوه شئ چې يقينًا الله هغه څه لره ښه لېدونکی دی چې تاسو يې کوئ¯

۲۳۴:۲ - او هغه کسان چې په تاسو کې مړه شي او ښځې پرېږدي، هغه ښځې دې ځلور مياشتې او لس ورځې خپل ځانونه په انتظار کې ساتي، بيا چې کله هغوی خپلې نېټې ته ورسېږي (عدت پوره شي) نو پر تاسو باندې هيڅ گناه نشته په هغه کار کې چې دوی يې له خپلو ځانونو په حق کې په ښې طريقې سره کوي، او الله په هغو عملونو چې تاسو يې کوئ ښه خبردار دی™

۲۳۵:۲ - او پر تاسو باندې هيڅ گناه نشته په هغه (خبره) کې چې په هغې سره تاسو د ښځو د غوښتنې اشاره کوئ، يا په خپلو نفسونو کې (له هغو سره نکاح کول) پټ ساتئ، الله پوه دی چې يقينًا ژر دی چې تاسو به دوی يادَوئ، او لېکن له دوی سره په پټه وعده مه کوئ، مگر دا چې مناسبه (تعريضي) خبره وکړئ، او د نکاح تړلو عزم مه کوئ تر هغه پورې چې فرض شوی (عدت) خپلې نېټې ته ورسېږي، او پوه شئ چې يقينًا الله په هغه څه پوهېږي چې ستاسو په نفسونو کې دي، نو له هغه (الله) نه

وبربېږئ، او پوه شئ چې يقيناً الله ډېر بخښونکی، ډېر تحمل کوونکی دی

۲۳۶:۲ - پر تاسو باندې هېڅ بوج (مهر) نشته که تاسو ښځو ته طلاق ورکړئ څو پورې چې تاسو له هغوی سره کوروالی (جماع) کړی نه وي، یا مو د هغوی لپاره څه مهر مقرر کړی نه وي. او دوی ته څه خرڅ، سامان ورکړئ، په مالدار باندې د هغه د اندازې مطابق ورکول لازم دي او په غریب باندې د هغه د اندازې سره سم لازم دي، د دستور سره سم ضروري سامان ورکول، (دا) په نېکي کوونکو باندې لازم دي

۲۳۷:۲ - اوکه تاسو دوی ته طلاق ورکړئ مخکې له دې نه چې تاسو له هغوی سره کوروالی وکړئ، په دې حال کې چې تاسو د هغوی لپاره مهر مقرر کړی وي، نو د هغه (مهر) نیم ورکول لازم دي چې تاسو مقرر کړی دی مگر دا چې هغوی (ښځې) يې معاف کړي، یا هغه کس یې معاف کړي د چا په لاس کې چې د نکاح غوټه ده (خاوند ورکړی مهر ښځې ته پرېږدي)، او ستاسو معافي کول تقوىٰ ته ډېر نژدې دي، او په خپل منځ کې احسان کول مه هېروئ، يقيناً الله هغو عملونو لره چې تاسو يې کوئ، ښه ليدونکی دی

۲۳۸:۲ - د لمونځونو ساتنه کوئ او (خصوصًا) د ببخې منځني لمونځ، او الله ته ودرېږئ اطاعت کوونکي

۲۳۹:۲ - بیا که وېربدلئ، نو (لمونځ کوئ) پیاده، یا سواره، بیا چې کله په امن شئ، نو الله یادوئ څنگه چې يې تاسو ته هغه څه ښودلي دي چې تاسو (پرې) نه پوهېدئ

۲۴۰:۲ - او هغه کسان چې په تاسو کې مري او ښځې پرېږدي (نو په دوی باندې لازم دي) وصيت کول د خپلو ښځو لپاره تر يو کاله پورې د خرچ ورکولو، بې له وېستلو نه، نو که دوی (پخپله) ووتلې، نو پر تاسو باندې هېڅ گناه نشته په هغه څه کې چې دوی (ښځې) يې د خپلو ځانونو په باره کې کوي څه نېك كار، او الله ډېر غالب، ښه حکمت والا دی

۲۴۱:۲ - او د طلاقې کړی شويو ښځو لپاره، له عرف سره سم، سامان ورکول دي، په متقيانو باندې (دا) لازم دي

۲۴۲:۲ - همدارنگه الله تاسو لپاره خپل ايتونه بيانوي، د دې لپاره چې تاسو پوه شئ

۲۴۳:۲ - ايا تا هغه کسان نه دي ليدلي چې د مرگ له وېرې له خپلو کورونو نه وتلي وو، په دې حال کې چې هغوی زرگونه وو، پس الله دوی ته وويل: مړه شئ، بيا يې هغوی راژوندي کړل، يقينًا الله خامخا په خلقو باندې فضل کولو والا دی او لېکن اکثره خلق شکر نه وباسي

۲۴۴:۲ - او د الله په لاره کې جنگېږئ، او پوه شئ چې يقينًا الله ښه اورېدونکی، ښه عالم دی

۲۴۵:۲ - څوك دی هغه کس چې الله ته قرض ورکوي، قرضِ حسنه، نو هغه (الله) به د هغه لپاره دا (قرض) زيات کړي په ډېرو زياتولو سره، او الله تنگي راولي او (هغه) فراخي راولي، او تاسو به خاص هغه ته بېرته ورگرځول کېږئ

۲۴۶:۲ - ايا تا د بني اسرائيلو سردارانو ته نه دي کتلي، له موسٰی نه بعد، کله چې هغوی خپل نبي ته وويل: زمونږ لپاره يو بادشاه مقرر کړه چې مونږ د الله په لاره کې جنگ وکړو.، هغه نبي وويل: ايا تاسو نژدې يې که پر تاسو باندې جنگ کول فرض کړی شي دا چې جنگ به ونه کړئ؟ هغوی وويل: او مونږ لره څه (موانع) دي چې د الله په لاره کې به جنگ نه کوو، حال دا چې مونږ له خپلو کورونو او خپلو زامنو نه وېستل شوي يو، بيا چې کله پر هغوی باندې جنگ کول فرض کړی شول، نو هغوی (له خپلې خبرې نه) وگرځېدل، مگر له هغوی څخه ډېر لږ (خلق ونه گرځېدل) او الله په ظالمانو باندې ښه پوه دی

۲۴۷:۲ - او دوی ته خپل نبي وويل: بېشکه الله تاسو لپاره يقينًا طالوت بادشاه مقرر کړی دی، هغوی وويل: د هغه لپاره په مونږه باندې بادشاهي څنگه کېدی شي، حال دا چې مونږ له هغه نه د بادشاهۍ زيات حقدار يو، او هغه ته د مال فراخي (هم) نه ده ورکړی شوې، ـ هغه (نبي) وويل: يقينًا الله هغه پر تاسو باندې غوره کړی دی، او هغه ته يې په جسم او علم کې زياته فراخي ورکړې ده، او الله خپله بادشاهي ورکوي چا ته چې يې وغواړي، او الله فراخه فضل والا، ښه عالم دی

۲۴۸:۲ - او دوی ته خپل نبي وويل: بېشکه د ده د باشاهۍ نښه دا ده چې تاسو ته به صندوق راشي چې په هغه کې ستاسو د رب له جانبه سکينت (د زړه ارام) دی او باقي پاتې شونې له هغو (څيزونو) نه چې الِ موسٰی او الِ هارون پرېښي وو، چې

ملایکو به راپورته کړی وي، یقینًا په دې کې تاسو لپاره خامخا لویه نښه ده که تاسو ایمان لرونکي یئ

۲۴۹:۲ - نو کله چې طالوت سره د لښکرو راووت، ویې ویل: یقینًا الله په یوې وِلِې سره ستاسو ازمایش کوونکی دی، نو څوك چې له هغې نه اوبه وڅښي، نو هغه زما له ملګرو نه نه دی، او څوك چې هغه ونه څکي، نو بېشکه هغه زما له ملګرو څخه دی مګر هغه څوك چې په خپل لاس سره یو چونګ (اوبه) راواخلي، نو هغوی له هغې (ولې) نه اوبه وڅښلې مګر له دوی نه ډېرو لږو (خلقو ونه وڅښلې) نو کله چې دی (طالوت) او هغه کسان چې له ده سره یې ایمان راوړی و له هغې نه پورې وتل، (مخالفت کوونکو وویل:) نن ورځ زمونږ لپاره د جالوت او د هغه د لښکرو په مقابله کې هېڅ طاقت نشته، او وویل هغو کسانو چې یقین یې لاره چې بېشکه دوی له الله سره ملاقات کوونکي دي: څومره ډېر ځلې ډېره لږه ډله په ډېرې لویې ډلې باندې د الله په حکم سره غالبه شوې ده، اوالله د صبر کوونکو ملګری دی

۲۵۰:۲ - او کله چې هغوی د جالوت او د هغه د لښکرو (د مقابلې) لپاره (میدان ته) راووتل، ویې ویل: ای زمونږه ربه! راخوشې کړه پر مونږ باندې صبر، او زمونږ قدمونه ټینګ (کلك) کړه، او د کافر قوم په مقابله کې زمونږ مدد وکړه

۲۵۱:۲ - نو دوی هغو ته د الله په حکم سره ماتې ورکړه، او داود جالوت لره قتل کړو، او الله هغه (داود) ته بادشاهي او حکمت ورکړ، او هغه ته یې له هغو (څیزونو) نه ښودنه وکړه چې (الله) غوښتل او که د الله لرې کول نه وی خلقو لره، د دوی ځېنو لره په ځېنو نورو سره (نو) ځمکه به خامخا ورانه شوې وی۔ او لیکن الله په عالَمونو باندې دلوی فضل کولو والا دی

۲۵۲:۲ - دا د الله ایتونه دي، مونږ دا په تا باندې په حقه سره لولو او یقینًا ته خامخا له رسولانو څخه یې

۲۵۳:۲ - دا رسولان (دي)، مونږه د دوی ځینې په ځینو نورو باندې غوره کړي دي، له دوی نه ځینې هغه دي چې الله ورسره خبرې کړې دي، او د دوی د بعضو یې درجې اوچتې کړي دي، او مونږه د مریمې زوی عیسٰی ته ښکاره معجزې ورکړې دي، اومونږ هغه په روح القدس (پاك روح) سره قوي کړی دی، اوکه الله غوښتلی، (نو)

هغه کسان به په خپلو کې نه وو جنګېدلي، چې له دغو (رسولانو) نه پس وو، له دې نه وروسته چې دوی ته څرګندې نښې راغلې، او لېکن دوی اختلاف وکړ، نو په دوی کې ځینې هغه دي؛ چې ایمان یې راوړ، او ځینې په دوی کې هغه دي؛ چې کافر شول، او که الله غوښتلی، (نو) دوی به په خپلو کې نه ووجنګیدلي، او لېکن الله کوي هغه څه چې اراده یې وکړي

۲۵۴:۲ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! له هغه (مال) نه څه حصه خرچ کوئ چې مونږ تاسو ته درکړی دی، مخکې له دې چې هغه ورځ راشي چې نه په هغې کې اخیستل خرڅول شته، او نه څه دوستانه، او نه څه سفارش، او همدا کافران ظالمان دي

۲۵۵:۲ - الله (چې دی) نشته هېڅ لایق د عبادت مګر هم دی دی، همېشه ژوندی دی، د ټول عالم انتظام کوونکی دی، په ده نه پرکالي راځي، او نه خوب، خاص هم ده لره دي هغه څه چې په اسمانونو کې دي، او هغه څه چې په ځمکه کې دي، څوك دی هغه کس چې د ده په وړاندې به سفارش کوي مګر د ده په اجازت سره؟ هغه پوهېږي په هر هغه څه چې د دوی په وړاندې دي او په هر هغه څه چې د دوی وروسته دي، او دوی (مخلوق) د هغه له علم نه هېڅ شی هم نشي راګېرولی، مګر هغه څه چې هغه (الله) یې وغواړي.، د هغه کرسۍ اسمانونه او ځمکه راځای کړي (راګېر) کړي دي او د دې دواړو ساتنه هغه (الله) نه ستړی کوي، او هم هغه ډېر اوچت دی، ډېر لوی دی

۲۵۶:۲ - په دین (منلو) کې هېڅ جبر نشته، یقیناً حقه لار له ګمراهۍ نه ښه څرګنده (بېله) شوې ده، نو چا چې له طاغوت (شیطان، بت) نه انکار وکړ او په الله یې ایمان راوړ، نو یقیناً ده ډېره مضبوطه کړۍ ټینګه ونیوله، چې هغې لره هېڅ پرېکېدل نشته، او الله ښه اورېدونکی، ښه پوه دی

۲۵۷:۲ - او الله د هغو کسانو دوست دی چې ایمان یې راوړی دی، هغه دوی لره له تیارو نه رڼا ته راوباسي، او هغه کسان چې کفر یې کړی دی؛ د هغوی دوستان شیطانان دي، دغه (شیطانان) دوی لره د رڼا نه تیارو ته وباسي، دغه کسان د اور ملګري دي، دوی به په هغه کې همېشه وي

۲۵۸:۲ - ایا تا هغه کس نه دی لیدلی (د هغه په قصه نه یې خبر شوی) چې له ابراهیم سره یې د ده د رب په باره کې جګړه وکړه، ځکه چې الله هغه ته بادشاهي ورکړې وه؟ کله چې ابراهیم وویل: زما رب هغه دی چې ژوندي کول او مړه کول کوي، هغه وویل: زه ژوندي کول او مړه کول کوم، ابراهیم وویل: پس یقینًا الله لمر له مشرق نه راخېژوي، نو ته هغه له مغرب نه راوخېژوه، نو هغه کس چې کفر یې کړی و؛ حیرانه، ملامته شو، او الله داسې ظالم قوم ته سمه لار نه ښیي

۲۵۹:۲ - یا د هغه کس په شان، چې په یو کلي باندې تېر شو، او هغه (کلی) په خپلو چتونو باندې راپرېوتی و، هغه وویل: الله به دا (د کلي خلق د دوی) له مرګ نه پس څنګه ژوندي کوي؟ نو الله هغه تر سلو کالو پورې مړ وساته، بیا یې هغه راژوندی کړ، (الله) وویل: څومره موده (داسې) پاتې شوی یې؟ هغه وویل: زه یوه ورځ، یا د ورځې څه حصه (داسې) پاتې شوی یم. هغه (الله) وویل: بلکې ته سل کاله (داسې مړ) پاتې شوی یې، نو ته خپل خوراك او څښاك ته وګوره، چې خراب شوی نه دی. او خپل خر ته وګوره، او د دې لپاره چې مونږ تا د خلقو لپاره نښه وګرځوو، او هډوکو ته وګوره، مونږ هغو ته څنګه حرکت ورکوو، په پورته کولوسره، بیا هغو ته غوښه وراغوندو.، نوکله چې ده ته (دا حال) ښه څرګند شو، ویې ویل: زه پوهېږم چې یقینًا الله په هر شي باندې ښه قادر دی

۲٦۰:۲ - او کله چې ابراهیم وویل: ای زما ربه! په ما باندې ووینه چې ته مړي څنګه ژوندي کوې؟ ویې ویل: ایا ته یقین نه لرې؟ هغه وویل: ولې نه! او لېکن د دې لپاره چې زما زړه مطمئن شي.، (الله) وویل: نو له مرغانو نه څلور راونیسه، نو هغه خپلې خوا ته (له بلَدولو نه پس) ټکړې کړه، بیا له هغو څنې یوه یوه حصه په هر غره باندې کېږده، بیا هغوی راوبله، (نو) دغه به تا ته په منډو راځي، او پوه شه چې یقینًا الله ډېر غالب، ښه حکمت والا دی

۲٦۱:۲ - د هغو کسانو مثال چې د الله په لار کې خپل مالونه لګوي د هغه دانې په شان دی چې اوه وږي زرغون کړي، په هر وږي کې سل دانې دي، او الله (اجر) زیاتوي چا لپاره چې وغواړي، او الله ډېر فراخۍ والا، ښه پوه دی

۲٦۲:۲ - هغه کسان چې خپل مالونه د الله په لاره کې لګوي، بیا دوی په خپل انفاق

(خیرات) پسې احسان بارول نه کوي او نه ازار رسوي، خاص د دوی لپاره د خپل رب په نیز د دوی اجر دی، او نه به په دوی باندې څه وېره وي اونه به دوی غمژن کېږي

۲۶۳:۲ - ښه خبره کول، او بخښنه کول، ډېر غوره دي له هغه خیرات نه چې په هغه پسې تکلیف (تنگول) راځي، او الله ډېر بې پروا، ډېر تحمل والا دی

۲۶۴:۲ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! خپل خیراتونه په احسان بارولو (زباتولو) او ضرر رسولو سره مه بربادوئ، د هغه کس په شان چې خلقو ته د ځان ښودنې لپاره خپل مال خرچ کوي، او په الله او د اخرت په ورځ ایمان نه لري، نو د ده مثال د هغه ښویې گټې په شان دی؛ چې په هغې باندې څه لږه خاوره وي، بیا په هغې (گټې) زوروَر باران ووریږي، نو هغه (گټه) صفا پرېږدي.، دوی به له هغو عملونو نه چې کړي یې دي، په هېڅ شي (ثواب) باندې قادره نشي، او الله داسې کافر قوم ته نېغه لار نه ښیي

۲۶۵:۲ - او د هغو کسانو مثال چې خپل مالونه د الله د رضا غوښتلو لپاره او د خپلو نفسونو د کلکوالي لپاره لگوي، د هغه باغ په شان دی؛ چې په نرمه ځَربَه ځمکه باندې وي؛ چې په هغه زورور باران ووریږي، نو دغه (باغ) خپلې مېوې دوه چنده وکړي، نو که په هغه زورور باران ونه وریږي، نو (هغه ته) نری باران (هم کافي دی) او الله هغو (کارونو) لره ښه لیدونکی دی، چې تاسو یې کوئ

۲۶۶:۲ - ایا په تاسو کې یو کس دا خوښَوي چې د ده دې د کجورو، او انگورو داسې باغ وي چې د هغه له لاندې وَلِې بهېږي او د ده لپاره په هغه (باغ) کې هر قسمه مېوې وي، په دې حال کې چې ده ته بُوډاوالی (زوړوالی) راشي او د ده کمزوري (واړه) بچي وي، پس په دغه (باغ) داسې سخت باد راوالوزي چې په هغه کې اور وي، نو دا (باغ) بېخي وسوَځي، همدارنگه الله تاسو لپاره ایتونه (نښې) بیانوي؛ د دې لپاره چې تاسو ښه فکر وکړئ

۲۶۷:۲ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! له هغو پاکو (مالونو) نه انفاق کوئ چې تاسو گټلي دي او له هغو (مالونو) نه چې مونږه تاسو لپاره له ځمکې نه را ایستلي دي، او له هغه (مال) څخه چې تاسو یې خیرات کوئ، د بې کاره څیز اراده مه کوئ، حال دا چې تاسو (پخپله) د هغه اخیستونکي نه یئ مگر دا چې د ده په باره کې

تاسو سترګې پټې کړئ، او پوه شئ چې یقینًا الله ډېر بې پروا، ډېر ستایل شوی دی

۲۶۸:۲ - شیطان تاسو له غریبۍ څخه وېروي او تاسو ته د بې حیایۍ حکم کوي او الله تاسو سره له خپل جانب نه د مغفرت او فضل وعده کوي او الله فراخه فضل والا، ښه پوه دی

۲۶۹:۲ - چا ته چې وغواړي حکمت (د دین پوهه) ورکوي، او چا ته چې حکمت ورکړی شو، نو یقینًا هغه ته ډېر لوی خیر ورکړی شو، او نصیحت نه اخلي مګر د خالص عقل خاوندان

۲۷۰:۲ - او تاسو چې څه خرچ هم ولګوئ، یا څه نذر هم (په ځان) لازم کړئ؛ نو یقینًا الله په هغو پوهېږي او د ظالمانو لپاره هېڅ مدد کوونکي نشته

۲۷۱:۲ - که تاسو خیراتونه په ښکاره وکړئ، نو دا یو ښه کار دی او که تاسو دا په پټه وکړئ او فقیرانو ته یې ورکړئ، نو دا ستاسو لپاره ډېر غوره دي او هغه (الله) به له تاسو نه ستاسو ځینې ګناهونه لرې کړي، او الله په هغو (کارونو) چې تاسو یې کوئ؛ ښه خبردار دی

۲۷۲:۲ - سمې لارې ته د دوی راړول ستا په ذمه نه دي او لېکن الله سمې لارې ته راړوي چا ته چې وغواړي، او هغه څه چې تاسو یې له مال څخه خرچ کوئ؛ نو ستاسو ځانونو لپاره (یې فایدې) دي او تاسو یواځې د الله د مخ لَټَوَنې (رضا) د پاره انفاق کوئ، او هغه څه چې تاسو یې له مال څخه لګوئ (انفاق کوئ، نو) هغه به تاسو ته پوره پوره درکړی شي، په داسې حال کې چې په تاسو به ظلم نه کېږي

۲۷۳:۲ - (خیراتونه) د هغو فقیرو کسانولپاره دي چې د الله په لاره کې ایسار کړی شوي دي، په ځمکه کې د سفر کولو وَس نه لري، د ښه عفت (له سوال نه د ځان ساتلو) په وجه ناخبره کس په دوی د غنیانو ګمان کوي، ته به دوی په خپلو علامو (سره) پېژنې، دوی له خلقو څخه په سختۍ سره (بې ضرورته) سوال نه کوي او هغه چې تاسو یې له مال څخه لګوئ، نو یقینًا الله په هغه باندې ښه عالم دی

۲۷۴:۲ - هغه کسان چې خپل مالونه (د الله لپاره) لګوي په شپه کې او په ورځ کې، په پټه او په ښکاره، نو د دوی لپاره د خپل رب په نیز د دوی اجر دی، او نه به په دوی

باندې څه وېره وي او نه به دوی غمژن کېږي

۲۷۵:۲ - هغه کسان چې سود خوري؛ دوی به (له قبرونو نه) نه پاڅیږي مگر په شان د پاڅېدلو د هغه کس چې شیطان هغه په لېونتوب سره بدحواسه کړی وي، دا ځکه چې یقینًا دوی ویلي دي چې بېشکه بیع خو د سود په شان ده، حال دا چې الله اخیستل خرڅول (بیع) حلال کړي دي او سود یې حرام کړی دی.، پس چا ته چې د خپل رب له جانبه نصیحت راغی، نو دی (فوراً) منع شو، نو د ده لپاره هغه څه (معاف) دي چې مخکې تېر شوي دي او د ده معامله الله ته حواله ده، او کوم کس چې (سود ته) بېرته راوگرځي، نو دغه کسان د اور والا دي، دوی به په هغه کې همېشه وي

۲۷۶:۲ - الله سود محوه کوي او خېراتونه (صدقې) زیاتوي، او الله هېڅ یو سخت ناشکره، سخت گناهگار نه خوښوي

۲۷۷:۲ - بېشکه هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي، او لمونځ یې قایم کړی دی او زکات یې ورکړی دی، د دوی لپاره د خپل رب په نیز د دوی اجر دی، او نه به په دوی باندې څه وېره وي او نه به دوی غمژن کېږي

۲۷۸:۲ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! له الله نه ووېرېږئ او هغه باقي پاتې سود پرېږدئ؛ که تاسو مومنان یئ

۲۷۹:۲ - نو که تاسو (داسې) ونه کړل، نو تاسو د الله او د هغه د رسول له جانبه په جنگ کولو خبر شئ، او که چېرې تاسو توبه وباسئ، نو ستاسو رأس المال (اصل مال) ستاسو لپاره دی، مه تاسو ظلم کوئ او نه به په تاسو ظلم کېږي

۲۸۰:۲ - او که هغه (قرض داری) تنگ لاسی وي، نو تر اسانۍ پورې مهلت ورکول دي، او خیراتي پرېښودل یې تاسو لپاره ډېر غوره دي؛ که تاسو پوهېږئ

۲۸۱:۲ - او تاسو له هغې ورځې نه ووېرېږئ چې په هغې کې به تاسو الله ته بېرته ورگرځول کېږئ، بیا به هر نفس ته پوره پوره ورکړی شي بدل د هغه عمل چې ده کړی دی، او په دوی به ظلم ونه کړی شي

۲۸۲:۲ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! کله چې تاسو یوله بله سره تر

ټاکلې نېټې پورې په قرضو معامله کوئ، نو هغه ولیکئ. او ستاسو په مینځ کې دې لیکونکی په انصاف سره لیکل وکړي، او لیکونکی دې له لیکلو نه انکار نه کوي؛ لکه څنګه چې الله ده ته ښودنه کړې ده، نو هغه دې لیکل وکړي، او هغه کس دې اِملاء (اقراري عبارت) ووایي؛ په چا باندې چې حق دی، او له خپل پالونکي الله نه دې وویرېږي، او له هغه (حق) نه دې هېڅ شی نه کمَوي، بیا که چېرې هغه کس، په چا باندې چې حق دی؛ ناپوه وي، یا (بدني) کمزوری وي، یا پخپله د اِملاء (عبارت) ویلو طاقت نه لري، نو د هغه وَلي (واکدار) دې په انصاف سره املاء ووایي. او تاسو له خپلو (مسلمانانو) سړیو نه دوه ګواهان ګواه ونیسئ.، نو که دوه سړي ګواهان نه وي، نو یو سړی او دوه ښځې (دې ګواه شي) له هغو ګواهانو څخه چې تاسو یې خوښَوئ، د دې لپاره چې که په دواړو کې له یوې نه هېر شي؛ نو په دوی کې یوه به یې بلې ته وریاد کړي او ګواهان دې انکار نه کوي؛ چې کله هم راوبلل شي او د خپلې نېټې پورې (د هغه قرض) په لیکلو باندې مه تنګېږئ؛ لږ وي، یا که ډېر وي، دا د الله په نیز ښه انصاف (والاکار) دی او ګواهۍ لره ښه درست ساتونکی دی او ډېر قریب دی دې ته چې تاسو به شکمن نشئ. مګر دا چې دا (معامله) لاس په لاس سودا وي چې تاسو هغه په خپل مینځ کې نغده اخلئ راخلئ، نو پر تاسو باندې څه ګناه نشته چې دا (شان معامله) و نه لیکئ. او کله چې په خپل مینځ کې اخیستل خرڅول کوئ (نو) ګواهان ونیسئ. او ضرر دې ونه رسول شي لیکونکي ته او نه ګواه ته او که تاسو (داسې) وکړئ، نو یقینًا دا نافرماني (ګناه) ده چې په تاسو پورې (نښتې) ده. او له الله نه وویرېږئ، او الله تاسو ته ښودنه کوي، او الله په هر شي باندې ښه پوه دی

۲۸۳:۲ - او که چېرې تاسو په سفر باندې يئ او کوم لیکونکی مو ونه موندہ، نو (جایز ده چې) قبض کړی شوې ګروي (رهن) واخلئ، نو که ستاسو بعضو په بعضو نورو باندې اعتبار وکړ (اوګروي یې وانه خستله) بیا نو لازم ده چې امین ګڼلی شوی کس دی د هغه (بائع) امانت (حق) ادا کړي، او له خپل پالونکي الله نه دې وویرېږي، او ګواهي مه پټوئ، او چا چې دا پټه کړه، نو یقینًا د هغه زړه ګناهګار دی، او الله په هغو (کارونو) چې تاسو یې کوئ؛ ښه پوه دی

۲۸۴:۲ - خاص د الله لپاره دي؛ څه چې په اسمانونو کې دي او څه چې په ځمکه کې دي او که تاسو هغه څه چې ستاسو په زړونو کې دي، څرګندوئ، یا هغه پټوئ (نو) الله به له تاسو سره د هغه حساب کوي، بیا به چا ته چې وغواړي بخښنه وکړي او چا ته چې وغواړي عذاب به ورکړي او الله په هر شي باندې ښه قادر دی

۲۸۵:۲ - رسول په هغه څه ایمان راوړی دی؛ چې په ده باندې د خپل رب له جانبه نازل کړی شوی دی او مومنانو هم، ټولو ایمان راوړی دی په الله باندې او د هغه په ملایکو او د هغه په کتابونو او د هغه په رسولانو باندې ـ (او وایي) مونږه د هغه (الله) په رسولانو کې د هیچا په مینځ کې تفریق نه کوو او وایي: مونږ واورېدل او مونږ خبره ومنله (مونږ) ستا (نه) بخښنه (غواړو) ای زمونږه ربه! او خاص تا ته بیا درتګ دی

۲۸۶:۲ - او الله هېڅ یو نفس نه مکلف کوي مګر د هغه له وَس سره سم، همده لپاره دي څه نېکی چې ده کړي دي او په همدغه (نفس) باندې دي څه (ګناهونه) چې ده کړي دي. ای زمونږه ربه! مونږ مه نیسه که مونږ (څه حکم) هېر کړو، یا مونږ غلطي وکړو، ای زمونږه ربه! او په مونږ باندې بوج مه ږده؛ لکه څنګه چې تا هغه (بوج) ایښی و په هغو خلقو باندې چې له مونږ نه مخکې وو، ای زمونږه ربه! او پر مونږ باندې داسې څه مه راباروه چې پر مونږ کې د هغو (د اوچتولو) هېڅ طاقت نه وي ـ او مونږ ته معافي وکړه او مونږه وبخښه او پر مونږ رحم وکړه، هم ته زمونږ کارساز یې، نو د کافر قوم په خلاف ته زمونږ مدد وکړه

## (مدني) عمرانيان - آل عمران ۳

۱:۳ - الف، لام، میم

۲:۳ - الله (چې دی) نشته هېڅ لایق د عبادت مګر هم دی دی، همېشه ژوندی دی، د ټول عالَم انتظام کوونکی دی

۳:۳ - هغه په تا باندې په حقه سره کتاب نازل کړی دی چې د هغو (کتابونو) تصدیق کوونکی دی چې له ده نه مخکې وو، او تورات او انجیل یې نازل کړی دی

۴:۳ - له دې نه مخکې، دخلقو د هدایت لپاره او فرقان یې نازل کړی دی، بېشکه هغه کسان چې د الله په ایتونو سره کافر شوي دي، د دوی لپاره ډېر سخت عذاب دی او الله ډېر غالب (او)

انتقام والا دی

۵:۳ - یقینًا الله (چې دی) له هغه نه هېڅ شی نه دی پټ په ځمکه کې او نه په اسمان کې

٦:۳ - دی همغه ذات دی چې په رَحِمونو کې ستاسو شکلونه (صورتونه) جوړوي څنګه چې وغواړي، نشته هېڅ لایق د عبادت مګر هم دی دی، چې ډېر غالبه، ښه حکمت والا دی

۷:۳ - دی هغه ذات دی چې په تا باندې یې کتاب نازل کړی دی، په ده کې ځېنې محکم (ښکاره مراد والا) ایتونه دي؛ چې هغه د کتاب اصل دي، نور یې متشابهات (پټ مراد والا) دي، نو هغه کسان چې د هغوی په زړونو کې کوږ والی دی؛ نو هغوی په هغو (ایتونو) پسې کېږي چې په دې (قرآن) کې متشابه (پټ مراد والا) دي، د فتنې لټوَلو لپاره او د هغو د مراد معلومولو لپاره، حال دا چې د هغوی په تاویل (مراد) باندې نه پوهېږي مګر الله.، او هغه کسان چې په علم کې پاخه دي؛ هغوی وایي: مونږ په ده ایمان راوړی دی، ټول (محکم او متشابه ایتونه) زمونږ د رب له جانبه دي، او نصیحت نه اخلي مګر د صفا عقل خاوندان

۸:۳ - (او وایي) ای زمونږه ربه! زمونږ زړونه مه کږوه وروسته له دې چې تا مونږ ته سمه لار وښودله او مونږ ته له خپلې خوا نه رحمت راکړه، یقینًا هم ته، (د نعمت او رحمت) بې حده عطا کوونکی یې

۹:۳ - ای زمونږه ربه! بېشکه ته خلقو لره جمع کوونکی یې په داسې ورځ کې چې په هغې کې هېڅ شك نشته، یقینًا الله د وعدې مخالفت نه کوي

۱۰:۳ - بېشکه هغه کسان چې کفر یې کړی دی، هېڅ کله به هم د هغوی مالونه او اولادونه له دوی څخه د الله (له عذاب) نه هېڅ شی لرې نه کړی شي او همدغه کسان د اور خشاك دي

۱۱:۳ - (حال د دوی داسی دی) لکه حال (او عادت) د فرعونیانو او د هغو کسانو چې له دوی نه مخکې وو، چې زمونږ ایتونه به یې دروغ ګڼل، نو الله هغوی د خپلو ګناهونو په سبب ونیول او الله ډېر سخت عذاب ورکوونکی دی

۱۲:۳ - ته ووایه هغو کسانو ته چې کفر یې کړی دی: ژر دی چې تاسو به مغلوب کړی شئ او جهنم ته به را یوځای (راجمع) کړی شئ او هغه بده استوګنه ده

۱۳:۳ - یقینًا شته تاسو لپاره لویه نښه په هغو دوه ډلو کې چې یو بل ته مخامخ شوې وې، یوه ډله د الله په لار کې جنګېدله او بله کافره وه، دوی به هغوی لره له خپل ځان نه دوه چنده (زیات) لیدل، دسترګو په لیدلو سره، او الله په خپل مدد سره قوت ورکوي (مضبوطوي) چا ته چې وغواړي، یقینًا په دې کې د سترګو خاوندانو لپاره خامخا عبرت (اونصیحت) دی

۱۴:۳ - ښایسته کړی شوې ده خلقو ته مینه د مرغوبو خوندَوَرو شیانو چې ښځې دي او زامن

دي او راجمع کړی شوې ډېر مالونه دي له سرو زرو نه او سپينو زرو نه او اسونو نه، چې نښه دار کړی شوي دي او له څارويو نه او فصل نه، دا د دنيايي ژوند سامان دی او له الله سره د ورگرځېدلو ښه ځای دی

۱۵:۳ - ته (ورته) ووايه: ايا تاسو ته د داسې شيانو خبر درکړم چې له دغو (دنيوي خوندونو) نه ډېر ښه دي؟ د هغو کسانو لپاره چې پرهېزگاره دي، (هغه) د خپل رب په نيز باغونه دي چې د هغو له لاندې ولې بهېږي، چې په هغو کې به دوی تل ترتله وي او (د دوی لپاره) ښې پاکې ښځې دي او د الله له جانبه رضامندي (ده) او الله بنده گانو لره ښه ليدونکی دی

۱۶:۳ - هغه کسان چې وايي: ای زمونږه ربه! يقيناً مونږ ايمان راوړی دی، نو مونږ ته زمونږگناهونه وبخښه او مونږ د اور له عذابه وساته

۱۷:۳ - چې صبرکوونکي دي او رښتياويونکي دي اوحکم منونکي دي او انفاق کوونکي دي او د شپو په اخر کې مغفرت غوښتونکي دي

۱۸:۳ - الله گواهي ورکړې ده د دې خبرې چې يقيناً نشته دی هېڅ لايق د عبادت مگر هم دی دی او ملايکو او د علم خاوندانو، (هم) په داسې حال کې چې دی په انصاف سره قايم دی، - نشته دی هېڅ لايق د عبادت مگر هم دی دی چې ډېرغالب، ښه حکمت والا دی

۱۹:۳ - بېشکه (معتبر) دين د الله په نيز اسلام دی، او هغو کسانو، چې کتاب ورته ورکړی شوی دی، اختلاف نه دی کړی مگر وروسته له دې چې دوی ته علم راغی، په خپل مينځ کې د ضد او سرکشۍ په سبب اوهغه کس چې د الله په ايتونو باندې کافر شي، نو يقيناً الله ببخي ژر حساب کوونکی دی

۲۰:۳ - بيا که چېرې دوی له تاسره جگړه کوي، نو ته ووايه: ما خپل مخ خاص الله ته تابع کړی دی او هغه چا هم (تابع کړی دی) چې زما پيروي کوي. او ته هغو کسانو ته ووايه چې هغوی ته کتاب ورکړی شوی دی او اَميانو (نالوستو) ته: ايا تاسو اسلام راوړئ؟ پس که دوی اسلام راوړ، نو يقيناً دوی سمه لار وموندله او که وگرځېدل، پس بېشکه په تا باندې يواځې تبليغ کول (دحق رسَول) دي او الله بنده گانو لره ښه ليدونکی دی

۲۱:۳ - بېشکه هغه کسان چې د الله په ايتونو کافران کېږي او نبيان ناحقه وژني او په خلقو کې هغه کسان وژني چې د انصاف کولو حکم کوي، نو هغوی ته د ببخي دردونکي عذاب زېری ورکړه

۲۲:۳ - دا هغه کسان دي چې د دوی عملونه په دنيا او اخرت (دواړو) کې ضائع شوي دي او نشته د دوی لپاره هيڅوك مددکوونکي

۲۳:۳ - ايا تا نه دې کتلي هغو کسانو ته چې هغوی ته له کتاب نه څه حصه (د علم) ورکړی

شوې ده، دوی کتاب ته رابللی شي، د دې لپاره چې (دا کتاب) د دوی په مینځ کې فیصله وکړي، بیا په دوی کې یوه ډله مخ اړوي او دوی (همېشه له حق نه) مخ ګرځوونکي دي

۲۴:۳ - دا په دې سبب چې بېشکه دوی ویلي دي: مونږ ته به اور هېڅ کله هم راونه رسېږي مګر څو په شمار ورځې۔ او دوی په خپل دین کې هغو خبرو غولولي (دوکه کړي) دي چې دوی به له ځانه جوړولې

۲۵:۳ - نوڅه حال به وي کله چې مونږ دوی د هغې ورځې (د فیصلې) لپاره راجمع کړو چې په هغې کې هېڅ شك نشته او هر نفس ته به (جزا د) هغه څه پوره پوره ورکړی شي چې ده کړي دي او په دوی به ظلم ونه کړی شي

۲۶:۳ - ته ووایه: ای الله! د بادشاهۍ مالکه! ته بادشاهي ورکوې هغه چا ته چې وغواړې او بادشاهي بېرته اخلې له هغه چا نه چې وغواړې، چا ته چې وغواړې عزت ورکوې او چا ته چې وغواړې ذلت ورکوې، هم ستا په لاس کې خیر دی، بېشکه ته په هر شي باندې ښه قادر یې

۲۷:۳ - ته شپه په ورځ کې ننَباسې او ورځ په شپه کې ننَباسې او ته ژوندی له مړي راوباسې او مړی له ژوندي راوباسې او چا ته چې وغواړې بې حسابه روزي ورکوې

۲۸:۳ - او مومنان دې له (خپلو) مومنانو نه غیر کافرانو لره دوستان نه جوړوي، او څوك چې دا کار وکړي، نو نه دی (دغه کس) د الله (له ډلې) نه په هېڅ شي کې، مګر دا چې تاسو له دغو (کافرو) نه ځان ساتل غواړئ، ځان ساتنه، او الله تاسو له خپل ځان نه وېروي او خاص الله ته ورتلل دي

۲۹:۳ - ته ووایه: که تاسو پټ ساتئ هغه څه چې ستاسو په سینو کې دي، یا هغه ښکاره کړئ، الله ته هغه معلوم دي۔، دی پوهېږي په هر هغه څه چې په اسمانونو کې دي او په هر هغه څه چې په ځمکه کې دي او الله په هر شي باندې ښه قادر دی

۳۰:۳ - په هغه ورځ کې چې هر نفس به هره هغه نېکي چې ده کړې وي، (خپلې مخې ته) حاضره موموي او هره هغه بدي چې ده کړې ده (هغه هم)، دا (نفس) به ارزو کوي چې کاشکې د ده په مینځ کې او د هغې (بدۍ) په مینځ کې ډېر لرې مسافت وی او الله تاسو له خپل ځان نه وېروي او الله په بنده ګانو باندې ډېر نرمي کوونکی دی

۳۱:۳ - (ای نبي!) ته ووایه: که چېرې یئ تاسو چې له الله سره مینه کوئ، بیا نو زما اتباع وکړئ، الله به له تاسو سره مینه وکړي او تاسو ته به ستاسو ګناهونه وبخښي او الله ډېر بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۳۲:۳ - (ای نبي!) ته ووایه: د الله اطاعت کوئ او د (هغه د) رسول، بیا که دوی وګرځېدل، نو بېشکه الله له کافرانو سره مینه نه کوي

۳۳:۳ - بېشکه الله په عالَمونو باندې ادم او نوح او الِ ابراهیم او الِ عمران غوره کړي دي

۳۴:۳ - په دې حال کې چې (داسې) نسل دی، چې ځینې د دوی له ځینو نورو دي او الله ښه اورېدونکی، ښه پوه دی

۳۵:۳ - کله چې د عمران ښځې وویل: ای زما ربه! بېشکه ما تا لپاره نذر منلی دی د هغه چې زما په ګېډه کې دی، په دې حال کې چې ازاد به وي، نو ته یې له ما نه قبول کړه، بېشکه هم ته ښه اورېدونکی، ښه پوه یې

۳۶:۳ - نو کله چې دې هغه وزېږوله، هغې وویل! ای زما ربه! بېشکه زه چې یم، ما هغه وزېږوله، چې ښځه (جینۍ) ده۔ او الله ښه پوه دی په هغه څه چې دې وزېږوه ۔او نر (هلك) د ښځې (جینۍ) په شان نه دی او بېشکه ما دې ته مریم نوم کېښود، او بېشکه زه دا او د دې اولاد له شیطان رټل شوي نه ستا په حفاظت کې درکوم

۳۷:۳ - نو هغه د هغې رب په ډېرو ښو قبلولو سره قبوله کړه او هغه یې په ډېرو ښُکلو زرغونولو (لویَولو) سره زرغونه (لویه) کړه او هغه یې د زکریا په کفالت کې ورکړه کله چې به هم زکریا دې ته عبادت خانې ته ننوت (نو) له هغې سره به یې څه رزق (خوراك) مونده، هغه وویل: ای مریمې! تا ته دا له کومه کېږي؟ هغې وویل: داد الله له خوا راځي، یقینًا الله چې چا ته وغواړي بې حسابه روزي ورکوي

۳۸:۳ - په دغه ځای کې زکریا له خپل رب نه دعا وغوښته، ویې ویل: ای زماربه! ما ته له خپلې خوانه ښه پاکیزه اولاد راکړه، یقینًا ته د دعا ښه اورېدونکی یې

۳۹:۳ - نو ملایکو ده ته اواز وکړ، په داسې حال کې چې دی په عبادت خانه کې ولاړ و، لمونځ یې کاوه، دا چې بېشکه الله تا ته د یحیٰی زېری درکوي، چې تصدیق کوونکی به وي د هغه کلمې چې د الله له طرفه ده، او سردار به وي او ځان به ډېرمنع کوونکی وي (له خواهشاتو نه) او نبي به وي له صالحانو نه

۴۰:۳ - ویې ویل: ای زما ربه! ما لره به هلك څنګه کېږي، حال دا چې په ما باندې بوډاوالی (زوړوالی) راغلی دی او زما ښځه شنډه ده؟! هغه وویل: همداسې الله کوي څه چې وغواړي

۴۱:۳ - ویې ویل: ای زما ربه! زما لپاره څه نښه مقرره کړه، هغه وویل: ستا نښه دا ده چې ته به له خلقو سره خبرې نشې کولی خو په اشارې سره، او ته خپل رب ډېر یادوه او د ورځې په اخر او اول کې تسبیح (پاکي) بیانوه

۴۲:۳ - او کله چې ملایکو وویل: ای مریمې! یقینًا الله ته غوره کړې یې او ته یې پاکه کړې یې او د ټول عالَم په ښځو یې تا ته غوره والی درکړی دی

۴۳:۳ - ای مریمې! د خپل رب فرمانبرداره شه او سجده کوه او له رکوع کوونکو سره رکوع کوه

۴۴:۳ - دا د غیب له خبرونو څخه دي چې مونږه یې تا ته وحي کوو او ته له هغوی سره موجود نه وې کله چې هغوی خپل قلمونه غورځول، چې په دوی کې څوك د مریمې کفالت وکړي او ته له هغوی سره حاضر نه وې کله چې یې په خپلو کې جګړه کوله

۴۵:۳ - کله چې ملایکو وویل: ای مریمې! بېشکه الله تا ته له خپل طرف نه د یوې کلمې زېرې درکوي، چې د هغه نوم مسیح عیسٰی زوی د مریم دی، چې په دنیا او اخرت کې به ډېر مخور وي او له مُقرَبینو څخه به وي

۴۶:۳ - او له خلقو سره به خبرې کوي په زانګو (غېږ) کې او په پاخه عمر کې او وي به له صالحانو څنې

۴۷:۳ - هغې وویل: ای زما ربه! زما لپاره بچی څنګه کېدی شي، حال دا چې ما ته هېڅ یو بشر لاس (هم) نه دی راوړی؟! هغه (جبریل) وویل: همداسې الله پیداکوي څه چې وغواړي، کله چې د یو کار اراده وکړي، نو بېشکه چې هغه (کار) ته همدا وایي: ''وشه،، نو هغه وشي

۴۸:۳ - او هغه ته به کتاب او حکمت او تورات او انجیل ورزده کوي

۴۹:۳ - او بني اسرائیلو ته به رسول وي (چې ورته به وایي:) بېشکه زه چې یم، یقینًا ما تاسو ته ستاسو د رب له طرفه نه لویه نښه راوړې ده، چې یقینًا زه تاسو ته له خَټې نه د مرغۍ د شکل په شان (یو شی) جوړوم، بیا په دې (شکل) کې پوکی کوم، نو هغه به د الله په حکم سره الوتونکې مرغۍ شي، او زه مورزادي ړوند او د برګي مرض والا روغوم او مړي ژوندي کوم د الله په حکم سره، او تاسو خبروم په هغه څه چې تاسو یې خورئ او په هغه څه چې تاسو یې په خپلو کورونو کې ذخیره کوئ، بېشکه تاسو لپاره په دې کې خامخا لویه نښه ده که چېرې تاسو ایمان راوړونکي یئ

۵۰:۳ - په دې حال کې چې تصدیق کوونکی یم د هغه (کتاب) چې له ما نه مخکې و، چې تورات دی او د دې لپاره (راغلی یم) چې تاسو لپاره بعضې له هغو شیانو حلال کړم چې پر تاسو باندې حرام کړی شوي وو او ستاسو د رب له طرفه نه ما تاسو ته واضحه نښه راوړې ده، نو له الله نه ووېرېږئ او زما اطاعت وکړئ

۵۱:۳ - بېشکه الله زما رب دی او ستاسو رب دی، نو د هغه عبادت کوئ، دا ډېره نېغه لار ده

۵۲:۳ - نو عیسٰی چې کله له دوی څخه کفر ولیده، نو ویې ویل: د الله په طرف (تللو کې) څوك زما مددکوونکي دي؟ حواریانو وویل: مونږ د الله مددګار یو، مونږ په الله ایمان راوړی دی او ته ګواه شه په دې چې بېشکه مونږ مسلمانان (فرمانبردار) یو

۵۳:۳ - ای زمونږه ربه! مونږ ایمان راوړی دی په هغه څه چې تا نازل کړي دي او مونږ د رسول تابعداري کړې ده، نو ته مونږه له گواهي کوونکو (د حق) سره ولیکه

۵۴:۳ - او هغوی چلونه جوړ کړل او الله پټ تدبیر وکړ او الله له ټولو تدبیرکوونکو نه غوره دی

۵۵:۳ - کله چې الله وویل: ای عیسیٰ! بېشکه زه تا لره پوره پوره اخیستونکی یم او د خپل ځان طرف ته ستا راپورته کوونکی یم او تا لره له هغو کسانو نه پاکوونکی یم چې کفر یې کړی دی اوچا چې ستا پیروي کړې ده هغوی لره د قیامت د ورځې پورې د هغو کسانو له پاسه کوونکی یم؛ چې کفر یې کړی دی، بیا خاص زما طرف ته ستاسو واپسي ده، نو ستاسو په مینځ کې به د هغو خبرو په باره کې فیصله کوم چې تاسو په کې اختلاف کاوه

۵٦:۳ - پس هر چې هغه کسان دي چا چې کفر کړی دی، نو هغوی ته به زه په دنیا او اخرت کې ډېر سخت عذاب ورکوم او د دوی لپاره به هیڅوك مددکوونکي نه وي

۵۷:۳ - پاتې شو هغه کسان چا چې ایمان راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي، نو هغوی ته به (الله) د هغوی اجر پوره ورکړي او الله له ظالمانو سره مینه نه کوي

۵۸:۳ - دا دي چې مونږ یې له ایتونو او له حکمته ډك نصیحت څخه پر تا لولو

۵۹:۳ - بېشکه د عیسیٰ مثال د الله په نیز د ادم د مثال په شان دی، الله هغه له خاورې پیدا کړ، بیا یې هغه ته وویل: (پیدا) شه، پس (پیدا) شو

٦۰:۳ - حق ستا د رب له جانبه دی، نو له شك کوونکو نه مه کېږه

٦۱:۳ - نو څوك چې د ده (عیسیٰ) په باره کې له تا سره جگړه کوي، وروسته له دې چې تا ته علم حاصل شو، نو ته ووایه: راځئ! چې مونږ راوبلو خپل زامن او ستاسو زامن او خپلې ښځې او ستاسو ښځې او خپل ځانونه او ستاسو ځانونه، بیا به په زارۍ سره دعا وکړو، نو په دروغژنو به د الله لعنت ووایو

٦۲:۳ - بېشکه همدا حق بیان دی او نشته هېڅ برحق معبود مگر یواځې الله دی او بېشکه یواځې الله ډېر غالب، ښه حکمت والادی

٦۳:۳ - نو که دوی وگرځېدل، نو یقینًا الله په فسادکوونکو ښه پوه دی

٦٤:۳ - (ای نبي!) ته (دوی ته) ووایه: ای اهل کتابو! داسې کلمې ته راشئ چې زمونږ په مینځ کې او ستاسو په مینځ کې برابره ده، دا چې عبادت به نه کوو مگر یواځې د الله او له هغه سره به هېڅ شی نه شریکوو او زمونږ بعضې به بعضو نورو لره له الله نه غېر پالونکي (خدایان) نه نیسي، نو که دوی وگرځېدل، نو تاسو (ورته) ووایئ چې تاسو په دې گواه شئ چې یقینًا مونږ مسلمانان یو

۶۵:۳ - ای اهل کتابو! ولې تاسو د ابراهیم په باره کې جګړه کوئ، حال دا چې تورات او ا نجیل نه و نازل کړی شوي مګر له هغه نه وروسته، ایا نو ولې له عقل نه کار نه اخلئ!

۶۶:۳ - ګورئ! تاسو خصوصًا دغو په هغه خبره کې جګړه وکړه چې تاسو ته د هغې څه علم و، نو په هغه خبره کې ولې جګړه کوئ چې تاسو ته د هغې هیڅ علم نشته؟ او الله پوهیږي او تاسو نه پوهیږئ

۶۷:۳ - ابراهیم نه یهودي و او نه نصراني. او لیکن حنیف (پوخ توحید والا) مسلمان و او له مشرکانو څخه نه و

۶۸:۳ - بېشکه په خلقو کې ابراهیم ته حقیقتًا نژدې خامخا هغه کسان دي چا چې د هغه تابعداري کړې ده او دا نبي دی او هغه کسان دي چې ایمان یې راوړی دی او الله د مومنانو دوست دی

۶۹:۳ - په اهل کتابو کې یوه ډله ستاسو د ګمراه کولو ارزو لري او هغوی یواځې خپل ځانونه ګمراه کوي او شعور نه لري

۷۰:۳ - ای اهلِ کتابو! ولې د الله په ایتونو کافر کېږئ، حال دا چې تاسو (د هغو د حقانیت) ګواهي ورکوئ؟

۷۱:۳ - ای اهلِ کتابو! ولې تاسو حق له باطل سره ګډوَډ کوئ؟ او تاسو حق پټوئ، حال دا چې تاسو پوهیږئ

۷۲:۳ - اوله اهلِ کتابو څخه یوې ډلې (بلې ډلې ته) وویل: تاسو په هغه (کتاب) باندې چې په مومنانو باندې نازل کړی شوی دی، د ورځې په اول کې (په ظاهره) ایمان راوړئ او د هغې (ورځې) په اخر کې (بیا) کافر شئ، د دې لپاره چې دوی راوګرځي

۷۳:۳ - او (د دې) یقین مه کوئ مګر د هغه چا لپاره چې ستاسو د دین متابعت یې کړی وي. (ای نبي!) ته ووایه: یقینًا اصل هدایت (او حق دین) خو د الله هدایت دی. (او د دې یقین هم مه کوئ) دا چې یو چا ته به د هغو (فضایلو) په مثل ورکړی شي چې تاسو ته درکړی شوي دي، یا به دوی پر تاسو باندې د خپل رب په وړاندې غالبه شي، (ای نبي!) ته ووایه: بېشکه فضل د الله په لاس کې دی، چا ته چې وغواړي هغه ورکوي او الله فراخۍ والا دی، ښه پوه دی

۷۴:۳ - په خپلې مهربانۍ سره خاص کوي چا ته چې وغواړي او الله د ډېر لوی فضل والا دی

۷۵:۳ - او ځینې له اهلِ کتابو څخه هغه څوك دي چې که ته هغه ته ډېر مال امانت ورکړې، نو تا ته به هغه (مال) بېرته ادا کوي او ځینې له دوی نه هغه څوك دي چې که ته هغه ته یو دینار (هم) امانت ورکړې (نو) تا ته به هغه (دینار) بېرته نه ادا کوي مګر دا چې ته په (سر د) هغه مدام ولاړ

اوسېي، دا په دې چې يقينًا دوى ويلي دي چې پر مونږ باندې د اُميانو (د حق) په باره کې هېڅ گناه نشته او په الله باندې دروغ ورتپي، حال دا چې دوى پوهېږي

۷٦:۳ - ولې نه! چا چې خپله وعده پوره کړه او پرهېزگاره شه، نو يقينًا الله پرهېزگاران خوښوي

۷۷:۳ - بېشکه هغه کسان چې د الله (سره د کړې) وعدې او د خپلو قسمونو په بدل کې لږې پيسې اخلي، دغه کسان، د دوى لپاره په اخرت کې هېڅ برخه نشته او د قيامت په ورځ به الله له دوى سره نه خبرې کوي او نه به دوى ته گوري اونه به دوى پاك کړي او د دوى لپاره ډېر دردوونکى عذاب دى

۷۸:۳ - او يقينًا يقينًا په دوى کې يوه ډله ده چې په (لوستو د) کتاب سره خپلې ژبې تاووِي، د دې لپاره چې تاسو په هغه د (الله د) کتاب گمان وکړئ، حال دا چې هغه له (حق) کتاب څخه نه دى، او دوى وايي چې دا (مُحرَّف عبارتونه) د الله له جانبه دي، حال دا چې هغه د الله له جانبه نه دي، او دوى په الله باندې دروغ تپي، حال دا چې دوى پوهېږي

۷۹:۳ - هېڅ يو انسان ته دا حق نه دى حاصل چې الله هغه ته کتاب او حکم او نبوت (پېغمبري) ورکړي، بيا دې هغه، خلقو ته وايي چې له الله نه غير زما بنده گان (عبادت کوونکي) شئ، او لېکن (هغه خو به وايي چې) تاسو الهي خلق شئ (په علم باندې عمل کوونکي شئ) ځکه چې تاسو د کتاب ښودنه کوئ او په دې چې تاسو زده کړه کوئ

۸۰:۳ - او نه (ورته) دا (حق حاصل دى) چې تاسو ته حکم درکړي چې تاسو ملايکو او نبيانو لره پروردگاران (خدايان) ونيسئ، ايا هغه به تاسو ته د کفر کولو حکم کوي وروسته له دې چې تاسو مسلمانان يئ؟

۸۱:۳ - او کله چې الله د نبيانو (نه) پخه وعده واخيسته چې هر هغه څه چې زه يې تاسو ته له کتاب او حکمته درکړم، بيا تاسو ته يو رسول راشي چې د هغه څه تصديق کوونکى وي چې له تاسو سره دي (نو) تاسو به خامخا په هغه ايمان راوړئ او خامخا به د هغه مدد کوئ، (الله) وويل: ايا تاسو اقرار وکړ او په دې باندې تاسو زما درنه وعده قبوله کړه، هغوى وويل: مونږ اقرار وکړ، (الله) وويل: نو تاسو گواه شئ او زه (هم) تاسو سره له گواهانو ځنې يم

۸۲:۳ - نو څوك چې له دې نه بعد وگرځېده، نو همدغه خلق فاسقان دي

۸۳:۳ - ايا نو دوى د الله له دين نه غير (بل دين) غواړي، حال دا چې خاص هغه (الله) ته غاړه ايښې ده، هر هغه څه چې په اسمانونو او ځمکه کې دي، په خوښه، يا په ناخوښه، او خاص هغه ته به دوى ورگرځولى شي

۸۴:۳ - ته ووايه: مونږ ايمان راوړى دى په الله او په هغه (کتاب) چې په مونږه نازل کړى شوى دى او په هغه څه چې په ابراهيم او سمٰعيل او اسحٰق او يعقوب او (د هغه) په اولادې باندې نازل

کړی شوي دي او په هغه څه چې موسیٰ او عیسیٰ او) نورو) نبیانو ته د خپل رب له جانبه ورکړی شوي دي، مونږ په دوی کې د هېڅ یو په مینځ کې فرق نه کوو او مونږ خاص د هغه (الله) حکم منونکي یو

۸۵:۳ - اوڅوك چې له اسلام نه غیر (بل) دین غواړي، نو هېڅکله به له ده نه قبول نه کړی شي او دغه کس په اخرت کې له تاوانیانو څخه دی

۸٦:۳ - الله به داسې قوم څنګه په سمه لار روان کړي چې له خپل ایمان راوړو نه بعد (بیا) کافر شول، حال دا چې دوی ګواهي ورکړې وه چې بېشکه دا رسول حق دی او دوی ته ښکاره معجزې (هم) راغلې وې او الله (داسې) ظالمو خلقو ته سمه لار نه ښَیي

۸۷:۳ - دغه خلق، د دوی جزا دا ده چې یقینًا په دوی باندې د الله لعنت دی او د ملایکو او د خلقو، د ټولو (لعنت دی)

۸۸:۳ - چې همېشه به وي په دې (لعنت) کې، له دوی نه به نه عذاب سپکولی شي او نه به دوی ته مهلت ورکول کېږي

۸۹:۳ - مګر هغه کسان چې له دې نه بعد توبه وباسي او ځان اصلاح وکړي، نو یقینًا الله ډېر بخښونکی، بې حده مهربان دی

۹۰:۳ - بېشکه هغه کسان چې له خپل ایمان راوړو نه بعد کافر شول، بیا په کفر کې (ترځنکدنه) مخ په وړاندې لاړل، (نو) د هغوی توبه به له سره نه قبلېږي او همدغه کسان ګمراهان دي

۹۱:۳ - بېشکه هغه کسان چې کافر شوي دي او په داسې حال کې مړه شول چې کافران وو، نو کله به هم قبول نه کړی شي د هغوی له هېڅ یو تن نه ډکه ځمکه سره زر اګر که هغه یې د ځان خلاصي په بدل کې ورکړي، دغه کسان، د دوی لپاره ډېر دردوونکی عذاب دی او د دوی لپاره به هیڅوك مدد کوونکي نه وي

۹۲:۳ - تاسو به (پوره) نېکی ته له سره ونه رسېږئ تر هغه پورې چې له هغه (څیز) نه څه حصه خرچ کړئ چې تاسو یې خوښَوئ، او تاسو چې څه څیز هم خرچ کوئ، نو بېشکه الله په هغه ښه عالم دی

۹۳:۳ - د خوراك ټول شیان د بني اسرائیلو لپاره حلال وو، مګر هغه (شیان) چې اسرائیل (یعقوب) په ځان باندې بند کړي وو، مخکې له دې چې تورات نازل کړی شي، ته ووایه: نو تورات راوړئ، بیا هغه ولولئ، که تاسو رښتوني یئ

۹۴:۳ - نو هغه چا چې له دې نه بعد په الله باندې دروغ وویل، نو همدغه کسان ظالمان دي

۹۵:۳ - ته ووایه: الله رښتیا وَیلي دي، پس د ابراهیم د ملت تابع شئ، چې حنیف (پوخ توحید

والا) و او له مشرکانو څخه نه و

۹٦:۳ - بېشکه اول کور چې د خلقو لپاره جوړ کړی شوی دی، خامخا هغه دی چې په مکه کې دی، چې ډېر برکتي دی او د عالَمونو لپاره هدایت دی

۹۷:۳ - په هغه کې ښې واضحې نښې دي، چې (یوه په کې) مقامِ ابراهیم دی او څوك چې په هغه (کور) کې داخل شي، (نو) هغه په امن شي، او خاص د الله لپاره په خلقو باندې د (هغه د) کور حج کول فرض دي، په هغه چا باندې چې هغه ته د لارې وسَ ولري او څوك چې کافر شه، نو بېشکه الله له مخلوقاتو نه بېخي پروا دی

۹۸:۳ - (ای نبي!) ته ووایه: ای اهلِ کتابو! تاسو د الله په ایتونو ولې کافر کېږئ، حال دا چې الله ستاسو په عملونو باندې گواه دی

۹۹:۳ - (ای نبي!) ته ووایه: ای اهلِ کتابو! تاسو د الله له لارې نه هغه څوك ولې منع کوئ چې ایمان راوړي؟ تاسو په هغې (لاره) کې کوږوالی لټوئ، حال دا چې تاسو گواهان یئ او تاسو چې څه عمل کوئ، الله له هغه (عمل) نه کله هم غافل نه دی

۱۰۰:۳ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! که چېرې تاسو په اهلِ کتابو کې د یوې ډلې خبره ومنئ (، نو) هغه به تاسو لره ستاسو له ایمان راوړو نه پس بیا کافران کړي

۱۰۱:۳ - او تاسو څنگه کافر کېږئ، او تاسو چې یئ، تاسو ته د الله ایتونه تلاوت کېږي او په تاسو کې د هغه رسول (هم موجود) دی او چا چې په (دین د) الله منگولې ښخې کړې، نو په رښتیا سره هغه په نېغه لار روان کړی شو

۱۰۲:۳ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! له الله نهووېرېږئ، څنگه چې له هغه نه د وېرېدلو حق دی او تاسو مه مرئ مگر په دې حال کې چې تاسو مسلمانان یئ

۱۰۳:۳ - او تاسو د الله په رسۍ (ټول) په جمع سره منگولې ښخې کړئ او سره بېلېږئ مه او د الله (هغه) نعمتونه را یاد کړئ چې پر تاسو باندې شوي دي، کله چې تاسو دښمنان وَئ، بیا الله ستاسو د زړونو تر مینځ جوړښت راوسته، نو د هغه په (دې) نعمت سره تاسو ورونه شوئ او تاسو له اور نه د ډکې کندې په غاړه وَئ، نو تاسو یې له هغه نه وژغورلئ، همدارنگه الله تاسو ته خپل ایتونه بیانوي، د دې لپاره چې تاسو نېغه لار ومومئ

۱۰۴:۳ - او لازم ده چې په تاسو کې دې یوه داسې ډله وي چې د خیر طرف ته بلنه کوي او د نېکۍ حکم کوي او له بدۍ نه منع کوي، او همدغه خلق پوره کامیاب دي

۱۰۵:۳ - او تاسو د هغو خلقو په شان مه کېږئ چې بېل بېل شول او هغو ته د واضحو دلایلو له راتلو نه پس (هم) په خپلو کې مختلف شول، او دغه خلق (چې دي)، د هغوی لپاره بېخي لوی

عذاب دی

۱۰۶:۳ - په هغې ورځ کې چې څه مخونه به تك سپین وي او څه مخونه به تك تور وي، نو هر چې هغه کسان دي چې د چا مخونه به تك تور وي، (هغوی ته به ویلی شي) ایا تاسو د خپل ایمان نه پس کافر شوي وَئ، نو عذاب وڅکئ د هغه کفر په بدل کې چې تاسو به کاوه

۱۰۷:۳ - او پاتې شو هغه کسان چې د هغوی مخونه به تك سپین وي، نو (هغوی) به د الله په مهربانۍ کې وي، دوی به په هغې کې همېشه وي

۱۰۸:۳ - دا د الله ایتونه دي، چې مونږه یې تا ته په حقه سره لولو او الله په عالَمونو باندې د ظلم کولو اراده نه لري

۱۰۹:۳ - او خاص د الله لپاره دي هغه څه چې په اسمانونو کې دي او هغه څه چې په ځمکه کې دي او خاص د الله په طرف (ټول) کارونه ورگرځولی شي

۱۱۰:۳ - تاسو غوره امت یئ چې د خلقو لپاره پیدا کړی شوي یئ، تاسو د نېکۍ حکم کوئ او له بدۍ نه منع کوئ او په الله باندې ایمان راوړئ، او که چېرې اهلِ کتابو ایمان راوړی وَی، نو دا به د هغوی لپاره ډېر ښه و، له دوی نه ځینې اِیمان راوړونکي دي او د دوی اکثره فاسقان (بدکاران) دي

۱۱۱:۳ - دوی هیڅکله هم تاسو ته ضرر نشي دررسولی مگر لږ (د ژبې) تکلیف، او که دوی له تاسو سره جنگ شروع کړي (نو) تاسو ته به شاگانې درواړوي، بیا به له دوی سره مرسته نه کېږي

۱۱۲:۳ - په دوی باندې ذلت مسلط کړی شوی دی، هر ځای چې دوی موندلی شي، مگر (دا چې دوی منگولې ولگوي) د الله په رسۍ او د خلقو په رسۍ او دوی راستانه شول په هغه غضب سره چې د الله له طرف نه و، او په دوی باندې محتاجي مسلط کړی شوه، دا په دې چې یقینًا دوی د الله له ایتونو نه انکار کاوه او نبیان یې ناحقه وژل، دا په دې وجه چې دوی نافرماني کوله او دوی زیاتی کاوه

۱۱۳:۳ - دوی یو شان نه دي، په اهلِ کتابو کې یوه ډله ده قایمه، چې د شپې په ساعتونو کې د الله ایتونه تلاوت کوي او هغوی سجدې کوي

۱۱۴:۳ - په الله او د اخرت په ورځ ایمان راوړي او د نېکۍ حکم کوي او له بدۍ نه منع کوي، او په نېکیو کې له یو بل نه تلوار کوي او دغه کسان له صالحانو څخه دي

۱۱۵:۳ - او هغوی چې څه نېکي هم وکړي، نو هیڅکله به هم د هغوی د دې (عمل) ناقدري ونه کړی شي او الله په پرهېزگارانو ښه پوه دی

۱۱۶:۳ - بېشکه هغه کسان چې کفر یې کړی دی، هېڅ کله به هم د هغوی مالونه او اولادونه له

دوی څخه د الله (له عذاب) نه هېڅ شی لرې نه کړی شي، او دغه کسان د اور والا دي، دوی به په هغه (اور) کې همېشه وي

۱۱۷:۳ - مثال د هغه شي چې دوی یې په دې دنیایي ژوند کې خرچ کوي د هغه باد په شان دی چې په هغه کې سخته یخني وي، د داسې خلقو فصل ته ورسي چې په خپلو ځانونو یې ظلم کړی وي، نو دا (باد) هغه (فصل) تباه کړي، او الله پر هغوی ظلم نه دی کړی او لېکن هغوی (پخپله) په خپلو ځانونو ظلم کاوه

۱۱۸:۳ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! له خپلو (مسلمانانو) نه غیر (بل څوك) رازدار دوست مه جوړوئ، دوی تاسو ته په نقصان رسولو کې هېڅ کمی نه کوي، دوی هر هغه څه خوښوي چې تاسو په تکلیف کې اچوي، یقینًا د دوی له خولو ځنې (کینه او) بغض ښکاره شوی دی او هغه (بغض) چې د دوی سینې یې پټوي (هغه) ډېر لوی دی، یقینًا مونږه تاسو لپاره ایتونه ښه واضحه بیان کړي دي، که چېرې یئ تاسو چې له عقل نه کار اخلئ

۱۱۹:۳ - گورئ! تاسو هغه خلق یئ چې له هغو (اهل کتابو) سره مینه کوئ او هغوی له تاسو سره مینه نه کوي او تاسو په ټولو کتابونو ایمان راوړئ او کله چې دوی له تاسو سره ملاقات وکړي، (نو) وایي: مونږ ایمان راوړی دی، او کله چې یواځې شي، نو تاسو ته د غصې له وجې نه د گوتو سرونه چیچي، (ورته) ووایه: په خپلې غصې سره مړه شئ، بېشکه الله ښه پوه دی په هغو (خبرو) چې په سینو (زړونو) کې دي

۱۲۰:۳ - که چېرې تاسو ته څه ښېگڼه درورسېږي، نو هغه دوی لره خفه کوي او که چېرې تاسو ته څه بدي (تکلیف) درورسیږي، نو دوی په هغې باندې خوشحالېږي او که تاسو صبر وکړئ او (د دوی له دوستۍ نه) ځان وساتئ (نو) د هغوی چل (او فریب) به تاسو ته هېڅ ضرر هم در ونه رسولی شي، بېشکه چې الله د هغو کارونو چې دوی یې کوي، ښه احاطه کوونکی دی

۱۲۱:۳ - او (یاد کړه هغه وخت) کله چې د ورځې په اوله حصه کې له خپل ټبره راووتلې، چې د جنگ لپاره دې مومنان په (خپلو) ځایونو باندې کېنول، او الله ښه اورېدونکی، ښه پوه دی

۱۲۲:۳ - کله چې له تاسو څخه دوه ډلو د دې اراده وکړه چې بې زړه (بُزدله) شي او الله د هغو دواړو دوست و، او لازم ده چې مومنان خاص په الله باندې توکل وکړي

۱۲۳:۳ - او خامخا په رښتیا سره الله په بدر کې ستاسو مدد کړی دی، حال دا چې تاسو ډېر کمزوري (او لږ) وئ، نو له الله نه ووېرېږئ، د دې لپاره چې تاسو شکر وباسئ

۱۲۴:۳ - کله چې تا مومنانو ته ویل: ایا تاسو ته به دا کافي نه شي چې ستاسو رب په درې زره نازل کړی شویو ملایکو سره ستاسو مدد وکړي!

۱۲۵:۳ - ولې نه! که تاسو صبر وکړئ او پرهېزگاره شئ او هغوی پر تاسو باندې په خپل جوش

سره په تېزۍ حمله وکړي، (نو) دا دی چې ستاسو رب به په پنځه زره علامې لرونکو ملایکو سره ستاسو مدد وکړي

۱۲۶:۳ - او الله دا (مدد) نه دی ګرځولی مګر ستاسو لپاره زېری او لپاره د دې چې ستاسو زړونه په دې مطمئن شي او نه دی مدد مګر د الله له جانبه، چې ډېر غالب، ډېر حکمت والا دی

۱۲۷:۳ - لپاره د دې چې هغه هلاك کړي یو ټولی د هغو کسانو چې کفر يې کړی دی، یا يې ذلیله (خواروزار) کړي، پس چې بېرته محرومه، نامراده لاړ شي

۱۲۸:۳ - تا لپاره په دې کار کې هېڅ شی (اختیار) نشته، یا به هغه (الله) په دوی باندې په مهربانۍ سره راوګرځي، یا به دوی ته عذاب ورکړي، ځکه چې یقینًا دوی ظالمان دي

۱۲۹:۳ - او خاص د الله لپاره دي هغه څه چې په اسمانونو کې دي او هغه څه چې په ځمکه کې دي، هغه بخښنه کوي چا لپاره چې وغواړي او چا ته چې وغواړي عذاب ورکوي او الله ډېر بخښونکی، بې حده مهربان دی

۱۳۰:۳ - ای هغو کسانو چې ایمان يې راوړی دی! تاسو سود مه خورئ چې څو چنده دوه ګونه کړی شوی وي او له الله نه وېرېږئ، د دې لپاره چې تاسو کامیاب شئ

۱۳۱:۳ - او له هغه اور نه ځان وساتئ چې د کافرانو لپاره تیار کړی شوی دی

۱۳۲:۳ - او د الله او د رسول اطاعت کوئ، لپاره د دې چې په تاسو رحم وکړی شي،

۱۳۳:۳ - او تاسو له یو بل نه تلوار کوئ هغه (مغفرت) بخښنې ته چې د خپل رب له جانبه ده او داسې جنت ته چې د هغه پلن والی د اسمانونو او د ځمکې (په اندازه) دی، د پرهېزګارانو لپاره تیار کړی شوی دی

۱۳۴:۳ - هغه کسان چې انفاق کوي په اسانۍ او تنګۍ کې او خصوصًا چې غصې لره زغمونکي وي او خلقو ته معافي کوونکي وي او الله نېکي کوونکي خوښَوي

۱۳۵:۳ - او هغه کسان چې کله څه فاحش کار وکړي، یا په خپلو ځانونو (بل) ظلم وکړي (نو) الله یاد کړي، (او) ورپسې د خپلو ګناهونو لپاره بخښنه وغواړي، او بل څوك دی چې ګناهونه وبخښي غیر له الله نه؟ او څه چې دوی کړي وي په هغې اصرار (کلکوالی) و نه کړي، په دې حال کې چې دوی پوهېږي

۱۳۶:۳ - دغه کسان (چې دي) د دوی بدله د خپل رب له جانبه بخښنه ده او داسې جنتونه دي، چې د هغو له لاندې وَلې بهېږي، چې په هغو کې به دوی همېشه وي، او د (ښه) عمل کوونکو (لپاره) ښه اجر دی

۱۳۷:۳ - بېشکه له تاسو مخکې ډېرې طریقې (او پېښې) تېرې شوې دي، نو تاسو په ځمکه کې

وګرځئ، بیا وګورئ چې د دروغ ګڼونکو انجام څنګه و؟

۱۳۸:۳ - دا د خلقو لپاره بیان دی او د پرهېزګارانو لپاره لارښوونه او نصیحت دی

۱۳۹:۳ - او تاسو مه کمزوري کېږئ او مه غمژن کېږئ، په دې حال کې چې هم تاسو به غالبه يئ، (خو) که تاسو مومنان يئ

۱۴۰:۳ - که چېرې تاسو ته څه زخم رسېږي، نو یقینًا (کافر) قوم ته (هم) د دې په شان زخم رسېدلی دی او دا ورځې (حادثې) دي چې مونږه يې د خلقو په مینځ کې په وار سره اړوو رااړوو او لپاره د دې چې الله مومنان معلوم کړي او له تاسو څخه شهیدان واخلي او الله له ظالمانو سره مینه نه کوي

۱۴۱:۳ - او لپاره د دې چې الله مومنان ښه پاك کړي او کافران ختم (او) نابوده کړي

۱۴۲:۳ - ایا تاسو دا ګمان کوئ چې تاسو به جنت ته داخل شئ، حال دا چې لا تر اوسه الله په تاسو کې هغه کسان نه دي معلوم (څرګند) کړي چې جهاد يې کړی دی، او د دې لپاره چې هغه صبر کوونکي معلوم کړي

۱۴۳:۳ - او خامخا په رښتیا سره تاسو د مرګ ارزو کوله، له دې (مرګ) سره له مخامخ کېدو نه مخکې، نو یقینًا تاسو هغه ولیده، په داسې حال کې چې تاسو کتل

۱۴۴:۳ - او محمد نه دی مګر یو رسول، بېشکه له ده نه مخکې رسولان تېر شوي دي، ایا نو که چېرې دی مړ شي، یا ووژل شي (، نو) تاسو به بېرته په شا لاړ شئ او څوك چې بېرته په شا لاړ شي، نو هغه به الله ته هیڅکله هم څه زیان ونه رسولی شي او الله به خامخا شکر ګذارو ته بدله (ثواب) ورکړي

۱۴۵:۳ - او هېڅ یو نفس لره دا اختیار نشته چې (پخپله) مړ شي مګر د الله په ارادې سره، لیکلی مقرر وخت دی، او څوك چې د دنیا بدله غواړي، (نو) مونږ به له دې (دنیا) نه هغه ته (بدله) ورکړو او څوك چې د اخرت ثواب غواړي، (نو) هغه ته به يې له دې (اخرت) نه ورکړو، نژدې ده چې مونږ به شکر ګذارو ته ښه بدله ورکړو

۱۴۶:۳ - او ډېر پیغمبران (تېر شوي) دي چې د هغوی په ملګرتیا کې ډېرو رباني (خدايي) خلقو جنګ کړی دی، نو نه هغوی د هغه مصیبت په سبب سستي وکړه چې پر هغوی باندې د الله په لار کې راغلی و او نه يې کمزورتیا ښکاره کړه او نه ټیټ شول، او الله له صبرکوونکو سره مینه کوي

۱۴۷:۳ - او د هغوی وینا له دې نه غیر بله نه وه چې ویل به يې: ای زمونږه ربه! مونږ ته زمونږ ګناهونه او په خپل کار کې زمونږه اسراف کول (له حد نه تېرېدل) وبخښه او زمونږه (پښې)

قدمونه ټينگ کړه او د کافر قوم په مقابله کې زمونږ مدد وکړه

۱۴۸:۳ - نو الله هغوی ته ددنيا بدله او د اخرت ښکلی ثواب ورعطا کړ او الله له نېکي کوونکو سره مينه کوي

۱۴۹:۳ - ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی! که چېرې تاسو د کافر شويو کسانو خبره ومنئ (، نو) هغوی به تاسو (له دين نه) په شا وګرځوي، بيا به تاسو داسې شئ چې تاوانيان به يئ

۱۵۰:۳ - بلکې الله ستاسو مددګار دی او هغه تر ټولو ښه مدد کوونکی دی

۱۵۱:۳ - ژر ده چې مونږ به د هغو کسانو په زړونو کې رعب واچوو چې کافران شوي دي، په سبب د دې چې دوی له الله سره هغه شی شريك کړی دی چې هغه (الله) په دې هېڅ دليل نه دی نازل کړی، او د دوی استوګنځای اور دی او هغه د ظالمانو بد اوسېدنځای دی

۱۵۲:۳ - او خامخا يقينًا الله تاسو ته خپله وعده ربښتيا کړله، کله چې تاسو هغوی وژل د هغه (الله) په حکم سره، تر دې چې تاسو بې زړه شوئ او د کار په باره کې مو په خپلو کې اختلاف وکړ او نافرماني مو وکړه، وروسته له دې چې هغه (الله) تاسو ته هغه څه دروښودل چې تاسو خوښول، په تاسو کې ځينې هغه څوك دي چې دنيا غواړي او ځينې په تاسو کې هغه څوك دي چې اخرت غواړي، بيا هغه (الله) تاسو له هغوی نه واړولئ، د دې لپاره چې تاسو و ازمايي، او خامخا په ربښتيا سره يې تاسو معاف کړئ، او الله په مومنانو باندې د لوی فضل کولو والا دی

۱۵۳:۳ - کله چې تاسو په بره په منډه روان وئ او تاسو هيچا ته مخ هم نه را اړولو او رسول ستاسو شا ته تاسو ته اوازونه کول، نو (د دې) په بدل کې يې تاسو ته غم له پاسه غم درکړ، د دې لپاره چې تاسو غمژن نشئ په هغه شي چې له تاسو نه پاتې شو او نه په هغه شي چې تاسو ته دررسېده، او الله ستاسو په عملونو ښه خبردار دی

۱۵۴:۳ - بيا يې له دغه غم نه پس پر تاسو باندې امن (اطمينان) نازل کړ، چې پرکالي وه، چې ستاسو يوه ډله يې لاندې کړې وه او بله ډله وه چې يقينًا هغوی (فکرونو د) خپلو ځانونو غمژن کړي وو، په داسې حال کې چې هغوی په الله باندې ناحقه ګمان کاوه، د جاهليت ګمان، هغوی ويل: ايا په دې کار کې مونږ له هم څه برخه شته؟ ته ووايه: بېشکه (د) کار ټول (اختيار) خاص الله لره دی، دوی په خپلو نفسونو کې هغه خبرې پټوي، چې تا ته يې نه ښکاره کوي، دوی وايي: که مونږ لره له دې کاره څه حصه وَی (، نو) مونږ به دلته نه وژل کېدلو، ـته (ورته) ووايه: که چېرې تاسو په خپلو کورونو کې وَی (، نو) هغه کسان به خامخا خپلو د غورځېدو ځايونو ته راوتلي وو، د چا چې وژل کېدل ليکل شوي وو (او دا کار الله تعالٰی وکړ) د دې لپاره چې الله هغه څه و ازمايي چې ستاسو په سينو کې دي او ښه پاك کړي هغه څه چې ستاسو په زړونو کې دي او الله ښه

عالم دی په هغو خبرو چې په سینو کې پرتې دي

۱۵۵:۳ - بېشکه هغه کسان چې له تاسو نه په هغې ورځې کې (له جنګ نه) وګرځېدل (کله) چې دوه ډلې یو بل ته مخامخ شولې، بېشکه همدا خبره ده چې شیطان دوی د خپلو ځینو (د ګناه د) عملونو په وجه ښُویولي وو، او خامخا یقینًا الله دوی ته معافي کړې ده، بېشکه الله ډېر بخښونکی، ډېر تحمل والا دی

۱۵٦:۳ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو د هغو کسانو په شان مه کېږئ، چې کافران شوي دي او د خپلو وروڼو په باره کې به یې ویل، کله چې به هغوی په ځمکه کې په سفر تلل، یا به هغوی غزا کوونکي وو: که چېرې دوی له مونږ سره وَی (، نو) نه به مړه شوي وو او نه به وژل شوي وو، لپاره د دې چې الله (د دوی) دا (ګمان) د دوی په زړونو کې (د) حسرت (او افسوس باعث) وګرځوي او الله ژوندي کول او مړه کول کوي، او الله هغو عملونو لره، چې تاسو یې کوئ، ښه لیدونکی دی

۱۵۷:۳ - او قسم دی، خامخا که تاسو د الله په لار کې ووژل شئ، یا مړه شئ (نو) خامخا د الله له طرفه نه بخښنه او رحمت ډېر غوره دی له هغو (مالونو) نه چې دوی یې جمع کوي

۱۵۸:۳ - او خامخا که چېرې تاسو مړه شئ، یا ووژل شئ، (نو) خامخا خاص د الله په طرف به تاسو راجمع کړی شئ

۱۵۹:۳ - نو (یواځې) د الله د رحمت په سبب ته د دوی لپاره نرم یې او که چېرې ته بدخویَه، سخت زړی وَی (، نو) خامخا دوی به ستا له چاپېره نه خواره شوي وو، نو دوی ته معافي کوه، او د دوی لپاره بخښنه غواړه، او له دوی سره په کار کې مشوره کوه، بیا چې کله ته پخه اراده وکړې، نو په الله باندې توکل کوه، یقینًا الله له توکل کوونکو سره مینه کوي

۱٦۰:۳ - که چېرې الله ستاسو مدد وکړي، نو بیا پر تاسو باندې هیڅوك غالب راتلونکی نشته او که چېرې تاسو (بې مدده) پرېږدي، نو څوك دی هغه کس چې له هغه (الله) نه بعد به ستاسو مدد وکړي؟ او پس لازم ده چې مومنان خاص په الله باندې توکل وکړي

۱٦۱:۳ - او له نبي نه دا نشي کېدلی چې هغه دې خیانت وکړي او چا چې خیانت وکړ، نو د قیامت په ورځ به له خیانت سره راځي، بیا به هر نفس ته د هغه د عمل پوره پوره بدله ورکړی شي او پر هغوی به ظلم ونه کړی شي

۱٦۲:۳ - ایا نو هغه څوك چې د الله د رضامندۍ پیروي کوي، د هغه کس په شان دی چې د الله له جانبه په (راغلي) غضب سره واپس شي؟ او د هغه استوګنه جهنم دی او هغه د ورتلو بد ځای دی

۱٦۳:۳ - د الله په نیز دوی د بېلو بېلو درجو (والا) دي او الله ښه لیدونکی دی هغو عملونو لره چې

دوی یې کوي

۱۶۴:۳ - خامخا په رښتیا سره الله په مومنانو باندې احسان کړی دی کله چې یې دوی ته د همدوی له نفسونو (جنس) څخه یو رسول راولېږه، چې دوی ته د هغه ایتونه تلاوت کوي او دوی پاکوي او دوی ته د کتاب او حکمت (سنت) تعلیم ورکوي او یقینًا دوی له دې نه مخکې په ښکاره ګمراهۍ کې وو

۱۶۵:۳ - ایا کله چې تاسو ته (په احد کې) یو مصیبت درورسېده، چې یقینًا تاسو د هغه دوه چنده (مصیبت کفارو ته) رسولی و، تاسو وویل: دا له کومه (راغی؟) ته ووایه: دا ستاسو د نفسونو له طرفه دی، بېشکه الله په هر شي باندې ښه قادر دی

۱۶۶:۳ - او تاسو ته چې څه مصیبت درورسېده، په هغې ورځې کې چې دوه ډلې یو بل ته مخامخ شولې، نو (دا) د الله په حکم سره و او د دې لپاره چې هغه (الله) مومنان معلوم کړي

۱۶۷:۳ - او د دې لپاره چې هغه (الله) هغه کسان معلوم کړي چې نفاق یې کړی دی او دوی ته وویل شو چې راځئ د الله په لار کې جنګ وکړئ، یا دفاع وکړئ، دوی ویل: که چېرې مونږه په جنګ پوهېدلی، (نو) مونږ به خامخا ستاسو پیروي کړې وه، دوی په دغې ورځ کې ایمان ته د نژدې کېدو په نسبت کفر ته زیات نژدې وو، دوی په خپلو خولو سره هغه خبرې کوي چې په زړونو کې یې نشته، او الله په هغه څه ښه عالم دی، چې دوی یې پټوي

۱۶۸:۳ - هغه کسان چې د خپلو ورونو په باره کې یې وویل او خپله (له جنګ نه) ناست وو: که چېرې هغوی زمونږ خبره منلې وی، (نو) نه به وژل کېدل، ته (ورته) ووایه: نو تاسو له خپلو ځانونو نه مرګ لرې کړئ که چېرې تاسو رښتیني یئ

۱۶۹:۳ - او د الله په لاره کې پر وژل شویو کسانو باندې هېڅکله د مړیو ګمان مه کوه، بلکې (هغوی) ژوندي دي، د خپل رب په نیز هغوی ته رزق ورکول کېږي

۱۷۰:۳ - په دې حال کې چې ډېر خوشحاله دي په هغه شي باندې چې الله دوی ته له خپله فضله ورکړی دی او د هغو کسانو په باره کې ډېر خوشحالېږي چې له دوی نه وروسته دوی پسې لا نه دي وررسېدلي، دا چې په دوی باندې هېڅ وېره نشته او نه دوی غمژن کېږي

۱۷۱:۳ - ډېر خوشحالېږي د الله له جانبه په نعمت او فضل سره او په دې چې بېشکه الله د مومنانو اجر نه ضائع کوي

۱۷۲:۳ - هغه کسان، چې د الله او د رسول حکم یې ومانه، وروسته له دې چې دوی ته زخم (هم) رسېدلی و، په دوی کې د هغو کسانو لپاره چې نېکي یې کړې ده او پرهېزګاره شوي دي بېخي لوی اجر دی

۱۷۳:۳ - (دوی) هغه کسان دي چې دوی ته (ځینو) خلقو وویل: بېشکه (د مکې) خلق په رښتیا سره ستاسو (سره د جنګ) لپاره راټول شوي دي، نو تاسو له هغوی نه ووېرېږئ، نو (دې خبرې) د هغوی ایمان (نور هم) زیات کړ او ویې ویل: زمونږ لپاره الله کافي دی او هغه ښه کار جوړوونکی دی

۱۷۴:۳ - نو دوی د الله له جانبه په نعمت او فضل سره بېرته راوګرځېدل، په دې حال کې چې ونه رسېد دوی ته هېڅ تکلیف او دوی د الله د رضامندۍ تابع شول او الله د بېخي لوی فضل والا دی

۱۷۵:۳ - بېشکه همدا خبره ده چې دغه شیطان دی، چې خپل دوستان وېروي، نو تاسو له هغوی نه مه وېرېږئ او له ما نه وېرېږئ که چېرې تاسو مومنان یئ

۱۷٦:۳ - او تا لره دې هغه کسان غمژن نه کړي چې په کفر کې یو تر بله تلوار کوي، بېشکه دوی کله هم الله ته څه ضرر نشي رسولی، الله اراده لري چې د دوی لپاره په اخرت کې هېڅ برخه جوړه نه کړي او د دوی لپاره بېخي لوی عذاب دی

۱۷۷:۳ - بېشکه هغه کسان چې د ایمان په بدله کې یې کفر اخیستی دی، دوی به کله هم الله ته څه ضرر ونه رسولی شي او د دوی لپاره ډېر دردوونکی عذاب دی

۱۷۸:۳ - اوکافران شوي خلق دې له سره دا ګمان ونه کړي چې بېشکه مونږ چې دوی ته مهلت ورکوو، دا دوی د ځانونو لپاره ډېر ښه دی، یقیناً خبره دا ده چې مونږ دوی ته مهلت د دې لپاره ورکوو چې دوی په ګناه کې مخ په وړاندې لاړ شي او د دوی لپاره سپکوونکی عذاب دی

۱۷۹:۳ - الله له سره داسې نه دی چې مومنان په هغه حال باندې پرېږدي په کوم باندې چې تاسو (اوس) یئ، تر دې چې ناپاك له پاکه بېل کړي، او الله کله هم داسې نه دی چې تاسو په غیبو باندې خبر کړي او لېکن الله د خپلو رسولانو (له ډلې) نه غوره کوي چا لره چې وغواړي، نو په الله او د هغه په رسولانو باندې ایمان راوړئ او که چېرې تاسو ایمان راوړ او پرهېزګاره شوئ، نو تاسو لپاره بېخي لوی اجر دی

۱۸۰:۳ - اوهغه کسان، چې په هغه څه سره شومتیا (بخل) کوي چې الله دوی ته له خپله فضله ورکړی دی (دوی دې) له سره دا ګمان ونه کړي چې دا (شومتیا کول) د دوی لپاره ډېر ښه دي، بلکې دا د دوی لپاره ډېر بد دي، ژر ده چې د قیامت په ورځ به دوی ته هغه شی امېل کړی شي، چې په هغه سره دوی شومتیا کوله، او خاص الله لپاره د اسمانونو او ځمکې میراث دی او الله په هغو کارونو چې تاسو یې کوئ؛ ښه خبردار دی

۱۸۱:۳ - خامخا یقیناً الله د هغو خلقو خبره واورېدله چې ویې ویل: بېشکه الله فقیر دی او مونږه غنیان یو، خامخا به مونږ لیکو د دوی دا خبره او نبیانو لره د دوی ناحقه وژل، او مونږ به (دوی ته) ووایو: تاسو سخت سوزوونکی عذاب وڅکئ

۱۸۲:۳ - دا (عذاب) په سبب د هغه (بدعمل) دی چې ستاسو لاسونو مخکې لېږلی دی، او ځکه چې یقینًا الله په بنده ګانو هېڅ ظلم کوونکی نه دی

۱۸۳:۳ - (دوی) هغه کسان دي چې وايي: بېشکه الله مونږ ته حکم کړی دی چې مونږ به په هېڅ یو پېغمبر باندې ایمان نه راوړو تر هغه پورې چې هغه مونږ ته یوه داسې قرباني راوړي چې اور یې خوري.، ته (ورته) ووایه: یقینًا تاسو ته له ما نه مخکې رسولانو ښکاره معجزې راوړې وې او هغه شی هم چې تاسو یې وایئ، بیا ولې تاسو هغوی قتل کړل؟ که چېرې تاسو رښتیني یئ

۱۸۴:۳ - نو که دوی تا دروغژن وګڼي، نو یقینًا له تا نه مخکې (هم) رسولان دروغژن ګڼلی شوي دي، هغوی ښکاره دلیلونه راوړي وو او واړه کتابونه او رڼا کوونکی کتاب (یې راوړی و)

۱۸۵:۳ - هر ساه لرونکی د مرګ (مزه) څکونکی دی او یقینًا همدا خبره ده چې تاسو ته به د قیامت په ورځ ستاسو ثوابونه (پوره) پوره در کړی شي، نو څوك چې له اور (د جهنم) نه لرې کړی شو او جنت ته داخل کړی شو، نو یقینًا هغه کامیاب شو او دنیايي ژوند یواځې د غولېدلو سامان دی

۱۸٦:۳ - خامخا به تاسو په خپلو مالونو او خپلو ځانونو کې وازمایل شئ او خامخا به تاسو له هغو کسانو نه چې له تاسو نه مخکې ورته کتاب ورکړی شوی دی او له هغو کسانو نه چې مشرکان دي، د خفګان ډېرې زیاتې خبرې واورئ، اوکه چېرې تاسو صبر وکړئ او پرهېزګاره شئ، نو یقینًا دا د همت له کارونو څخه دي

۱۸۷:۳ - او کله چې الله له اهلِ کتابو نه پخه وعده واخیستله چې تاسو به هرومرو خلقو ته دا (کتاب) بیانوئ او تاسو به دا نه پټوئ، نو هغوی دا (کتاب) د خپلو شاګانو شا ته وغورځاوه او د ده په بدل کې یې لږ قیمت واخیست، نو بد دی هغه شی چې دوی یې اخلي

۱۸۸:۳ - ته له سره ګمان مه کوه په هغو خلقو باندې چې په خپلو کړو (ناروا کارونو) باندې خوشحالېږي او خوښوي چې په هغو (نېکو) کارونو وستایل شي چې دوی نه دي کړي، نو ته د دوی په هکله له عذاب نه د خلاصې ګمان له سره مه کوه او د دوی لپاره ډېر دردوونکی عذاب دی

۱۸۹:۳ - او خاص د الله لپاره د اسمانونو او ځمکې بادشاهي ده او الله په هر شي باندې ښه قادر دی

۱۹۰:۳ - بېشکه د اسمانونو او ځمکې په پیدا کولو کې او د شپې او ورځې په تلو راتلو کې خامخا د خالص عقل خاوندانو لپاره ډېرې نښې دي

۱۹۱:۳ - هغه کسان چې الله یادوي په ولاړه او ناسته او (چې پراته وي) په خپلو اړخونو باندې او د اسمانونو او ځمکې په پیدا کونه کې ښه فکر کوي (او وايي:) ای زمونږه ربه! تا دا عبث نه دي پیدا کړي، تا لره پاکي ده، نو ته مونږه (د جهنم) له اور نه بچ کړه

۱۹۲:۳ - ای زمونږه ربه! بېشکه ته چې څوك اور ته داخل کړې، نو يقيناً تا هغه رسوا کړ او د ظالمانو لپاره هيڅوك مدد کوونکي نشته

۱۹۳:۳ - ای زمونږه ربه! بېشکه مونږه يو اواز کوونکی واورېده، چې ايمان ته يې بلنه کوله، (او دا يې ويل) چې په خپل رب باندې ايمان راوړئ، نو مونږ ايمان راوړ، ای زمونږه ربه! نو ته مونږ ته زمونږ ګناهونه وبخښه او له مونږ نه زمونږ بدۍ لرې کړه او مونږ ته وفات راکړه، په دې حال کې چې د نېکانو له ډلې سره يو

۱۹۴:۳ - ای زمونږه ربه! او مونږ ته هغه (ثوابونه) راکړه چې تا له مونږ سره د خپلو رسولانو په ژبه (د هغو) وعده کړې ده، او د قيامت په ورځ مونږه مه رسوا کوه، بېشکه ته د وعدې مخالفت نه کوې

۱۹۵:۳ - نو خپل رب يې دعا قبوله کړه چې بېشکه زه په تاسو کې د هېڅ يو عمل کوونکي عمل نه ضائع کوم، نر وي او که ښځه، ستاسو ځينې له ځينو نورو څخه دي، نو هغه کسان چې هجرت يې کړی دی او له خپلو کورونو نه وېستل شوي دي او زما په لاره کې ورته تکليفونه رسول شوي دي او جنګونه يې کړي دي او وژل شوي دي (نو) زه به خامخا ضرور لرې (معاف) کړم له دوی نه د دوی ګناهونه او خامخا ضرور به يې داسې جنتونو ته داخل کړم چې د هغو له لاندې وَلِې بهېږي، چې د الله له طرفه نه بدله ده او هم دا الله دی چې له هغه سره ښه بدله ده

۱۹۶:۳ - (ای اورېدونکيه!) په ښارونو کې د کافرانو تلل راتلل دې تا تېر نه باسي (دوکه نه کړي)

۱۹۷:۳ - (دا) ډېره لږه فايده ده، بيا د هغو اوسېدنځای جهنم دی او هغه بده استوګنه ده

۱۹۸:۳ - خو هغه کسان چې له خپل رب نه ووېرېدل د هغوی لپاره داسې جنتونه دي چې د هغو له لاندې وَلِې بهېږي، چې دوی به په هغو کې همېشه وي، چې د الله له طرف نه مېلمستيا ده، او هغه څه چې له الله سره دي (هغه) د نېکانو خلقو لپاره ډېر غوره دي

۱۹۹:۳ - او بېشکه ځينې له اهلِ کتابو څخه خامخا هغه څوك دي چې په الله ايمان راوړي او په هغه (کتاب) چې تاسو ته نازل کړی شوی دی او په هغو (کتابونو) چې دوی ته نازل کړی شوي دي، چې الله ته عاجزي کوونکي دي، د الله د ايتونو په بدل کې لږ قيمت نه اخلي، دغه کسان (چې دي) د دوی لپاره د خپل رب په نيز د دوی اجر دی، بېشکه الله ډېر ژر حساب کوونکی دی

۲۰۰:۳ - ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی! تاسو صبر کوئ او په صبر ټينګ اوسئ او په (سرحدي) مورچو کې محکم اوسئ او له الله نه وېرېږئ، لپاره د دې چې تاسو کامياب شئ

۱:۴ - ای خلقو! له خپل رب نهووېرېږئ هغه چې تاسو يې د يو نفس نه پيدا کړي يئ او له هغه نه يې د هغه جوړه پيدا کړې ده، او له دغو دواړو نه يې (په ځمکه کې) ډېر سړي او ښځې خواره کړل، او له هغه الله نه ووېرېږئ چې تاسو له يو بل نه په (نامه د) هغه سره سوال کوئ او د خپلولۍ له پرېکولو نه (ووېرېږئ)، بېشکه الله پر تاسو باندې ښه ساتونکی (نګهبان) دی

۲:۴ - او يتيمانو ته د هغوی مالونه ورکړئ او ناپاکه څيز د پاك په بدل کې مه اخلئ او د هغوی مالونه له خپلو مالونو سره (په يوځای کولو) مه خورئ، يقينًا دا له همېشه ښخي لويه ګناه ده

۳:۴ - او که چېرې تاسو وېرېدلئ له دې چې د يتيمانو په حق کې به انصاف ونه کړی شئ، بيا نو له (نورو) هغو ښځو سره نكاح وکړئ چې ستاسو خوښې وي، دوه دوه، يا درې درې، يا څلور څلور، نو که تاسو وېرېدلئ چې انصاف به ونه کړی شئ، بيا نو له يوې (اصيلې ښځې) سره (نكاح وکړئ)، يا وينځه (واخلئ)، دا (طريقه) ډېره نژدې ده دې ته چې تاسو به ظلم ونه کړئ

۴:۴ - او ښځو ته د هغوی مهرونه په خوشحالۍ سره ورکړئ، بيا که دوی تاسو ته له هغه (مهر) نه څه شی د زړه په خوشحالۍ سره درکړي، نو هغه خورئ، چې ښه خوندوَر حلال (او) بې ضرره دی

۵:۴ - او ناپوهو کسانو ته د هغوی مالونه مه ورسپارئ، هغه چې الله تاسو لپاره د ګذران سبب ګرځولي دي، او له د غو (مالونو) نه تاسو هغوی ته خوراك ورکوئ او جامه ورکوئ او هغوی ته ښه خبره کوئ

٦:۴ - او تاسو يتيمان ازمايئ تر هغه پورې چې دوی (حد د) نكاح ته ورسېږي، نو که تاسو له هغوی نه څه هوښيارتيا معلومه (محسوسه) کړه، بيا نو هغوی ته خپل مالونه وروسپارئ، او تاسو دا (د يتيمانو مالونه) په اسراف سره او جلتۍ سره مه خورئ، چې دوی به لوی شي (نو وابه يې خلي) او څوك (د يتيم ولي) چې مالداره وي، نو هغه دې (له دې ماله) ځان ښه بچ ساتي او څوك چې فقير وي، نو هغه دې له دستور سره سم خوري، بيا چې کله هغوی ته خپل مالونه ورکوئ، نو په دې (ورکړه) باندې ګواهان ونيسئ او الله کافي دی، چې ښه حساب اخيستونکی دی

۷:۴ - د نارينه و لپاره حصه شته له هغه (مال) نه چې مور او پلار او نژدې خپلوان يې پرېږدي، او د ښځو لپاره (هم) حصه شته له هغه (مال) نه چې مور او پلار او نژدې خپلوان يې پرېږدي، له هغه (مال) نه چې لږ وي، يا ډېر وي، مقرر کړی شوې برخه ده

۸:۴ - او کله چې (د ميراث) تقسيم ته خپلوان او يتيمان او مسکينان حاضر شي، نو له هغه

(مال) نه دوی ته (هم څه) ورکړئ او دوی ته ښه خبره وکړئ

۹:۴ - او هغه کسان دې ووېرېږي چې که چېرې دوی له خپل ځان (له مرگ) نه وروسته کمزوري بچي پرېږدي، (نو) دوی به په هغو باندې وېرېږي، نو لازم ده چې له الله نه دې ووېرېږي او سمه نېغه خبره دې وکړي

۱۰:۴ - بېشکه هغه کسان چې د یتیمانو مالونه په ظلم سره خوري، یقینًا همدا خبره ده چې هغوی په خپلو خېټو کې اور خوري او ژر ده چې لمبې وهونکي اور کې به داخل شي

۱۱:۴ - الله تاسو ته ستاسو د اولاد په باره کې وصیت کوي (چې) د یو نر اولاد لپاره د دوه جینکو د حصې په مثل (حصه) ده، نو که دوی (دوه یا) ددوو نه زیاتې جینکۍ وي، نو د دوی لپاره دوه په درې برخې دي د هغه (مال) چې ده پرېښی وي او که چېرې یواځې یوه جینۍ وي، نو د هغې لپاره نیم (مال) دی او د هغه (مړي) مور او پلار لپاره په دواړو کې د هر یو لپاره شپږمه حصه ده له هغه (مال) نه چې هغه (مړي) پریښی وي، که چېرې د هغه (مړي) لپاره اولاد وي او که د هغه اولاد نه وي او د هغه وارثان د هغه مور او پلار وي، نو د هغه د مور لپاره درېیمه حصه ده، نو که چېرې د هغه (مړي) لپاره ورونه وي، نو د هغه د مور لپاره شپږمه حصه ده (دا) پس له (اداکولو د) وصیت نه، چې هغه (مړي) یې وصیت کړی وي یا له قرض نه، ستاسو پلرونه او ستاسو زامن (چې دي)، تاسو نه پوهېږئ چې په دوی کې تاسو ته د فایدې په لحاظ سره څوك ډېر نژدې دي، دا مقرره برخه ده د الله له جانبه، بېشکه الله ښه پوه، ښه حکمت والا دی

۱۲:۴ - او تاسو لپاره (ای سړیو!) نیمه حصه ده له هغه (مال) نه چې ستاسو ښځې یې پرېږدي که چېرې د هغوی اولاد نه وي، نو که چېرې د هغوی اولاد وي، نو تاسو لپاره څلورمه حصه ده له هغه (مال) نه چې هغوی یې پرېږدي، پس له (ادا کولو د) وصیت نه چې هغوی په دې سره وصیت کوي، یا له قرض نه، او د هغو (ښځو) لپاره څلورمه حصه ده له هغه (مال) نه چې تاسو (سړي) یې پرېږدئ که چېرې ستاسو اولاد نه وي، نو که چېرې ستاسو لپاره وي، نو د هغو (ښځو) لپاره اتمه حصه ده له هغه (مال) نه چې تاسو یې پرېږدئ، پس له (اداکولو د) وصیت نه چې تاسو د هغه وصیت کوئ، یا له قرض نه او که یو سړی، یا ښځه چې میراث ترې وړل کېږي، کلاله (بې پلاره او بې اولاده) وي او د هغه (یا د هغې) (مورنی) ورور، یا خور وي، نو په دې دواړو کې هر یو ته شپږمه حصه ده، بیا که هغوی (د کلاله خویندې، ورونه) له دې (شمېر) نه زیات وو، نو هغوی په درېیمه حصه کې (ټول) شریك دي، پس له وصیته، چې د هغه وصیت کولی شي، یا له قرض نه، چې ضرر رسوونکی نه وي (بل ته په دې وصیت سره) دا د الله له جانبه وصیت دی، او الله ښه پوه، ښه تحمل ولا دی

۱۳:۴ - دا د الله حدونه دي او چا چې د الله او د هغه د رسول اطاعت وکړ، (نو) هغه (الله) به یې داسې جنتونو ته ننباسي چې د هغو له لاندې وَلې بهېږي، چې دوی به په هغو کې همېشه وي او

دا بېخي لويه کاميابي ده

۱۴:۴ - او چا چې د الله او د هغه د رسول نافرماني وکړه او د هغه (الله) له حدونو نه مخکې تېر شو، نو هغه (الله) به يې اور ته داخل کړي، چې په هغه کې به همېشه وي او د هغه لپاره سپکوونکی عذاب دی

۱۵:۴ - او ستاسو له ښځو ځنې چې کومې بدکاري (زنا) وکړي، نو تاسو پر هغوی باندې له خپلو (مسلمانانو) نه څلور (سړي) گواهان ونيسئ، نو که چېرې هغوی گواهي ووايي، بيا دا ښځې په کورونو کې پابندې وساتئ تر هغه وخته پورې چې مرگ يې فنا کړي، يا الله د دوی لپاره بله لار راوباسي

۱۶:۴ - او په تاسو کې چې کوم دوه کسان دا (بدکاري) کوي، نو هغوی دواړو ته تکليف ورسوئ، بيا که دوی توبه ووېسته او د ځان اصلاح يې وکړه، نو تاسو له دوی نه مخ واړوئ، بېشکه الله ډېر توبه قبلوونکی، بې حده مهربان دی

۱۷:۴ - اصل خبره دا ده چې په الله باندې د توبې د قبلولو حق د هغه چا لپاره دی، چې په ناپوهۍ سره گناه کوي، بيا ډېر ژر توبه وباسي، نو دغه خلق دي چې الله د هغوی توبه قبلوي او الله ښه پوه، ښه حکمت والا دی

۱۸:۴ - او د هغه چا لپاره توبه نشته چې لگيا وي گناهونه کوي، تر دې چې کله په دوی کې يو کس ته مرگ راشي، (بيا د ځنکدن په وخت کې) وايي: بېشکه زما اوس توبه ده او نه د هغو کسانو لپاره (توبه شته) چې د کافرتوب په حالت کې مري، دغه کسان چې دي؛ مونږ د دوی لپاره ډېر دردوونکی عذاب تيار کړی دی

۱۹:۴ - ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی! تاسو لپاره حلال نه دي چې ښځې په زورسره په ميراث کې واخلئ او په دې غرض دوی مه منع کوئ (مه تنگوئ) چې تاسو (له دوی نه) له هغه (مال) نه څه برخه (بېرته) واخلئ چې تاسو دوی ته ورکړی و مگر دا چې دوی ښکاره بدکار وکړي (نو بيا يې تنگولی شئ) او له دوی سره په ښه طريقه گذران کوئ، نو که دوی ستاسو خوښې نه وي، نو کېدی شي چې تاسو به يو شی بد گڼئ او الله به په هغه کې ډېر زيات خير ايښی وي

۲۰:۴ - او که چېرې تاسو غواړئ چې د يوې ښځې په ځای بله ښځه بَدَله راولئ او تاسو په دوی کې يوې ته ډېرې مالونه ورکړي وي، نو له هغه (مال) نه هېڅ شی هم مه اخلئ، ايا تاسو به هغه (مال) اخلئ په بهتان لگولوسره او په ښکاره گناه سره؟

۲۱:۴ - او تاسو به هغه (مال) څنگه واپس اخلئ، حال دا چې په تحقيق سره تاسو له يو بل سره يو ځای شوي يئ او هغو (ښځو) له تاسو نه ډېره پخه وعده اخيستې ده!

۲۲:۴ - او له کومو ښځو سره چې ستاسو پلرونو نکا ح کړی دی، تاسو له هغوی سره نکاح مه

کوئ، لېکن هغه چې مخکې تېر شوي دي، بېشکه دا له همېشه د ډېرې بې حیایۍ او د (الله د) غضب کار دی او بده لار ده

۲۳:۴ - حرامې کړی شوې دي پر تاسو باندې ستاسو میندې، او ستاسو لوڼه، او ستاسو خویندې او ستاسو تروریانې (د پلار خویندې) او ستاسو خاله ګانې (د مور خویندې) او ورېرې او خورځې او ستاسو هغه میندې چې تاسو ته یې تی درکړی دی او ستاسو رضاعي خویندې او ستاسو د ښځو میندې (سکه خواښې) او ستاسو پرکټیانې، چې (عمومًا) ستاسو په پرورش کې وي، چې ستاسو له هغو ښځو نه (پیدا وي) چې تاسو ورسره کوروالی کړی وي او که تاسو ورسره کوروالی نه وي کړی، نو (بیا) پر تاسو باندې څه ګناه نشته، او ستاسو د خپلو حقیقي زامنو ښځې (اینګوریانې) او دا چې تاسو د دوه خویندو تر مینځه جمع وکړئ (په یو وخت کې دواړه په نکاح کې وساتئ) لېکن هغه چې مخکې تېر شوي دي، بېشکه الله له همېشه ډېر بخښونکی، بې حده مهربان دی

۲۴:۴ - او (پر تاسو باندې حرامې کړی شوې دي) مېروښې ښځې مګر (حرامې نه دي) هغه چې تاسو یې مالکان شئ (ستاسو وینځې شي) دا پر تاسو باندې (د) الله لازم کړی (قانون) دی او چې له دغو (ښځو) نه ماسِوا دي هغه تاسو لپاره حلالې دي، (په دې شرط) چې د خپلو مالونو په ذریعه یې غواړئ، چې عفت غوښتونکي یئ، بدکاري کوونکي نه یئ، بیا چې تاسو له هغوی نه د ښځه والي فایده واخیستله، نو هغوی ته خپل مهرونه ورکړئ، چې مقرر شوي دي او (ای خاوندانو او ښځو!) پر تاسو باندې هېڅ حرج نشته په هغه څه کې چې له مقررولو (د مهر) نه پس تاسو په خپلو کې په هغه (کې په کمي، یا زیاتي) باندې راضي شئ، بېشکه الله له ازله په هر څه پوه، ښه حکمت والا دی

۲۵:۴ - او په تاسو کې چې څوك له اصیلو مومنو ښځو سره د نکاح کولو مالي وَس نه لري، نو (نکاح دې وکړي) له هغو مومنو وینځو سره چې تاسو یې مالکان شوي یئ او الله ستاسو په ایمان ښه عالم دی، ستاسو ځینې له ځینو نورو دي، نو د هغو (وینځو) د مالکانو په اجازت سره له هغوی سره نکاح وکړئ او هغوی ته خپل مهرونه د دستور سره سم ورکړئ، (په دې شرط) چې پاك لمنې وي، بدکارې نه وي او نه پټ یاران نیونکې وي، بیا چې کله دوی مېروښې شوي، نو که بدکاري (زنا) یې وکړه، نو په دوی باندې د اصیلو ښځو د سزا نیمایي (سزا) ده، دا (له وینځې سره د نکاح کولو اساني) په تاسو کې د هغه چا لپاره ده چې د زنا اندېښنه لري او که تاسو (له وینځې سره له نکاح نه) صبر وکړئ (نو دا) تاسو لپاره غوره دي او الله ډېر بخښونکی، بې حده مهربان دی

۲۶:۴ - الله غواړي چې تاسو ته (حکمونه) ښه واضحه کړي او تاسو ته د هغو خلقو لارې وښیي چې له تاسو نه مخکې وو، او ستاسو توبه قبوله کړي (تاسو ته په خپل رحمت سره توجه وکړي)

او الله ښه عالم، ښه حکمت والا دی

۲۷:۴ - الله غواړي تاسو ته توجه وکړي (په خپل رحمت سره) او هغه کسان، چې د خواهشاتو تابع کېږي، (هغوی) غواړي چې تاسو (له حقې لارې نه) ډېر زيات کاږه شئ،

۲۸:۴ - او الله غواړي چې په تاسو تخفيف (اساني) راولي او انسان ډېر کمزوری پيدا کړی شوی دی

۲۹:۴ - ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی! تاسو په خپل مينځ کې د يو بل مالونه په باطله (ناحقه طريقه) مه خورئ مګر داچې تجارت وي، چې ستاسو په خپل مينځي رضامندۍ سره وي او تاسو خپل ځانونه مه وژنئ، بېشکه الله پر تاسو باندې بې حده مهربان دی

۳۰:۴ - او چا چې دا (کارونه) وکړل، په دې حال کې چې زياتي کوونکی او ظلم کوونکی و، نو ژر به مونږ دغه (کس) اور ته داخل کړو او دا (کار) الله ته ډېر اسان دی

۳۱:۴ - که چېرې تاسو له هغو غټو ګناهونو نه ځان وساتئ، چې تاسو ترې منع کولی شئ (، نو) مونږ به له تاسو نه ستاسو (واړه) ګناهونه لرې کړو او ډېر د عزت ځای ته به مو داخل کړو

۳۲:۴ - او د هغه شي ارزو مه کوئ چې په هغه سره الله ستاسو ځينې په ځينو نورو غوره ګرځولي دي، د سړيو لپاره د خپل عمل حصه ده او د ښځو لپاره د خپل عمل برخه ده او له الله نه د هغه د فضل سوال کوئ، بېشکه الله په هر شي ښه پوه دی

۳۳:۴ - او د هر يو (سړي او ښځې) لپاره مونږ وارثان مقررکړي دي له هغه (مال) نه چې مور او پلار او نژدې خپلوانو پريښی وي او هغه کسان چې له هغوی سره ستاسو معاهده شوې ده، نو تاسو هغوی ته د هغوی حصه ورکړئ، بېشکه الله په هر شي باندې ګواه دی

۳۴:۴ - سړي په ښځو باندې نګرانان دي په سبب د دې چې الله د دوی ځينې په ځينو نورو باندې غوره کړي دي او په سبب د دې چې دوی (سړي) له خپلو مالونو نه انفاق کوي، نو نېکې ښځې اطاعت کوونکې دي او د الله په ساتنې سره پسې شا (د ځان او مال) حفاظت کوونکې دي، او هغه ښځې چې تاسو د هغوی له نافرمانۍ نه وېرېږئ، نو دوی ته نصيحت وکړئ او د ملاستې په ځايونو کې ترې نه جدا شئ او ويې وهئ، نو که ستاسو خبره يې ومنله، نو (بيا) د دوی په خلاف بله لار مه لټوئ، بېشکه الله ډېر اوچت، ډېر لوی دی

۳۵:۴ - او که تاسو د دغو دواړو په مينځ کې د مخالفت وېره لرئ، نو يو حکَم (مينځګړی) د هغه (سړي) له خاندان نه مقرر کړئ او يو مينځګړی د هغې (ښځې) له کورنۍ نه، که دوی دواړه (ښځه، خاوند، يا ثالثان) د څه اصلاح اراده ولري، (نو) الله به د دې دواړو په مينځ کې موافقت (جوړښت) راولي، بېشکه الله له همېشه ښه پوه، ښه خبردار دی

۳٦:۴ - او تاسو د الله عبادت کوئ او له هغه سره هېڅ شی مه شریکوئ او له مور او پلار سره ښېګڼه کوئ او له خپلوانو سره او يتيمانو او مسکينانو سره او له خپلوان ګاونډي سره او د څنګ له ګاونډي سره او د څنګ له ملګري سره او له مسافر سره او له خپلو وينځو، مريانو سره (ښېګڼه کوئ) بېشکه الله نه خوښوي هغه چا لره چې کبرجن، ډېر فخر کوونکی وي

۳۷:۴ - هغه کسان چې شومتيا کوي او (نورو) خلقو ته د شومتيا کولو حکم کوي او هغه څه پټوي چې الله دوی ته له خپله فضله ورکړي دي او مونږه د کافرانو لپاره سپکوونکی عذاب تيار کړی دی

۳۸:۴ - او (نه) هغه کسان (خوښوي) چې خلقو ته د ځان ښودلو لپاره خپل مالونه خرچ کوي او په الله او د اخرت په ورځ ايمان نه راوړي او هغه څوك چې د هغه ملګری شيطان وي، نو هغه بد ملګری دی

۳۹:۴ - او دوی ته به څه نقصان و که چېرې دوی په الله او په ورځ د اخرت ايمان راوړی وَی او له هغه (مال) نه يې انفاق کړی وَی چې الله دوی ته ورکړی دی او الله په دوی ښه پوه دی

۴۰:۴ - بېشکه الله د يوې ذرې په اندازه (هم) ظلم نه کوي او که دا (ذره) يوه نېکي وي، نو هغه به يې دوه چنده کړي او هغه ته به له خپل جانب نه ښېخي لوی اجر ورکړي

۴۱:۴ - نو څه حال به وي په هغه وخت کې کله چې مونږ له هر امت نه يو ګواه راولو او تا په دوی باندې (د) ګواه (په حيث) راولو

۴۲:۴ - په دغه ورځ کې به هغه کسان ارزو کوي چې کافر شوي دي او د رسول نافرماني يې کړې ده، چې کاشکې په دوی باندې ځمکه (له پاسه نه) همواره کړی شي، او دوی به له الله نه هېڅ خبره (هم) نشي پټولی

۴۳:۴ - ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی! تاسو د نشې په حالت کې لمانځه ته مه نژدې کېږئ، تر هغه پورې چې تاسو پوه شئ په هغه څه چې تاسو يې وايئ او نه د جنابت په حالت کې، مګر دا چې لارَوي يئ، تر دې چې تاسو غسل وکړئ او که تاسو بېماران يئ، يا په سفر يئ، يا په تاسو کې يو کس له اودس ماتي راشي، يا تاسو له ښځو سره کوروالی وکړئ، بيا تاسو اوبه ونه مومئ، نو د ځمکې پاك مخ (خاورې وغيره) ته اراده وکړئ، پس د خپلو مخونو او (تر مړوندونو پورې د) لاسونو مسح وکړئ، بېشکه الله ډېر معافي کوونکی، ښه مغفرت کوونکی دی

۴۴:۴ - ايا تاسو هغه کسان نه دي کتلي (د هغوی په حال نه يئ خبر شوي) چې هغوی ته څه حصه له کتابه ورکړی شوې ده، چې هغوی ګمراهي اخلي او غواړي چې تاسو (هم حقه) لاره ورکه کړئ

۴۵:۴ - او الله ستاسو په دښمنانو ښه پوه دی او الله کافي دی کارساز او الله کافي دی مدد

۴٦:۴ - او ځيني له هغو کسانو نه چې يهوديان دي، هغوی له خپلو ځايونو نه کلمې بدلوي او هغوی وايي: سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا مونږ واورېدل او مونږ نافرماني وکړه.'' وَاسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ ''او ته واوره، چې ته اورول شوی نه يې'' اورَاعِنَا زمونږ رعايت وکړه د خپلو ژبو په تاوولو سره او په دين کې د طعن (او عيب) راوښکلو لپاره، او يقينًا که دوی ويلي وی (چې) سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا ''مونږ واورېدل او اطاعت مو وکړ''، او اِسْمَعْ ''واوره''، وَانْظُرْنَا ''او مونږ ته وگوره''، نو دا (کلام) به د هغوی لپاره ډېر غوره او ډېر درست ساتونکی و او لېکن الله د دوی د کفر په سبب په دوی لعنت کړی دی، نو دوی ايمان نه راوړي مگر ډېر لږ (خلق)

۴٧:۴ - او ای هغو کسانو چې هغوی ته کتاب ورکړی شوی دی! تاسو په هغه (کتاب) ايمان راوړئ چې مونږ نازل کړی دی، چې تصديق کوونکی دی د هغو (کتابونو) چې له تاسو سره دي، مخکې له دې چې مونږه څه مخونه محوه کړو، بيا دغه (مخونه) خپلو شاگانو ته ورواړوو، يا پرې مونږ لعنت وکړو، لکه څنگه چې مونږ لعنت کړی و د خالي د ورځې په ملگرو، او د الله کار (خامخا) پوره کړی شوی وي

۴٨:۴ - بېشکه الله نه بخښي دا چې له هغه سره دې (څوك) شريك کړی شي او هغه بخښي هغه (گناه) چې له دې (شرك، يا کفر) نه کمه وي د چا لپاره چې وغواړي او څوك چې له الله سره شريك ونيسي، نو يقينًا هغه ډېره لويه گناه راجوړه کړله

۴٩:۴ - ايا تاسو هغه کسان نه دي کتلي چې د خپلو ځانونو تزکيه (ستاينه) کوي (داسې نه ده) بلکې الله پاکوي چا لره چې وغواړي، اوپه دوی به د کجورې د نري تار په برابر هم ظلم ونه کړی شي

۵٠:۴ - ته وگوره دوی څنگه په الله باندې دروغ ورتپي او دا (دروغ) د ښکاره گناه کېدلو لپاره کافي دي

۵١:۴ - ايا تا هغو کسانو ته نه دي کتلي چې هغوی ته يوه برخه له کتابه ورکړی شوې وه، چې هغوی (اوس) په بت او په شيطان (هم) ايمان راوړي او د کافر شوو کسانو (مشرکانو) په باره کې وايي: دا (کفار) له مومنانو نه زيات، سمه لارموندونکي دي

۵٢:۴ - دا هغه کسان دي چې الله په دوی لعنت کړی دی او په چا باندې چې الله لعنت وکړي، نو ته به کله هم د هغه لپاره مدد کوونکی ونه مومې

۵٣:۴ - ايا د دوی لپاره په بادشاهۍ کې څه برخه شته؟ (نشته او که وَی) نو په دغه وخت کې به دوی خلقو ته نقير (د کجورې د زړي داغ) هم نه ورکوي

۵۴:۴ - يا دوی له خلقو سره حسد کوي په هغه څه چې الله هغوی ته له خپل فضل نه ورکړی

دی، پس یقینًا مونږه الِ ابراهیمہ ته کتاب او حکمت ورکړی و او مونږه هغوی ته ډېره لويه بادشاهي ورکړې وه

۵۵:۴ - نو له دوی نه ځينې هغه دي چې په ده يې ايمان راوړی دی او ځينې له دوی نه هغه دي چې له ده نه يې مخ اړولی دی، او د (کافرانو لپاره) جهنمہ کافي دی، چې لمبې وهونکی دی

۵۶:۴ - بېشکه هغه کسان چې زمونږ په ايتونو کافر شوي دي ژر ده چې مونږ به هغوی اور ته ننباسو، هر کله چې د هغوی څرمنې (په اور) پخې شي، مونږ به هغوی ته له هغو نه غير نورې څرمنې وربدلې کړو، د دې لپاره چې دوی عذاب وڅکي، بېشکه الله ډېر غالب، ښه حکمت والا دی

۵۷:۴ - او هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی او نېك عملونه يې کړي دي، يقينًا مونږ به دوی داسې جنتونو ته داخل کړو چې د هغو له لاندې وَلِې بهېږي، چې دوی به په هغو کې تل ترتله، همېشه وي، د دوی لپاره په هغو کې ښې پاکې بيبيانې دي او مونږ به دوی ښه گور سيوري ته داخل کړو

۵۸:۴ - بېشکه الله تاسو ته د دې حکمہ کوي چې امانتونه خپلو حقدارو ته وسپارئ او دا چې کله تاسو د خلقو په مينځ کې فيصله کوئ، (نو) په انصاف سره فيصله کوئ، بېشکه الله تاسو ته ډېر ښه نصيحت کوي، بېشکه الله ښه اورېدونکی، ښه ليدونکی دی

۵۹:۴ - ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی! د الله خبره منئ او د رسول خبره منئ او د خپلو د امر د خاوندانو، نو که چېرې تاسو په خپلو کې د څه شي په باره کې جگړه وکړئ، نو هغه (شی) الله او د هغه رسول ته وگرځوئ که چېرې تاسو په الله او په ورځ د اخرت ايمان لرئ، دا (کار) ډېر غوره دی او د انجامہ په لحاظ ډېر ښه دی

۶۰:۴ - ايا تا هغه کسان نه دي کتلي چې دا دعویٰ کوي چې دوی په هغه څه ايمان راوړی دی چې تا ته نازل کړی شوي دي او په هغه څه چې له تا نه مخکې نازل کړی شوي دي، دوی غواړي دا چې خپل منځي فيصلې طاغوت ته يوسي، حال دا چې دوی ته له هغه نه د انکار کولو حکمہ شوی دی او شيطان غواړي چې دوی بې لارې کړي، په ډېرې لرې گمراهۍ سره

۶۱:۴ - او کله چې دوی ته وويل شي هغه (قرآن) ته راشئ چې الله نازل کړی دی او رسول ته (راشئ، نو) ته به منافقان وينې چې له تا نه مخ اړوي، سخت مخ اړول

۶۲:۴ - نو څه حال به وي (د دوی) چې کله دوی ته څه مصيبت ورسېږي په سبب د هغو (کارونو) چې د دوی لاسونو مخکې لېږلي دي، بيا تا ته راشي، چې په الله قسمونه خوري چې زمونږ اراده يواځې ښېگړه کول او موافقت راوستل وو

۶۳:۴ - دا هغه کسان دي چې الله پوهېږي په هغه څه چې د دوی په زړونو کې دي، نو ته له دوی نه مخ واړوه او دوی ته نصيحت وکړه او دوی ته د دوی د نفسونو په باره کې ښه اثر کوونکې خبره

وکړه

۶۴:۴ - او نه دی لېږلی مونږ هېڅ رسول مگر د دې لپاره چې د الله په حکم سره د هغه اطاعت وکړی شي او که په رښتيا دوی په هغه وخت کې تا ته راغلي وَی چې دوی په خپلو ځانونو ظلم وکړ، بيا يې له الله نه بخښنه غوښتې وَی او د دوی لپاره رسول (هم) بخښنه غوښتې وَی (، نو) خامخا دوی به الله ښه توبه قبلوونکی، بې حده رحم کوونکی موندلی و

۶۵:۴ - پس داسې نه ده، ستاپه رب مې دې قسم وي! دوی مومنان کېدی نشي تر هغه پورې چې دوی په خپل مينځ کې په پېښو جگړو کې تا فيصله کوونکی ومني، بيا په خپلو نفسونو کې ستا د کړې فيصلې په باره کې هېڅ تنگي ونه مومي او په ښو منلو سره يې ومني

۶۶:۴ - او که په رښتيا مونږه په دوی باندې دا فرض کړي وَی چې خپل ځانونه قتل کړئ، يا له خپلو کورونو نه ووځئ (، نو) دا کار به نه و کړی مگر په دوی کې ډېرو لږو (خلقو) او که په رښتيا دوی هغه کار کړی وَی د څه چې ورته نصيحت کېږي (، نو) دا به د دوی لپاره يقينًا ډېر غوره و، او د کلکوالي په لحاظ به ډېر سخت و

۶۷:۴ - او په دغه وخت کې به يقينًا مونږه دوی ته له خپل جانبه ډېر لوی اجر ورکړی و

۶۸:۴ - او مونږ به يقينًا دوی په نېغه لار روان کړي وو

۶۹:۴ - او څوك چې د الله او د (هغه د) رسول اطاعت وکړي، نو دغه کسان به له هغو خلقو سره وي په چا باندې چې الله انعام کړی دی، چې نبيان، او صديقين او شهيدان او صالحان دي او دغه خلق ښه ملگري دي

۷۰:۴ - دا د الله له جانبه (پېرزوينه او) فضل دی او الله کافي دی، ښه پوه

۷۱:۴ - ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی! خپلې وسلې واخلئ، پس (د جنگ لپاره) بېلې بېلې ډلې ووځئ، يا ټول په جمع ووځئ

۷۲:۴ - او بېشکه په تاسو کې ځينې خامخا هغه دي چې اورمرو به (غزا ته په تلو کې) تاخير کوي، او که چېرې تاسو ته څه مصيبت ورسېږي (، نو) هغه وايي: يقينًا الله په ما باندې پېرزوينه وکړه، چې په دغه وخت کې زه له دوی سره حاضر نه وم

۷۳:۴ - او که چېرې پر تاسو باندې د الله له جانبه څه فضل وشي (، نو) دوی به خامخا (په داسې انداز کې) وايي گوياکې ستاسو په مينځ کې او د هغه په مينځ کې هېڅ دوستي (او مينه) نه وه: کاشکې زه (هم) له دوی سره وَی، نو ډېره لويه کاميابي به مې حاصله کړې وَی

۷۴:۴ - نو (لازم ده چې) هغه کسان دې د الله په لار کې وجنگېږي چې دنيايي ژوند د اخرت په بدل کې خرڅوي (قربانوي) او څوك چې د الله په لار کې جنگ کوي، بيا هغه ووژل شي، يا (په

دښمن) غالبه شي، نو مونږ به هغه ته ژر ډېر لوی اجر ورکړو

۷۵:۴ - او په تاسو څه شوي دي چې تاسو د الله په لاره کې نه جنګېږئ او د کمزورو سړیو او ښځو او ماشومانو (د خلاصولو) په لاره کې، هغه کسان چې وایي: ای زمونږه ربه! ته مونږه له دې کلي نه وباسه، چې اوسېدونکي یې ظالمان دي او ته زمونږ لپاره له خپل اړخه کومه دوست (حمایت کوونکی) مقرر کړه او ته زمونږ لپاره له خپل جانبه کومه مدد کوونکی مقرر کړه

۷۶:۴ - هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی، هغوی د الله په لار کې جنګ کوي او هغه کسان چې کفر یې کړی دی، هغوی د طاغوت (شیطان) په لار کې جنګ کوي، نو تاسو د شیطان له دوستانو سره جنګ کوئ، بېشکه د شیطان چل (او مکر) له همېشه ضعیف دی

۷۷:۴ - ایا تا هغه کسان نه دي کتلي، چې هغوی ته وویل شو: خپل لاسونه (له جنګ نه) بند وساتئ او لمونځ قایموئ او زکات ورکوئ، نو کله چې پر هغوی باندې جنګ کول فرض کړی شول (، نو) ناڅاپه په دغه وخت کې په هغو کې یوه ډله له خلقو نه وېرېدله، له الله نه د وېرېدلو په شان، یا (له دې نه هم) زیات وېرېدل، او ویې ویل: ای زمونږه ربه! تا پر مونږ باندې جنګ کول ولې فرض کړل؟ ولې ته مونږ ته تر نژدې مودې پورې مهلت نه راکوې؟ ته (ورته) ووایه: د دنیا فایده ډېره لږه ده او اخرت ډېر غوره دی د هغه چا لپاره چې پرهېزګاره شو او په تاسو به د کجورې د هډوکي د نری تار (قدرې) ظلم (هم) ونه کړی شي

۷۸:۴ - تاسو چې په هر ځای کې یئ، مرګ به تاسو رالاندې کړي، اګر که تاسو په سختو مضبوط کړی شویو قلاګانو کې یئ، او که چېرې په دوی څه خوشحالي راشي (، نو) وایي: دا د الله له جانبه ده او که په دوی څه سختي راشي (، نو) وایي: (ای نبي!) دا ستا له طرفه ده.، ته (ورته) ووایه: دا هر څه (خوشحالي او تکلیف) د الله له خوا دي، نو په دې قوم څه شوي دي چې نژدې نه دي چې په څه خبره پوه شي

۷۹:۴ - تا ته چې څه خوشحالي هم دررسېدلې ده، نو د الله له جانبه ده او تا ته چې څه تکلیف هم دررسېدلی دی، نو (هغه) ستا د نفس له جانبه دی او (ای نبي!) ته مونږه د خلقو لپاره رسول لېږلی یې او کافي دی الله (د) ګواه (په حیث)

۸۰:۴ - چا چې د رسول اطاعت وکړ، نو یقینًا هغه د الله اطاعت وکړ او څوك چې (له اطاعت نه) وګرځېده، نو ته مونږه پر هغوی باندې څارونکی (نګهبان) نه یې لېږلی

۸۱:۴ - او دوی وایي: (زمونږ کار ستا) خبره منل دي، نو کله چې ستا له خوا نه ووځي (، بیا) په دوی کې یوه ډله د شپې مشورې کوي، له هغې خبرې نه غیر چې دوی کوله، او الله لیکي هغه خبرې چې دوی یې د شپې تدبیر کوي، نو ته له دوی نه مخ واړوه او په الله باندې توکل وکړه او الله کافي دی کارساز

۸۲:۴ - ایا نو دوی په قرآن کې غور نه کوي او که چېرې دا د غیرالله له خوا وَی، دوی به په ده کې خامخا ډېر زیات اختلاف موندلی و

۸۳:۴ - او کله چې دوی ته د امن، یا وېرې څه خبره راشي، دوی هغه خوره (نشر) کړي۔ او که چېرې دوی هغه رسول ته او خپلو د کار خاوندانو (حاکمانو) ته رسولې وَی، (نو) خامخا په دوی کې به هغو کسانو دا (خبره) معلومه کړې وَی، څوك چې د دې استنباط او راوېستنه کوي۔ او که پر تاسو باندې د الله فضل او د هغه رحمت نه وَی، خامخا تاسو به د شیطان تابعداري کړې وه۔ مگر لږو خلقو (به نه وه کړې)

۸۴:۴ - نو ته د الله په لاره کې جنگ کوه، ته یواځې د خپل نفس په هکله ذمه وار گرځولی شې او مومنانو ته ترغیب ورکړه، کېدی شي چې الله د هغو کسانو جنگ بند کړي چا چې کفر کړی دی، او الله ډېر سخت دی د جنگ په لحاظ او ډېر سخت دی د سزا ورکولو په لحاظ

۸۵:۴ - چا چې سفارش وکړ، ښه سفارش، هغه ته به په دې (سفارش) سره (د ثواب) برخه وي او چا چې سفارش وکړ، بد سفارش (، نو) هغه ته به په دې سره (د گناه) پېتی وي او الله له همېشه په هر شي باندې قدرت لرونکی دی

۸٦:۴ - او کله چې تاسو ته په سلام ویلو سره دعا وکړی شي، نو تاسو له هغې نه غوره جواب ورکړئ، یا هم هغه ور وگرځوئ ـ، بېشکه الله د هرشي ښه حساب کوونکی دی

۸۷:۴ - الله (چې دی) نشته هېڅ لایق د عبادت مگر یواځې هم دی دی، هغه به تاسو خامخا د قیامت ورځې ته راجمع کړي، چې په هغې کې هېڅ شك نشته او له الله نه په خبره کې ډېر رښتینی څوك دی؟

۸۸:۴ - نو د منافقانو په باره کې په تاسو څه شوي دي، چې دوه ډلې شوئ، حال دا چې الله هغوی د خپلو عملونو په سبب نسکور کړي دي، ایا تاسو غواړئ چې هغه کس په نېغه لار روان کړئ چې الله گمراه کړی دی، او چې الله څوك گمراه کړي، نو ته به هېڅ کله هم د هغه لپاره (نېغه) لار ونه مومې

۸۹:۴ - دوی خوښوي چې تاسو (هم) کافران شئ، لکه څنگه چې دوی کافران شوي دي، بیا به تاسو (ټول) یو شان شئ، نو تاسو له دوی نه هېڅ دوستان مه نیسئ تر هغه پورې چې دوی د الله په لار کې هجرت وکړي، نو که دوی (د الله له لارې نه) وگرځېدل، نو تاسو دوی نیسئ او دوی وژنئ کوم ځای چې تاسو دوی ومومئ او تاسو له دوی نه مه هېڅ دوست نیسئ او نه مدد کوونکی

۹۰:۴ - مگر هغه کسان چې د داسې قوم سره پیوند لري چې ستاسو په مینځ کې او د هغوی په مینځ کې معاهده (تړون) وي، یا هغوی تاسو ته راشي چې سینې یې له تاسو سره له جنگ کولو

نه، یا له خپل قوم سره له جنګ کولو نه تنګې وي او که الله غوښتلی (، نو) دوی به یې خامخا پر تاسو باندې زورور کړي وَی، بیا به دوی له تاسو سره خامخا جنګ کړی و، پس که دوی له تاسو نه ډډه وکړي، نوله تاسو سره جنګ ونه کړي او تاسو ته د سولې درخواست وکړي، بیا نو الله تاسو لپاره په دوی باندې هېڅ لاره نه ده ګرځولې

۹۱:۴ - ژر دی چې تاسو به نور خلق وموموۍ چې هغوی غواړي چې له تاسو نه په امن (او بېغمه) شي او له خپل قوم نه (هم) په امن شي، هر وخت چې فتنې (کفر او ورانې) ته وبللی شي، (نو) په هغې کې نسکور پرېوځي، نو که دوی له تاسو نه په ډډه نه شول، او تاسو ته یې سوله پېش نه کړله او خپل لاسونه یې (له جنګ) نه بند نه کړل، بیا نو تاسو دوی نیسۍ او دوی وژنۍ کوم ځای چې تاسو دوی وموموۍ او دغه خلق دي چې مونږ تاسو ته د دوی په خلاف (د جنګ کولو) ښکاره دلیل ګرځولی دی

۹۲:۴ - او د هېڅ مومن لپاره دا حق نشته چې بل مومن قتل کړي مګر دا چې په خطا سره وي، او چا چې مومن په خطا سره قتل کړ، نو د یو مومن څټ (مریي، وینځې) ازادول لازم دي او دیت دی چې د هغه (مقتول) وارثانو ته به سپارلی شي، مګر دا چې هغوی (وارثان) یې معاف کړي، نو که چېرې هغه ستاسو د دښمن له قوم څنې وي او دا (مقتول) مومن وي، بیا نو د یو مومن څټ ازادول دي، او که چېرې له داسې قوم څنې وي چې ستاسو په مینځ کې او د هغوی په مینځ کې معاهده وي، نو بیا دیت دی چې د هغه وارثانو ته به سپارلی شي او مومن څټ (غلام، وینځه) ازادول دي، نو چا چې (څټ) ونه مونده، نو پرله پسې دوه میاشتې روژې نیول دي، د الله له جانبه د توبې لپاره. او الله له همېشه ښه پوه، ښه حکمت والا دی

۹۳:۴ - او هغه څوك چې مومن په قصد (او ارادې) سره قتل کړي، نو د هغه سزا جهنم دی، چې همېشه به په هغه کې وي او الله په ده باندې غضب کړی دی او په ده یې لعنت کړی دی او د ده لپاره یې ببخي لوی عذاب تیار کړی دی

۹۴:۴ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! کله چې تاسو د الله په لار کې سفر کوئ، نو ښه تحقیق کوئ او څوك چې په تاسو سلام واچوي، هغه ته دا مه وایئ چې ته مومن نه یې، ـتاسو د دنیایي ژوند سامان غواړئ، نو له الله سره ډېر زیات غنیمتونه دي، له دې نه مخکې تاسو هم همداسې وئ، بیا پر تاسو باندې الله فضل وکړ، نو ښه تحقیق کوئ، بېشکه الله په هغو کارونو چې تاسو یې کوئ، ښه خبردار دی

۹۵:۴ - په مومنانو کې ناست خلق، چې تکلیف والا نه دي، (دوی) او د الله په لار کې په خپلو مالونو او ځانونو سره جهاد کوونکي سره برابرېدلی۔ نه شي، الله په خپلو مالونو او ځانونو سره جهاد کوونکو ته په ناستو باندې په لویې مرتبې سره فضیلت ورکړی دی، او له هر یو سره الله د ښې بدلې وعده کړې ده، او الله جهاد کوونکو ته په ناستو باندې په ډېر لوی اجر سره غوره والی

ورکړی دی

۹۶:۴ - چې د هغه (الله) له طرف نه مرتبې دي او بخښنه او مهرباني ده، او الله له همېشه بخښونکی، بې حده رحمـ کوونکی دی

۹۷:۴ - بېشکه هغه کسان چې ملایکو د هغوی روحونه قبض کړل، په داسې حال کې چې په خپلو ځانونو ظلمـ کوونکي وو، ورته وایي به: تاسو په څه حال کې وئ؟ دوی به وایي: مونږه په (هغې) ځمکه کې کمزوري کړی شوي وو، ورته وبه وایي: ایا د الله ځمکه فراخه نه وه چې تاسو په هغې کې هجرت کړی وَی، نو دغه خلق (چې دي) د دوی اوسېدنځای جهنمـ دی او هغه د ورتلو بد ځای دی

۹۸:۴ - مگر هغه (په رښتیا) کمزوري کړی شوي سړي او ښځې او ماشومان، چې نه د هېڅ حیلې وَس لري او نه څه لاره مومي

۹۹:۴ - نو دغه خلق (چې دي) امېد دی چې الله به هغوی ته معافي وکړي او الله له ازله ښه معافي کوونکی، ښه بخښونکی دی

۱۰۰:۴ - او چا چې د الله په لار کې هجرت وکړ (، نو) هغه به په ځمکه کې د اوسېدو ډېر ځایونه او فراخي وومومي او څوك چې له خپله کوره وځي، چې الله ته او د هغه رسول ته هجرت کوونکی وي، بیا مرگ دی رالاندې کړي، نو یقینًا د ده اجر په الله باندې ثابت شو، او الله ډېر بخښونکی، بې حده رحمـ کوونکی دی

۱۰۱:۴ - او کله چې تاسو په ځمکه کې سفر کوئ، نو پر تاسو باندې هېڅ گناه نشته چې له لمانځه نه څه حصه کمه کړئ که تاسو وېرېدلئ له دې نه چې کافران شوي خلق به تاسو په فتنه کې واچوي، بېشکه کافران له همېشه ستاسو ښکاره دښمنان دي

۱۰۲:۴ - او کله چې ته په دوی کې موجود یې، بیا ته دوی ته لمونځ ودروې، نوله دوی نه دې یوه ډله له تا سره ودرېږي او خپلې وسلې دې (همـ له ځانه سره) ونیسي، نو کله چې دوی سجده وکړي، نو دوی دې ستاسو شا ته شي او هغه بله ډله دې راشي چې لمونځ یې نه دی کړی، نو هغوی دې له تا سره لمونځ وکړي او خپل د ساتنې سامان او خپلې وسلې دې (له ځانه سره) ونیسي، کافران شوي خلق دا ارزو لري چې کاشکې تاسو له خپلو وسلو او خپلو سامانونو نه غافله شئ، بیا هغوی پر تاسو باندې په یو ځلي زوروره حمله وکړي. او پر تاسو باندې هېڅ گناه نشته که تاسو ته د باران په وجه څه تکلیف وي، یا تاسو بیماران یئ دا چې تاسو خپلې وسلې کېږدئ، او خپله بیداري (د ساتنې سامان) راکلکه کړئ، بېشکه الله د کافرانو لپاره سپکوونکی عذاب تیار کړی دی

۱۰۳:۴ - بیا چې کله تاسو لمونځ ادا کړئ، نو الله یادوئ، په ولاړه او ناسته او په خپلو اړخونو

باندې (چې پراته یئ)، بیا چې کله تاسو مطمئن (ډاډمن) شئ، نو لمونځ قایموئ (د اطمینان د حالت لمونځ) بېشکه لمونځ له شروع نه په مومنانو باندې په (معلومو) وختونو کې فرض کړی شوی دی

۱۰۴:۴ - او تاسو د (کافرو) خلقو په لټون کې سستي (کمزوري) مه کوئ، که تاسو یئ چې په تکلیف کېږئ، نو بېشکه هغوی (هم) په تکلیف کېږي، لکه څنګه چې تاسو په تکلیف کېږئ او تاسو له الله نه د هغه څه امېد لرئ چې هغوی یې امېد نه لري او الله له همېشه ښه پوه، ښه حکمت والا دی

۱۰۵:۴ - بېشکه مونږ تا ته کتاب په حقه سره نازل کړی دی، د دې لپاره چې ته د خلقو په مینځ کې فیصله وکړې په هغه څه سره چې الله تا ته ښودلي دي او ته د خیانت کوونکو لپاره جګړه کوونکی مه جوړېږه

۱۰۶:۴ - او له الله نه بخښنه غواړه، بېشکه الله ډېر بخښونکی، بې حده مهربان دی

۱۰۷:۴ - او ته د هغو کسانو له طرفه جګړه مه کوه چې له خپلو ځانونو سره خیانت کوي، بېشکه الله له هغه چا سره مینه نه کوي چې ډېر خاین، سخت ګناهګار وي

۱۰۸:۴ - دوی پټول کوي له خلقو نه او له الله نه پټول نه کوي، حال دا چې هغه (الله) له دوی سره وي کله چې دوی د شپې د هغې خبرې په باره کې مشورې کوي چې هغه (الله) یې نه خوښوي، او الله هغو عملونو لره چې دوی یې کوي، راګېروونکی دی

۱۰۹:۴ - واورئ! دا تاسو خلق یئ چې د دوی له طرفه مو په دنیایي ژوند کې جګړه وکړه، نو د قیامت په ورځ به له الله سره د دوی له طرفه څوك جګړه کوي؟ یا څوك به د دوی لپاره کارساز جوړېږي؟

۱۱۰:۴ - او هر څوك چې څه بد عمل وکړي یا په خپل ځان ظلم وکړي، بیا له الله نه بخښنه وغواړي (، نو) الله به ډېر بخښونکی، بېحده رحم کوونکی ومومي

۱۱۱:۴ - او هر څوك چې څه ګناه وکړي، نو بېشکه هم دا خبره ده چې د خپل ځان په ضرر یې کوي، او الله له همېشه ښه پوه، ښه حکمت والا دی

۱۱۲:۴ - او هر څوك چې څه خطا وکړي، یا څه ګناه، بیا د هغې تور په (بل) بې ګناه پورې کوي، نو یقینًا هغه د غټ تهمت او ښکاره ګناه بار پورته کړ

۱۱۳:۴ - او که په تا باندې د الله فضل او د هغه رحمت نه وَی (، نو) خامخا په دوی کې یوې ډلې اراده کړې وه چې تا ګمراه کړي او دوی نه ګمراه کوي مګر خپل ځانونه، او تا ته هېڅ قسمه ضرر نشي دررسولی۔ او الله په تا باندې کتاب (قرآن) او حکمت (سنت) نازل کړی دی او تا ته یې هغه

څه درزده کړي دي چې ته پرې نه پوهېدلې، او په تا باندې د الله فضل ډېر لوی دی

۱۱۴:۴ - هېڅ خیر نشته د هغوی په ډېرو پټو مشورو کې مګر هغه څوك چې حکم وکړي د صدقې کولو، یا د نېکۍ کولو، یا د خلقو په مینځ کې د اصلاح (روغې) کولو، او هر څوك چې دغه کارونه د الله د رضا لټولو لپاره وکړي، نو ژر ده چې هغه ته به مونږ ډېر لوی اجر ورکړو

۱۱۵:۴ - او هغه څوك چې له رسول سره مخالفت وکړي، وروسته له دې نه چې هغه ته نېغه لار ښه څرګنده شوه، او د مومنانو له لارې نه غیر د بلې (لارې) تابع شي (، نو) مونږ به دغه (کس) هغه څه ته وروګرځوو چې دی ورته ورګرځېدلی دی او جهنم ته به یې داخل کړو او هغه د ورتلو بد ځای دی

۱۱۶:۴ - بېشکه الله نه بخښي دا چې له هغه سره شریك ونیول شي او بخښي هغه (ګناهونه) چې له دې (شرك، کفر) نه کم دي، د چا لپاره چې یې وغواړي، او څوك چې له الله سره شریك ونیسي، نو یقینًا هغه ګمراه شو په ډېرې لرې ګمراهۍ سره

۱۱۷:۴ - دوی له هغه (الله) نه غیر نه بلي مګر ښځې (ښځ نومي بتان) او دوی نه بلي مګر سرکښه شیطان لره

۱۱۸:۴ - الله په هغه لعنت کړی دی او هغه (شیطان) وویل: زه به خامخا لازمًا ستاپه بنده ګانو کې یوه مقرره برخه راګېروم

۱۱۹:۴ - او زه به خامخا لازمًا هغوی ګمراه کوم او زه به خامخا لازمًا هغوی په ارزوګانو کې اچوم او زه به خامخا لازمًا هغوی ته حکم کوم، بیا به هغوی خامخا د څارویو غوږونه څیروي او زه به خامخا هغوی ته حکم کوم، نو هغوی به ارومرو د الله په تخلیق کې تغییر (بدلون) راولي او چا چې له الله نه غیر شیطان دوست ونیوه، نو یقینًا هغه تاواني شو، ښکاره تاواني کېدل

۱۲۰:۴ - هغه (شیطان) دوی ته وعدې ورکوي او په ارزوګانو کې یې اچوي او شیطان دوی ته وعدې نه ورکوي مګر د دوکې (چل ول)

۱۲۱:۴ - دغه خلق دي چې د دوی استوګنه جهنم دی او دوی به له هغه نه هېڅ خلاصی ونه مومي

۱۲۲:۴ - او هغه کسان چا چې ایمان راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي ژر ده چې مونږ به دوی داسې جنتونو ته داخل کړو چې د هغو له لاندې ولې بهېږي، چې دوی به په هغو کې تل ترتله وي، (دا) د الله حقه وعده ده او له الله نه په خبره کې څوك زیات رښتینی دی؟

۱۲۳:۴ - نه ستاسو په ارزوګانو څه کېږي او نه د اهلِ کتابو په ارزوګانو، (بلکې) چا چې هم بد عمل وکړ هغه ته به د دغه (بد عمل) بدله ورکولی شي او هغه به ونه مومي د ځان لپاره له الله نه

غیر هېڅ کار سازی او نه څوك مدد کوونکی

۱۲۴:۴ - او چې چا هم د نېکیو عمل وکړ، نر وي او که ښځه، خو چې مومن وي، نو دغه خلق به جنت ته داخلېږي او په دوی به د کجورې د زړي د داغ هومره ظلم (هم) نه کېږي

۱۲۵:۴ - او د دین په لحاظ له هغه کس نه څوك زیات ښه دی، چې خپل مخ یې الله ته تابع کړ او هغه نېکي کوونکی و۔ او هغه د ابراهیم د ملت تابع شي، چې یواځې حق پسې تلونکی و، او الله ابراهیم لره خلیل نیولی دی

۱۲۶:۴ - او خاص د الله لپاره دي هر هغه څه چې په اسمانونو کې دي او هر هغه څه چې په ځمکه کې دي او الله هر شي لره ښه راګېروونکی دی

۱۲۷:۴ - او (ای نبي!) دوی له تا نه د ښځو په باره کې تپوس کوي، ته ووایه: الله تاسو ته د هغوی په باره کې فتویٰ درکوي او هغه (حکم هم شته) چې تاسو ته په کتاب کې تلاوت کولی شي د هغو یتیمو ښځو په باره کې چې تاسو هغوی ته د هغوی لپاره مقرر شوی (مهر) نه ورکوئ او له هغوی سره د نکاح کولو رغبت لرئ او د کمزورو ماشومانو په باره کې او د دې په باره کې چې تاسو د یتیمانو لپاره په انصاف سره قایم اوسئ۔ او تاسو چې څه نېکي کوئ، بېشکه الله په هغې باندې ښه عالم دی

۱۲۸:۴ - او که چېرې یوه ښځه له خپل خاوند نه د زیاتي، یا مخ اړونې اندېښنه ولري، نو په دې دواړو باندې هېڅ ګناه نشته چې په خپل مینځ کې په څه شان هم روغه وکړي، او روغه کول ډېر غوره دي او نفسونه شومتیا ته حاضر کړی شوي دي او که تاسو نېکي وکړئ او پرهېزګاره شئ، نو یقینًا الله په هغو کارونو چې تاسو یې کوئ؛ ښه خبردار دی

۱۲۹:۴ - او تاسو به کله هم (دا) وَس ونه لرئ چې د ښځو په مینځ کې انصاف وکړئ اګر که تاسو (د دې) حرص (هم) وکړئ، نومه کګېږئ (یوې خوا ته) پوره کږېدل، چې تاسو هغه (بله) پرېږدئ په شان د زوړندې کړی شوې او که تاسو صلح وکړئ او پرهېزګاره شئ، نو بېشکه الله له همېشه ډېر بخښونکی، بې حده مهربان دی

۱۳۰:۴ - او که دواړه له یو بل نه بېل شي (، نو) الله به هر یو په خپلې فراخۍ سره غني کاندي او الله له همېشه فراخۍ والا، ښه حکمت والا دی

۱۳۱:۴ - او خاص د الله لپاره دي هر هغه څه چې په اسمانونو کې دي او هر هغه څه چې په ځمکه کې دي او یقینًا یقینًا مونږه هغو کسانو ته کلك حکم کړی دی چې له تاسو مخکې ورته کتاب ورکړی شوی و او تاسو ته هم، چې له الله نهووېرېږئ او که تاسو کفر وکړئ، نو یقینًا خاص د الله لپاره دي هغه څه چې په اسمانونو کې دي او هغه څه چې په ځمکه کې دي او الله له همېشه غني (او) ښه ستایل شوی دی

۱۳۲:۴ - او خاص د الله لپاره دي هغه څه چې په اسمانونو کې دي او هغه څه چې په ځمکه کې دي او الله ښه کافي دی کارساز

۱۳۳:۴ - که هغه وغواړي تاسو به فناکړي ای خلقو! اونور خلق به راولي۔ او الله په دې باندې ښه قادر دی

۱۳۴:۴ - څوك چې داسې دی چې د دنیا بدله غواړي، نو له الله سره د دنیا او اخرت دواړو بدله ده او الله ښه اورېدونکی، ښه لیدونکی دی

۱۳۵:۴ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! شئ تاسو قایم اوسېدونکي په انصاف باندې، گواهي کوونکي د الله لپاره، اگر که (دا گواهي) ستاسو د خپلو ځانونو، یا مور او پلار او نژدې خپلوانو په خلاف وي، که هغه (کس) مالداره وي، یا غریب وي، نو الله د دې دواړو ډېر خیرغوښتونکی دی، نو تاسو (له حق نه) د اوړېدلو لپاره د خواهشاتو پیروي مه کوئ او که تاسو ژبې کږې کړئ، یا مخ واړوئ، نو یقینًا الله په هغو کارونو چې تاسو یې کوئ ښه خبردار دی

۱۳۶:۴ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو په الله ایمان راوړئ او د هغه په رسول او په هغه کتاب چې هغه په خپل رسول باندې نازل کړی دی او په هغو کتابونو چې له ده نه یې مخکې نازل کړي دي، او څوك چې په الله سره کافر شي او د هغه په ملایکو او د هغه په کتابونو او د هغه په رسولانو او د اخرت په ورځ، نو یقینًا هغه گمراه شو په ډېرې لرې گمراهۍ سره

۱۳۷:۴ - بېشکه هغه کسان چې ایمان یې راوړ، بیا دوی کافر شول، بیا یې ایمان راوړ، بیا کافر شول، بیا دوی په کفر کې ښه مخ په وړاندې لاړل (، نو) الله کله هم داسې نه دی چې دوی ته بخښنه وکړي او نه داسې دی چې دوی ته په (نېغه) لاره روان کړي

۱۳۸:۴ - منافقانو ته زېری ورکړه چې بېشکه د دوی لپاره ډېر دردوونکی عذاب دی

۱۳۹:۴ - هغه کسان چې له مومنانو نه غیر کافران دوستان نیسي، ایا دوی د هغوی په خوا کې عزت لټوي؟ نو بېشکه عزت ټول د الله لپاره دی

۱۴۰:۴ - او یقینًا هغه (الله) پر تاسو باندې په کتاب کې دا (حکم) نازل کړی دی چې کله تاسو د الله ایتونه واورئ، چې په هغو سره کفر کېږي او په هغو پورې مسخرې کېږي، نو تاسو له هغوی (کفر او استهزا کوونکو) سره مه کېنئ تر دې چې هغوی له دې نه علاوه (په نورو) خبرو کې مشغوله شي، بېشکه تاسو په دغه وخت کې د هغوی په شان یئ، بېشکه الله منافقانو او کافرانو ټولو لره په جهنم کې راجمع کوونکی دی

۱۴۱:۴ - هغه (منافقان) چې ستاسو په باره کې انتظار کوي، نو که د الله له جانبه تاسو ته فتح حاصله شي، دوی وایي: ایا مونږ له تاسوسره ملگري نه وو؟ او که چېرې د کافرانو لپاره څه برخه وي، (بیا کافرو ته) دوی وایي: ایا مونږ په تاسو غالب شوي نه وو او (ایا) مونږ تاسو له مومنانو نه

بچ نه کړئ، نو الله به ستاسو په مینځ کې د قیامت په ورځ فیصله کوي. او الله به کله هم د کافرانو لپاره په مومنانو باندې (د غلبې) څه لار جوړه نه کړي

۱۴۲:۴ - بېشکه منافقان له الله سره دوکه کوي او الله له دوی سره دوکه کوونکی دی او کله چې دوی لمانځه ته پاڅېږي (، نو) سست (کاهلان) پاڅېږي، خلقو ته ځانونه ښيي او الله نه يادوی مګر ډېر ل

۱۴۳:۴ - دوی د دې (کفر او اسلام) په مینځ کې زړه نازړه دي، نه (سم) د دوی په طرف دي او نه (سم) د هغوی په طرف دي او هغه څوك چې الله يې ګمراه کړي، نو ته به کله هم د هغه لپاره څه لار ونه مومې

۱۴۴:۴ - ای هغو کسانو چې ایمان يې راوړی دی! له مومنانو نه غیر کافرانو لره دوستان مه نیسئ، ایا تاسو غواړئ چې د الله لپاره د خپل ځان په خلاف ښکاره دلیل ثابت کړئ

۱۴۵:۴ - بېشکه منافقان د اور تر ټولو لاندینۍ طبقه کې دي او ته به کله هم د هغوی لپاره څوك مدد کوونکی ونه مومې

۱۴۶:۴ - مګر هغه کسان چې توبه يې وېستله او د ځان اصلاح يې وکړه او په (دين د) الله يې منګولې کلکې ولګولې او خپل دين يې د الله لپاره خالص کړ، نو دغه کسان به له مومنانو سره وي او ژر ده چې الله به مومنانو ته ېېخي لوی اجر ورکړي

۱۴۷:۴ - الله تاسو ته په عذاب درکولو څه کوي که تاسو شکر وباسئ؟! او ایمان راوړئ او الله له همېشه شکر قبلوونکی، ښه پوه دی

۱۴۸:۴ - الله د بدې خبرې ښکاره ويل نه خوښوي خو هغه کس چې ظلم پرې شوی وي (هغه معاف دی) او الله له همېشه ښه اورېدونکی، ښه پوه دی

۱۴۹:۴ - که تاسو څه نېکي ښکاره کړئ، یا هغه پټه کوئ، یا د بدۍ په هکله معافي کوي، بېشکه الله له ازله ښه معافي کوونکی، ښه قادر دی

۱۵۰:۴ - بېشکه هغه کسان چې په الله او د هغه په رسولانو کافران کېږي او دوی غواړي چې د الله او د هغه د رسولانو په مینځ کې بېلتون وکړي او دوی وايي چې مونږ په ځينو ایمان راوړو او په ځينو کافر کېږو او دوی غواړي چې د دې (اسلام او کفر) په مینځ کې (بله) لار ونیسي

۱۵۱:۴ - دغه کسان په رښتيا کافران دي او مونږه د کافرانو لپاره سپکوونکی عذاب تیار کړی دی

۱۵۲:۴ - او هغه کسان چې په الله او د هغه په رسولانو يې ایمان راوړی دی او په دوی کې يې د هېڅ یو تر مینځه تفریق نه دی کړی، دغه کسان دي چې هغه (الله) به دوی ته د دوی ثوابونه ژر (او) یقیناً ورکړي او الله له ازله ډېر بخښونکی، بې حده مهربان دی

۱۵۳:۴ - اهلِ کتاب له تا نه د دې مطالبه کوي چې ته په دوی باندې له اسمانه یو کتاب نازل کړې، پس یقینًا دوی له موسٰی څخه له دې نه غټه مطالبه کړې وه، پس دوی (هغه ته) ویلي وو: ته مونږ ته الله ښکاره مخامخ وښیه، نو دوی د خپل ظلمـ په سبب تندر ونیول، بیا دوی سخی (معبود) ونیوه، وروسته له دې چې دوی ته ښې واضحې نښې راغلې، بیا مونږ دوی ته د دې معافي وکړه او مونږ موسٰی ته ښکاره غلبه (دلیل) ورکړه

۱۵۴:۴ - او مونږ له دوی څخه د پخې وعدې اخیستلو لپاره د دوی له پاسه (د) طور (غر) راپورته کړ او مونږه دوی ته وویل: تاسو په دروازه کې داخل شئ، چې سجده کوونکي یئ او مونږه دوی ته وویل: تاسو د خالي په ورځ کې زیاتی مه کوئ او مونږه له دوی نه ډېره مضبوطه وعده واخیستله

۱۵۵:۴ - نو (دوی ته سزا ورکړی شوه) په سبب د دوی د ماتولو خپل لوظ لره او د الله په ایتونو د کفر کولو او د نبیانو د ناحقه وژلو (په سبب) او د دوی د دې خبرې په سبب چې زمونږ زړونه ''پرده بند'' دي (داسې نه ده) بلکې الله د دوی د کفر په وجه په هغو (زړونو) مهر لګولی دی، نو دوی ایمان نه راوړي مګر ډېر لږ (خلق)

۱۵۶:۴ - او په سبب د دوی د کفر کولو او په مریمـ باندې د ښخي لوی تهمت ویلو

۱۵۷:۴ - او د دوی د دې وینا په سبب چې بېشکه مونږه د مریمې زوی مسیح عیسٰی وژلی دی، چې د الله رسول دی، حال دا چې دوی نه هغه وژلی دی او نه یې په دار کړی دی او لیکن دوی ته هغه (له عیسٰی سره) یو شان کړی شوی و او بېشکه هغه کسان چې د ده (عیسٰی) په باره کې یې اختلاف کړی دی، خامخا د ده په هکله په شك کې دي، دوی ته د هغه په باره کې هېڅ علمـ نشته سِوا د (خپل) ګمان له پیروی نه۔ او دوی هغه یقینًا نه دی وژلی

۱۵۸:۴ - بلکې الله هغه خپل طرف ته راپورته کړی دی۔ او الله له ازله ډېر غالب، ښه حکمت والا دی

۱۵۹:۴ - او نشته هیڅوك له اهلِ کتابو نه مګر چې هغه به خامخا لازمًا د ده له مرګ نه مخکې په ده ایمان راوړي او د قیامت په ورځ به هغه (عیسٰی) په دوی باندې ګواه وي

۱۶۰:۴ - نو د یهودیان شویو خلقو د ظلمـ کولو په سبب مونږ پر هغوی باندې هغه پاکیزه څیزونه حرامـ کړل، چې د دوی لپاره (مخکې) حلال ګرځول شوي وو او په سبب د منع کولو د دوی ډېرو (خلقو) لره د الله له لارې نه

۱۶۱:۴ - او (په سبب) د دوی د سود اخیستلو، حال دا چې دوی له دې نه منع کړی شوي وو، او (په سبب) د دوی په ناحقه خوړلو د خلقو مالونو لره، او مونږه په دوی کې د کافرانو لپاره ډېر دردوونکی عذاب تیار کړی دی

۱۶۲:۴ - خو په دوی کې په علمـ کې پاخه خلق او مومنان، هغوی ایمان روړي په هغه (کتاب)

باندې چې تا ته نازل کړی شوی دی او په هغو (کتابونو) باندې چې له تا نه مخکې نازل کړی شوي دي او خصوصًا چې لمونځ قايموونکي دي او زکات ورکوونکي دي او په الله او په ورځ د اخرت ايمان لرونکي دي، دغه خلق، خامخا به مونږ دوی ته ډېر لوی اجر ورکړو

۱۶۳:۴ - بېشکه مونږ تا ته وحي کړې ده، لکه څنګه چې مونږه وحي کړې وه نوح ته او له هغه نه پس (نورو) نبيانو ته او مونږ وحي کړې وه ابراهيم او اسمعيل او اسحاق او يعقوب او د (هغوی) اولادې ته او عيسیٰ او ايوب او يونس او هارون او سليمان ته۔ او مونږه داود ته زبور ورکړی و

۱۶۴:۴ - او (مونږ لېږلي وو) ډېر رسولان، چې يقينًا د هغوی احوال مونږ تا ته له دې نه مخکې بيان کړي دي او (نور) رسولان چې د هغوی احوال مونږ تا ته نه دي بيان کړي او الله له موسیٰ سره خبرې کړي دي، واضحې خبرې

۱۶۵:۴ - او (مونږ لېږلي وو) رسولان، چې زېری ورکوونکي او وېروونکي وو، د دې لپاره چې د خلقو لپاره په الله باندې څه حجت پاتې نشي او الله له ازله ډېر غالب، ښه حکمت والا دی

۱۶۶:۴ - لېکن الله ګواهي کوي په هغه شي چې تا ته يې نازل کړی دی، چې دا يې په خپل علم سره نازل کړی دی، او ملايك (هم) ګواهي کوي او الله ښه کافي دی (په حيث د) ګواه

۱۶۷:۴ - بېشکه هغه کسان چې کافر شوي دي او د الله له لارې نه يې بندول کړي دي، يقينًا هغوی ګمراه شوي دي په ډېرې لرې ګمراهۍ سره

۱۶۸:۴ - بېشکه هغه کسان چې کفر يې کړی دی او ظلم يې کړی دی، الله داسې نه دی چې دوی ته وبخښي او نه دا چې دوی ته به په نېغه لار روان کړي

۱۶۹:۴ - مګر په لار د جهنم، چې دوی به په هغه کې تل ترتله وي او دا (کار) الله ته ډېر اسان دی

۱۷۰:۴ - ای خلقو! يقينًا تاسو ته د خپل رب له جانبه په حقه سره رسول راغلی دی، نو تاسو ايمان راوړئ، (دا به) تاسو لپاره ډېر غوره وي او که تاسو کفر کوئ، نو يقينًا خاص د الله لپاره دي هر هغه څه چې په اسمانونو او ځمکه کې دي او الله له ازله ښه پوه، ښه حکمت والا دی

۱۷۱:۴ - ای اهلِ کتابو! تاسو په خپل دين کې غُلو (زياتی) مه کوئ او الله ته يواځې د حقې خبرې نسبت کوئ، يقينًا همدا خبره ده چې د مريمې زوی مسيح عيسیٰ (يواځې) د الله رسول دی او د هغه کلمه ده، چې هغه يې مريم ته غورځولې وه او د هغه (الله) له جانبه روح دی، نو تاسو په الله او د هغه په رسولانو ايمان راوړئ او تاسو مه وايئ چې (معبودان) درې دي، تاسو (له دې نه) منع شئ، تاسو لپاره به (دا) ډېره ښه وي، يقينًا همدا خبره ده چې الله يو معبود دی (زه) هغه لره پاکي بيانوم له دې نه چې د هغه لپاره دې اولاد وي، خاص د هغه لپاره دي هر هغه څه چې په اسمانونو کې دي او هر هغه څه چې په ځمکه کې دي او الله ښه کافي دی (په حيث د) کار ساز

۱۷۲:۴ - هیڅکله به هم مسیح (دا د ځان لپاره) عار ونه ګڼي چې هغه دې د الله بنده وي او نه ملايك چې مقرب دي. او څوك چې د هغه عبادت كول (د ځان لپاره) عار ګڼي او لويي كوي، نو ژر به هغه (الله) دوی ټول خپل طرف ته راجمع کړي

۱۷۳:۴ - نو هر چې هغه كسان دي چا چې ايمان راوړی دی او نېك عملونه يې كړي دي، نو هغه به دوی ته د دوی اجرونه پوره وركړي او له خپل فضل نه به دوی ته (نور) زيات وركړي او پاتې شول هغه كسان چې عار يې وكړو او لويي يې وكړه، نو هغه به دوی ته ډېر دردوونكی عذاب وركړي او دوی به د خپلو ځانونو لپاره له الله نه سوا (بل) نه څوك دوست ومومي او نه مدد كوونكی

۱۷۴:۴ - ای خلقو! یقینًا تاسو ته د خپل رب له جانبه لوی دلیل راغلی دی او مونږه تاسو ته واضحه رڼا نازله كړې ده

۱۷۵:۴ - نو هر چې هغه كسان دي چې په الله يې ايمان راوړو او په (دين د) هغه يې منګولې ښخې كړې، نو خامخا به هغه دوی په خپل رحمت او فضل كې داخلوي او د خپل ځان په طرف به يې په نېغه لار روانوي

۱۷۶:۴ - دوی له تا نه فتوٰی غواړي، ته (ورته) ووايه: الله تاسو ته د ''كلاله'' په باره كې فتوىٰ دركوي، كه يو سړی وفات شي او د هغه هېڅ اولاد نه وي او د هغه يوه خور وي، نو د هغې لپاره د هغه مال نيمه (حصه) ده چې هغه (مړي) پرېښی دی او دا (سړی) د هغې (خور) (د ټول مال) وارث ګرځي كه د هغې هېڅ اولاد نه وي، بيا كه هغه دوه (خوېندې) وي، نو د هغوی لپاره (د ټول مال) دوه په درې برخې ده، د هغه (مال) نه چې هغه پرېښی وي او كه چېرې هغوی څو ورونه (خوېندې) وي، سړي او ښځې، نو د نر لپاره د دوه ښځو د حصې په مثل (حصه) ده، الله تاسو ته ښه وضاحت كوي، چې تاسو ګمراه نشئ او الله په هر شي ښه عالم دی

## (مدني) دسترخوان - المائده ۵

۱:۵ - ای هغو كسانو چې ايمان يې راوړی دی! (خپل) لوظونه پوره كړئ، تاسو لپاره اَنعام څاروي حلال كړی شوي دي، سوا له هغو نه چې تاسو ته به ولوستی شي، په دې حال كې چې تاسو د احرام په حالت كې ښكار لره حلال ګڼونكي نه يئ، بېشكه الله فيصله كوي د څه چې اراده وكړي

۲:۵ - ای هغو كسانو چې ايمان يې راوړی دی! تاسو د الله د شعائرو (د دين د نښو) بې حرمتي مه كوئ او نه د عزتمنې مياشتې، او نه د حرم د قربانۍ، او نه د حرم د غاړكۍ والا څارويو او نه عزتمن كورته د اراده لرونكو خلقو، چې د خپل رب فضل او رضامندي لټوي او كله چې تاسو حلال (بې احرامه) شئ، نو بيا تاسو ښكار كوئ او له يو قوم (سره) بغض دې تاسو زياتي كولو

ته راپورته نه کړي، له دې وجې چې تاسو يې له مسجد حرام نه منع کړي وئ. او تاسو له يو بل سره په نېکۍ او پرهېزګارۍ کې مدد کوئ او د ګناه او ظلم په کار کې د يو بل مدد مه کوئ او له الله نه وېرېږئ، بېشکه الله ډېر سخت عذاب ورکوونکی دی

۳:۵ - پر تاسو باندې حرامه کړی شوې ده مرداره، او وينه او د خنزير غوښه او هغه چې په هغه د غير الله لپاره اواز شوی وي او مرۍ خپه کړی شوی (زندۍ شوی) څاروی، او په کوتك وهل شوی او له بره راغورځېدلی او په ښکر وهل شوی، او هغه چې ليوان يې مات کړي، سوا له هغه (څاروي) نه چې تاسو يې حلال کړئ، او (حرام دي) هغه (څاروی) چې په استانو (درګاګانو) باندې ذبح کړی شي او دا چې تاسو په غشو سره قسمت معلوموئ، دغه (ټول) کارونه فسق او نافرماني ده، نن ورځ کافر شوي خلق ستاسو د دين (له ختمولو) نه نااميده شول، نو تاسو له دوی نه مه وېرېږئ او له ما نه وېرېږئ، نن ورځ ما تاسو لپاره ستاسو دين مکمل کړو او پر تاسو باندې مې خپل نعمتونه تمام کړل او ما تاسو لپاره اسلام د دين په توګه خوښ کړو، نو څوك چې په سخته لوږه کې مجبور شو، په دې حال کې چې ګناه ته مايل کېدونکی نه وي، بيا نو يقينًا الله ډېر بخښونکی، بې حده مهربان دی

۴:۵ - دوی له تا نه تپوس کوي چې د دوی لپاره څه حلال کړی شوي دي، ته (ورته) ووايه: تاسو لپاره پاکيزه څيزونه حلال کړی شوي دي او هغه (ښکار د) ښکاري حيواناتو چې تاسو تربيه کړې وي، چې ښکاري جوړونکي يئ، چې تاسو دوی ته له هغه علمه نه ښوونه کوئ چې الله تاسو ته ښوولی دی، نو تاسو خورئ له هغه (ښکار) نه چې دغو (ښکاري حيواناتو) تاسو لپاره نيولی وي او تاسو په هغه د الله نوم يادوئ، او له الله نه وېرېږئ، بېشکه الله ډېر ژر حساب کوونکی دی

۵:۵ - نن ورځ تاسو لپاره پاکيزه څيزونه حلال کړی شول او د هغو کسانو ذبيحه چې کتاب ورته ورکړی شوی دی؛ تاسو لپاره حلاله ده. او ستاسو طعام د هغوی لپاره حلال دی، او (تاسو لپاره حلالې دي) پاك لمنې مومنې ښځې او پاك لمنې ښځې د هغو خلقو ځنې چې هغوی ته له تاسو نه مخکې کتاب ورکړی شوی دی. کله چې تاسو دغو (ښځو) ته د هغوی مهرونه ورکړئ، چې عفت غوښتونکي يئ، بدکاري کوونکي نه يئ او نه په پټه سره ياران نيونکي يئ او څوك چې له ايمان نه انکار وکړي، نو يقينًا د هغه عمل برباد شو او هغه به په اخرت کې له تاوانيانو څخه وي

۶:۵ - ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی! کله چې تاسو لمانځه ته پاڅېږئ، نو تاسو خپل مخونه او خپل لاسونه تر څنګلو پورې ووينځئ او د خپلو سرونو مسح وکړئ او تر ګيټو (ښنګرو) پورې خپلې پښې (ووينځئ) او که چېرې تاسو د جنابت په حالت کې يئ، نو ځان ښه پاك کړئ (غسل وکړئ) او که چېرې تاسو بيماران يئ، يا په سفر کې يئ، يا په تاسو کې کوم يو له اودس ماتي نه راغی، يا تاسو له ښځو سره کوروالی وکړئ، بيا تاسو اوبه ونه موندلې، نو د پاکې ځمکې مخ ته قصد وکړئ (تيمم وکړئ)، نو خپل مخونه او خپل لاسونه (تر مړوندونو پورې) په دې

(خاورې، شګې) سره مسح کړئ، الله اراده نه لري چې پر تاسو باندې څه حرج (سختی) راولي، او لېکن غواړي چې تاسو ښه پاك کړي او پر تاسو باندې خپل نعمتونه پوره کړي، د دې لپاره چې تاسو شکر وباسئ

۷:۵ - او تاسو د الله نعمتونه یاد کړئ، چې پر تاسو باندې شوي دي او د هغه هغه پخه وعده یاده کړئ چې له تاسو سره یې مضبوطه کړې وه، کله چې تاسو وویل: مونږ واورېدل او مونږ اطاعت وکړو، او تاسو له الله نه وېرېږئ، بېشکه الله د سینو په خبرو باندې (هم) ښه عالم دی

۸:۵ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو د الله لپاره (په حق باندې) مضبوط ولاړ اوسئ، چې په انصاف سره ګواهي کوونکي یئ او د یو قوم بغض دې تاسو دې ته راپورته نه کړي چې تاسو عدل ونه کړئ، عدل کوئ، دا تقویٰ ته ډېر نژدې دی او له الله نه ووېرېږئ، بیشکه الله ښه خبر دی په هغو کارونو چې تاسو یې کوئ

۹:۵ - الله له هغو کسانو سره وعده کړې ده چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړې دي، چې د هغوی لپاره بخښنه او ډېر لوی اجر دی

۱۰:۵ - او هغه کسان چې کفر یې کړی دی او زمونږ ایتونه یې دروغ ګڼلي دي، دغه خلق د اور والا دي

۱۱:۵ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو د الله هغه نعمتونه رایاد کړئ چې پر تاسو باندې شوي دي، کله چې څه خلقو اراده وکړه چې تاسو ته خپل لاسونه در اوږده کړي، نو هغه (الله) د هغوی لاسونه له تاسو بند کړل او له الله نه ووېرېږئ او لازم ده چې مومنان خاص په الله باندې توکل وکړي

۱۲:۵ - او یقینًا یقینًا، الله له بني اسرائیلو نه پخه وعده اخیستې وه. او مونږ په دوی کې دولس تنه مشران مقرر کړل او الله وفرمایل: بېشکه زه له تاسو سره یم، یقینًا که چېرې تاسو لمونځ قایم وساتئ او زکات ادا کړئ او زما په رسولانو ایمان راوړئ او تاسو د هغوی مدد وکړئ او تاسو الله ته ډېر ښکلی قرض ورکړئ، نو خامخا لازمًا به زه له تاسو څخه ستاسو ګناهونه ختم کړم او خامخا لازمًا به تاسو داسې جنتونو ته ننباسم چې د هغو له لاندې ولې بهېږ ي، نو چا چې په تاسو کې له دې نه وروسته کفر وکړ، نو یقینًا هغه له نېغې لارې نه بې لارې شو

۱۳:۵ - نو د خپلې کلکې وعدې د ماتولو په سبب مونږ په دوی لعنت وکړ او مونږ د دوی زړونه سخت کړل، دوی (د تورات) کلمې له خپلو ځایونو نه اړوي او دوی ته چې څه نصیحت شوی و د هغه (لویه) حصه یې هېره کړله او ته به همېشه د دوی په څه خیانت باندې اګاه ګېږې، مګر په دوی کې ډېر لږ خلق (داسې نه دي)، نو ته دوی ته معافي کوه او تېرېږه، بېشکه الله نېکي کوونکي خوښوي

۱۴:۵ - او له هغو کسانو څخه چې وايي: بېشکه مونږ نصرانیان یو، مونږ له دوی نه پخه وعده اخیستې وه، نو دوی ته چې د څه نصیحت ورکړی شوی و د هغه (لویه) برخه یې هېره کړله، نو مونږ د دوی په مینځ کې د قیامت د ورځې پورې دښمني او کینه واچوله او الله به ژر دوی په هغو عملونو خبر کړي چې دوی به کول

۱۵:۵ - ای اهل کتابو! یقینًا تاسو ته زمونږ رسول راغلی دی چې تاسو ته ډېر هغه څیزونه بیانوي چې تاسو به له کتابه پټول او له ډېرو څخه تېرېږي، یقینًا تاسو ته د الله له جانبه رڼا او روښانه کتاب راغلی دی

۱۶:۵ - چې په ده سره الله د سلامتۍ د لارو هدایت کوي هغه چا ته چې د هغه (الله) د رضا تابع وي او هغه (الله) په خپل حکم سره دوی لره له تیارو نه رڼا ته راوباسي او دوی ته د نېغې لارې هدایت کوي

۱۷:۵ - یقینًا یقینًا هغه کسان کافر شول چې هغوی ویل: بېشکه الله هم دا د مریمې زوی مسیح دی، ته (ورته) ووایه: د الله په وړاندې به څوك د څه شي اختیار ولري که هغه اراده وکړي چې د مریمې زوی مسیح او د هغه مور او څوك چې په ځمکه کې دي؛ هغه ټول هلاك كړي، او خاص د الله لپاره د اسمانونو او ځمکې بادشاهي ده او د هغه څه چې د دې دواړو په مینځ کې دي، هغه (الله) چې څه وغواړي پیدا کوي او الله په هر شي باندې ښه قادر دی

۱۸:۵ - او یهودیانو او نصرانیانو وویل: مونږ د الله زامن او د هغه دوستان یو، ته (ورته) ووایه: نو بیا ولې هغه تاسو ته ستاسو د ګناهونو په وجه عذاب درکوي؟ بلکې تاسو د هغه په مخلوقاتو کې انسانان یئ، هغه (الله) چا ته چې وغواړي بخښنه کوي او چا چې ته وغواړي عذاب ورکوي او خاص د الله لپاره د اسمانونو او ځمکې بادشاهي ده او د هغه څه چې د دې دواړو په مینځ کې دي او خاص د هغه په طرف ورتلل دي

۱۹:۵ - ای اهل کتابو! یقینًا تاسو ته زمونږ رسول، د رسولانو له وقفې نه پس راغلی دی، چې تاسو ته احکام بیانوي چې تاسو (بیا) دا ونه وایئ چې مونږ ته نه څوك زېری ورکوونکی راغلی و او نه وېروونکی، نو (دا دی) یقینًا تاسو ته زېری ورکوونکی او وېروونکی راغی او الله په هر شي باندې ښه قادر دی

۲۰:۵ - او کله چې موسٰی خپل قوم ته وویل: ای قومه! تاسو د الله نعمتونه یاد کړئ چې پر تاسو باندې (شوي) دي کله چې یې په تاسو کې پیغمبران پیدا کړل او تاسو یې ازاد (او خودمختاره) کړئ او تاسو ته یې هغه څه در کړل چې په عالمونو کې یې هیچا ته هم نه و ورکړي

۲۱:۵ - ای زما قومه! تاسو هغه پاکې ځمکې ته داخل شئ چې الله تاسو لپاره لیکلې ده او په خپلو شاګانو بېرته مه ګرځئ (ګنې) نو تاوانیان به شئ

۲۲:۵ - دوی وویل: ای موسیٰ! بېشکه په دغې (پاکې ځمکه) کې ډېر زورور خلق دي او بېشکه مونږ به کله هم دغې ته داخل نشو ترهغه پورې چې دوی د هغې نه ووځي، نو که دوی د هغې نه ووتل، نو بېشکه مونږ (هغې ته) ننوتونکي یو

۲۳:۵ - وویل دوه سړیو له هغو کسانو نه چې (د الله نه) وېرېدل، (او) الله په هغو دواړو انعام کړی و: تاسو په دوی باندې په دروازه کې (حمله کوونکي) داخل شئ، نو کله چې تاسو هغې ته ننوتئ، نو بېشکه تاسو غالبه يئ او تاسو خاص په الله باندې توکل وکړئ که چېرې تاسو مومنان يئ

۲۴:۵ - هغوی وویل: ای موسیٰ! بېشکه مونږه دې (ښارېې) ته له سره نه ننوځو هیڅکله هم، څو پورې چې دوی په هغې کې وي، نو ته او ستا رب دې لاړ شي، نو تاسو دواړه وجنګېږئ، مونږ خو بس همدلته ناست یو

۲۵:۵ - وویل (موسیٰ) ای زما ربه! بېشکه زه اختیار نه لرم مګر د خپل ځان او د خپل ورور، نو ته زمونږپه مینځ کې او د فاسق (نافرمان) قوم په مینځ کې جدايي راوله

۲٦:۵ - وویل (الله) پس بېشکه هغه (مقدسه ځمکه) په دوی باندې څلوېښت کاله بنده (ممنوعه) ده، چې دوی به په ځمکه کې حیران سرګردان ګرځي، نو ته په فاسق (نافرمانه) قوم باندې مه خفه کېږه

۲۷:۵ - او دوی ته د ادم د دوه زامنو خبر په حقه سره ولوله، کله چې هغو دواړو قرباني وړاندې کړه، نو په دوی کې له یو څخه قبوله شوه او له بل څخه قبوله نشوه، هغه وویل: زه به خامخا لازمًا تا ووژنم، هغه (ورته) وویل: بېشکه همدا خبره ده چې الله له پرهېزګارانو څخه (قرباني) قبلوي

۲۸:۵ - که چېرې ته زما د وژلو لپاره خپل لاس را اوږد کړې (، نو) زه خپل لاس ستا د وژلو لپاره تا ته نه در اوږدوم، بېشکه زه له الله رب العلمین څخه وېرېږم

۲۹:۵ - بېشکه زه غواړم چې ته زما (د وژلو) په ګناه باندې او په خپلې (مخکېنۍ) ګناه باندې اخته شې، بیا چې د دوزخ په ملګرو کې شې او دا د ظالمانو جزا ده

۳۰:۵ - نو هغه ته خپل نفس د خپل ورور وژل ښکلي (او) اسان کړل، نو هغه یې قتل کړ، نو شو له تاوانیانو نه

۳۱:۵ - نو الله یو کارغه راولېږه، چې ځمکه یې کنستله، د دې لپاره چې هغه (قاتل) ته وښيي چې څنګه هغه د خپل ورور جثه (کالبوت) پټه کړي، هغه وویل: هی افسوس! ایا زه د دې کارغه په شان له کېدو نه هم عاجزه شوم، چې د خپل ورور جثه مې پټه کړې وی، نو له پښېمانه کېدونکو څخه شو

۳۲:۵ - له همدې وجې نه مونږ په بني اسرائيلو باندې لازمه کړي وو چې بېشکه خبره دا ده چې چا هم يو نفس له بدلې نه بغير، يا په ځمکه کې له ورانکارۍ نه بغير ووواژه، نو ګويا کې هغه ټول خلق ووژل او چا چې د دغه نفس ژوند بچ کړ، نو ګويا کې هغه د ټولو خلقو ژوند بچ کړ او يقينًا يقينًا دوی ته زمونږه رسولانو ښکاره ښکاره دلېلونه راوړي وو، بيا يقينًا له دې نه پس (هم) په دوی کې ډېر خلق په ځمکه کې خامخا زياتي کوونکي دي

۳۳:۵ - بېشکه اصل خبره همدا ده چې څوك چې د الله او د هغه له رسول سره جنګ کوي او په ځمکه کې د وراني کولو کوشش کوي، د هغوی سزا دا ده چې دوی دې قتل کړی شي، يادې په دار کړی شي، يا دې د دوی لاسونه او پښې ادلې بدلې پرې کړی شي، يا دې دوی له (دغې) ځمکې نه وشړل شي، دا د دوی لپاره په دنيا کې رسوايي ده او د دوی لپاره په اخرت کې ډېر لوی عذاب دی

۳۴:۵ - مګر هغه کسان چې توبه وباسي مخکې له دې نه چې تاسو په دوی باندې قابو ومومئ، نو پوه شئ چې يقينًا الله ډېر بخښونکی، بې حده مهربان دی

۳۵:۵ - ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی! تاسو له الله نه ووېرېږئ او هغه ته قرب (نژدې والی) ولټوئ او تاسو د هغه په لار کې جهاد کوئ، د دې لپاره چې تاسو کامياب شئ

۳٦:۵ - بېشکه هغه کسان چې کفر يې کړی دی که د ځمکې ټول دولت د دوی شي او له دغې (دولت) سره د دې هومره (نور هم)، د دې لپاره چې دا د قيامت د ورځې د عذاب په بدله کې ورکړي (، نو) دا (فديه) به له دوی نه قبوله نه کړی شي او د دوی لپاره ډېر دردوونکی عذاب دی

۳۷:۵ - دوی به غواړي چې له اور نه ووځي، حال دا چې دوی له هغه نه وتونکي نه دي او د دوی لپاره دايمي (همېشنی) عذاب دی

۳۸:۵ - او غل او غله، نو تاسو د دوی لاسونه د دوی د کړي عمل په بدله کې پرې کړئ، چې د الله له جانبه عبرتناکه سزا ده او الله ډېر غالب، ښه حکمت والا دی

۳۹:۵ - نو چا چې له خپل ظلمه نه پس توبه وکړه او (د ځان) اصلاح يې وکړه، نو بېشکه الله د ده توبه قبلوي، بېشکه الله ډېر بخښونکی، بې حده مهربان دی

۴۰:۵ - ايا ته پوه نه يې چې بېشکه خاص د الله لپاره د اسمانونو او ځمکې بادشاهي ده، چا ته چې وغواړي عذاب ورکوي او چا ته چې وغواړي بخښنه کوي او الله په هر شي باندې ښه قادر دی

۴۱:۵ - ای رسوله! تا دې هغه کسان غمجن نه کړي چې په کفر کې له يو بل نه تلوار کوي، له هغو خلقو څخه چې په خپلو خولو وايي چې مونږ ايمان راوړی دی، حال دا چې د دوی زړونو ايمان نه دی راوړی او له هغو خلقو څخه چې يهوديان دي، دوی د دروغو ډېر اورېدونکي (قبلوونکي)

دي، د هغو نورو خلقو لپاره ډېر اورېدونکي دي چې تا ته نه دي راغلي، دوی خبرې بدلوي وروسته له دې نه چې هغه په خپلو ځايونو کې (ثابتې) شي، دوی وايي که چېرې تاسو ته دا درکړی شي، نو هغه واخلئ، او که چېرې تاسو ته هغه در نه کړی شي، نو بيا ځان وساتئ او هغه څوك چې الله د هغه گمراه کول وغواړي، (بيا) نو ته د هغه لپاره د الله په وړاندې د هېڅ شي اختيار نه لرې، دا هغه کسان دي چې الله د دوی د زړونو دپاکولو اراده نه ده کړې، د همدوی لپاره په دنيا کې رسوايي ده او د همدوی لپاره په اخرت کې ښېخي لوی عذاب دی

۴۲:۵ - دوی د دروغو ډېر اورېدونکي دي او د حرامو ډېر خوړونکي دي، نو که چېرې دوی تا ته راشي، نو ته د دوی په مينځ کې فيصله وکړه، يا له دوی نه مخ واړوه او که چېرې ته له دوی نه مخ واړوې، نو دوی به تا ته هيڅکله هم هېڅ شی ضرر در ونه رسولی شي، او که چېرې ته فيصله کوې، نو د دوی په مينځ کې په انصاف سره فيصله وکړه، ښېشکه الله له انصاف کوونکو سره مينه کوي

۴۳:۵ - او دوی (د زنا په باره کې) فيصله تا ته څنگه راوړي؟! حال دا چې له دوی سره تورات دی، چې په هغه کې (د دې په باره کې) د الله حکم دی، بيا دوی له دې (ستا له فيصلې) نه بعد ښېرته گرځي او دغه خلق له سره مومنان نه دي

۴۴:۵ - ښېشکه مونږ تورات نازل کړی دی، چې په هغه کې هدايت او رڼا ده، په ده سره به نبيانو، چې حکم منونکي وو، د يهوديانو لپاره فيصلې کولې او الهي خلقو او عالمانو (به هم فيصلې کولې)، ځکه چې دوی د الله د کتاب ساتونکي گرځول شوي وو او دوی په ده باندې گواهان وو، نو تاسو له خلقو نه مه وېرېږئ او له ما نه وېرېږئ او زما د ايتونو په بدل کې لږ قيمت مه اخلئ او چا چې د الله په نازل کړي (کتاب، قانون) باندې فيصله ونه کړه، نو همدغه خلق کافران دي

۴۵:۵ - او مونږ په دوی باندې په دې (تورات) کې فرض کړي وو چې ښېشکه ځان د ځان په بدله کې دی او سترگه د سترگې په بدله کې او پوزه د پوزې په بدله کې او غوږ د غوږ په بدله کې او غاښ د غاښ په بدله کې دی او زخمونه (هم) قصاص (برابر) دي، نو چا چې د دې (قصاص) معافي وکړه، نو دا د ده لپاره کفاره ده (په دې سره له دې گناه څخه پاکېږي) او چا چې د الله په نازل کړي (کتاب، قانون) باندې فيصله ونه کړه، نو همدغه خلق ظالمان دي

۴۶:۵ - او مونږه په هغوی پسې د دوی په نښو باندې د مريمې زوی عيسٰی ولېږه چې له ده نه د وړاندې (کتاب) تورات تصديق کوونکی و او مونږ هغه ته انجيل ورکړ، چې په هغه کې هدايت او رڼا وه او چې له ده نه د مخکې (کتاب) تورات تصديق کوونکی و او د پرهېزگارانو لپاره هدايت او نصيحت و

۴۷:۵ - او لازم ده چې انجيل والا دې فيصله وکړي په هغه څه چې الله په دې (انجيل) کې نازل

کړي دي (چې د قرآن او محمدﷺ تصدیق دی) او چا چې د الله په نازل کړي (کتاب، قانون) باندې فیصله ونه کړه، نو همدغه خلق فاسقان دي

۴۸:۵ - او (ای نبي!) مونږ تا ته کتاب په حقه سره نازل کړی دی، چې د هغو کتابونو تصدیق کوونکی دی چې له ده نه مخکې دي او د هغوی محافظ دی، نو ته د دوی په مینځ کې فیصله وکړه په هغه څه سره چې الله نازل کړی دی او ته د دوی د خواهشاتو پیروي مه کوه، چې هغه حق پرېږدې چې تا ته راغلی دی، مونږ په تاسو کې د هر یو لپاره یو دستور او لاره مقرر کړې ده، او که الله غوښتلی، نو تاسو به یې یو امت ګرځولي وئ، او لېکن (بېل بېل یې کړئ) د دې لپاره چې تاسو وازمایي په هغه څه کې چې تاسو ته یې درکړي دي، نو تاسو نېکیو ته له یو بل نه مخکې کېږئ، خاص الله ته ستاسو د ټولو واپسي ده، نو هغه به تاسو ته د هغو کارونو خبر درکړي چې تاسو په هغو کې اختلاف کاوه

۴۹:۵ - او دا چې ته د دوی په مینځ کې فیصله کوه په هغه څه سره چې الله نازل کړی دی او ته د دوی د خواهشاتو پیروي مه کوه او ته له دوی نه محتاط اوسه (هسې نه) چې دوی تا له ځینو (حکمونو) نه واړوي، چې تا ته الله نازل کړي دي، نو که چېرې دوی وګرځېدل، نو پوه شه چې بېشکه همدا خبره ده چې الله غواړي چې دوی ته د دوی د ځینو ګناهونو په وجه سزا ورسوي او بېشکه ډېر په خلقو کې خامخا فاسقان دي

۵۰:۵ - ایا نو دوی د جاهلیت فیصله غواړي؟ او په فیصله کولو کې له الله نه (بل) څوك ډېر ښه دی، د هغه قوم لپاره چې یقین کوي!

۵۱:۵ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو یهودیان او نصرانیان دوستان مه جوړوئ، د دوی ځینې د ځینو نورو دوستان دي او په تاسو کې چې چا له دوی سره دوستي وکړه، نو یقینًا هغه له همدوی څخه دی، بېشکه الله ظالم قوم ته نېغه لار نه ښیي

۵۲:۵ - نو ته به هغه کسان وینې چې د هغوی په زړونو کې بېماري ده چې په (مینه د) دوی کې منډې وهي او دوی وایي: مونږ وېرېږو (له دې نه) چې مونږ ته څه مصیبت راورسي، نو قریب ده چې الله فتح راولي، یا له خپلې خوا نه کوم بل حکم (راولي) نو دوی به پښېمانه شي په هغو خبرو چې دوی په خپلو نفسونو کې پټې ساتلې وې

۵۳:۵ - او مومنان به (د حیرانتیا په سبب) وايي: ایا دا هغه خلق دي چې په الله یې ډېر پاخه قسمونه خوړلي وو چې بېشکه دوی خامخا له تاسو سره دي، د دوی عملونه ضائع شوي دي، نو دوی تاوانیان شول

۵۴:۵ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! په تاسو کې چې چې څوك له خپل دین نه مرتد شو، نو ژر ده چې الله به داسې خلق راولي چې هغه (الله) به له دوی سره مینه کوي او دوی به له هغه

(الله) سره مینه کوي، په مومنانو به ډېر نرمي کوونکي وي او په کافرانو باندې به ډېر سخت وي، د الله په لار کې به جهاد کوي او د هېڅ ملامت کوونکي له ملامتیا نه به نه وېرېږي، دا د الله فضل دی، چا ته چې وغواړي هغه ته یې ورکوي او الله ډېر د فراخۍ والا، ښه پوه دی

۵۵:۵ - ستاسو دوست یواځې (او یواځې) الله او د هغه رسول دی او هغه کسان دي چې ایمان یې راوړی دی، (یعني) هغه کسان چې لمونځ قایموي او زکات ورکوي او دوی رکوع کوونکي دي

۵۶:۵ - او څوك چې د الله او د هغه له رسول او مومنانو سره دوستي وکړي، نو یقینًا همہ د الله ډله غالبه کېدونکې ده

۵۷:۵ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو هغه کسان دوستان مه جوړوئ چې ستاسو دین یې ټوقې او لوبې ګرځولی دی، له هغو کسانو نه چې له تاسو نه مخکې ورته کتاب ورکړی شوی و او مه کفار (دوستان جوړوئ) او له الله نه ووېرېږئ که چېرې تاسو مومنان یئ

۵۸:۵ - او کله چې تاسو لمانځه ته اواز کوئ (، نو) دوی هغه ټوقې او لوبې وګرځوي، دا څکه چې بېشکه دوی داسې خلق دي چې هېڅ عقل نه لري

۵۹:۵ - (ای نبي!) ته ورته ووایه: ای اهل کتابو! تاسو مونږه (په هېڅ وجه) د بدۍ (او) عیب والا نه ګڼئ، مګر په دې چې مونږ په الله ایمان راوړی دی او په هغه څه چې مونږ ته نازل کړی شوي دي او په هغه څه چې له ده نه مخکې نازل کړی شوي دي او دا څکه چې یقینًا ستاسو اکثره (خلق) فاسقان (له حد نه وتونکي) دي

۶۰:۵ - ته ووایه! ایا زه تاسو ته د الله په نیز د جزا په لحاظ سره له دوی نه د بدترو خلقو خبر در نه کړمہ؟ (دا) هغه څوك دي چې الله په دوی لعنت کړی دی او په دوی یې غضب کړی دی او له دوی نه یې بیزوګان او خنزیران جوړ کړي دي او دوی (هغه څوك دي چې یې) د طاغوت عبادت کړی دی، دغه کسان د ځای په لحاظ سره ډېر بدتره دي او له حقې لارې نه ډېر ګمراه دي

۶۱:۵ - او کله چې دوی تاسو ته راشي (، نو) دوی وایي: مونږ ایمان راوړی دی، حال دا چې یقینًا دوی له کفر سره داخل شوي وو او یقینًا له هغه (کفر) سره ووتل او الله ډېر ښه پوه دی په هغو خبرو چې دوی پټولې

۶۲:۵ - او ته به په دوی کې ډېر خلق ویني چې په ګناه او ظلمہ کې او په خپلې حرامہ خورۍ کې منډې وهي، خامخا بد دی هغه کار چې دوی کاوه

۶۳:۵ - الهي خلق او عالمان دوی (یهودیانو) لره له خپلو د ګناه له ویناوو نه او له خپلې حرامہ خورۍ نه ولې نه منع کوي؟ خامخا بد دی هغه کار (د خاموشۍ) چې دوی کاوه

۶۴:۵ - وویل یهودیانو: د الله لاس تړل شوی دی، د دوی لاسونه دې وتړل شي او د دې وینا په

سبب دې په دوی لعنت وشي.، بلکې د هغه دواړه لاسونه خلاص دي، څنگه چې وغواړي انفاق کوي او خامخا هغه (کتاب) به، چې تا ته ستا د رب له جانبه نازل کړی شوی دی؛ په دوی کې د ډېرو خلقو سرکشي او کفر لازمًا ورزیات کړي او مونږه د دوی په مینځ کې د قیامت د ورځې پورې دښمني او بغض واچاوه، هر کله چې دوی د جنگ لپاره اور بلوي (، نو) الله هغه مړ کړي او دوی په ځمکه کې د وراني لپاره منډې وهي او الله وراني کوونکي نه خوښوي

٦٥:٥ - او که یقینًا اهل کتابو ایمان راوړی وی او پرهېزگاره شوي وی (، نو) لازمًا به مونږه له دوی نه د دوی گناهونه لرې کړي وی او خامخا به مونږه دوی د نعمتونو جنتونو ته داخل کړي وو.

٦٦:٥ - او که یقینًا دوی (احکام د) تورات او انجیل قایم کړي وی او هغه چې دوی ته د دوی د رب له جانبه نازل کړی شوي دي (، نو) خامخا دوی به خوراك کړی و د خپل له پاسه نه او د خپلو پښو له لاندې نه، په دوی کې یوه مینځ لارې ډله ده او ډېر زیات په دوی کې (داسې) دي چې بد دي هغه چې دوی یې کوي

٦٧:٥ - ای رسوله! ته ورسوه هغه څه چې تا ته د خپل رب له جانبه نازل کړی شوي دي او که ته (دا کار) ونه کړې، نو تا د هغه (الله) پیغام نه دی رسولی او الله تا له خلقو نه بچ ساتي، بېشکه الله کافر قوم ته نېغه لار نه ښيي

٦٨:٥ - ته (ورته) ووایه: ای اهل کتابو! تاسو (د حق) په هېڅ شي باندې نه یئ تر دې چې تاسو تورات او انجیل قایم کړئ او هغه چې تاسو ته د خپل رب له جانبه نازل کړی شوي دي، خامخا هغه (کتاب) به، چې تا ته د خپل رب له جانبه نازل کړی شوی دی؛ په دوی کې د ډېرو خلقو سرکشي او کفر لازمًا ورزیات کړي، نو ته په کافر قوم باندې مه خفه کېږه

٦٩:٥ - بېشکه هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او هغه کسان چې یهودیان او صابیان، او نصرانیان دي، هر چا چې په الله او د اخرت په ورځ ایمان راوړ او نېك عمل یې وکړ، نو په دوی باندې نه څه وېره شته او نه به دوی غمژن کېږي

٧٠:٥ - خامخا یقینًا مونږ له بني اسرائیلو نه پخه وعده اخیستې وه او دوی ته مونږ ډېر رسولان لېږلي وو، هر کله چې به هم دوی ته کوم رسول هغه (حکمونه) راوړل چې د دوی نفسونو به نه خوښول (، نو) یوه ډله دوی دروغژنه وگڼله او بله ډله دوی وژله

٧١:٥ - او دوی دا گڼله چې هېڅ ازمېښت به نه کېږي، نو ړانده شول او کاڼه شول، بیا الله دوی ته (په رحمت سره) توجه وکړه، بیا په دوی کې ډېر خلق ړانده شول او کاڼه شول او الله ښه لیدونکی دی هغه څه لره چې دوی یې کوي

٧٢:٥ - خامخا یقینًا کافر شول هغه خلق چې ویې ویل: بېشکه الله همدا د مریمې زوی مسیح دی، حال دا چې مسیح، بني اسرائیلو ته وویل: تاسو د الله عبادت کوئ، چې زما رب دی او

ستاسو رب دی، بېشکه خبره دا ده چې څوك له الله سره شريك نيسي، نو يقينًا په هغه باندې الله جنت حرام کړی دی او د هغه استوګنه اور دی او د ظالمانو لپاره هيڅوك مدد کوونکي نشته

۷۳:۵ - خامخا يقينًا کافر شول هغه خلق چې وېې ويل: بېشکه الله د درېوو دريم دی، حال دا چې هېڅ لايق د عبادت نشته مګر يو معبود، او که چېرې دوی له هغو خبرو نه منع نشي چې دوی يې کوي، نو خامخا لازمًا به په دوی کې کافر شويو خلقو ته ډېر دردوونکی عذاب ورسېږي

۷۴:۵ - ايا دوی ولې الله ته توبه نه وباسي او له هغه نه بخښنه نه غواړي؟! حال دا چې الله ډېر بخښونکی، بې حده مهربان دی

۷۵:۵ - نه دی د مريمې زوی مسيح مګر يو رسول دی، يقينًا له ده نه مخکې رسولان تېر شوي دي او د ده مور صِديقه (ډېره زياته رښتينې) وه، دې دواړو به طعام خوړلو.، ته وګوره مونږ څنګه دوی ته ايتونه بيانوو، بيا ته وګوره دوی کوم طرف اړولی شي

۷٦:۵ - ته ووايه: ايا تاسو له الله نه غير د هغه شي عبادت کوئ چې تاسو لپاره نه د نقصان اختيار لري او نه د نفع او همدا الله ښه اورېدونکی، ښه پوه دی

۷۷:۵ - ته (ورته) ووايه: ای اهلِ کتابو! تاسو په خپل دين کې ناحقه زياتی مه کوئ او د هغه قوم د خواهشاتو پيروي مه کوئ چې له دې نه مخکې ګمراه شوي دي او هغوی ډېر خلق ګمراه کړي دي او له نېغې لارې نه بې لارې شوي دي

۷۸:۵ - په هغو کسانو باندې، چې په بني اسرائيلو کې کافر شوي دي، لعنت شوی دی د داود او د مريمې زوی عيسٰی په ژبه، دا ځکه چې دوی نافرماني وکړه او دوی له حد نه تېرېدل

۷۹:۵ - دوی به له هغه ناروا کار نه يو بل نه منع کول چې دوی به هغه کاوه، خامخا بد دی هغه (کار) چې دوی به کاوه

۸۰:۵ - ته به په دوی کې ډېر (داسې) وينې چې له هغو کسانو سره دوستي کوي چې کافر شوي دي، خامخا بد دی هغه شی چې د دوی لپاره د دوی نفسونو مخکې لېږلی دی، دا چې الله دوی ته په غصه شو او دوی به په عذاب کې همېشه وي

۸۱:۵ - او که چېرې دوی په الله او په نبي او په هغه څه چې ده ته نازل کړی شوي دي ايمان لرلی (، نو) دوی به هغه (کافران) دوستان نه وو جوړ کړي او لېکن په دوی کې ډېر خلق فاسقان دي

۸۲:۵ - خامخا لازمًا به ته له مومنانو سره په دښمنۍ کې تر ټولو خلقو زيات سخت، يهوديان مومې او هغه کسان چې مشرکان دي او خامخا لازمًا به ته له مومنانو سره په دوستۍ کې تر ټولو خلقو زيات نژدې هغه کسان مومې چې ويلي دي: بېشکه مونږ نصرانيان يو، دا ځکه چې په دوی کې په رښتيا عبادت ګذاره عالمان او راهبان (زاهدان) دي او دا ځکه چې واقعاً دوی تکبر نه

کوي

۸۳:۵ - اوکله چې دوی هغه (قرآن) واوري چې رسول ته نازل کړی شوی دی (، نو) ته به د دوی سترګې وینې چې له اوښکو به بهیږي، په سبب د هغه حق چې دوی وپېژنده، دوی وايي: ای زموږه ربه! موږ ایمان راوړی دی، نو ته موږ له ګواهي کوونکو سره ولیکه

۸۴:۵ - او موږ لره څه دي چې په الله به ایمان نه راوړو او په هغه حق چې موږ ته راغلی دی، حال دا چې موږ د دې طمع لرو چې زموږ رب به موږ د نېکانو خلقو په ډله کې داخل کړي

۸۵:۵ - نو الله دوی ته د دوی د وینا په بدل کې داسې جنتونه ورکړل چې د هغو له لاندې وَلِې بهیږي، چې دوی به په هغو کې همېشه وي او دا د نېکي کوونکو بدله ده

۸۶:۵ - او هغه کسان چې کافر شوي دي او زموږ ایتونه یې دروغ ګڼلي دي، دغه کسان د دوزخ ملګري (دوزخیان) دي

۸۷:۵ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو هغه پاکیزه څیزونه مه حراموئ چې ستاسو لپاره الله حلال کړي دي او له حد نه مه تېرېږئ، بېشکه الله له حد نه تېرېدونکي نه خوښوي

۸۸:۵ - او تاسو له هغه (رزق) نه، چې الله تاسو ته درکړی دی حلال پاکیزه خورئ او له هغه الله نه ووېرېږئ چې تاسو په هغه ایمان لرونکي یئ

۸۹:۵ - الله تاسو په خپلو قسمونو کې په لغو (قسم) سره نه نیسي، او لېکن تاسو په هغو قسمونو نیسي چې تاسو پاخه خوړلي وي، نو د ده کفاره لسو مسکینانو ته خوراك ورکول دي له هغه درمیانه (خوراك) نه چې تاسو یې په خپلو کورنیو خوروئ، یا د هغو (لسو مسکینانو) جامه ده، یا د یو څټ (د غلام، یا وينځې) ازادول دي، نو چا چې (دا) ونه موندل، نو (د هغه په ذمه) درې ورځې روژې دي، دا ستاسو د قسمونو کفاره ده، کله چې تاسو قسم وخورئ او تاسو د خپلو قسمونو حفاظت کوئ، همدارنګه الله تاسو ته خپل ایتونه بیانوي، د دې لپاره چې تاسو شکر وباسئ

۹۰:۵ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! بېشکه همدا خبره ده چې شراب، او جواري او بتان او د فال غشي پلیت دي، د شیطان له عمله دي، نو تاسو له دې نه ځان وساتئ، د دې لپاره چې تاسو کامیاب شئ

۹۱:۵ - یقینًا همدا خبره ده چې شیطان غواړي چې ستاسو په مینځ کې د شرابو او جوارۍ په ذریعې سره دښمني او بغض واچوي او تاسو د الله له ذکر نه او له لمانځه نه بند کړي، نو ایا تاسو (له شرابو او جوارۍ نه) منع کېدونکي یئ؟

۹۲:۵ - او تاسو د الله اطاعت کوئ او د (هغه د) رسول اطاعت کوئ او ځان بچ کړئ، نو که چېرې تاسو وګرځېدلئ، نو پوه شئ چې یقینًا زمونږ د رسُول په ذمه خو بس ښکاره رسَول (تبلیغ کول) دي

۹۳:۵ - هېڅ ګناه نشته په هغو کسانو باندې چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي، په هغه څه کې چې هغوی خوړلي دي، کله چې هغوی پرهېزګاره شوي وو او ایمان یې راوړی و او نېك عملونه یې کړي وو، بیا پرهېزګاره شوي وو او ایمان یې راوړی و، بیا پرهېزګاره شوي وو او نېکي یې کړې وه او الله نېکي کوونکي خوښوي

۹۴:۵ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! الله به خامخا لازمًا تاسو په یو شي سره ازمايي چې له ښکاره به وي، چې ستاسو لاسونه او ستاسو نېزې به هغه ته رسېږي، د دې لپاره چې الله معلوم کړي هغه څوك چې له هغه نه په نا لیدلو وېرېږي، نو چا چې له دې نه بعد زیاتی وکړ، نو د هغه لپاره ډېر دردوونکی عذاب دی

۹۵:۵ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو ښکار مه وژنئ (ښکار مه کوئ)، په دې حال کې چې تاسو په احرام کې یئ، او په تاسو کې چې چا هغه قصدًا قتل کړ، نو (په هغه) جزا (لازمه) ده د هغه څاروي په مثل (څاروی) چې ده وژلی دی، په تاسو کې دوه عدل والا کسان به د دې فیصله کوي، چې کعبې ته رسېدونکې قرباني به وي، یا (د ده په ذمه) کفاره ده چې مسکینانو ته خوراك ورکول دي، یا د دې په برابر روژې نیول دي، د دې لپاره چې د خپل کار سزا وڅکي، الله د هغه څه معافي کړې ده چې مخکې تېر شوي دي او څوك چې بیا راوګرځي، نو الله به له هغه نه انتقام واخلي او الله ډېر غالب دی، انتقام والا دی

۹۶:۵ - ستاسو لپاره د سمندر ښکار او د هغه طعام حلال کړی شوی دی، ستاسو او د (نورو) مسافرو د فایدې لپاره، او پر تاسو باندې د وچې ښکار حرام کړی شوی دی، څو پورې چې تاسو په احرام کې یئ. او تاسو له هغه الله نه ووېرېږئ چې تاسو به خاص هغه ته ورجمع کولی شئ

۹۷:۵ - کعبه، چې د عزت کور دی، الله د خلقو د قیام سبب ګرځولي ده او د عزت میاشت او د حرم قرباني او امیل والا څاروي، دا د دې لپاره چې تاسو پوه شئ چې یقینًا الله پوهېږي په هر هغه څه چې په اسمانونو کې دي او په (هر) هغه څه چې په ځمکه کې دي او دا چې یقینًا الله په هر شي ښه پوه دی

۹۸:۵ - تاسو پوه شئ چې بېشکه الله سخت عذاب والا دی او دا چې بېشکه الله ډېر بخښونکی، بې حده مهربان دی

۹۹:۵ - د رسُول په ذمه نشته مګر یواځې (د حق) رسَول، او الله پوهېږي په هغه څه چې تاسو یې ښکاره کوئ او په هغه څه چې تاسو یې پټوئ

۱۰۰:۵ - ته ووايه: ناپاك او پاك سره برابر نه دي اگر كه تا د ناپاكو ډېروالى په تعجب كې واچوي، نو اى د خالص عقل خاوندانو! تاسو له الله نه ووېرېږئ، د دې لپاره چې تاسو كامياب شئ

۱۰۱:۵ - اى هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى! تاسو د داسې څيزونو په باره كې تپوس مه كوئ چې كه تاسو ته ظاهر كړى شي (، نو) تاسو به خفه كړي، او كه چېرې تاسو په هغه وخت كې تپوس وكړئ كله چې قرآن نازلولى شي (، نو) تاسو ته به ظاهر كړى شي، الله تاسو ته (د تېرو سوالونو) معافي كړې ده او الله ډېر بخښونكى، ډېر تحمل والا دى

۱۰۲:۵ - يقينًا له تاسو نه مخكې يو قوم د دغه خبرو پوښتنه كړې وه، بيا دوى په هغو (يا په سبب د هغو سره) كافر شول

۱۰۳:۵ - الله نه ده مقرره كړې هېڅ بحيره او نه سايبه او نه وصيله او نه حام، او لېكن هغه كسان چې كافر شوي دي دوى په الله باندې دروغ تپي او د دوى اكثره نه پوهېږي

۱۰۴:۵ - او كله چې دوى ته وويل شي چې راشئ هغه شي ته چې الله نازل كړى دى او رسول ته (راشئ)، دوى وايي: مونږ ته هغه (لار) كافي ده چې په هغې باندې مونږ خپل پلرونه موندلي دي، ايا اگر كه د دوى پلرونه نه په هېڅ شي پوهېږي او نه هدايت موندونكي وي

۱۰۵:۵ - اى هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى! په تاسو د خپل ځان بچ كول لازم دي، تاسو ته هغه څوك ضرر نشي دررسولى چې گمراه شوي دي، كله چې تاسو (پخپله) په نېغه لار يئ، خاص د الله په طرف ستاسو د ټولو واپس تلل دي، نو هغه به تاسو په هغو عملونو خبر كړي چې تاسو به كول

۱۰۶:۵ - اى هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى! كله چې په تاسو كې يو تن ته مرگ راشي، (نو) د وصيت په وخت كې ستاسو په مينځ كې له خپلو (مومنانو) څخه د دوه عادلو كسانوگواه كول (لازم) دي، يا ستاسو له غيرو نه دوه نور كسان (گواهان پكار دي) كه چېرې تاسو په ځمكه كې سفر كوئ، بيا تاسو ته د مرگ مصيبت ورسېږي.، تاسو به دغه دواړه له لمانځه نه پس ايساروئ، نو هغه دواړه به په الله قسم وخوري، كه تاسو شك وكړئ، (او هغه دواړه به وايي:) مونږ په دې (قسم) سره څه قيمت نه اخلو، اگر كه هغه خپلوان وي او مونږ د الله گواهي نه پټوو، (كه مونږ قيمت واخيسته، يا مو گواهي پټه كړه) بېشكه مونږ به په دغه وخت كې خامخا له گناه كوونكو څخه يو

۱۰۷:۵ - نو كه اطلاع حاصله شوه چې بېشكه هغه دواړه د گناه مستحق شوي دي، نو دوه نور كسان به د دوى په ځاى ودرېږي هغه چې پر هغوى د حق دعوىٰ وشوه چې (مړي ته) ډېر قريب وي، نو دوى دواړه به په الله سره قسم خوري، چې يقينًا د دوى گواهي د هغو دواړو له گواهۍ نه ښه حقه ده او مونږ زياتى نه دى كړى، (كه مونږ وكړو) بېشكه مونږه به په دغه وخت كې خامخا

له ظالمانو څخه یو

۱۰۸:۵ - دا (خبره) ډېره نژدې ده دې ته چې دوی به ګواهي په صحیح طریقې سره وکړي، یا به دوی وویرېږي چې (د دوی) قسمونه به د هغوی له قسمونو نه پس رد کړی شي. او تاسو له الله نه وېرېږئ او اَورئ، او الله فاسقو خلقو ته نېغه لار نه ښیي

۱۰۹:۵ - هغه ورځ (یاده کړه) چې الله به رسولان راجمع کړي، نو (ورته) وایي به: تاسو ته څه جواب درکړی شوی و؟ هغوی به ووایي: مونږ ته هېڅ علم نشته، بېشکه همدا ته په غیبو ښه عالم یې

۱۱۰:۵ - کله چې الله به ووایي: ای عیسیٰ د مریمې زویه! زما هغه نعمتونه یادکړه چې په تا او ستا په مور باندې شوي دي، کله چې ته ما په پاك روح (جبریل) سره قوي کړې، تا به د خلقو سره په غېږ کې او په پاخه عمر کې خبرې کولې او کله چې ما تا ته کتاب، او حکمت او تورات او انجیل وښوده، او کله چې تا به زما په حکم سره له خټې نه د مرغۍ د شکل په شان (شکل) جوړاوه، بیا به تا په هغه کې پوکی وواهه، نو هغه به زما په حکم سره مرغۍ شوه او تابه زما په حکم سره مورزادي ړوند او برګي مرض والا روغاوه او کله چې تا زما په حکم سره مړي (له قبرونو نه ژوندي) راوښکل او کله چې ما له تا نه بني اسرائیل بند (ایسار) کړل، کله چې تا هغوی ته ښکاره دلیلونه راوړل، نو په هغوی کې کافر شویو خلقو وویل: نه دی دا مګر ښکاره جادو

۱۱۱:۵ - او کله چې مونږه حواریانو ته الهام وکړ چې په ما او زما په رسول ایمان راوړئ، هغوی وویل: مونږ ایمان راوړی دی او ته په دې ګواه شه چې یقینًا مونږ مسلمانان یو

۱۱۲:۵ - کله چې حواریانو وویل: ای عیسیٰ د مریمې زویه! ایا ستا رب د دې طاقت لري چې پر مونږ باندې له اسمانه دسترخوان نازل کړي؟ هغه (عیسیٰ) وویل: تاسو له الله نه ووېرېږئ که چېرې تاسو مومنان یئ

۱۱۳:۵ - هغوی وویل: مونږ غواړو چې له هغه نه خوراك وکړو او زمونږ زړونه مطمئن شي او پوه شو چې تا مونږ ته رښتیا ویلي دي او مونږ به په هغه باندې له ګواهانو څخه شو

۱۱۴:۵ - د مریمې زوی عیسیٰ وویل: ای الله زمونږه ربه! ته په مونږه له اسمانه دسترخوان نازل کړه چې زمونږ د ړومبنو او زمونږ د وروستنو لپاره اختر شي او ستا له جانبه یوه نخښه او ته مونږ ته روزي راکړه او ته تر ټولو غوره رزق ورکوونکی یې

۱۱۵:۵ - الله وفرمایل: بېشکه زه پر تاسو باندې هغه لره نازلوونکی یم، نو په تاسو کې چې چا له دې نه بعد کفر وکړ، نو بېشکه زه هغه لره عذاب ورکوونکی یم، داسې عذاب، چې په مخلوقاتو کې هېڅ یو کس ته هم هغه (شان) عذاب نه ورکوم

۱۱٦:۵ - او کله چې الله وفرمایل: ای عیسیٰ د مریمې زویه! ایا تا خلقو ته ویلي وو چې له الله نه

غیر ما او زما مور دوه معبودان ونیسئ، وویل (عیسٰی) زه ستا پاکي بیانوم، زما لپاره جایز نه دي چې زه هغه خبره وکړم چې د هغې حق ما ته نشته، که چېرې ما دا خبره کړې وی، نو یقینًا تا ته به معلومه وَی، ته عالم یې په هر هغه څه چې زما په نفس کې دي او زه نه پوهېږم په هغه څه چې ستا په نفس کې دي، بېشکه هم ته په غیبو ښه عالم یې

۱۱۷:۵ - ما دوی ته یواځې هغه خبره کړې ده چې تا ما ته د هغې حکم راکړی و، دا چې تاسو د الله عبادت کوئ، چې زما رب دی او ستاسو رب دی، او زه په دوی باندې گواه وم ترڅو پورې چې زه په دوی کې موجود وم، نو کله چې تا زه واخیستلم (، نو) هم ته له همېشه په دوی نگهبان وې او ته په هر شي باندې گواه یې

۱۱۸:۵ - که چېرې ته دوی ته عذاب ورکوې، نو یقینًا دوی ستا بنده گان دي او که چېرې ته دوی ته بخښنه کوې، نو بېشکه هم ته ډېر غالب، ښه حکمت والا یې

۱۱۹:۵ - الله وفرمایل: دا ورځ ده چې رښتینو ته به د هغوی رښتیا ویل فایده ورکوي، د دوی لپاره داسې جنتونه دي چې د هغو له لاندې ولې بهېږي، دوی به په هغو کې تل ترتله وي، الله له دوی نه راضي دی او دوی له هغه نه راضي دي، همدا ډېره لویه کامیابي ده

۱۲۰:۵ - خاص د الله لپاره ده بادشاهي د اسمانونو او د ځمکې او د هغه څه چې په دغو کې دي او هغه په هر شي باندې ښه قادر دی

## (مکي) ژوي - الأنعام ٦

۱:٦ - ټول د کمال صفتونه خاص هغه الله لره دي، چې اسمانونه او ځمکه یې پیدا کړې دي، او پیدا کړې یې دي تیارې او رڼا، بیا (هم) هغه خلق چې کافر دي، له خپل رب سره (نور څیزونه) برابروي

۲:٦ - دی همهغه ذات دی چې تاسو یې له خَټې نه پیدا کړئ، بیا یې یو وخت مقرر کړ او مقرر وخت له هغه سره (لیك) دی، بیا (هم) تاسو شك کوئ

۳:٦ - او په اسمانونو کې او په ځمکه کې هم هغه الله دی، هغه ستاسو په پټو (حالاتو) او ستاسو په ښکاره (حالاتو) پوهېږي او پوهېږي په هغه څه چې تاسو یې کوئ

۴:٦ - او دوی ته د خپل رب له ایتونو څخه هېڅ یو ایت نه راځي مگر دا چې دوی له هغه نه مخ اړونکي دي

۵:٦ - پس یقینًا دوی د حق تکذیب وکړ، کله چې دوی ته راغی، نو ژر به دوی ته د هغه څیز خبرونه راشي چې دوی به په هغه پورې استهزا کوله

٦:٦ - ایا دوی نه دي کتلي (نه دي خبر شوي) چې له دوی نه مخکې څومره (ډېر) امتونه مونږ هلاك کړي دي، چې مونږه هغوی ته په ځمکه کې ښه قوت ورکړی و، دومره (قوت) چې تاسو ته مونږ (هومره) نه دی درکړی او مونږ پر هغوی باندې پرله پسې ورېدونکی باران ورولی و او داسې وَلې مونږه جاري کړې وې چې له هغوی نه ښکته بهېدلې، نو مونږ هغوی د خپلو ګناهونو په سبب هلاك کړل او له هغوی نه بعد مونږه نور خلق پیدا کړل

٧:٦ - او که چېرې مونږه په تا باندې په کاغذ کې (لیکلی) کتاب نازل کړ، بیا دوی په هغه خپل لاسونه (هم) لګولي وی، (نو) خامخا کافر شویو کسانو به ویل: نه دی دا مګر ښکاره جادو

٨:٦ - او دوی وویل: په ده باندې مَلَك ولې نه دی نازل کړی شوی؟ او که مونږه مَلَك نازل کړی وی (نو) لازمًا به معامله فیصله کړی شوې وه، بیا به دوی ته مهلت نه ورکول کېدی

٩:٦ - او که چېرې مونږ دا (رسول) مَلَك ګرځولی وَی (، نو) خامخا مونږ به هغه سړی جوړ کړی و او خامخا مونږه به دوی په هغه شبه کې اچولی، په کومه شبه کې چې (اوس) پراته دي

١٠:٦ - او یقینًا یقینًا له تا نه په مخکې رسولانو پورې استهزا ګانې شوي دي، نو هغو کسانو لره چې په دوی پورې یې مسخرې کړې وې؛ هغه شي راګېر کړل چې دوی به په هغه پورې استهزا کوله

١١:٦ - ته ووایه: تاسو په ځمکه کې وګرځئ، بیا تاسو وګورئ چې د دروغ ګڼونکو انجام څنګه و؟

١٢:٦ - ته ووایه: هغه څه د چا دي چې په اسمانونو او ځمکه کې دي؟ ته ووایه: د الله دي، هغه په خپل ځان باندې رحمت لازم کړی دی، خامخا لازمًا به هغه تاسو د قیامت په ورځ راجمع کوي، چې په هغې کې هېڅ شك نشته، هغه کسان چې خپلو ځانونو ته یې تاوان رسولی دی، نو هغوی ایمان نه راوړي

١٣:٦ - او خاص د هغه لپاره دي هغه څه چې ارام کوي په شپه کې او په ورځ کې او هم هغه ښه اورېدونکی، ښه عالم دی

١٤:٦ - ته ووایه: ایا زه (بل) ولي (مددګار) ونیسم، له هغه الله نه غیر چې د اسمانونو او ځمکې پیداکوونکی دی او هغه خوراك ورکوي او هغه ته خوراك نشي ورکولی؟ ته ووایه: بېشکه زه چې یم، ما ته حکم شوی دی چې زه په اسلام راوړونکو کې اول شم او (ما ته ویل شوي دي چې) ته هیڅکله هم له مشرکانو څخه مه کېږه

١٥:٦ - ته ووایه: بېشکه زه د لویې ورځې له عذاب نه وېرېږم، که د خپل رب نافرماني وکړم

١٦:٦ - هغه څوك چې له هغه نه په دغې ورځ کې دغه (عذاب) واړول شو، نو یقینًا په هغه یې رحم وکړ او دا څرګنده کامیابي ده

۱۷:٦ - او که الله تا ته تکلیف دررورسوي، نو د هغه (تکلیف) لرې کوونکی له هغه نه سِوا بل هیڅوك نشته او که هغه تا ته خیر دررورسوي، نو هغه په هر شي باندې ښه قادر دی

۱۸:٦ - او هم دی غالب دی، د خپلو بنده گانو له پاسه دی او هم دی ښه حکمت والا، ښه خبردار دی

۱۹:٦ - ته ووایه: د گواهۍ په لحاظ کوم شی تر ټولو لوی دی؟ ته ووایه: الله دی، (هغه) زما په مینځ کې او ستاسو په مینځ کې گواه دی۔ او ما ته دا قرآن وحي کړی شوی دی، د دې لپاره چې په دې (قرآن) سره زه تاسو ووېروم او هغه څوك چې دا ورته رسېدلی، ایا بېشکه تاسو خامخا (د دې خبرې) گواهي کوئ چې یقینًا له الله سره نور معبودان (هم) شته؟ ته ووایه: زه (د دې) شاهدي نه کوم، ته ووایه: بېشکه همدا خبره ده چې هغه یو معبود دی او بېشکه زه له هغه څه نه بېزاره یم چې تاسو یې شریکان کوئ

۲۰:٦ - هغه کسان چې هغوی ته مونږ کتاب ورکړی دی، هغوی، دی (داسې) پېژني لکه څنگه چې خپل زامن پېژني، هغه کسان چې خپلو ځانونو ته یې تاوان رسولی دی، نو هغوی ایمان نه راوړي

۲۱:٦ - او له هغه کس نه (بل) زیات ظالم څوك دی چې په الله باندې دروغ تپي (اړوي)، یا د هغه ایتونه دروغ گڼي، بېشکه حقیقت دا دی چې ظالمان نشي کامیابېدلی

۲۲:٦ - او په هغې ورځ کې چې مونږ به دوی ټول راجمع کوو، بیا به مونږه هغو کسانو ته چې شرك یې کړی دی؛ وایو: ستاسو هغه شریکان چېرته دي چې تاسو به (له الله سره شریکان) گڼل؟

۲۳:٦ - بیا به نه وي د دوی (بله) بهانه مگر دا چې دوی به ووایي: قسم په الله چې زمونږ رب دی! مونږ مشرکان نه وو

۲۴:٦ - ته وگوره څنگه دوی په خپلو ځانونو باندې دروغ وویل او له دوی نه هغه څه ورك شول چې دوی به په دروغه جوړول

۲۵:٦ - او په دوی کې ځینې هغه څوك دي چې تا ته غوږ نیسي او مونږ د هغوی په زړونو باندې پردې اچولې دي چې په دې (قرآن) پوه (نه) شي او د دوی په غوږونو کې مو کوڼ والی (اچولی دی) او که دوی هره نښه وویني، (بیا هم) دوی په هغې ایمان نه راوړي، تر دې چې کله دوی تا ته راشي، چې له تا سره جگړه کوي (، نو) هغه کسان چې کافر شوي دي وایي: نه دی دا (قرآن) مگر د مخکېنو خلقو باطلې قصې

۲٦:٦ - او دوی له ده نه منع کول کوي او له ده نه لرې کېږي او دوی یواځې خپل ځانونه هلاکوي او دوی شعور نه لري

۲۷:٦ - او که ته ووینې کله چې دوی پر غاړه د اور ودرولی شي، نو دوی به وایي: ای کاشکې! مونږ بیا (دنیا ته) واپس کړی شو، له دې سره چې د خپل رب د ایتونو (بیا) تکذیب ونه کړو او مونږ شو له مومنانو څخه

۲۸:٦ - بلکې دوی ته هغه څه ظاهر شول چې دوی مخکې پټول او که چېرې دوی (دنیا ته) واپس کړی شي (، نو) لازمًا به دوی هغه شي ته راوګرځي، له څه نه چې دوی منع کړی شوي وو، او بېشکه دوی یقینًا دروغجن دي

۲۹:٦ - او دوی وایي: نه دی دا (ژوند) مګر همدا زمونږ دنیایي ژوند دی او مونږ به کله هم بیا راژوندي نه کړی شو

۳۰:٦ - او که چېرې ته ووینې کله چې دوی د خپل رب په وړاندې ودرولی شي (، نو) هغه به وفرمایي: ایا دا (ژوند) رښتیا نه دی؟ دوی به ووایي: ولې نه! قسم دی زمونږ په رب، هغه به وفرمایي: نو تاسو عذاب وڅکئ د هغه کفر په سبب چې تاسو کاوه

۳۱:٦ - یقینًا هغه کسان تاوانیان شوي دي چا چې د الله ملاقات دروغ ګڼلی دی، تر دې چې کله دوی ته قیامت ناڅاپه راشي، دوی به وایي: هی افسوس! په هغې کوتاهۍ باندې چې مونږ د دې (قیامت) په باره کې کړې ده، او دوی به خپل پېټي په خپلو شاګانو پورته کوي، اګاه شئ! بد دی هغه شی چې دوی یې (بوج) پورته کوي

۳۲:٦ - او دنیایي ژوند نه دی مګر لوبه او تماشه، او یقینًا د اخرت کور د هغو کسانو لپار ډېر غوره دی چې پرهېزګاره دي، ایا نو تاسو عقل نه لرئ

۳۳:٦ - یقینًا مونږ پوهېږو چې بېشکه حقیقت دا دی چې تا هغه خبره خامخا غمجن کوي، چې دوی یې وایي، نو یقینًا دوی تا دورغژن نه ګڼي او لېکن ظالمان د الله له ایتونو نه انکار کوي

۳۴:٦ - او یقینًا یقینًا له تا نه مخکې رسولان دروغژن بلل شوي وو، نو هغوی په دروغژن بلل کېدلو او ضرر رسېدلو صبر وکړ تر دې چې هغوی ته زمونږ مدد راغی، او د الله کلماتو لره هیڅوك اړوونکی نشته، او یقینًا یقینًا تا ته د رسولانو څه خبرونه راغلي دي

۳۵:٦ - او که چېرې په تا باندې د دوی مخ اړول ګران وي، نو که ته طاقت لرې د دې چې په ځمکه کې سُرنګ ولټوې، یا اسمان ته کومه زینه، بیا ته دوی ته څه نښه (معجزه) راوړې، (نو داسې وکړه) او که الله غوښتلی لازمًا به یې دوی په نېغه لار باندې جمع کړي وو، نو ته له ناپوهانو څخه مه کېږه

۳٦:٦ - یقینًا همدا خبره ده چې هغه کسان (حق) قبلوي چې اوري، او (کافران مړي دي) مړي به الله راژوندي کوي، بیا به خاص د هغه په طرف ورګرځولی شي

۳۷:٦ - او دوی وايي: ولې په ده باندې کومه معجزه د خپل رب له جانبه نه نازلولی شي؟ ته (دوی ته) ووایه: بېشکه الله په دې قادر دی چې معجزه نازله کړي او لېکن د دوی اکثره خلق نه پوهېږي

۳۸:٦ - او نشته دی هېڅ یو په ځمکه کې خوځنده او نه هېڅ مارغه چې په خپلو دواړو وزرونو الوزي مگر (دوی) ستاسو په شان امتونه دي، مونږ په کتاب کې هېڅ شی نه دی پرېښی، بیا به دوی د خپل رب په طرف ورجمع کولی شي

۳۹:٦ - او هغه کسان چې زمونږ د ایتونو تکذیب یې کړی دی (دوی) کاڼه او گونگیان دي، په تیارو کې دي، چا ته چې الله وغواړي هغه گمراه کوي او چا ته چې وغواړي هغه په نېغه لار روانوي

۴۰:٦ - ته (دوی ته) ووایه: ما خبر کړئ که چېرې په تاسو د الله عذاب راشي، یا په تاسو قیامت راشي، ایا تاسو به له الله نه غیر (بل څوك) بلئ، كه چېرې تاسو رښتیني یئ

۴۱:٦ - بلکې تاسو به خاص هغه بلئ، نو هغه به که وغواړي هغه (تکلیف) لرې کړي د څه لپاره چې تاسو هغه بلئ او تاسو هغه هېروئ چې تاسو یې (له الله) سره شریکان جوړوئ

۴۲:٦ - او یقینًا یقینًا مونږ پیغام لېږلی و له تا نه مخکې امتونو ته، بیا مونږ هغوی په سختیو اوتکلیفونو سره ونیول، د دې لپاره چې هغوی عاجزي وکړي

۴۳:٦ - نو کله چې دوی ته زمونږ عذاب راغی، دوی ولې عاجزي ونه کړه او لېکن د دوی زړونه سخت شوي وو او شیطان دوی ته د دوی هغه عملونه ښایسته کړي وو چې دوی کول

۴۴:٦ - نو کله چې دوی هغه شی هېر کړ په څه سره چې دوی ته نصیحت شوی و، بیا نو مونږ په دوی باندې د هر شي دروازې پرانستلې تر دې چې دوی لویي وکړه، په سبب د هغه څه چې دوی ته ورکړی شوي وو (، نو) مونږه دوی ناڅاپه ونیول، نو ناگهانه دوی ناامېده شول

۴۵:٦ - نو د هغه قوم بېخ پرې کړی شو چې ظلم یې کړی و او ټولې ستاینې خاص د الله لپاره دي، چې د عالَمونو ښه پالونکی دی

۴٦:٦ - ته (دوی ته) ووایه: تاسو ما خبر کړئ که چېرې الله ستاسو غوږونه او ستاسو سترگې واخلي او ستاسو په زړونو باندې مهر ولگوي (، نو) له الله نه غیر (بل څوك حق) معبود دی، چې دا تاسو ته (واپس) راوړي؟ ته وگوره، مونږه ایتونه څنگه قسما قسم بیانوو، بیا (هم) دوی مخ اړوي

۴۷:٦ - ته ووایه: تاسو ما خبر کړئ که چېرې پر تاسو باندې د الله عذاب ناڅاپه راشي، یا ښه ښکاره، (، نو) نه به شي هلاکولی مگر ظالمان خلق

۴۸:٦ - او مونږ رسولان نه لېږو مگر زېری ورکوونکي او وېروونکي، نو چا چې ایمان راوړ او د ځان اصلاح یې وکړه، نو په دوی باندې به نه څه وېره وي او نه به دوی غمجن کېږي

۴۹:٦ - او هغه کسان چې زمونږ د ایتونو تکذیب یې وکړ، دوی ته به د هغې نافرمانۍ په سبب عذاب رسېږي چې دوی کوله

۵۰:٦ - ته ووایه: زه تاسو ته نه وایم چې ما سره د الله خزانې دي او نه زه عالم الغیب یم او نه زه تاسو ته دا وایم چې بېشکه زه مَلَك یم، زه پیروي نه کوم مگر د هغه شي چې ما ته وحي کولی شي، ته ووایه: ایا ړوند او بینا سره برابر دي؟ ایا نو ولې تاسو سوچ او فکر نه کوئ

۵۱:٦ - او ته په دې (وحي) سره هغه کسان ووېروه چې د خپل رب په وړاندې له ورټولول کېدو نه وېرېږي، چې د دوی لپاره له هغه نه غیر نه څوك دوست شته او نه څوك سفارشي، لپاره د دې چې دوی پرهېزگاره شي

۵۲:٦ - او ته هغه کسان مه شړه چې خپل رب سبا او بېگاه بلي، چې د هغه (الله) مخ غواړي، په تا باندې د هغوی د حساب نه هېڅ شی نشته او نه پر هغوی باندې ستا له حسابه څه شی شته، نو که ته دوی وشړې، نو شې به ته له ظالمانو څخه

۵۳:٦ - او همدارنگه مونږ د دوی ځینې په ځینو (نورو) سره ازمایلي دي، د دې لپاره چې دوی ووایي: ایا داخلق دي چې الله په دوی باندې زمونږ له مینځه احسان کړی دی، ایا الله په شکر گذارو باندې ښه پوه نه دی!

۵۴:٦ - او کله چې تا ته هغه کسان راشي چې زمونږ په ایتونو ایمان لري، نو ته ووایه: په تاسو دې سلام وي، ستاسو رب په خپل ځان باندې مهرباني کول لیکلي (لازم کړي) دي، چې یقینًا شان دا دی څوك چې په تاسو کې په ناپوهۍ سره بدي وکړي، بیا له هغې نه پس توبه وباسي او اصلاح وکړي، نو بېشکه هغه ډېر بخښونکی، بې حده مهربان دی

۵۵:٦ - او همدارنگه مونږ ایتونه په تفصیل سره بیانوو، او د دې لپاره چې د مجرمانو لاره ښه واضحه شي

۵٦:٦ - ته (دوی ته) ووایه: بېشکه زه منع کړی شوی یم له دې نه چې زه د هغو (څیزونو) عبادت وکړم چې تاسو یې له الله نه غیر بلئ، ته ووایه: زه ستاسو د خواهشاتو پیروي نه کوم، (که ومې کړه، نو) یقینًا زه به په د غه وخت کې گمراه شوی یم اونه به یم زه له نېغه لار موندونکو نه

۵۷:٦ - ته ووایه: بېشکه زه په هغه ښکاره دلیل باندې یم چې زما د رب له جانبه دی او تاسو د هغه تکذیب کړی دی، ما سره هغه شی نشته چې تاسو هغه په تلوار سره غواړئ، نشته دی حکم مگر خاص د الله لپاره، هغه حق بیانوي او هغه ډېر غوره فیصله کوونکی دی

۵۸:٦ - ته ووایه: یقینًا که ما سره هغه شی وَی چې تاسو هغه په تلوار سره غواړئ (، نو) لازمًا به زما او ستاسو په مینځ کې خبره فیصله کړی شوې وه او الله په ظالمانو باندې ښه عالم دی

۵۹:٦ - او خاص له هغه (الله) سره د غیبو چابیانې دي، یواځې هغه په دغو عالم دی او هغه عالم دی په هغه څه چې په وچه او سمندر کې دي، او هیڅ یوه پاڼه نه غورځیږي مګر هغه پرې عالم دی او د ځمکې په تیارو کې نه یوه دانه (پرېوځي) او نه لوند څیز او نه وچ مګر (دا ټول) په ښکاره کتاب (لوح محفوظ) کې دي

٦٠:٦ - او هم هغه ذات دی چې تاسو په شپه کې وفات کوي او هغه پوهیږي په هغه څه چې تاسو یې د ورځې کوئ، بیا به هغه تاسو په هغې (ورځې) کې راژوندي کوي، د دې لپاره چې ټاکلی وخت پوره کړی شي، بیا به خاص د هغه په طرف ستاسو واپسي وي، بیا به هغه تاسو په هغو عملونو خبر کړي چې تاسو کول

٦١:٦ - او هم هغه غالب دی، د خپلو بنده ګانو له پاسه دی، او پر تاسو باندې ساتونکي (ملایك) رالېږي، تر هغه پورې چې کله په تاسو کې یو کس ته مرګ راشي (، نو) زمونږ استازي یې وفات کړي او هغوی هیڅ تقصیر (کمی) نه کوي

٦٢:٦ - بیا به دوی ورګرځولی شي الله ته چې د دوی حق مالك دی، اګاه شئ، خاص د هغه لپاره حکم کول دي، او هغه تر ټولو حساب کوونکو ډېر تېز دی

٦٣:٦ - ته (دوی ته) ووایه: تاسو ته د وچې او سمندر له تیارو نه څوك خلاصی درکوي، چې تاسو هغه بلئ په زارۍ سره او په پټه سره، (او وایئ) که چیرې هغه (الله) مونږ ته د دې (مصیبت) نه خلاصی راکړ (، نو) مونږ به خامخا ارومرو له شکر کوونکو څخه شو

٦۴:٦ - ته (ورته) ووایه: الله تاسو ته له دې نه نجات درکوي او له هر غم نه (هم)، بیا (هم) تاسو شرك کوئ

٦۵:٦ - ته (دوی ته) ووایه: هم هغه قادر دی په دې خبره باندې چې تاسو باندې ستاسو له پاسه نه عذاب راولیږي، یا ستاسو د پښو له لاندې طرف نه، یا تاسو د بېلو، بېلو ډلو په جوړولو سره ګډوَډ کړي او په ځینو باندې د ځینو نورو (د) جنګ (مزه) وڅکي، ته وګوره مونږه ایتونه څنګه قسما قسم بیانوو، د دې لپاره چې دوی پوه شي

٦٦:٦ - او ستا قوم د دې (قرآن) تکذیب وکړ، حال دا چې همدا حق دی، ته (ورته) ووایه: زه پر تاسو باندې نګهبان نه یم

٦٧:٦ - د هر یو خبر لپاره مقرر وخت دی او ژر به تاسو پوه شئ

٦٨:٦ - او کله چې ته هغه کسان ووینې چې زمونږ په ایتونوکې عبث بحثونه کوي، نو ته له هغوی نه مخ واړوه، تر دې چې دوی له دې نه په علاوه خبرو کې مشغول شي، او که چیرې شیطان له تا نه (دا حکم) هیر کړي، نو له یادیدلو نه پس له ظالمو خلقو سره مه کېنه

٦٩:٦ - او په پرهېزګاره کسانو باندې د دوی (عبث بحث کوونکو) له حسابه څخه هېڅ شی نشته او لېکن (د هغوی په ذمه) نصیحت کول دي، د دې لپاره چې دوی (هم) پرهېزګار شي

٧٠:٦ - او ته هغه کسان پرېږده چې خپل دین یې لوبه او تماشه ګرځولی و او دوی دنیایي ژوند دوکه کړي (غولولي) وو او ته په دې (قرآن) سره نصیحت کوه، چې کوم نفس د خپلو کړو عملونو په سبب هلاك (نه) کړی شي، چې د هغه (نفس) لپاره له الله نه پرته نه څوك دوست شته او نه سفارشي او كه دا (نفس) فدیه ورکړي، هر قسمه فدیه (، نو) دا به له هغه نه قبوله نه کړی شي، دا هغه کسان دي چې د خپلو کړو عملونو په سبب هلاك کړی شوي دي، د دوی لپاره ډېرې ګرمې اوبه څښاك دی او ډېر دردوونکی عذاب دی، په سبب د هغه کفر چې دوی به کاوه

٧١:٦ - ته (ورته) ووایه: ایا مونږ له الله نه سوا د هغه شي عبادت وکړو چې مونږ ته هغه نه فایده رارسولی شي او نه مونږ ته ضرر رارسولی شي؟ او (ایا) مونږه بېرته په خپلو شاګانو وګرځولی شو، وروسته له دې نه چې الله مونږ ته نېغه لار وښودله، د هغه کس په شان چې هغه شیطانانو په ځمکه کې ژورې کندې ته بېولی وي، چې حیران وي، د هغه ملګري وي چې دا نېغې لارې ته رابلي، (چې) مونږ ته راشه، ته ووایه: بېشکه د الله هدایت، هم هغه اصل هدایت دی او مونږ ته حکم کړی شوی دی چې د رب العلمین اطاعت کوونکي شو

٧٢:٦ - او دا چې تاسو لمونځ قایموئ او له هغه (الله) نه وېرېږئ او دی همغه ذات دی چې خاص هغه ته به تاسو ورټولولی شئ

٧٣:٦ - او دی همغه ذات دی چې اسمانونه او ځمکه یې په حقه سره پیدا کړي دي او (یاده کړئ) هغه ورځ چې هغه (الله) به ووایي: موجود شه! نو هغه به موجود شي، هم د هغه وینا حقه ده، او خاص د هغه لپاره حکومت دی په هغې ورځ کې چې په شپېلۍ کې به پوکی وکړی شي، (هغه) د پټو او ښکاره (څیزونو) عالم دی او هم هغه ښه حکمت والا، ښه خبردار دی

٧٤:٦ - او کله چې ابراهیم خپل پلار ازر ته وویل: ایا ته بتان معبودان نیسې، بېشکه زه تا او ستا قوم په څرګنده ګمراهۍ کې وینم

٧٥:٦ - او همدارنګه مونږ ابراهیم ته د اسمانونو او ځمکې بادشاهي ښودله او د دې لپاره چې هغه له یقین کوونکو څخه شي

٧٦:٦ - بیا کله چې په هغه باندې شپه تیاره شوه (، نو) یو ستوری یې ولیده، ویې ویل: دا زما رب دی؟ نو کله چې هغه پټ شو، ویې ویل: زه پټېدونکي (غایبېدونکي) نه خوښوم

٧٧:٦ - بیا کله چې یې سپوږمۍ ولیده، ځلېدونکې، ویې ویل: دا زما رب دی؟ نو کله چې هغه پرېوتله (، نو) ویې ویل: یقینًا که چېرې ما ته زما رب نېغه لار ونه ښیي (، نو) زه به خامخا له ګمراه

خلقو څخه شم

۷۸:٦ - نو کله چې هغه لمرسترګه ولیدله، ځلېدونکې، ویې ویل: دا زما رب دی؟ دا تر ټولو لوی دی، نو کله چې هغه پرېوتله، ویې ویل: ای زما قومه! بېشکه زه بېزاره یم له هغه څه نه چې تاسو یې شریکان جوړوئ

۷۹:٦ - بېشکه ما خپل مخ هغه ذات ته اړولی دی چې اسمانونه او ځمکه یې پیدا کړي دي، یواځې په حق پسې تلونکی یم او نه یم له مشرکانو څخه

۸۰:٦ - او له هغه سره خپل قوم جګړه وکړه، ویې ویل: ایا تاسو زما سره د الله په باره کې جګړه کوئ، حال دا چې هغه ما ته نېغه لار راښودلې ده، او زه له هغو شیانو نه نه وېرېږم چې تاسو یې له هغه (الله) سره شریکان جوړوئ، مګر دا چې زما رب څه شی وغواړي، زما رب د علم په لحاظ سره هر شی راګېر کړی دی، ایا نو ولې تاسو نصیحت نه منئ

۸۱:٦ - او زه له هغو څیزونو نه څنګه ووېرېږم چې تاسو (له الله سره) شریکان کړي دي، حال دا چې تاسو له دې څخه نه وېرېږئ چې بېشکه تاسو له الله سره هغه شی شریك کړی دی چې د هغه په باره کې یې پر تاسو باندې هېڅ دلیل نه دی نازل کړی، نو په دواړو ډلو کې کومه یوه د امن (له عذاب نه د بچ کېدو) زیاته حقداره ده؟ که چېرې تاسو پوهېږئ

۸۲:٦ - هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او له خپل ایمان سره یې ظلم نه دی ګډ کړی (، نو) دغه کسان دي چې د همدوی لپاره (له عذاب نه) امن (بچاو) دی او دغه کسان هدایت موندونکي دي

۸۳:٦ - او دا زمونږ دلیل دی چې هغه مونږه ابراهیم ته ورکړی و د هغه د قوم په مقابله کې، مونږ درجې اوچتوو چا لره چې مونږ وغواړو، بېشکه ستا رب، ښه حکمت والا، ښه پوه دی

۸۴:٦ - او مونږ هغه ته اسحٰق او یعقوب عطا کړ، مونږ هر یو ته هدایت کړی و، او له ده نه مخکې نوح ته مونږ هدایت کړی و او د هغه په اولاد کې داود او سلیمان، او ایوب او یوسف او موسٰی او هارون ته (هم) اوهمدارنګه مونږ نېکي کوونکو ته بدله ورکوو

۸۵:٦ - (او هدایت کړی و مونږ) زکریا، او یحیٰی او عیسٰی او الیاس ته، (دوی) هر یو له صالحانو څخه دي

۸٦:٦ - او اسمٰعیل، او اَلیسَع او یونس او لوط ته، او (دوی) هر یو مونږه په ټولو عالَمونو باندې غوره کړي دي

۸۷:٦ - او (فضیلت مو ورکړی و) د دوی په پلرونو کې ځینو ته او د دوی په اولاد کې او د دوی په ورونو کې (ځینو ته) او مونږ هغوی غوره کړي وو او مونږ هغوی ته د نېغې لارې هدایت کړی و

۸۸:٦ - دغه د الله هدایت دی، په دې سره هدایت کوي په خپلو بنده ګانو کې چا ته چې وغواړي او که چېرې دوی شرك کړی وَی (، نو) خامخا به له دوی نه ضایع شوي وو هغه عملونه چې دوی کول

۸۹:٦ - دا هغه کسان دي چې دوی ته مونږ کتاب او حکم او نبوت ورکړی و، نو که دا خلق په دې سره کفر وکړي، نو یقینًا مونږ د دې لپاره داسې خلق مقرر کړي دي چې په دې سره کفر کوونکی نه دي

۹۰:٦ - دا هغه کسان دي چې الله ورته هدایت کړی دی، نو ته د دوی د طریقې اتباع کوه، ته ووایه: زه له تاسو نه په دې (تبلیغ) باندې مزدوري نه غواړم، نه دی دا مګر د ټولو عالَمونو لپاره نصیحت

۹۱:٦ - او دوی د الله قدر ونه کړ، څنګه چې د هغه د قدر کولو حق دی! کله چې دوی وویل: الله په انسان باندې هېڅ شی نه دی نازل کړی، ته (ورته) ووایه: هغه کتاب چا نازل کړی دی چې موسٰی راوړی و، چې رڼا او هدایت دی د خلقو لپاره؟ چې تاسو یې پاڼه پاڼه کوئ، چې هغه (ځینې) ښکاره کوئ او ډېرې پټوئ، او تاسو ته هغه علم درکړی شو چې نه پرې تاسو پوهېدلئ او نه ستاسو پلاران، ته ووایه: الله (نازل کړی دی) بیا ته دوی په خپلو باطلو بحثونو کې پرېږده چې لوبې کوي

۹۲:٦ - او دا کتاب دی، چې مونږ نازل کړی دی، برکتي دی او د هغو (کتابونو) تصدیق کوونکی دی چې له ده نه مخکې دي او د دې لپاره چې ته د مکې خلق او د هغې ګېرچاپېره خلق ووېروې او هغه کسان چې په اخرت ایمان لري، دوی په ده ایمان راوړي، په داسې حال کې چې هم دوی د خپلو لمونځونو ساتنه کوي

۹۳:٦ - او له هغه کس نه لوی ظالم څوك دی چې په الله باندې دروغ تړي، یا وایي چې ما ته وحي کړی شوې ده! حال دا چې هغه ته هېڅ شی نه وي وحي کړی شوی او له هغه چا نه (بل لوی ظالم څوك دی) چې وایي: ژر دی زه به (هم) نازل کړم د هغه په مثل چې الله نازل کړی دی! او که چېرې ته ووینې کله چې ظالمان د مرګ په سختیو کې (ګېر) وي او ملایکو خپل لاسونه وراوږده کړي وي (او ورته وایي) تاسو خپلې ساه ګانې راوباسئ، نن ورځ به تاسو ته د سپکوونکي عذاب سزا درکولی شي، په سبب د هغې ناحقه وینا چې تاسو به په الله باندې تړله، او وئ تاسو چې د ده له ایتونو څخه مو تکبر کاوه

۹۴:٦ - او یقینًا یقینًا تاسو مونږ ته یواځې یواځې (ځانله، ځانله) راغلئ، لکه څنګه چې مونږ تاسو اول ځلې پیدا کړي وئ، او تاسو هغه څه د خپلو شاګانو شا ته پرېښودل چې مونږ تاسو ته درکړي وو۔ او مونږ له تاسو سره ستاسو هغه سفارشیان نه وینو چې تاسو به دعوٰی کوله چې

بېشکه دوی په تاسو کې شریکان دي، یقیناً یقیناً ستاسو خپل مینځي تعلق پرې شو او له تاسو څخه هغه څه ورك شول چې تاسو به (سفارشیان) گڼل

۹۵:٦ - بېشکه الله د دانې او زړي چوونکی دی، ژوندی له مړي څخه راوباسي او له ژوندي څخه د مړي راوېستونکی دی، همم دغه الله دی، نو کوم طرف ته تاسو گرځولی شئ

۹٦:٦ - د سبا (د رڼا) چوونکی دی او شپه یې د ارام ذریعه گرځولې ده او لمرسترگه او سپوږمۍ یې د حساب ذریعې گرځولې دي، دا د ښه غالب، ښه پوه ذات اندازه کول دي

۹۷:٦ - او دی همغه ذات دی چې ستاسو لپاره یې ستوري پیدا کړي دي، د دې لپاره چې تاسو د هغو په ذریعې سره د وچې او سمندر په تیارو کې لار وموموئ، یقیناً مونږ ایتونه ښه واضحه بیان کړي دي د هغه قوم لپاره چې پوهېږي

۹۸:٦ - او دی همغه ذات دی چې تاسو یې له یو نفس څخه پیدا کړئ، نو (تاسو لپاره) یو قرارځای او یو امانت ځای دی، یقیناً مونږ ایتونه ښه واضحه بیان کړي دي د هغه قوم لپاره چې ښه پوهېږي

۹۹:٦ - او دی همغه ذات دی چې له اسمان نه یې اوبه نازلې کړې دي، بیا مونږ په هغو سره د هر شي زرغونه راوښکلې ده، بیا مونږ له هغې (زرغونې) څخه شینکی راوښکلی دی، چې له دې (شینکي) نه مونږ پر یو بل سَورې دانې راوباسو او له کجورې څخه د هغې له کځوړو نه نژدې وږې، او د انگورو باغونه او زیتون او انار چې له یو بل سره (څه) مشابه وي او (څه) مشابه نه وي، تاسو د هغې مېوې ته وگورئ کله چې مېوه ونیسي او د هغې پخوالي ته، بېشکه په دې کې خامخا د هغه قوم لپاره نښې دي چې ایمان لري

۱۰۰:٦ - او دوی له الله سره پېریان شریکان جوړ کړي دي، حال دا چې هغه (الله) دوی پیدا کړي دي، او دوی بې له پوهې، د هغه (الله) لپاره زامن او لوڼه له ځانه راپیداکړې، هغه لره پاکي ده او هغه (الله) له هغو خبرو نه ډېر اوچت دی چې دوی یې بیانوي

۱۰۱:٦ - د اسمانونو او ځمکې بې له نمونې پیدا کوونکی دی، د هغه لپاره به اولاد څرنگه وي، حال دا چې د هغه لپاره هېڅ ښځه نشته، او هغه، هر شی پیدا کړی دی او هغه په هر شي باندې ښه عالم دی

۱۰۲:٦ - همدا الله ستاسو رب دی، نشته دی هېڅ لایق د عبادت مگر هم دی، د هر شي پیدا کوونکی دی، نو تاسو د هغه عبادت کوئ او هغه په هر شي باندې نگران دی

۱۰۳:٦ - سترگې د هغه ادراك نشي کولی او هغه د سترگو ادراك کولی شي او هغه ډېر باریکبین، ښه خبردار دی

۱۰۴:٦ - یقینًا تاسو ته د خپل رب له جانبه څرګند دلیلونه راغلي دي، نو چا چې بصیرت حاصل کړ، نو د خپل ځان لپاره یې حاصل کړ او څوك چې ړوند شو، نو ضرر یې په همدې نفس باندې دي او زه پر تاسو باندې نګهبان نه یم

۱۰۵:٦ - او همدارنګه مونږ ایتونه بیانوو او د دې لپاره چې دوی ووایي: تا لوستل زده کړي دي او د دې لپاره چې مونږه دا ښه بیان کړو د هغه قوم لپاره چې پوهېږي

۱۰٦:٦ - ته پیروي کوه د هغه شي چې تا ته د خپل رب له جانبه وحي کولی شي، نشته حق معبود مګر هم هغه دی او ته له مشرکانو څخه مخ واړوه

۱۰۷:٦ - او كه چېرې الله غوښتلی (، نو) دوی به شرك نه و كړی او ته مونږ په دوی باندې ساتونكی نه یې ګرځولی او نه یې ته په دوی باندې نګران

۱۰۸:٦ - او تاسو هغو ته كنځلې مه كوئ چې دوی یې له الله نه غیر بلي، نو دوی به په ناحقه سره، بې له پوهې، الله ته كنځل وكړي، همدارنګه مونږ د هر امت لپاره د هغوی عمل ښایسته كړی دی، بیا خاص د خپل رب په طرف د دوی واپسي ده، نو هغه به دوی ته د هغو عملونو خبر وركړي چې دوی به كول

۱۰۹:٦ - او دوی قسمونه وخوړل په الله باندې خپل پاخه قسمونه چې كه چېرې دوی ته معجزه راشي، نو خامخا لازمًا به په هغې ایمان راوړي، ته (ورته) ووایه: بېشكه همدا خبره ده چې معجزې له الله سره دي او تاسو په دې څه شي پوه كړئ چې بېشكه دا (معجزه) چې كله راشي (بیا به هم) دوی ایمان نه راوړي

۱۱۰:٦ - او مونږ د دوی زړونه او د دوی سترګې اړوو، لكه څنګه چې دوی په اول وارې په دې (نورو معجزاتو) باندې ایمان رانه وړ او مونږ دوی په خپله سركشۍ كې پرېږدو، چې سرګردانه دي

۱۱۱:٦ - او كه یقینًا مونږ دوی ته ملایك نازل كړي وی او له دوی سره مړیو خبرې كړې وی او مونږ هر شی دوی ته مخامخ راجمع كړی وی، (بیا هم) دوی (داسې) نه وو چې ایمان یې راوړی وی مګر دا چې كه الله وغواړي، او لېكن د دوی زیاتره خلق جهالت كوي

۱۱۲:٦ - او همدارنګه مونږ د هر نبي لپاره انساني او جني شیطانان دښمنان ګرځولي وو، چې د دوی ځینو به ځینو نورو ته ښایسته كړی شوې خبرې د دوكه كولو (غولولو) لپاره ور اچولې او كه چېرې ستا رب، غوښتلی (، نو) دوی به دا (كار) نه و كړی، نو ته دوی پرېږده او هغه هم چې دوی له خپله ځانه څه دروغ جوړوي

۱۱۳:٦ - او د دې لپاره چې دې (دروغو) ته د هغو خلقو زړونه مایل شي چې په اخرت ایمان نه راوړي او د دې لپاره چې دوی دا خوښ كړي او د دې لپاره چې دوی هغه (ګناهونه) وكړي چې دوی یې كوونكي دي

۱۱۴:٦ - ایا نو زه له الله نه سِوا حَکَم (عادل قاضي) ولټوم، حال دا چې هم هغه دی چې تاسو ته يې کتاب نازل کړی دی، چې ښه تفصيل يې شوی دی او هغه کسان چې مونږ هغوی ته (مخکې) کتاب ورکړی دی؛ هغوی پوهېږي چې بېشکه دا ستا د رب له جانبه په حقه سره نازل کړی شوی دی، نو ته هېڅ کله هم له شك کوونکوڅخه مه کېږه

۱۱۵:٦ - او د رښتينولۍ او عدل له لحاظه ستا د رب خبره کمال ته رسېدلې ده، د هغهٔ کلماتو لره هيڅوك بدلوونکی نشته، او هم هغه ښه اورېدونکی، ښه عالم دی

۱۱٦:٦ - او که چېرې ته اطاعت وکړې د هغو کسانو د اکثريت چې په ځمکه کې دي (، نو) دوی به تا د الله له لارې نه واړوي، دوی يواځې د گمان پيروي کوي او دوی يواځې اټکل چلوي

۱۱۷:٦ - بېشکه ستا رب په هغه چا ښه پوه دی چې د هغه د لارې نه گمراه کېږي او هغه په هدايت موندونکو (هم) ښه پوه دی

۱۱۸:٦ - نو تاسو له هغې (مذبوحې) څخه خورئ چې په هغې د الله نوم ياد کړی شوی وي، که چېرې تاسو يئ چې د هغه په ايتونو ايمان لرونکي يئ

۱۱۹:٦ - او په تاسو څه دي چې له هغې (مذبوحې) څخه به خوراك نه کوئ چې په هغې د الله نوم ياد کړی شوی وي او يقينًا هغه (الله) تاسو ته هغه څه واضح کړي دي چې پر تاسو يې حرام کړي دي، سِوا له هغه نه چې تاسو هغه ته مجبور کړی شئ، او بېشکه ډېر خلق، خامخا د خپلو خواهشاتو په ذريعې سره، بې له پوهې نه (خلقو لره) گمراه کوي، بېشکه ستا رب، هغه په زياتي کوونکو ښه پوه دی

۱۲۰:٦ - او تاسو ښکاره گناه او پټه گناه پرېږدئ، بېشکه هغه کسان چې گناه کوي، ژر ده چې دوی ته به سزا ورکړی شي د هغو (گناهونو) په سبب چې دوی کولې

۱۲۱:٦ - او تاسو له هغې (مذبوحې) څخه خوراك مه کوئ چې په هغې باندې د الله نوم نه وي ياد کړی شوی او بېشکه دا (خوراك کول) خامخا فسق (نافرماني) دی اوبېشکه شيطانان يقينًا خپلو دوستانو ته وسوسې اچوي، د دې لپاره چې له تاسو سره جگړه وکړي او که چېرې تاسو د هغوی اطاعت وکړئ، (بيا نو) بېشکه تاسو (هم) خامخا مشرکان يئ

۱۲۲:٦ - ايا هغه څوك چې مړ و، بيا مونږ هغه راژوندی کړ او مونږ د هغه لپاره رڼا پيدا کړه چې په هغې سره هغه په خلقو کې گرځي راگرځي؛ د هغه کس په شان دی چې د هغه حال (داسې وي چې هغه) په تيارو کې دی، له هغو نه کله هم وتونکی نه دی، همدارنگه د کافرانو لپاره هغه عملونه ښايسته کړی شوي دي چې دوی کول

۱۲۳:٦ - او همدارنگه مونږ په هر کلي کې د هغه (کلي) مجرمان مشران گرځولي دي، د دې لپاره چې دوی په هغه (کلي) کې مکر (فريب) وکړي او دوی يواځې له خپلو ځانونو سره مکر کوي، په

دې حال کې چې دوی شعور نه لري

۱۲۴:٦ - او کله چې دوی ته کومه نښه راشي، دوی وايي: هيڅکله به مونږ ايمان رانه وړو تر هغه پورې چې مونږ ته راکړی شي په شان د هغو (نښو) چې د الله رسولانو ته ورکړی شوي دي.، الله ښه عالم دی په هغه ځای چې (هلته) خپل رسالت ږدي، ژر به هغو کسانو ته چې جرم یې کړی دی د الله په نيز ذلت ورسيږي او ډېر سخت عذاب، په سبب د هغه مکر چې دوی کاوه

۱۲۵:٦ - نو هغه څوك چې الله هغه ته د هدايت كولو اراده وكړي، د هغه سينه د اسلام لپاره فراخه کړي او هغه څوك چې هغه یې د گمراه کولو اراده وکړي (، نو) د هغه سينه تنگه کړي، بېخي تنگه، گويا کې هغه پورته اسمان ته په سختۍ سره خېژي، همدارنگه الله پليتي (عذاب) اچوي په هغو کسانو باندې چې ايمان نه راوړي

۱۲٦:٦ - او دا ستا د رب لار ده، چې نېغه ده، يقينًا مونږ ايتونه واضحه بيان کړي دي، د هغه قوم لپاره چې نصيحت اخلي

۱۲۷:٦ - د دوی لپاره د خپل رب په نيز د سلامتۍ کور دی او هغه د دوی مددگار دی، په سبب د هغو عملونو چې دوی کول

۱۲۸:٦ - او په هغې ورځ کې چې هغه به دوی ټول راجمع کړي (او ورته وبه وايي:) ای د پېريانو ډلې! يقينًا تاسو له انسانانو څخه ډېر راخپل (او بې لارې) کړل او د دوی هغه دوستان به، چې له انسانانو څنې دي؛ ووايي: ای زمونږه ربه! زمونږه ځينو له ځينو نورو نه فايده واخيسته او مونږ هغې نېټې ته ورسېدو کومه چې تا زمونږ لپاره مقرر کړې وه، وبه وايي (دوی ته الله) ستاسو ځای اور دی، چې په هغه کې به همېشه يئ مگر هغه چې الله وغواړي، بېشکه ستا رب ښه حکمت والا، ښه پوه دی

۱۲۹:٦ - او همدارنگه مونږ ځينې ظالمان په ځينو نورو مسلط کوو، په سبب د هغو عملونو چې دوی به کول

۱۳۰:٦ - ای د پيريانو او انسانانو ډلې! ايا تاسو ته له هم تاسو نه رسولان نه وو راغلي چې تاسو ته به یې زما ايتونه بيانول او تاسو به یې د خپلې دې ورځې له ملاقات نه وېرولئ؟ دوی به ووايي: مونږ د خپلو ځانونو په خلاف گواهي کوو او دوی دنيايي ژوند دوکه کړي وو او دوی به د خپلو ځانونو په خلاف گواهي ورکړي دا چې بېشکه دوی کافران وو

۱۳۱:٦ - دا (د رسولانو لېږل) د دې لپاره (دي) چې ستا رب د ظلم په وجه د کليو هلاکوونکی نه دی، په دې حال کې چې د هغو اوسېدونکي ناخبره وي

۱۳۲:٦ - او د هر چا لپاره درجې دي له هغو اعمالو نه چې دوی کړي دي، او ستا رب له هغو عملونو نه چې دوی یې کوي؛ کله هم غافل نه دی

۱۳۳:٦ - او هم ستا رب ښه بې پروا، (او) رحمت والا دى، كه چېرې هغه وغواړي (، نو) تاسو به بوځي او له تاسو وروسته به هغه (خلق) ځاى نيوونكي كړي چې يې وغواړي، لكه څنګه چې يې تاسو د بل قوم له اولادې نه پيدا كړئ

۱۳۴:٦ - بېشكه هغه چې له تاسو سره يې وعده كولى شي، خامخا راتلونكى دى او تاسو كله هم (الله لره) عاجزه كوونكي نه يئ

۱۳۵:٦ - ته ووايه: اى زما قومه! تاسو په خپل حالت باندې عمل كوئ، بېشكه زه (هم) عمل كوونكى يم، پس تاسو به ژر پوه شئ چې څوك دى چې د هغه لپاره به د اخرت (ښه) انجام وي، بېشكه حقيقت دا دى چې ظالمان برى نه مومي

۱۳٦:٦ - او دوى د الله لپاره په هغو ځيزونو كې برخه مقرر كړه چې هغه پيدا كړي دي، چې فصل او څاروي دي، نو وايي: دا د الله لپاره دي، د دوى په عقيده، او دا زمونږ د شريكانو لپاره دي، نو هغه چې د دوى د شريكانو لپاره وي، نو هغه الله ته نه رسېږي او هغه چې د الله لپاره وي، نو هغه د دوى شريكانو ته رسېږي، بده ده هغه فيصله چې دوى يې كوي

۱۳۷:٦ - او همدارنګه د ډېرو مشركانو لپاره د هغوى شريكانو د خپل اولاد وژل ښايسته كړي دي، د دې لپاره چې هغوى دوى هلاك كړي او د دې لپاره چې په دوى باندې خپل دين ګډوډ كړي او كه چېرې الله غوښتلى (، نو) دوى به دا (كار) نه و كړى، نو ته پرېږده دوى او هغه چې دوى دروغ جوړوي

۱۳۸:٦ - او دوى وايي چې دا ځينې څاروي او فصلونه دي چې ممنوع دي، دا به نه خوري مګر هغه څوك چې مونږ يې وغواړو، د دوى په عقيده، او څه څاروي دي چې د هغو شاګانې منع كړى شوي دي (سورېدل او بار وړل پرې بند دى)، او څه څاروي دي چې دوى په هغو باندې د الله نوم نه يادوي، په هغه (الله) باندې د دروغو تړلو لپاره، ضرور به هغه (الله) دوى ته سزا وركړي، په سبب د هغو دروغو چې دوى به جوړول

۱۳۹:٦ - او دوى وايي: هغه چې د دې څارويو په ګېډو كې دي (هغه) زمونږ د نرانو لپاره خالص دي او زمونږ په ښځو باندې حرام كړى شوي دي او كه چېرې هغه مردار وي، نو دوى (نر او ښځه) په هغه كې شريكان دي، ژر به هغه (الله) دوى ته د خپل (دې) بيان سزا وركړي، بېشكه هغه ښه حكمت والا، ښه عالم دى

۱۴۰:٦ - يقينًا هغه كسان تاوانيان شول چې خپل اولادونه يې قتل كړل، چې (دوى) بېوقوفان وو (او) بې پوهې وو او حرام يې كړل هغه څه چې الله دوى ته وركړي وو، په الله باندې د دروغو تړلو لپاره، يقينًا دوى ګمراه شول او دوى هدايت موندونكي نه وو

۱۴۱:٦ - او دا (الله) هغه ذات دى چې باغونه يې پيدا كړي دي، چې په څپرونو خېژول شوي دي او

چې په ځېرونو نه دي خېژول شوي او د کجورو ونې او فصل (يې پيدا کړي دي) چې د هغو مېوې مختلفې وي او زيتون او انار (يې پيدا کړي دي) چې په خپلو کې يو شان وي او غير متشابه (هم) وي.، تاسو د هغو له مېوو څخه خورئ! کله چې مېوه وکړي او د هغه حق (عشر، زکات) د رېبلو په ورځ ورکړئ، او تاسو اسراف مه کوئ، بېشکه هغه (الله) اسراف کوونکي نه خوښوي

۱۴۲:٦ - او (پيدا کړي يې دي) په څارويو کې بار وړونکي او وړوکي (، نو) تاسو له هغو څنې خورئ چې الله تاسو ته درکړي دي او تاسو د شيطان د قدمونو پيروي مه کوئ، بېشکه هغه تاسو لپاره ښکاره دښمن دى

۱۴۳:٦ - (الله پيدا کړي دي حلال) اته جوړې (قسمونه)، له ګډو نه دوه (نر او ښځه) او له چېلو (بزو) نه دوه (نر او ښځه)، ته (دوى ته) ووايه: ايا هغه (الله) دواړه نران حرام کړي دي، يا دواړه ښځې، يا هغه (بچي) چې د دواړو ښځو (ګډې او چېلۍ) رحمونه په هغو مشتمل وي، تاسو ما ته په علم سره خبر راکړئ، که چېرې تاسو رښتيني يئ

۱۴۴:٦ - او (پيدا کړي يې دي) له اوښانو نه دوه (نر او ښځه) او له غوايانو نه دوه (نر او ښځه) ته ووايه: ايا هغه (الله) دواړه نران حرام کړي دي، يا دواړه ښځې، يا هغه (بچي) چې د دواړو ښځو (اوښې او غوا) رحمونه په هغو مشتمل وي، ايا تاسو حاضر وَئ کله چې الله تاسو ته د دې وصيت کاوه، نو له هغه چا نه لوى ظالم (بل) څوك دى چې په الله باندې دروغ تپي، د دې لپاره چې بې له علمه خلق ګمراه کړي، بېشکه الله ظالم قوم ته نېغه لار نه ښيي

۱۴۵:٦ - (اى نبي!) ته ووايه: زه نه مومم (هېڅ څيز) په هغه (شريعت) کې چې ما ته وحي کړى شوى دى په کوم خوړونکي باندې حرام کړى شوى، چې هغه يې خوري سِوا له هغه نه چې مرداره وي، يا بهَول شوې وينه، يا د خنزير غوښه، پس بېشکه هغه پليتي ده، يا نافرماني وي چې په هغې د غير الله لپاره اواز اوچت کړى شوى وي، نو هغه څوك چې ناچاره شي، چې نه زياتي کوونکى وي او نه له حده تېرېدونکى وي، (د هغه لپاره يې خوړل حلال دي) نو بېشکه ستا رب ډېر بخښونکى، بې حده مهربان دى

۱۴٦:٦ - او پر هغو کسانو باندې چې يهوديان دي، مونږ هر نوکداره څاروي حرام کړي وو او له غوايانو او ګډو نه مونږه پر هغوى باندې د هغو دواړو وازدې حرامې کړې وې، سِوا له هغو نه چې د هغو شاګانو پورته کړې وي، يا کُلمو، يا هغه چې له هډوکو سره لګېدلې وي، دا مونږ هغوى ته د خپلې سرکشۍ سزا ورکړه او بېشکه مونږ خامخا رښتيا ويونکي يو

۱۴۷:٦ - نو که چېرې دوى ستا تکذيب وکړي، نو ته ووايه: ستاسو رب د فراخه رحمت والا دى او د هغه عذاب له مجرم قوم نه بېرته نه ګرځول کېږي

۱۴۸:٦ - ژر به هغه کسان ووايي چې شرك يې کړى دى، که چېرې الله غوښتلى (نو) نه به مونږ

شرك كړی و او نه زمونږ پلرونو او نه به مونږ څه شی حرام ګرځولی و، همدارنګه هغو کسانو (هم) تکذیب کړی و چې له دوی نه مخکې وو، تر دې چې هغوی زمونږ عذاب وڅاکه، ته ووایه: ایا تاسو سره څه علم شته چې پس مونږ ته یې راوباسئ، تاسو یواځې د ګمان پیروي کوئ او تاسو یواځې اټکل چلونکي یئ

۱۴۹:٦ - ته ووایه: نو خاص الله لره کامل دلیل دی، نو که هغه غوښتلی تاسو ټول به یې لازمًا په نېغه لار روان کړي وی

۱۵۰:٦ - ته ووایه: تاسو خپل هغه ګواهان راولئ چې د دې خبرې ګواهي کوي چې بېشکه الله دا (څیزونه) حرام کړي دي، نو که هغوی ګواهي ورکړي، نو ته له دوی سره ګواهي مه ورکوه او ته د هغو خلقو په خواهشاتو پسې مه ځه چې زمونږ ایتونه یې دروغ ګڼلي دي او هغه کسان چې په اخرت ایمان نه راوړي او هغوی له خپل رب سره (نور څیزونه) برابروي

۱۵۱:٦ - ته ووایه: تاسو راشئ چې زه ولولم هغه څه چې ستاسو رب پر تاسو باندې حرام کړي دي، دا چې تاسو له هغه سره هېڅ شی مه شریکوئ او له مور او پلار سره ښېګڼه کوئ، او تاسو خپل اولاد د غریبۍ له وجې مه وژنئ، مونږ تاسو ته روزي درکوو او هغوی ته (هم) او تاسو د بې حیایۍ کارونو ته مه نژدې کېږئ هغه چې په دغو کې ظاهر دي او هغه چې پټ دي او تاسو هغه نفس مه وژنئ چې الله حرام کړی دی مګر په حقه سره دا، (حکم) چې دی، هغه (الله) تاسو ته د دې کلك حکم درکړی دی، د دې لپاره چې تاسو عقل وچلوئ

۱۵۲:٦ - او تاسو د یتیم مال ته نژدې (هم) مه ورځئ مګر په هغې طریقې سره چې تر ټولو ښه وي تر دې چې هغه (یتیم) خپل پوخ والي ته ورسېږي او تاسو پېمانه او تول په انصاف سره پوره ورکوئ، مونږ هېڅ یو نفس د هغه له طاقت نه زیات نه مکلف کوو او کله چې تاسو خبره کوئ، نو عدل کوئ، اګر چې هغه د خپلولۍ والا وي او د الله عهد پوره کوئ، دا (حکم) دی چې هغه (الله) تاسو ته د دې کلك حکم کړی دی، د دې لپاره چې تاسو نصیحت ومنئ

۱۵۳:٦ - او دا چې بېشکه دا زما لار ده، چې نېغه ده، نو تاسو د دې پیروي وکړئ او د (نورو) لارو پیروي مه کوئ، نو تاسو به (د نورو لارو پیروي) د هغه له لارې نه تار په تار کړي، دا (حکم) دی چې هغه (الله) تاسو ته د دې کلك حکم کړی دی، د دې لپاره چې تاسو پرهېزګاره شئ

۱۵۴:٦ - بیا مونږ موسٰی ته کتاب ورکړ، د نعمت د پوره کولو لپاره په هغه کس باندې چې نېکي یې وکړه او لپاره د هر شي د تفصیل او هدایت او رحمت، د دې لپاره چې دوی د خپل رب په ملاقات ایمان راوړي

۱۵۵:٦ - او دا کتاب دی چې مونږ نازل کړی دی، نو تاسو د ده پیروي وکړئ او پرهېزګاره شئ، د دې لپاره چې په تاسو رحم وکړی شي

۱۵۶:٦ - دا چې تاسو ونه وایئ چې یقینًا همدا خبره ده چې زمونږ نه په مخکښو دوه ډلو باندې کتاب نازل کړی شوی و، او بېشکه مونږ د هغوی له لوستلو نه یقینًا ناخبره وو

۱۵۷:٦ - یا چې تاسو ونه وایئ: یقینًا که چېرې په مونږه کتاب نازل کړی شوی وَی لازمًا به مونږ له دوی نه ښه لارموندونکي وو، نو یقینًا تاسو ته د خپل رب له جانبه ښکاره دلیل راغلی دی او هدایت او رحمت، نو له هغه چا نه لوی ظالم څوك دی چې د الله ایتونه دروغ گڼي او له هغو نه مخ اړوي؟ عنقریب به مونږ هغو کسانو ته د سخت عذاب سزا ورکړو چې زمونږ له ایتونو نه مخ اړوي، په سبب د هغه چې دوی اعراض کاوه

۱۵۸:٦ - دوی انتظار نه کوي مگر د دې چې دوی ته ملایك راشي، یا ستا رب راشي، یا ستا د رب ځینې نښې راشي، په کومه ورځ کې چې ستا د رب ځینې نښې راشي (نو) هېڅ نفس ته به د هغه ایمان راوړل فایده ورنه کړي چې له مخکې نه یې ایمان نه وي راوړی، یا یې په خپل ایمان کې څه خیر نه وي گټلی، ته (دوی ته) ووایه: تاسو انتظار کوئ، بېشکه مونږ (هم) انتظار کوونکي یو

۱۵۹:٦ - بېشکه هغه کسان چې خپل دین یې تار په تار کړی دی، او دوی فرقې فرقې شول، ته له دوی نه په هېڅ شي کې نه یې، یقینًا خبره همدا ده چې د دوی معامله الله ته (سپارل شوې) ده، بیا به هغه دوی ته د هغو کارونو خبر ورکوي چې دوی کول

۱٦۰:٦ - څوك چې یوه نېکي راوړي، نو د هغه لپاره د هغې لس چنده دی او څوك چې یوه بدي راوړي، نو هغه ته به یواځې د هغې په مثل سزا ورکولی شي او په دوی به ظلم نه کېږي

۱٦۱:٦ - ته ووایه: بېشکه زه (چې یم) ما ته زما رب د نېغې لارې هدایت کړی دی، چې ښېخي سم دین دی، د ابراهیم ملت دی، چې یواځې په حق پسې تلونکی و او له مشرکانو څخه نه و

۱٦۲:٦ - ته ووایه: بېشکه زما لمونځ او زما قرباني او زما ژوند او زما مرگ خاص د الله رب العلمین لپاره دي

۱٦۳:٦ - د هغه هېڅ شریك نشته او ما ته د همدې (توحید) حکم شوی دی او زه تر ټولو مسلمانانو اول یم

۱٦۴:٦ - ته ووایه: ایا زه له الله نه غیر (بل) رب ولټوم، حال دا چې هغه د هر شي رب دی، او هېڅ یو نفس (دگناه) کسب نه کوي مگر د خپل (ځان) په ضرر یې کوي او هېڅ بار وړونکی د بل بار نه وړي، بیا خاص خپل رب ته ستاسو واپس تلل دي، نو هغه به تاسو خبر کړي په هغو کارونو چې تاسو به په هغو کې اختلاف کاوه

۱٦۵:٦ - او دا (الله) هغه ذات دی چې تاسو یې په ځمکه کې خلیفگان جوړ کړئ او ستاسو ځینې یې د ځینو (نورو) له پاسه په درجو کې پورته کړل، د دې لپاره چې تاسو وازمایي په هغه څه کې چې تاسو ته یې درکړي دي، بېشکه ستا رب ډېر ژر سزا ورکوونکی دی او بېشکه هغه خامخا ښه

بخښونکی، بې حده مهربان دی

## (مکي) جګ ځایونه - الاعراف ۷

۱:۷ - الف، لام، میم، صاد

۲:۷ - (دا) کتاب دی چې تا ته نازل کړی شوی دی، نو د ده په وجه دې ستا په سینه کې څه تنګي نه وي، د دې لپاره (نازل کړی شوی دی) چې ته د ده په ذریعې سره (خلق) ووېروې او د مومنانو لپاره نصیحت دی

۳:۷ - تاسو پیروي کوئ د هغه (دین) چې تاسو ته د خپل رب له جانبه نازل کړی شوی دی او تاسو له ده نه سِوا (د نورو) دوستانو پیروي مه کوئ، تاسو ډېر کم نصیحت اخلئ

۴:۷ - او څومره ډېر کلي دي چې مونږ هغه هلاك کړي دي، نو زمونږ عذاب هغو ته راغی، په دې حال کې چې دوی د شپې ویده وو، یا په غرمه کې ارام کوونکي وو

۵:۷ - نو نه وه د دوی دعوٰی (بلنه) کله چې په دوی زمونږ عذاب راغی، مګر دا چې دوی وویل: بېشکه مونږ ظالمان وو

۶:۷ - نو خامخا لازمًا به مونږ له هغو خلقو نه تپوس وکړو چې رسولان ورته استول شوي وو او خامخا لازمًا به مونږ له رسولانو نه (هم) تپوس وکړو

۷:۷ - نو خامخا لازمًا به مونږ دوی ته په علم سره بیان وکړو او مونږ (څه) غایب خو نه وو

۸:۷ - او په دغه ورځ (د عملونو) تول ښخي حق دی، نو هغه څوك چې تولونه (یا میزانونه) یې درانه وختل، نو همدغه خلق کامیاب دي

۹:۷ - او هغه څوك چې تولونه (یا میزانونه) یې سپك وختل، نو دغه خلق هغه دي چې دوی خپلو ځانونو ته تاوان رسولی دی، په سبب د دې چې دوی زمونږ له ایتونو سره ظلم کاوه

۱۰:۷ - او یقینًا یقینًا مونږ تاسو ته په ځمکه کې قدرت درکړی دی او تاسو لپاره مو په هغې کې د ژوند اسباب پیدا کړي دي، تاسو ښخي ډېر لږ شکر وباسئ

۱۱:۷ - او یقینًا یقینًا مونږ تاسو پیدا کړئ، بیا مو ستاسو صورتونه جوړ کړل، بیا مونږ ملایکو ته وویل: د ادم لپاره سجده وکړئ، نو هغوی سجده وکړه سِوا له ابلیس نه، هغه له سجده کوونکو څخه نه و

۱۲:۷ - وویل (الله): ته څه شي منع کړې، چې سجده دې ونه کړه کله چې ما تا ته حکم وکړ؟ وویل (شیطان): زه له هغه نه غوره یم، تا زه له اوره پیدا کړی یم او هغه دې له خَټې پیدا کړی دی

۱۳:۷ - (الله) وویل: نو ته له دې (جنت) نه کوز شه، پس تا ته دا حق نشته چې ته په دې (جنت) کې تکبر وکړې، نو ته وځه، بېشکه ته له ذليلو څخه يې

۱۴:۷ - وویل (ابليس چې ای الله!) ته ما ته مهلت راکړه، تر هغې ورځې پورې چې خلق به راژوندي کولی شي

۱۵:۷ - وویل (الله): بېشکه ته له مهلت ورکړی شويو څخه يې

۱٦:۷ - (ابليس) وویل: نو په سبب د هغه چې تا زه گمراه کړم، زه به خامخا ضرور دوی ته ستا په نېغه لار کې کېنم

۱۷:۷ - بيا به خامخا لازمًا زه دوی ته راځم د دوی له مخې نه او د دوی له شا نه او د دوی له ښيو اړخونو نه او چپو اړخونو نه او ته به د دوی اکثره شکر گذاره ونه مومې

۱۸:۷ - وویل (الله): وُځه ته له دې ځای نه، چې بدحاله غمجن کړی شوی، رټلی شوی يې، يقينًا په دوی کې چې چا ستا پيروي وکړه (، نو) خامخا لازمًا به زه له تاسو ټولو نه جهنم ډکوم

۱۹:۷ - او ای ادمه! ته او ستا ښځه په جنت کې اوسئ، نو تاسو خوراك کوئ له کوم ځای نه چې مو خوښه شي، او دې ونې ته مه نژدې کېږئ (، گنې) نو له ظالمانو نه به شئ

۲۰:۷ - نو دوی دواړو ته شيطان وسوسه واچوله، د دې لپاره چې هغه (شيطان) دوی دواړو ته هغه څه ورښکاره کړي چې له دوی نه پټ وو، چې د دوی د شرم ځايونه دي۔ او (ورته) ويې ويل: تاسو دواړه ستاسو رب له دې ونې نه نه يئ منع کړي مگر له دې وجې چې تاسو دواړه به ملايك شئ، يا چې شئ به له تل پاتې کېدونکو نه

۲۱:۷ - او هغه دوی ته پوخ قسم وخوړ چې بېشکه زه تاسو لپاره يقينًا له خير خواهي کوونکو څخه يم

۲۲:۷ - نو هغه دوی دواړو ته په دوکې سره تمه ورکړه، نو کله چې دوی هغه ونه وڅکله، دوی ته خپل شرم ځايونه ښکاره شول او دواړه لگيا شول چې په خپلو ځانونو يې د جنت پاڼې نښلولې او دوی ته خپل رب اواز وکړ چې ايا ما تاسو دواړه له دې ونې نه نه وئ منع کړي او تاسو ته مې نه وويلي چې بېشکه شيطان تاسو دواړو لپاره ښکاره دښمن دی؟

۲۳:۷ - دوی وویل: ای زمونږه ربه! مونږ په خپلو ځانونو ظلم کړی دی او که چېرې ته مونږ ونه بخښې او پر مونږ رحم ونه کړې (، نو) مونږ به خامخا لازمًا له تاوانيانو څخه شو

۲۴:۷ - وویل (الله): تاسو کوز شئ، ستاسو ځينې به د ځينو نورو لپاره دښمنان وي او تاسو لپاره په ځمکه کې استوگنه ده او تر يو وخته پورې فايده اخيستل دي

۲۵:۷ - (الله) وویل: په همدې (ځمکه) کې به تاسو ژوندون کوئ او په همدې کې به تاسو مرئ او

له همدې نه به تاسو راوښکلی کېږئ

۲٦:۷ - ای د ادم اولاده! یقینًا مونږ پر تاسو باندې لباس نازل کړی دی چې ستاسو د شرم ځایونه پټوي او د زینت جامې (مو نازلې کړې دي) او د پرهېزګارۍ لباس؛ دغه ډېر غوره دي، دا د الله له ایتونو څخه دي، د دې لپاره چې دوی نصیحت حاصل کړي

۲۷:۷ - ای د ادم اولاده! تاسو لره دې شیطان هیڅکله هم په فتنه کې وانه چوي، لکه څنګه چې یې ستاسو مور او پلار له جنت نه وښکل، چې له هغوی نه یې د هغوی لباس وښکلو، د دې لپاره چې هغوی ته خپل د شرم ځایونه وښیي، بېشکه هغه او د هغه قبیله تاسو له هغه ځایه ویني چې تاسو یې نه وینئ، بېشکه مونږ شیطانان د هغو خلقو لپاره دوستان جوړ کړي دي چې ایمان نه راوړي

۲۸:۷ - او کله چې دوی څه بې حیایي وکړي (، نو) وایي: مونږ په دې باندې خپل پلرونه موندلي دي او الله مونږ ته د دې حکم کړی دی، ته (ورته) ووایه: بېشکه الله د بې حیایۍ حکم نه کوي، ایا تاسو په الله باندې هغه دروغ تړئ چې تاسو پرې نه پوهېږئ

۲۹:۷ - ته ووایه: زما رب د انصاف حکم کړی دی او (دا چې) تاسو خپل مخونه د هر لمانځه په وخت کې نېغ (سیده) کړئ او تاسو هغه بلئ، چې د هغه لپاره د دین (عبادت) خالص کوونکي یئ، لکه څنګه چې یې تاسو اول ځل پیدا کړي یئ (هماغه شان به) تاسو راګرځئ

۳۰:۷ - یوې ډلې ته یې هدایت کړی دی او بله ډله (یې ګمراه کړې ده) چې په هغو باندې ګمراهي ثابته شوې ده، بېشکه دوی له الله نه سِوا شیطانان (د ځان) دوستان نیولي وو او دوی دا ګمان کاوه چې بېشکه همدوی نېغه لار موندونکي دي

۳۱:۷ - ای د ادم اولاده! تاسو خپل زینت (لباس) واخلئ د هر لمانځه په وخت کې او خوراك کوئ او څښاك کوئ او تاسو اسراف مه کوئ، بېشکه هغه (الله) اسراف کوونکي نه خوښوي

۳۲:۷ - ته ووایه: هغه زینت چا حرام کړی دی چې الله د خپلو بنده ګانو لپاره راوېستلی دی او له رزقه څخه پاکیزه شیان (چا حرام کړي دي؟) ته ووایه: دا (نعمتونه) په دنیایي ژوند کې د هغو کسانو لپاره دي چې ایمان یې راوړی دی، چې (د دوی لپاره به) د قیامت په ورځ بېخي خالص وي، همدارنګه مونږ ایتونه په تفصیل سره بیانوو د هغه قوم لپاره چې پوهېږي

۳۳:۷ - ته ووایه: یقینًا همدا خبره ده چې زما رب د بې حیایۍ کارونه حرام کړي دي، هغه چې له هغو څخه ظاهِر وي او هغه چې باطن وي او (حرامه کړې یې ده) ګناه او ناحقه ظلم کول او دا چې تاسو له الله سره هغه شی شریك کړئ چې د هغه په هکله هغه (الله) هېڅ دلیل نه وي نازل کړی، او دا چې تاسو په الله باندې هغه دروغ وتړئ چې تاسو پرې نه پوهېږئ

۳۴:۷ - او د هر امت لپاره یوه نېټه ده، نو کله چې د دوی نېټه راشي، دوی به نه یوه ګړۍ تاخیر

کوي او نه به دوی ږومبی کېږي

۳۵:۷ - ای د ادم اولاده! که لازمًا تاسو ته له هم ستاسو نه رسولان راشي، چې تاسو ته زما ایتونه بیانوي، نو هغه څوك چې پرهېزگاره شو او د ځان اصلاح یې وکړه، نو په دوی باندې به نه څه وېره وي او نه به دوی غمجن کېږي

۳۶:۷ - او هغه کسان چې زمونږ د ایتونو تکذیب یې کړی دی او له هغو نه یې سرکشي (لويي) کړې ده، دغه کسان د اور ملگري دي، دوی به په هغه کې همېشه وي

۳۷:۷ - نو د هغه کس نه لوی ظالم څوك دی چې په الله باندې دروغ تپي، یا د هغه د ایتونو تکذیب کوي؟ دغه کسان دي چې دوی ته به له لیکل شوي (عمر، رزق وغیره) نه خپله برخه ورسېږي، تر دې چې کله دوی ته زمونږ استازي راشي، چې دوی مړه کوي (، نو ورته) وایي به: چېرته دي هغه معبودان چې تاسو به له الله نه غیر بلل؟ هغوی به ووایي: هغه له مونږ نه ورك شول، او دوی به د خپلو ځانونو په خلاف گواهي وکړي دا چې بېشکه دوی کافران وو

۳۸:۷ - (ورته) وبه وایي: تاسو له هغو امتونو سره یو ځای اور ته داخل شئ چې له تاسو نه مخکې په پېریانو او انسانانو کې تېر شوي دي، هر کله چې یوه ډله ننوځي (، نو) د خپل ځان په مثل ډلې باندې به لعنت وایي، تر دې چې کله دوی ټول په دې (اور) کې راجمع شي، د دوی وروستنی به د خپلو ږومبنو په هکله وایي: ای زمونږه ربه! دا کسان چې دي مونږ یې گمراه کړي وو، نو دوی ته د اور دوه چنده عذاب ورکړه، وبه وایي (الله) د هر یو لپاره دوه چنده (عذاب) دی او لیکن تاسو نه پوهېږئ

۳۹:۷ - د دوی ږومبني به خپلو وروستنو ته ووایي: نو تاسو لپاره پر مونږ باندې هېڅ فضیلت نشته، پس تاسو عذاب وڅکئ د هغو عملونو په سبب چې تاسو به کول

۴۰:۷ - بېشکه هغه کسان چې زمونږ ایتونه یې دروغ گڼلي دي او له هغو نه یې تکبر کړی دی، د دوی لپاره به د اسمان دروازې نه پرانستل کېږي او نه به دوی جنت ته داخلېږي تر هغه پورې چې اوبښ د ستنې په سوري کې ننوځي او همدارنگه مونږ مجرمانو ته سزا ورکوو

۴۱:۷ - د دوی لپاره له جهنم څخه فرش دی او د دوی له پاسه به (د اور) اغوستنی وي او همدارنگه مونږ ظالمانو ته سزا ورکوو

۴۲:۷ - او هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي، مونږ هېڅ یو نفس نه مکلف کوو مگر د هغه د وَس مطابق، دغه کسان د جنت ملگري دي، دوی به په هغه کې همېشه وي

۴۳:۷ - او مونږ به راوباسو هغه کینه چې د دوی په سینو کې وي، د هغو له لاندې به ولې بهېږي، او دوی به وایي: ټولې ستاینې د هغه الله لپاره دي چې مونږ ته یې د دې هدایت وکړ او مونږ

پخپله (داسې) نه وو چې دا لار مو موندلې وَی، که چېرې الله مونږ ته دا لار نه وه راښودلې، یقینًا یقینًا زمونږ د رب رسولان په حقه سره راغلي وو او دوی ته به اواز وکړی شي چې دا جنت دی چې تاسو د ده وارثان گرځولی شوي يئ، په سبب د هغو عملونو چې تاسو به کول

۴۴:۷ - او جنتیان به دوزخیانو ته اواز وکړي دا چې یقینًا مونږ هغه وعده چې زمونږ رب له مونږ سره کړې وه حقه وموندله، نو ایا تاسو (هم) هغه وعده حقه وموندله چې ستاسو رب (له تاسو سره) کړې وه؟ هغوی به ووایي: هو! نو د دوی په مینځ کې به یو اعلان کوونکی دا اعلان وکړي چې د الله لعنت په ظالمانو باندې دی

۴۵:۷ - هغه کسان چې د الله له لارې نه منع کول کوي او په دې کې کوږوالی لټوي او هم دوی د اخرت منکر دي

۴۶:۷ - او د دواړو په مینځ کې پرده ده او د اَعراف له پاسه به کسان وي چې دوی به هر یو (له جنتیانو او دوزخیانو نه) په خپلو علامو سره پېژني او دوی به جنتیانو ته اواز وکړي دا چې په تاسو دې سلام وي، دوی هغه (جنت) ته داخل شوي نه دي او دوی (د جنت) طمع لري

۴۷:۷ - او کله چې د دوی سترگې د دوزخیانو په طرف واړولی شي، دوی به وایي: ای زمونږه ربه! مونږ له ظالم قوم سره مه یو ځای کوه

۴۸:۷ - او د اَعراف ملگري به داسې سړیو ته اواز وکړي چې دوی به یې په خپلو نښو سره پېژني، دوی به (ورته) وایي: تاسو ته نه خو ستاسو ډلې فایده درورسوله او (نه) هغه چې تاسو به تکبر کاوه

۴۹:۷ - ایا دا هغه کسان دي چې تاسو به قسمونه خوړل چې الله به دوی ته رحمت ونه رسوي (دوی ته ویل شوي دي چې) تاسو جنت ته داخل شئ، پر تاسو باندې هېڅ وېره نشته او نه به تاسو غمجن کېږئ

۵۰:۷ - او دوزخیان به جنتیانو ته اواز وکړي دا چې تاسو پر مونږ باندې څه اوبه راتوئ کړئ، یا له هغه څه نه چې الله تاسو ته درکړي دي (څه راکړئ)، وبه وایي (جنتیان) بېشکه الله دا دواړه په کافرانو باندې حرام کړي دي

۵۱:۷ - هغه کسان چې خپل دین یې تماشه او لوبه گرځولی دی او دوی دنیایي ژوند دوکه کړي (غولولي) دي، نو نن ورځ به یې مونږ هېر کړو، لکه څنگه چې هغوی د خپلې دې ورځې ملاقات هېر کړی و او هغه چې دوی به زمونږ له ایتونو نه انکار کاوه

۵۲:۷ - او یقینًا یقینًا مونږ دوی ته کتاب راوړی دی چې مونږ د علم له مخې په تفصیل سره بیان کړی دی، چې هدایت او رحمت دی د هغه قوم لپاره چې ایمان راوړي

۵۳:۷ - دوی انتظار نه کوي مگر د هغه (قیامت) د انجام، په هغې ورځ چې د هغه انجام راشي؛ (نو) هغه کسان به وایي چې دا یې مخکې هېر کړی و: یقینًا زمونږ د رب رسولان په حقه سره راغلي وو، نو ایا زمونږ لپاره څه سفارشیان شته چې زمونږ لپاره سفارش وکړي؟ یا مونږ واپس کړی شو، نو (بیا) له هغه عمل نه سِوا عمل وکړو چې مونږه کاوه، یقینًا دوی خپلو ځانونو ته نقصان رسولی دی او له دوی څخه هغه دروغ ورك شول چې دوی به جوړول

۵۴:۷ - بېشکه ستاسو رب هغه الله دی چې اسمانونه او ځمکه یې په شپږو ورځو کې پیدا کړي دي، بیا د عرش له پاسه برقراره شو، هغه په شپې سره ورځ پټوي، په دې حال کې چې دا (شپه) هغې (ورځ) لره په تلوار سره طلب کوي او (پیدا کړې یې ده) لمرسترگه، او سپوږمۍ او ستوري، چې د هغه په حکم سره مسخر کړی شوي دي، اگاه شئ! خاص هغه لره دي پیدا کول او حکم کول، ډېر برکت والا دی الله چې رب العلمین دی

۵۵:۷ - تاسو خپل رب وبلئ په عاجزۍ سره او په پټه سره، بېشکه هغه له حد نه تېرېدونکي نه خوښوي

۵٦:۷ - او تاسو په ځمکه کې ورانی مه کوئ، د هغې له اصلاح نه پس، او تاسو هغه (الله) رابلئ په وېرې سره او په طمع سره، بېشکه د الله رحمت نېکي کوونکو ته ډېر نژدې دی

۵۷:۷ - او دی همغه ذات دی چې هواگانې لېږي، چې د هغه له رحمت نه وړاندې زېری ورکوونکې وي، تر دې چې کله دا (هواگانې) درنې ورېځې راپورته کړي (، نو) مونږ هغه مړ ښار ته روانوو، نو مونږ په دې سره اوبه نازلوو، نو په هغو سره هر قسمه مېوې راوباسو، همدارنگه به مونږ مړي راوباسو، د دې لپاره چې تاسو نصیحت ومنئ

۵۸:۷ - او پاکیزه ښار، د هغې زرغونه د خپل رب په حکم سره راوځي او هغه (ځمکه) چې خرابه (ښوره) وي (د هغې زرغونه) نه راوځي مگر ناقصه، همدارنگه مونږ ایتونه بیا، بیا بیانوو د هغه قوم لپاره چې شکر وباسي

۵۹:۷ - یقینًا یقینًا مونږ نوح خپل قوم ته لېږلی و، نو هغه وویل: ای زما قومه! تاسو د الله عبادت کوئ، تاسو لپاره له هغه نه سِوا (بل) هېڅ برحق معبود نشته، بېشکه زه په تاسو د لویې ورځې له عذاب نه وېرېږم

٦۰:۷ - د هغه د قوم سردارانو وویل: بېشکه مونږ تا لازمًا په ښکاره گمراهۍ کې وینو

٦۱:۷ - هغه وویل: ای زما قومه! په ما کې هېڅ گمراهي نشته او لېکن زه د رب العلمین رسول یم

٦۲:۷ - زه تاسو ته د خپل رب پېغامونه دررسوم او ستاسو خیرخواهي کوم او زه د الله له جانبه په هغه څه پوهېږم چې تاسو پرې نه پوهېږئ

۶۳:۷ - ایا تاسو په دې تعجب کوئ چې تاسو ته د خپل رب له جانبه نصیحت راغی په داسې سړي چې له همې ستاسو څخه دی، د دې لپاره چې تاسو ووېروي او د دې لپاره چې تاسو پرهېزګاره شئ او د دې لپاره چې په تاسو رحم وکړی شي

۶۴:۷ - نو هغوی دا دروغژن وګاڼه، نو مونږ هغه ته او هغو کسانو ته چې له ده سره په کشتۍ کې وو، نجات ورکړ او هغه کسان مو غرق کړل چې زمونږ ایتونه یې دروغ ګڼلي وو، بېشکه هغوی ړانده خلق وو

۶۵:۷ - او (مونږ لېږلی و) عاد (قوم) ته د هغوی ورور هود، هغه وویل: ای زما قومه! تاسو د الله عبادت کوئ، تاسو لپاره له هغه نه سِوا (بل) هېڅ برحق معبود نشته، ایا نو تاسو نه وېرېږئ!

۶۶:۷ - د هغه د قوم کافرو سردارانو وویل: بېشکه مونږ خامخا تا په بېوقوفۍ کې وینو او بېشکه مونږ خامخا په تا ګمان کوو له دروغجنو څخه

۶۷:۷ - هغه وویل: ای زما قومه! په ما کې هېڅ بېوقوفي نشته او لېکن زه د رب العلمین رسول یم

۶۸:۷ - زه تاسو ته د خپل رب پیغامونه دررسوم او زه ستاسو لپاره خیرخواه، امانت دار یم

۶۹:۷ - ایا تاسو په دې تعجب کوئ چې تاسو ته د خپل رب له جانبه نصیحت راغی په داسې سړي باندې چې له همې ستاسو څخه دی، د دې لپاره چې تاسو ووېروي، او تاسو هغه وخت راياد کړئ کله چې یې تاسو له نوح نه پس خلیفګان (ځای ناستي) جوړ کړئ او تاسو ته یې په تخلیق کې زیات فراخ والی درکړ، نو تاسو د الله نعمتونه یادوئ، د دې لپاره چې تاسو کامیاب شئ

۷۰:۷ - هغوی وویل: ایا ته د دې لپاره مونږ ته راغلی یې چې مونږ د یو الله عبادت وکړو او هغه معبودان پرېږدو چې زمونږ پلرونو یې عبادت کاوه، نو هغه (عذاب) راوله چې تهٔ مونږ په هغه سره وېروې، که چېرې ته له رښتینو څخه یې

۷۱:۷ - هغه وویل: یقینًا پر تاسو باندې د خپل رب له جانبه عذاب او غضب ثابت شو، ایا تاسو زما سره په هغو نومونو کې جګړه کوئ چې هغه تاسو پخپله او ستاسو پلرونو نومولي دي، الله د هغو په باره کې هېڅ دلیل نه دی نازل کړی، نو تاسو انتظار کوئ، بېشکه زه تاسو سره له انتظار کوونکو څنې یم

۷۲:۷ - نو مونږ هغه (هود) ته او هغو کسانو ته چې له ده سره یې ایمان راوړی و، په خپل رحمت سره نجات ورکړ او د هغو کسانو جرړه (بېخ) مو غوڅه کړه چا چې زمونږ ایتونه دروغ ګڼلي وو او هغوی له سره مومنان نه وو

۷۳:۷ - او ثمودیانو ته مو د هغوی ورور صالح (لېږلی و)، هغه وویل: ای زما قومه! تاسو د الله

عبادت کوئ، تاسو لپاره له هغه نه سِوا (بل) هېڅ حق معبود نشته، يقينًا تاسو ته د خپل رب له جانبه ښکاره معجزه راغلې ده.، دا د الله اوښه ده ستاسو لپاره، چې نښه ده، نو تاسو دا پرېږدئ چې د الله په ځمکه کې خوراك کوي او دې ته تکليف مه رسوئ (گنې) نو تاسو لره به ډېر دردوونکی عذاب ونيسي

۷۴:۷ - او تاسو هغه وخت ياد کړئ چې هغه (الله) تاسو له عاديانو نه پس خليفگان (ځای ناستي، نايبان) جوړ کړئ او تاسو ته يې په ځمکه کې ځای درکړ، چې تاسو د دې (ځمکې) په نرمو هوارو ځايونو کې هسکې ماڼۍ جوړوئ او تاسو غرونه د کورونو لپاره توږئ (کنئ)، نو تاسو د الله نعمتونه ياد کړئ او په ځمکه کې ورانی کوونکي مه گرځئ، چې فساديان شئ

۷۵:۷ - د هغه په قوم کې تکبر کوونکو مشرانو هغو کسانو ته وويل چې کمزوري کړی شوي وو، هغه چا ته چې له دوی څخه يې ايمان راوړی و: ايا تاسو پوهېږئ چې بېشکه صالح د خپل رب له جانبه رالېږل شوی (رسول) دی؟ هغو (کمزورو) وويل: بېشکه مونږ په هغه څه ايمان لرونکي يو چې په هغه سره هغه (صالح) رالېږل شوی دی

۷٦:۷ - تکبر کوونکو کسانو وويل: بېشکه مونږ په هغه څه چې تاسو پرې ايمان راوړی دی، کفرکوونکي يو

۷۷:۷ - نو هغوی د اوښې پړکي پرې کړل او د خپل رب له حکم نه يې سرکشي وکړه او ويې ويل: ای صالحه! پر مونږ راوله هغه (عذاب) چې ته مونږ په هغه سره وېروې، که چېرې ته له رسولانو څخه يې

۷۸:۷ - نو دوی سختې زلزلې ونيول، نو شول دوی په خپلو کورونوکې پړمخې مړه پراته

۷۹:۷ - نو هغه له دوی نه وگرځېده، او ويې ويل: ای زما قومه! يقينًا يقينًا ما تاسو ته د خپل رب پيغام دررساوه او ستاسو خيرخواهي مې وکړه او لېکن تاسو نصيحت (خيرخواهي) کوونکي نه خوښوئ

۸۰:۷ - او (لېږلی و مونږ) لوط کله چې هغه خپل قوم ته وويل: ايا تاسو داسې بدکار کوئ چې په مخلوقاتو کې هېڅ يو کس له تاسو نه هغه (بدکار) ته رومبی شوی نه دی

۸۱:۷ - بېشکه تاسو د شهوت (پوره کولو) لپاره سړيو ته ورځئ، په دې حال کې چې له ښځو بېلېږئ، بلکې تاسو له حد نه تېرېدونکی قوم يئ

۸۲:۷ - او د هغه د قوم (بل) جواب نه و سِوا له دې نه چې دا خلق له خپل کلي نه وباسئ، بېشکه دوی داسې خلق دی چې ځان ډېر پاك ساتي

۸۳:۷ - نو مونږ هغه ته او د هغه خاندان ته نجات ورکړ؛ د هغه له ښځې نه سِوا، هغه په پاتې

کېدونکو کې وه

۸۴:۷ - او مونږ پر هغوی باندې ناشنا باران ووراوه، نو ته وګوره چې د مجرمانو انجام څنګه و؟

۸۵:۷ - او (لېږلی و مونږ) مدین ته د هغوی ورور شعیب، هغه وویل: ای زما قومه! تاسو د الله عبادت کوئ، تاسو لپاره له هغه نه سِوا (بل) هېڅ حق معبود نشته، یقینًا تاسو ته د خپل رب له جانبه ښکاره دلیل راغلی دی، نو تاسو پېمانه او تول پوره کوئ او خلقو ته د هغوی شیان کم مه ورکوئ او په ځمکه کې ورانی مه کوئ، د هغې له اصلاح نه پس، دا تاسو لپاره ډېر غوره دي، که چېرې تاسو ایمان راوړونکي یئ

۸٦:۷ - او تاسو په هره لار کې مه کښېنئ، چې تاسو (خلق) وېروئ او تاسو د الله له لارې نه هغه څوك منع کوئ چې په هغه (الله) ایمان راوړي او تاسو په هغې کې کوږوالی لټوئ او تاسو هغه وخت یاد کړئ کله چې تاسو ډېر لږ وئ، نو هغهٔ تاسو ډېر کړئ او تاسو وګورئ چې د ورانکارو انجام څنګه و؟

۸۷:۷ - او که په تاسو کې یوه ډله داسې ده چې په هغه شي یې ایمان راوړی دی چې زه ورسره رالېږل شوی یم او بلې ډلې ایمان نه دی راوړی، نو تاسو صبر کوئ تر دې چې الله زمونږ په مینځ کې فیصله وکړي او هغه تر ټولو بهتر فیصله کوونکی دی

۸۸:۷ - د هغه له قوم څخه کبرجنو مشرانو وویل: ای شعیبه! خامخا لازمًا به مونږ تا او هغه کسان چې له تا سره یې ایمان راوړی دی؛ له خپل کلي نه وباسو، یا به تاسو خامخا لازمًا زمونږ دین ته راګرځئ، هغه وویل: ایا اګر که مونږ (دا) بدګڼونکي یو

۸۹:۷ - یقینًا مونږ به په الله باندې سخت دروغ تړلي وي که مونږ ستاسو دین ته در وګرځو وروسته له دې چې مونږ ته الله له هغه نه خلاصی راکړ، او مونږ ته دا حق نشته چې هغه ته وګرځو مګر دا چې زمونږ رب الله (څه) وغواړي، زمونږ رب هر شی په (خپل) علم کې راګېر کړی دی، خاص په الله باندې مونږ توکل کړی دی، ای زمونږه ربه! ته زمونږ په مینځ کې او زمونږ د قوم په مینځ کې په حقه سره فیصله وکړه او ته تر ټولو غوره فیصله کوونکی یې

۹۰:۷ - او د هغه له قومه کافرو مشرانو وویل: یقینًا که چېرې تاسو د شعیب تابعداري وکړه، بېشکه تاسو به په دغه وخت کې خامخا له تاوانیانو څخه یئ

۹۱:۷ - نو دوی زلزلې ونیول، نو دوی شول په خپلو کورونو کې پرمخې (مړه) پراته

۹۲:۷ - هغه کسان چې شعیب یې دروغجن ګڼلی و، (داسې هلاك شول) لکه چې دوی په دغو (کورونو) کې بېخي اباد نه وو، هغه کسان چې شعیب یې دورغجن ګڼلی و، هم هغوی تاوانیان

۹۹

۹۳:۷ - نو دی له هغوی نه وګرځېده او ويې ويل: ای زما قومه! يقينًا يقينًا ما تاسو ته د خپل رب پېغامونه دررسول او ستاسو خيرخواهي مې وکړه، نو زه څنګه په کافر قوم باندې افسوس وکړم

۹۴:۷ - او مونږه په هېڅ یو کلي کې هېڅ یو نبي نه و لېږلی مګر دا چې مونږ به د هغه (کلي) اوسېدونکي په سختۍ او تکليف کې ونيول، د دې لپاره چې دوی (الله ته) زاري وکړي

۹۵:۷ - بيا مونږ د بدۍ په ځای خوشحالي په بدل کې ورکړه، تر دې چې دوی ډېر شول او ويې ويل: يقينًا زمونږ پلرونو ته (هم) زمونږ په شان تکليف او خوشحالي رسېدلې وه، نو مونږه دوی ناڅاپه راونيول او دوی شعور نه لاره

۹٦:۷ - او که چېرې د کليو اوسېدونکو ايمان راوړی وَی او پرهېزګاره شوي وَی (، نو) مونږ به خامخا په دوي باندې د اسمان او ځمکې نه برکتونه پرانستلي وی او لېکن دوی تکذيب وکړ، نو مونږ دوی د هغو عملونو په سبب ونيول چې دوی کول

۹۷:۷ - ايا د کليو اوسېدونکي له دې نه بې غمه شوي دي چې په دوی باندې زمونږ عذاب د شپې راشي، په داسې حال کې چې دوی ويده وي

۹۸:۷ - ايا د کليو اوسېدونکي له دې نه بې غمه شوي دي چې په دوی باندې زمونږ عذاب په څاښت کې راشي، په داسې حال کې چې دوی لوبې کوي

۹۹:۷ - ايا نو دوی د الله له مکر (پټ تدبير) نه بې وېرې دي، پس د الله له مکر نه يواځې تاواني خلق بې وېرې کېږي

۱۰۰:۷ - او ايا څرګنده شوې نه ده هغو کسانو ته چې د ځمکې له (مخکينو) اوسېدونکو نه وروسته دوی د هغې وارثان ګرځي دا چې که مونږ غوښتلی (، نو) مونږ به دوی ته د دوی د ګناهونو په وجه سزا ورکړې وَی او مونږ به د دوی په زړونو باندې مهر ولګوو، بيا به دوی (هېڅ) نه ويني

۱۰۱:۷ - دغه کلي دي چې مونږ يې تا ته څه خبرونه بيانوو، او يقينًا يقينًا دوی ته خپلو رسولانو ښکاره معجزې راوړې وې، نو دوی کله هم داسې نه وو چې په هغه څه ايمان راوړي د څه چې يې مخکې تکذيب کړی و، همدارنګه الله د کافرانو په زړونو باندې مهر لګوي

۱۰۲:۷ - او مونږ په دوی کې د زياترو هېڅ وعده نه ده موندلې (چې دوی پرې وفا کړې وي) او بېشکه مونږ د دوی زياتره لازمًا نافرمان (وعده ماتوونکي) موندلي دي

۱۰۳:۷ - بيا وروسته له دوی نه مونږ فرعون او د هغه سردارانو ته موسٰی ولېږه له خپلو ايتونو (معجزو) سره، نو هغوی په دې (ايتونو) سره ظلم وکړ، نو ته وګوره د ورانکارو انجام څنګه شو؟

۱۰۴:۷ - او موسیٰ وویل: ای فرعونه! بېشکه زه د رب العلمین له جانبه رسول یم

۱۰۵:۷ - ټینګ ولاړ (یم) په دې خبره چې نه وایم پر الله مګر حقه خبره، یقینًا ما تاسو ته د خپل رب له جانبه ښکاره معجزه راوړې ده، نو ته زما سره بني اسرائیل خوشې کړه (ولېږه)

۱۰۶:۷ - وویل (فرعون) که چېرې تا کومه نښه راوړې وي، نو هغه راوړاندې کړه، که چېرې ته له رښتینو څخه یې

۱۰۷:۷ - نو هغه خپله اَمسا وغورځوله، نو ناڅاپه هغه ښکاره اژدها وه

۱۰۸:۷ - او خپل لاس یې راوښکه، نو ناڅاپه هغه د کتونکو لپاره تك سپین و

۱۰۹:۷ - د فرعون د قوم مشرانو وویل: بېشکه دا خامخا ډېر پوه جادوګر دی

۱۱۰:۷ - دا غواړي چې تاسو له خپلې ځمکې نه وباسي، نو تاسو څه حکم کوئ

۱۱۱:۷ - (خلقو) وویل: ته ده ته او د ده ورور ته مهلت ورکړه او په ښارونو کې راټولوونکي ولېږه

۱۱۲:۷ - چې تا ته هر ښه پوه جادوګر راولي

۱۱۳:۷ - او جادوګر فرعون ته راغلل، ویې ویل: بېشکه زمونږ لپاره به لازمًا اجرت وي که چېرې همدا مونږ غلبه موندونکي شو

۱۱۴:۷ - (فرعون) وویل: هو! یقینًا لازمًا تاسو به له مقربینو څخه یئ

۱۱۵:۷ - (جادوګرو) وویل: ای موسیٰ! یا ته (امسا) وغورځوه او یا به همدا مونږ (خپلو رسیو او امساګانو لره) غورځوونکي یو

۱۱۶:۷ - ویې ویل: تاسو یې وغورځوئ، نو کله چې هغوی وغورځولې (، نو) د خلقو پر سترګو یې جادو وکړ او هغوی یې ښه ووېرول او ډېر لوی جادو یې وکړ

۱۱۷:۷ - او مونږ موسیٰ ته وحي وکړه چې خپله امسا وغورځوه، نو ناڅاپه هغې هغه څه ښوی تېرول چې هغوی به جوړول

۱۱۸:۷ - نو حق ثابت شو او هغه څه باطل شول چې هغوی به کول

۱۱۹:۷ - نو دوی (ساحران) په دغه ځای کې مغلوب شول او دوی ذلیله سپك وګرځېدل

۱۲۰:۷ - او (جادوګر) وغورځول شول، په دې حال کې چې سجده کوونکي وو

۱۲۱:۷ - ویې ویل: مونږ په رب العلمین ایمان راوړ

۱۲۲:۷ - د موسیٰ او د هارون په رب

۱۲۳:۷ - فرعون وویل: تاسو په ده ایمان راوړ مخکې له دې نه چې زه تاسو ته اجازت درکړم،

بېشکه دا لازمًا يو مکر (سازش) دی چې تاسو په دې ښار کې (دا) مکر کړی دی، د دې لپاره چې تاسو له دې (ښار) نه د هغه اوسېدونکي وباسئ، نو ژر به تاسو پوه شئ

۱۲۴:۷ - خامخا لازمًا به زه ستاسو لاسونه او ستاسو پښې ادلې بدلې غوڅې کړم، بیا به خامخا لازمًا تاسو ټول په دار کړم

۱۲۵:۷ - وويل (جادوګرو): بېشکه مونږ د خپل رب په طرف بېرته ورتلونکي يو

۱۲٦:۷ - او ته بدې نه ګڼې زمونږ نه (هېڅ عمل) سوا له دې نه چې مونږ د خپل رب په ایتونو ایمان راوړی دی، کله چې دا (ایتونه) مونږ ته راغلل، ای زمونږه ربه! ته پر مونږ باندې صبر راتوی کړه او مونږ ته وفات راکړه، په داسې حال کې چې مسلمانان يو

۱۲۷:۷ - او د فرعون د قوم مشرانو (فرعون ته) وويل: ايا ته موسٰی او د هغه قوم د دې لپاره (ازاد) پرېږدې چې په ځمکه کې ورانی وکړي او تا او ستا معبودان پرېږدي، وويل (فرعون): ژر به مونږ د دوی زامن ووژنو او د دوی ښځې (جينکۍ) به ژوندۍ پرېږدو او بېشکه مونږ د دوی له پاسه زوروَر يو

۱۲۸:۷ - موسٰی خپل قوم ته وويل: تاسو له الله نه مدد وغواړئ او صبر کوئ، بېشکه ځمکه د الله لپاره ده، هغه په خپلو بنده ګانو کې هغه څوك د دې وارث ګرځوي چې يې وغواړي او ښه انجام د پرهېزګارانو لپاره دی

۱۲۹:۷ - (بني اسرائيلو) وويل: مونږ ته تکلیف رسول شوی دی، مخکې له دې چې ته مونږ ته راشې او وروسته له دې چې ته مونږ ته راغلې. (موسٰی) وويل: امېد دی چې ستاسو رب به ستاسو دښمن هلاك کړي او تاسو به په ځمکه کې خلیفګان (ځای ناستي) جوړ کړي، بیا به هغه ګوري چې تاسو څنګه عمل کوئ؟

۱۳۰:۷ - اويقينًا يقينًا مونږه فرعونيان په وچکالۍ سره او د ميوو په کم والي سره نيولي وو، د دې لپاره چې دوی نصيحت ومني

۱۳۱:۷ - نو کله چې به په دوی خوشحالي راغله، ويل به يې: هم زمونږ لپاره دا ده او که چېرې په دوی به څه تکلیف راغی، نو بدفالي به يې په موسٰی او په هغه چا چې له هغه سره وو؛ نيوله، خبردار! بېشکه خبره همدا ده چې د دوی بدفالي له الله سره ده او لېکن د دوی زياتره نه پوهېږي

۱۳۲:۷ - او دوی به (موسٰی ته) ويل: ته چې مونږ ته هر قسمه نښه راوړې؛ د دې لپاره چې په هغې سره ته په مونږه جادو وکړې، نو مونږه په تا باندې کله هم ايمان راوړونکي نه يو

۱۳۳:۷ - نو مونږه په دوی باندې (وار په وار) طوفان، او ملخان او سپږې او چيندخې او وينه راولېږله، چې بېلې بېلې نښې وې، بیا هم هغوی تکبر وکړ او هغوی مجرم قوم وو

۱۳۴:۷ - او کله چې په دوی باندې عذاب راپرېوت (، نو) ويې ويل: ای موسىٰ: ته زمونږ لپاره له خپل رب نه دعا وغواړه په هغه څه سره چې له تا سره يې وعده کړې ده، يقينًا که ته زمونږ نه عذاب لرې کړې، مونږ به خامخا لازمًا په تا ايمان راوړو او خامخا لازمًا به له تا سره بني اسرائيل ولېږو (خوشې کړو)

۱۳۵:۷ - نو کله چې به مونږ له دوی نه عذاب لرې کړ تر هغې مودې پورې چې دوی هغې ته رسېدونکي وو، ناڅاپه به دوی وعده ماته کړه

۱۳۶:۷ - نو مونږ له دوی نه انتقام واخيست، پس په سمندر کې مو غرق کړل، ځکه چې يقينًا هغوی زمونږ د ايتونو تکذيب کړی و او له هغو نه غافله وو

۱۳۷:۷ - او مونږه هغه خلق چې ضعيفه کولی شول د ځمکې د مشرقي اړخونو او د هغې د مغربي اړخونو وارثان وګرځول، هغه (اړخونه) چې مونږ په هغو کې برکت اچولی دی، او ستا د رب ډېره ښه کلمه په بني اسرائيلو باندې تمامه شوه، د دوی د صبر کولو په سبب او مونږه تباه کړې هغه (ودانۍ) چې فرعون او د هغه قوم به جوړولې او هغه چې دوی به لوړولې

۱۳۸:۷ - او مونږه بني اسرائيل په سمندر پورې اېستل، نو دوی په داسې قوم راغلل چې د خپلو بتانو په عبادت قايم وو، وويل (بني اسرائيلو:) ای موسىٰ! مونږ لپاره (هم) داسې معبود جوړ کړه، لکه څنګه چې د دوی لپاره معبودان دي، (موسىٰ) وويل: بېشکه تاسو داسې قوم يئ چې جهالت کوئ

۱۳۹:۷ - بېشکه دا خلق (چې دي) تباه دی هغه (دين) چې دوی په هغه کې دي او باطل دي هغه عملونه چې دوی يې کوي

۱۴۰:۷ - (موسىٰ) وويل: ايا زه تاسو ته له الله نه سِوا معبود ولټوم، حال دا چې هغه (الله) تاسو په عالمونو باندې غوره کړي يئ

۱۴۱:۷ - او کله چې مونږ تاسو ته له فرعونيانو نه نجات درکړ، چې تاسو ته به يې سخت عذاب دررساوه، چې ستاسو زامن به يې وژل او ستاسو ښځې (لوڼه) به يې ژوندۍ پرېښودلې او په دې کې ستاسو د رب له جانبه ډېر لوی ازمېښت و

۱۴۲:۷ - او مونږ له موسىٰ سره د دېرشو شپو وعده وکړه او مونږ هغه په لسو (نورو) سره پوره کړې، نو ستا د رب ټاکلې موده څلوېښت ورځې پوره شوه، او موسىٰ خپل ورور هارون ته وويل: ته زما په قوم کې زما نايب جوړ شه او اصلاح کوه او د ورانکارو د لارې پيروي مه کوه

۱۴۳:۷ - او کله چې موسىٰ زمونږ ټاکلي وخت ته راغی او خپل رب يې ورسره خبرې وکړې، ويې ويل: ای زما ربه! ته ما ته (خپل ځان) وښيه چې زه تا ووينم، وويل: (رب:) ته به ما (په دنيا کې) له سره ونه وينې او ليکن ته غر ته وګوره، نو که چېرې هغه په خپل ځای ثابت پاتې شو، نو ژر ده چې

ته به ما ووینې، نو کله چې خپل رب یې غر ته تجلي وکړه (، نو) هغه یې ذرې ذرې وګرځاوه او موسیٰ بېخوده پرېوتلو، نو کله چې په خود شو، ویې ویل: زه ستا پاکي بیانوم، ما تا ته توبه وښکله او زه تر ټولو اول ایمان راوړونکی یم

۱۴۴:۷ - وویل: (الله:) ای موسیٰ! بېشکه ما تا ته په ټولو خلقو باندې په خپلو پېغامونو سره او په خپل کلام سره غوره والی درکړی دی، نو ته هغه څه ونیسه چې ما تا ته درکړي دي، او له شکر کوونکو څخه شه

۱۴۵:۷ - او مونږ د هغه لپاره په تختیو کې له هر شي نه نصیحت او د هر شي تفصیل ولیکه، نو ته دا په قوت سره ونیسه او خپل قوم ته حکم وکړه چې د دې په غوره (احکامو) عمل وکړي، ژر به زه تاسو ته د فاسقانو استوګنه وښیم

۱۴۶:۷ - عنقریب به زه له خپلو ایتونو نه هغه کسان واړوم چې په ځمکه کې ناحقه تکبر کوي او که دوی هره نښه ووینې (، بیا هم) په هغې ایمان نه راوړي او که چېرې دوی د هدایت لار ووینې (، نو) هغه خپله لار نه غوره کوي، او که چېرې د ګمراهۍ لار ووینې (، نو) هغه خپله لار ګرځوي، دا ځکه چې یقینًا دوی زمونږ د ایتونو تکذیب کړی دی، او دوی له هغو نه غافله وو

۱۴۷:۷ - او هغه کسان چې زمونږ د ایتونو او د اخرت د ملاقات تکذیب یې کړی دی، د هغوی عملونه برباد شول، دوی ته به بدله نه ورکول کېږي مګر د هغو کارونو چې دوی به کول

۱۴۸:۷ - او د موسیٰ قوم د هغه (له تلو) نه پس د خپلو کالیو (زیوراتو) نه مجسم سخی جوړکړ چې د هغه لپاره د سخي اواز و، ایا دوی نه دي کتلي چې بېشکه دا (مجسم سخی) نه له دوی سره خبرې کولی شي او نه دوی ته څه لار ښودلی شي، دوی دا (معبود) جوړ کړی دی او دوی ظالمان وو

۱۴۹:۷ - او کله چې دوی پښېمانه شول او پوه شول چې یقینًا دوی ګمراه شوي دي، ویې ویل: که چېرې زمونږ رب پر مونږ رحم ونه کړي او مونږ ته بخښنه ونه کړي (، نو) مونږ به خامخا ضرور له تاوانیانو څخه شو

۱۵۰:۷ - او کله چې موسیٰ خپل قوم ته بېرته راغی، چې ډېر غصّه، افسوس کوونکی و، ویې ویل: بد دی هغه چې له ما نه وروسته تاسو زما ځای ناستی کړی دی، ایا تاسو د خپل رب له حکم نه تلوار وکړ؟ او تختی یې وغورځولې او د خپل ورور سر یې راونېوه، چې هغه یې خپل ځان ته راښکه، هغه وویل: ای زما د مور زویه! بېشکه قوم زه کمزوری کړی وم او نژدې وو چې ما ووژني، نو ته په ما باندې دښمنان مه خوشحالوه او ما له ظالم قوم سره مه ملګری کوه

۱۵۱:۷ - (موسیٰ) وویل: ای زما ربه! ته ما ته بخښنه وکړه او زما ورور ته او مونږه په خپل رحمت کې داخل کړه او ته تر ټولو لوی مهربان یې

۱۵۲:۷ - بېشکه هغه کسان چې سخی يې (معبود) نيولی دی، ژر به دوی ته د خپل رب له جانبه غضب ورسيږي او په دنيايي ژوند کې ذلت او همدارنګه مونږ بهتان تړونکو ته سزا ورکوو

۱۵۳:۷ - او هغه کسان چې بد کارونه يې کړي دي، بيا يې له هغو نه وروسته توبه وېستلې ده او ايمان يې راوړی دی، بېشکه ستا رب له دې (توبې) نه پس خامخا ډېر بخښونکی، بې حده مهربان دی

۱۵۴:۷ - او کله چې د موسیٰ غصه سړه شوه، تختۍ يې راواخيستلې او د هغو په ليك کې هدايت او رحمت و د هغو کسانو لپاره چې هغوی يواځې له خپل رب نه وېرېږي

۱۵۵:۷ - او موسیٰ له خپل قوم نه اويا کسان زمونږ د مقرر کړي وخت لپاره غوره کړل، نو کله چې هغوی زلزلې ونيول، وويل (موسیٰ:) ای زما ربه! که چېرې تا غوښتلی، تا به دوی مخکې هلاك کړي و او زه (هم)، ايا ته مونږه د هغه کار په وجه هلاکوې چې پر مونږ کې بېوقوفو کړی دی؟ نه دي دا مګر ستا ازمايل، ته په دې سره ګمراه کوې چا لره چې ته وغواړې او په نېغه لار روانوې چا لره چې وغواړې، ته زمونږ کارساز يې، نو ته مونږ ته بخښنه وکړه او پر مونږ رحم وکړه او ته تر ټولو غوره بخښونکی يې

۱۵۶:۷ - او ته زمونږ لپاره په دې دنيا کې ښېګڼه وليکه او په اخرت کې هم، بېشکه مونږه تا ته رجوع کړې ده، وويل (الله:) زه خپل عذاب رسوم چا ته چې وغواړم او زما رحمت هر شي لره راګېر کړی دی، نو ژر به زه وليکم دا (رحمت) د هغو کسانو لپاره چې پرهېزګاره دي او زکات ادا کوي او هغه کسان چې هغوی زمونږ په ايتونو ايمان لري

۱۵۷:۷ - هغه کسان چې د اُمي رسول (او) نبي پيروي کوي هغه چې دوی يې له خپل ځان سره په تورات او انجيل کې ليکلی مومي، دوی ته د نېکۍ حکم کوي او دوی له بدۍ نه منع کوي او دوی ته پاکيزه څيزونه حلالوي او په دوی باندې خبيث څيزونه حراموي او له دوی نه د دوی درانه بارونه لرې کوي او هغه قيدونه چې په دوی وو، نو هغه کسان چې په ده يې ايمان راوړ او د ده ادب يې وکړ او د ده مدد يې وکړ او د هغې رڼا پيروي يې وکړه چې له ده سره نازله کړی شوې ده، همدغه کسان کامياب دي

۱۵۸:۷ - ته ووايه: ای خلقو! بېشکه زه ستاسو د ټولو په طرف د الله (رالېږل شوی) رسول يم، هغه (الله) چې خاص د هغه لپاره د اسمانونو او ځمکې بادشاهي ده، نشته دی هېڅ حق معبود مګر هغه دی، ژوندي کول کوي او مرګ ورکوي، نو تاسو په الله او د هغه په رسول ايمان راوړئ چې نبي دی، امي دی، هغه چې په الله او د هغه په کلماتو ايمان لري او تاسو د هغه پيروي وکړئ، د دې لپاره چې تاسو هدايت ومومئ

۱۵۹:۷ - او د موسیٰ په قوم کې يو ډله ده چې په حقه سره لار ښيي او په دې (حق) سره انصاف

کوي

۱۶۰:۷ - او مونږ دغه بني اسرائیل ېېل ېېل کړل دولس قبیلې، ډلې ډلې او مونږ موسیٰ ته وحي وکړه، کله چې له هغه نه خپل قوم اوبه وغوښتې، چې ته په خپلې امسا سره کاڼي ووهه، نو له هغه نه دولس چینې جاري شوې، تحقیق ټولو خلقو خپل خپل گودر وپېژنده او مونږه پر هغوی باندې وریځ سیوری کړه او پر هغوی باندې مو ''مَنْ'' او ''سَلْوٰی'' نازل کړل، تاسو د هغو پاکیزه څیزونو نه خورئ چې مونږ تاسو ته درکړي دي او دوی پر مونږ ظلم نه و کړی او لېکن دوی خاص په خپلو ځانونو ظلم کاوه

۱۶۱:۷ - او کله چې دوی ته وویل شول چې تاسو په دې کلي کې اوسئ او له دې (کلي) نه خوراك کوئ کوم ځای چې مو خوښه شي، او تاسو وایئ: وبخښه (زمونږ گناهونه) او په دروازه کې سجده کوونکي داخل شئ، مونږ به ستاسو گناهونه وبخښو، ژر به مونږ نېکي کوونکو ته نور زیات (ثواب) ورکړو

۱۶۲:۷ - نو هغو کسانو چې ظلم یې کړی و، هغه خبره چې دوی ته ویل شوې وه په بل شان بدله کړه، نو مونږه پر هغوی باندې له اسمان نه عذاب راولېږه، په سبب د هغه ظلم چې دوی به کاوه

۱۶۳:۷ - او ته له دوی نه د هغه کلي په باره کې تپوس وکړه چې د سمندر په غاړه و، کله چې به دوی د خالي په ورځ له حد نه تېرېدل، کله چې به دوی ته د دوی د خالي په ورځ خپل کبان ښکاره راتلل، او په هغې ورځ کې چې دوی به په خالي کې نه وو داخل (، نو) دوی ته به نه راتلل، همدارنگه مونږه دوی ازمایو، په سبب د هغې نافرمانۍ چې دوی به کوله

۱۶۴:۷ - او کله چې په دوی کې یوې ډلې وویل: ولې تاسو داسې قوم ته نصیحت کوئ چې الله د هغه هلاکوونکی دی، یا هغه ته ډېر سخت عذاب ورکوونکی دی؟ هغوی وویل: خپل رب ته د عذر وړاندې کولو لپاره او د دې لپاره چې دوی پرهېزگاره شي

۱۶۵:۷ - نو کله چې دوی هغه (دین) پرېښوده چې په هغه سره ورته نصیحت شوی و، مونږ هغو کسانو ته نجات ورکړ چې له بدۍ نه یې منع کوله او په ډېر سخت عذاب سره مو هغه کسان راونیول چې ظلم یې کړی و، په سبب د هغې نافرمانۍ چې دوی به کوله

۱۶۶:۷ - نو کله چې دوی سرکشي وکړه له هغه څه نه چې ترې منع شوي وو، مونږ دوی ته وویل: تاسو ذلیله شادوگان شئ

۱۶۷:۷ - او کله چې ستا رب اعلان وکړ چې خامخا ضرور به په دوی باندې د قیامت د ورځې پورې داسې څوك مسلط کوي چې دوی ته به سخت عذاب رسوي، بېشکه ستا رب خامخا ډېر تېز عذاب والا دی او بېشکه هغه خامخا ډېر بخښونکی، بې حده مهربان دی

۱٦٨:٧ - او مونږه دوی په ځمکه کې بېل بېل کړل، څو ډلې، ځینې له دوی نه نېکان دي او ځینې له دوی نه راکمه دي، او مونږ دوی په نعمتونو او تکلیفونوسره وازمایل، د دې لپاره چې دوی راوګرځي (الله ته)

۱٦٩:٧ - نو له دوی نه وروسته داسې نالایقه خلق د دوی ځای ناستي شول، چې د کتاب وارثان شول، چې د دې ډېر خسیسې (دنیا) سامان اخلي او (بیا همه) وایي: ژر به مونږ ته بخښنه وشي او که چېرې دوی ته د دې په مثل سامان راشي (، نو) هغه (همه) اخلي، ایا له دوی نه په کتاب کې پخه وعده نه وه اخیستل شوې چې دوی به په الله باندې نه وایي مګر حقه خبره او دوی هغه (احکامه) لوستي وو چې په هغه (کتاب) کې وو، او د اخرت کور د هغو کسانو لپاره ډېر غوره دی چې پرهېزګاره دي، ایا نو تاسو ولې له عقل نه کار نه اخلئ

۱٧٠:٧ - او هغه کسان چې کتاب ښه ټینګ نیسي او لمونځ قایموي، بېشکه مونږ د نېکي کوونکو اجر نه ضایع کوو

۱٧۱:٧ - او کله چې مونږ د دوی له پاسه غر راپورته کړ، ګویا کې هغه سایبان دی، او دوی یقین وکړ چې بېشکه دا په دوی راپرېوتونکی دی، تاسو په قوت سره ونیسئ هغه (تورات) چې مونږ تاسو ته درکړی دی او یاد کړئ هغه څه چې په دې کې دي، د دې لپاره چې تاسوپرهېزګاره شئ

۱٧٢:٧ - او کله چې ستا رب د ادمه له اولادې نه د هغوی له شاګانو نه د هغوی اولاد راواخیست او دوی یې په خپلو ځانونو باندې ګواه جوړ کړل، (او ورته ویې ویل:) ایا زه ستاسو رب نه یمه؟ دوی وویل: ولې نه! مونږ ګواهي وکړه، (دا د دې لپاره) چې تاسو د قیامت په ورځ و (نه) وایئ چې بېشکه مونږه له دې نه غافله وو

۱٧٣:٧ - یا دا و (نه) وایئ چې بېشکه خبره دا ده چې شرك زمونږ پلرونو کړی و مخکې، او مونږ له هغوی نه وروسته (د هغوی) اولاد وو، ایا ته به مونږ په هغه څه سره هلاکوې چې باطل پرستو کړي دي؟

۱٧۴:٧ - او همدارنګه مونږ په تفصیل سره ایتونه بیانوو او د دې لپاره چې دوی راوګرځي (له تقلیده)

۱٧٥:٧ - او ته دوی ته د هغه کس خبر ولوله چې مونږ هغه ته خپل ایتونه ورکړي وو، نو دی له هغو نه ووتلو، نو شیطان د هغه پسې شو، نو له ګمراهانو څخه شو

۱٧٦:٧ - او که چېرې مونږ غوښتلی (، نو) خامخا به مو هغه په دغو (ایتونو) سره پورته کړی و او لېکن هغه ځمکې ته پوخ مایله شو (هغه ځمکې ته مینه وکړه) او د خپل خواهش پیروي یې شروع کړه، نو د هغه مثال د سپي په شان دی، که ته په هغه حمله وکړې، (نو هغه) ژبه راوباسي او تیګاه وهي او که ته یې پرېږدې (بیا همه) ژبه راوباسي او تیګاه وهي، دا د هغو خلقو مثال دی

چې زمونږ د ایتونو تکذیب یې کړی دی، نو ته (دا) قصې بیان کړه، د دې لپاره چې دوی ښه فکر وکړي

۱۷۷:۷ - د مثال له مخې هغه قوم بد دی چې زمونږ د ایتونوتکذیب یې کړی دی او دوی به خاص په خپلو ځانونو ظلم کاوه

۱۷۸:۷ - چا ته چې الله هدایت په نصیب کړي، نو هم هغه هدایت موندونکی دی او څوك چې هغه (الله) یې گمراه کړي، نو همدغه خلق تاوانیان دي

۱۷۹:۷ - او یقینًا یقینًا مونږ د جهنم لپاره ډېر زیات داسې پېریان او انسانان پیدا کړي دي چې د هغوی زړونه شته (خو) په هغو سره هغوی نه پوهېږي او د هغوی سترگې شته (خو) لیدل پرې نه کوي او د هغوی غوږونه شته (خو) اورېدل پرې نه کوي، دغه خلق د څارویو په شان دي، بلکې دوی زیات گمراه دي، همدغه خلق غافله دي

۱۸۰:۷ - او خاص د الله لپاره ترټولو ښکلي نومونه دي، نو تاسو دی په دغو (نومونو) سره بلئ او هغه کسان پرېږدئ چې د هغه (الله) په نومونو کې الحاد (کوږوالی) کوي، ژر به دوی ته د هغو عملونو سزا ورکړی شي چې دوی به کول

۱۸۱:۷ - او له هغو کسانو څخه چې مونږ پیدا کړي دي؟ یوه ډله ده چې په حقه سره نېغه لار ښیي او په دې (حق) سره انصاف کوي

۱۸۲:۷ - او هغه کسان چې زمونږ د ایتونو یې تکذیب کړی دی؛ ژر به مونږ دوی له داسې لوري په تدریج سره راونیسو چې دوی به نه پوهېږي

۱۸۳:۷ - او زه دوی ته مهلت ورکوم، بېشکه زما تدبیر (چل) ډېر مضبوط دی

۱۸۴:۷ - ایا دوی فکر نه دی کړی، چې د دوی په ملگري پورې هېڅ لیونتوب نشته، نه دی هغه مگر یو ښکاره وېروونکی

۱۸۵:۷ - ایا دوی د اسمانونو او ځمکې په سلطنت کې غور نه دی کړی او په هغه کې چې الله څه شی هم پیدا کړی دی او په دې کې چې کېدی شي چې د دوی اجل ډېر نژدې شوی وي، نو له دې (قرآن) نه وروسته به دوی په کومه خبره ایمان راوړي؟

۱۸۶:۷ - هغه څوك چې الله یې گمراه کړي، نو د هغه لپاره هېڅ هدایت ورکوونکی نشته او هغه (الله) دوی په خپلې سرکشۍ کې پرېږدي، په دې حال کې چې سرگردان وي

۱۸۷:۷ - دوی له تا نه د قیامت په باره کې سوال کوي چې د دې (قیامت) پېښېدل کله دي؟ ته ووایه: بېشکه خبره همدا ده چې د هغه علم زما له رب سره دی، په خپل وخت یې نه ظاهروي مگر هغه، دا (پېښه) په اسمانونو او ځمکه کې درنه ده، په تاسو به نه راځي مگر ناڅاپه، دوی له تا

نه (په داسې انداز کې) تپوس کوي ګویا کې ته د ده په باره کې پوره تحقیق ته رسېدلی یې، ته ووایه: بېشکه خبره همدا ده چې د ده علم له الله سره دی او لېکن زیاتره خلق نه پوهېږي

۱۸۸:۷ - ته ووایه: زه د خپل ځان لپاره نه د نفعې مالك یم او نه د نقصان مګر هغه چې الله یې وغواړي او که چېرې زه په غیبو عالم وَی (، نو) ما به خامخا ډېر خیر حاصل کړی و او ما ته به هېڅ تکلیف نه و رارسېدلی، زه نه یم مګر وېروونکی او زېری ورکوونکی د هغه قوم لپاره چې ایمان راوړي

۱۸۹:۷ - همدغه (الله) هغه ذات دی چې تاسو یې له یو ځان نه پیدا کړي یئ او له هغه نه یې د هغه جوړه پیدا کړه، د دې لپاره چې د هغې ترڅنګ ارام او سکون حاصل کړي، بیا کله چې هغه (خپله جوړه) پټه کړه (جماع یې ورسره وکړه، نو) هغه حامله شوه په سپك حمل سره، نو هغه به یې ګرځاوه، نو کله چې درنه شوه، دواړو د له خپل پالونکي الله نه دعا وغوښتله، (چې) که چېرې تا مونږ ته روغ بچی راکړ (، نو) مونږ به خامخا ضرور له شکر کوونکو څخه شو

۱۹۰:۷ - نو کله چې هغه (الله) (نو) دوی ته روغ بچی ورکړ، دوی د هغه (الله) لپاره په هغه څه کې شریکان جوړ کړل چې دوی ته یې ورکړی و، نو الله ډېر اوچت دی له هغو نه چې دوی یې (ورسره) شریکوي

۱۹۱:۷ - ایا دوی (له الله سره) هغه شیان شریکوي چې هېڅ شی نشي پیدا کولی، حال دا چې دوی پخپله پیدا کاوه شي

۱۹۲:۷ - او نه له دوی سره د څه مدد کولو طاقت لري او نه هم له خپلو ځانونو سره مدد کولی شي

۱۹۳:۷ - او که چېرې ته دوی هدایت ته راوبلې، دوی به ستاسو پیروي ونه کړي، ستاسو لپاره برابره ده که تاسو دوی راوبلئ، یا تاسو خاموشه یئ

۱۹۴:۷ - بېشکه هغه خلق چې تاسو یې له الله نه غیر بلئ، (هغوی) ستاسو په شان بنده ګان دي، نو هغوی راوبلئ، پس هغوی دې ستاسو بلنه قبوله کړي، که چېرې تاسو رښتیني یئ

۱۹۵:۷ - ایا د هغوی لپاره پښې دي چې په هغو سره هغوی تلل کوي، یا د هغوی لپاره لاسونه دي چې په هغو سره نیول کوي، یا د هغوی لپاره سترګې دي چې په هغو سره لیدل کوي، یا د هغوی لپاره غوږونه دي چې په هغو سره اورېدل کوي؟ ته ووایه: تاسو خپل شریکان راوبلئ، بیا ما سره چل وکړئ، پس ما ته (هېڅ) مهلت مه راکوئ

۱۹۶:۷ - بېشکه زما مدد کوونکی هغه الله دی چې کتاب یې نازل کړی دی او هغه د نېکانو مدد او ملګرتیا کوي

۱۹۷:۷ - او هغه خلق چې تاسو يې له هغه (الله) نه غير بلئ، دوی ستاسو د مدد کولو هېڅ وَس نه لري او نه د خپلو ځانونو سره مدد کولی شي

۱۹۸:۷ - او که چېرې ته دوی هدايت ته راوبلې (، نو) دوی نه اوري او ته به دوی وينې چې تا ته گوري، په داسې حال کې چې ليدل نه کوي

۱۹۹:۷ - ته معاف کول راونيسه (د عفوه کولو عادت راخپل کړه) او د نېکۍ حکم کوه او له جاهلانو نه مخ وگرځوه

۲۰۰:۷ - او که چېرې د شيطان له طرفه کومه وسوسه تا (په گناه کولو) ورتېز کړي، نو په الله پورې پناه وغواړه، بېشکه هغه ښه اورېدونکی، ښه پوه دی

۲۰۱:۷ - بېشکه هغه کسان چې پرهېزگاره شوي دي؛ کله چې هغوی ته د شيطان له طرف نه څه وسوسه ورسېږي (، نو) دوی (د الله حکم) رایاد کړي، نو ناڅاپه دوی لېدونکي وي

۲۰۲:۷ - او د دوی ورونه دوی لره په گمراهۍ کې راکاږي، بيا دوی هېڅ کمی نه کوي

۲۰۳:۷ - او کله چې ته دوی ته څه نښه رانه وړې، دوی وايي: ولې دې له خپله ځانه غوره نه کړه، ته ووايه: بېشکه خبره همدا ده چې زه د هغه څه پيروي کوم چې ما ته د خپل رب له جانبه وحي کېږي، دا ستاسو د رب له جانبه د پوهنې دلايل دي او هدايت او رحمت دی د هغه قوم لپاره چې ايمان لري

۲۰۴:۷ - او کله چې قرآن لوستل کېږي، نو تاسو هغه ښه اورئ او خاموشه اوسئ، د دې لپاره چې په تاسو رحم وکړی شي

۲۰۵:۷ - او ته خپل رب سبا او بېگاه په خپل زړه کې يادوه په عاجزۍ او وېرې سره او له اوچت اواز نه ټيټ د خبرو (په انداز) کې او له غافلانو څخه مه کېږه

۲۰۶:۷ - بېشکه هغه کسان چې له خپل رب سره دي، هغوی د هغه له عبادت نه تکبر نه کوي او د هغه پاکي بيانوي او خاص هغه ته سجده کوي

## (مدني) غنيمت - الأنفال ۸

۱:۸ - دوی له تا نه د غنيمتونو په باره کې تپوس کوي، ته ووايه: غنيمتونه خاص د الله او د رسول لپاره دي، نو تاسو له الله نه ووېرېږئ او تاسو د خپل مينځي حال اصلاح وکړئ او د الله او د هغه د رسول حکم ومنئ که چېرې تاسو مومنان يئ

۲:۸ - بېشکه خبره همدا ده چې مومنان هغه خلق دي، چې کله الله ياد کړی شي، نو د دوی زړونه ووېرېږي او کله چې دوی ته د هغه (الله) ايتونه تلاوت کړی شي (، نو) دغه (ايتونه) دوی ته

ایمان ورزیات کړي او خاص په خپل رب باندې دوی توکل کوي

۳:۸ - هغه کسان چې لمونځ قایموي او له هغه (مال) نه چې مونږ دوی ته ورکړی دی، څه حصه خرچ کوي

۴:۸ - همدغه خلق په حقه مومنان دي، د دوی لپاره د خپل رب په نېز درجې دي او بخښنه او عزتمن رزق دی

۵:۸ - لکه څنګه چې ته خپل رب له خپله کوره په حقه سره راوېستلی وې، او بېشکه یوه ډله له مومنانو څخه خامخا بدګڼونکې وه (په دې کار ناخوښه وو)

۶:۸ - دوی له تا سره په حقه خبره کې جګړه کوله وروسته له هغه چې ښه ښکاره شوه، ګویاکې دوی مرګ ته بېول کېږي، په داسې حال کې چې دویویني

۷:۸ - او کله چې الله له تاسو سره په دوه ډلو کې د یوې وعده کوله چې بېشکه دا تاسو لپاره ده او تاسو (دا) خوښوله چې بېشکه بې وسلې ډله دې تاسو لپاره شي او الله اراده کوي چې په خپلو کلماتو سره حق ثابت کړي او د کافرانو بېخ غوڅ کړي

۸:۸ - د دې لپاره چې حق څرګند ثابت کړي اوباطل ښکاره باطل کړي (د باطل باطلوالی ښکاره کړي) اګر چې مجرمان (دا) بدې وګڼي

۹:۸ - کله چې تاسو له خپل رب نه مدد غوښتلو، نو هغه ستاسو دعا قبوله کړه چې بېشکه زه مدد کوونکی یم له تاسو سره په زرو ملایکو سره، چې په یو بل پسې به راتلونکي وي

۱۰:۸ - او الله دا (مرسته) نه وه ګرځولې مګر زېری او د دې لپاره چې په دې سره ستاسو زړونه مطمئن شي او مدد یواځې د الله له جانبه دی، بېشکه الله ډېر غالب، ښه حکمت والا دی

۱۱:۸ - کله چې هغه (الله) پر تاسو باندې له خپل طرف نه پرکالي اچوله د امن لپاره، او پر تاسو باندې یې له اسمانه اوبه نازلولې، د دې لپاره چې تاسو په دې سره ښه پاك کړي او له تاسو نه د شیطان پلیتي لرې کړي او د دې لپاره چې ستاسو زړونه مضبوط کړي او په دې سره (ستاسو) قدمونه کلك کړي

۱۲:۸ - کله چې ستا رب ملایکو ته وحي کوله چې بېشکه زه له تاسو سره یم، نو هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی ثابت کړئ، ژر به زه د هغو کسانو په زړونو کې رعب واچوم چې کافران شوي دي، نو تاسو د څټونو له پاسه وهل وکړئ، او تاسو له دوی نه (هر بند او) ټولې ګوتې ووهئ

۱۳:۸ - دا ځکه چې بېشکه دوی د الله او د هغه د رسول مخالفت کړی دی او څوك چې د الله او د هغه د رسول مخالفت کوي، نو یقینًا الله ډېر سخت عذاب وا لا دی

۱۴:۸ - دا (دنیایي سزا ده) نو تاسو دا وڅکئ او دا چې بېشکه د کافرانو لپاره د اور عذاب دی

۱۵:۸ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! کله چې تاسو له کافرانو سره مخامخ شئ، چې یو لښکر وئ، نو تاسو هغوی ته (خپلې) شاګانې مه وراړوئ

۱٦:۸ - او هغه څوك چې دوی ته په دغه ورځ کې خپله شا وراړوي، سوا له هغه نه چې د جنګ لپاره بېرته ورګرځېدونکی وي، یا له (خپلې) ډلې سره یو ځای کېدونکی وي، نویقینًا هغه د الله له جانبه په غضب سره راوګرځېده او د هغه استوګنه جهنم دی او هغه د ورتلو بد ځای دی

۱۷:۸ - نو تاسو هغوی نه دي وژلي او لېکن الله هغوی وژلي دي او تا ویشتل نه دي کړي کله چې تا ویشتل وکړل او لېکن الله (دغه) ویشتل کړي دي او د دې لپاره چې هغه د خپل جانب نه په مومنانو باندې احسان وکړي، ښه احسان، بېشکه الله ښه اورېدونکی، ښه پوه دی

۱۸:۸ - دا (احسان لازم و) او دا چې بېشکه الله د کافرانو چلونو (سازشونو) لره ضعیفه کوونکی دی

۱۹:۸ - که چېرې تاسو فتح غواړئ، نو یقینًا تاسو ته فتح راغله، او که چېرې تاسو (له کفر نه) منع شئ، نو دا تاسو لپاره ډېر غوره دي او که چېرې تاسو راوګرځېدئ (جنګ/کفرته) مونږ به (هم د مومنانو مدد ته) راوګرځو او تاسو ته به ستاسو ډله د هېڅ شي فایده درونه رسولی شي اګر که ډېره لویه هم وي او دا چې بېشکه الله د مومنانو ملګری دی

۲۰:۸ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی! تاسو د الله او د هغه د رسول حکم منئ او له دې (اطاعت) نه مه ګرځئ، په دې حال کې چې تاسو اورئ

۲۱:۸ - او تاسو د هغو خلقو په شان مه کېږئ چې ویل یې: مونږ واورېدل، حال دا چې دوی به نه اورېدل (فایده من اورېدل)

۲۲:۸ - بېشکه د الله په نیز په حیواناتو کې تر ټولو بدتر کاڼه خلق دي، ګونګیان دي، هغه چې له عقل نه کار نه اخلي

۲۳:۸ - او که چېرې الله ته په دوی کې څه خیر (انابت) معلوم وَی (، نو) خامخا به یې دوی ته اورولي وَی او که چېرې دوی ته یې (له انابته بغیر) اورولي وَی، نو دوی به خامخا ګرځېدلي وو، په دې حال کې چې دوي به اعراض کوونکي وو

۲۴:۸ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو د الله او د رسول خبره منئ کله چې دی تاسو د هغه کار لپاره راوبلي چې تاسو ته ژوند درکوي، او پوه شئ چې بېشکه الله د انسان او د هغه د زړه په مینځ کې حایل (رکاوټ) کېږي او دا چې بېشکه خاص د هغه په طرف به تاسو ورجمع کولی شئ

۲۵:۸ - اوتاسو له هغې فتنې نه ځان وساتئ چې په تاسو کې به یواځې خاص ظالمانو ته نه

رسېږي او پوه شئ چې بېشکه الله ډېر سخت عذاب وا لا دی

۲٦:۸ - او تاسو یاد کړئ (هغه وخت) کله چې تاسو ډېر لږ وئ، په ځمکه کې ضعیفه کړی شوي وئ، چې تاسو به وېرېدلئ له دې نه چې خلق به مو په جلتۍ سره وتښتوي، نو هغه تاسو ته ځای درکړ او په خپل مدد سره یې تاسو مضبوط کړئ او تاسو ته یې له پاکېزه څیزونو نه رزق درکړ، د دې لپاره چې تاسو شکر وباسئ

۲۷:۸ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو له الله سره او له رسول سره خیانت مه کوئ او په خپلو امانتونو کې (هم) خیانت مه کوئ، په دې حال کې چې تاسو پوهېږئ

۲۸:۸ - او تاسو پوه شئ چې بېشکه خبره همدا ده چې ستاسو مالونه او ستاسو اولادونه ازمایش دی او بېشکه الله (چې دی) له هغه سره ډېر لوی اجر دی

۲۹:۸ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! که چېرې تاسو له الله نه ووېرېږئ، هغه به تاسو لپاره فرقان (د حق او باطل په مینځ کې فرق کوونکی) مقرر کړي او له تاسو نه به ستاسو ګناهونه ختم کړي او تاسو ته به بخښنه وکړي او الله د ډېر لوی فضل والا دی

۳۰:۸ - او کله چې له تا سره کافرانو مکر (فریب) کاوه، د دې لپاره چې تا بندي کړي، یا تا قتل کړي، یا تا وباسي، او هغوی چلونه کول او الله (هم) پټ تدبیر کاوه او الله ترټولو بهتر تدبیر کوونکی دی

۳۱:۸ - او کله چې دوی ته زمونږ ایتونه تلاوت کولی شي، دوی وایي: تحقیق مونږ واورېده، که چېرې مونږ وغواړو خامخا مونږ به هم د دې (قرآن) په مثل ووایو، نه دي دا مګر د ړومبنو خلقو باطل داستانونه دي

۳۲:۸ - او کله چې دوی وویل: ای الله! که چېرې همدا ستا له جانبه حق دی، نو ته پر مونږ باندې له اسمان نه کاڼي راووروه، یا مونږ ته ډېر دردوونکی عذاب راولېږه

۳۳:۸ - او الله داسې نه دی چې دوی ته عذاب ورکړي، په دې حال کې چې ته په دوی کې یې او الله دوی ته عذاب ورکوونکی نه دی، په داسې حال کې چې دوی بخښنه (استغفار) غواړي

۳۴:۸ - او دوی ته څه (امتیاز حاصل) دی چې الله به دوی ته عذاب نه ورکوي، حال دا چې دوی له مسجد حرام نه (خلق) منع کوي، حال دا چې دوی د دې (مسجد) جایز واکداران نه دي، نه دي واکداران د دې (مسجد) مګر پرهېزګاره خلق او لېکن د دوی زیاتره نه پوهېږي

۳۵:۸ - او د بیت الله په خوا کې د دوی لمونځ نه و مګر شپیلي وهل او لاسونه ټکول (پړقول)، نو تاسو عذاب وڅکئ په سبب د هغه کفر چې تاسو به کاوه

۳٦:۸ - بېشکه هغه کسان چې کفر یې کړی دی، دوی خپل مالونه د دې لپاره خرچ کوي چې د الله

له لارې نه (خلق) منع کړي، نو ژر به دوی دا (مالونه) ولګوي، بیا به په دوی باندې (د) حسرت (او پښېمانتیا باعث) وي، بیا به دوی مغلوب کړی شي او هغه کسان چې کفر يې کړی دی، دوی به جهنم ته ورجمع کولی شي

۳۷:۸ - د دې لپاره چې الله خبیث له پاك نه جدا کړي او (بیا) خبیث کېږدي ځینې يې د ځینو له پاسه، بیا يې يو د بل له پاسه ټول راجمع کړي، بیا به يې جهنم ته وغورځوي، همدغه خلق تاوانیان دی

۳۸:۸ - ته هغو کسانو ته ووایه چې کفر يې کړی دی: که چېرې دوی منع شي (، نو) دوی ته به د هغو (ګناهونو) بخښنه وشي چې مخکې شوي دي او که چېرې دوی راوګرځي، نو تحقیق د ړومبنو خلق طریقه (سنت) تېره شوې ده

۳۹:۸ - او تاسو له دوی سره وجنګېږئ تر هغه پورې چې فتنه پاتې نشي او دین ټول خاص د الله لپاره شي، نو که چېرې دوی منع شي، نو بېشکه الله په هغو عملونو چې دوی يې کوي ښه لیدونکی دی

۴۰:۸ - او که چېرې دوی وګرځي، نو تاسو پوه شئ چې بېشکه الله ستاسو مولٰی (ساتونکی) دی، ښه مولٰی دی او ښه مدد کوونکی دی

۴۱:۸ - او تاسو پوه شئ چې بېشکه هر هغه شی چې تاسو يې په غنیمت کې واخلئ، نو بېشکه د الله لپاره د هغه (غنیمت) پنځمه برخه ده او د رسول لپاره او د خپلوانو، او یتیمانو او مسکینانو او مسافرو لپاره.، که چېرې يئ تاسو چې په الله ایمان لرئ او په هغه شي چې مونږ پر خپل بنده باندې د فیصلې په ورځ نازل کړ، هغه ورځ چې دوه ډلې يو تربله مخامخ شوې۔ او الله په هر شي باندې ښه قادر دی

۴۲:۸ - کله چې تاسو په ډېرې نژدې غاړه کې وئ او هغوی په ډېرې لرې غاړه کې وو او قافله له تاسو نه لاندې وه۔ او که چېرې تاسو يو له بل سره وعده کړې وَی، خامخا به تاسو په وعده کې مختلف شوي وَی او لېکن د دې لپاره چې الله هغه کار پوره کړي چې مقرر شوی و، د دې لپاره چې هلاکېدونکی د روښانه دلیل (له قایمېدو) نه (پس) هلاك شي، او ژوندی پاتې کېدونکی د روښانه دلیل (له قایمېدو) نه (پس) ژوندی واوسي او بېشکه الله یقینًا ښه اورېدونکی، ښه پوه دی

۴۳:۸ - کله چې الله تا ته ستا په خوب کې هغوی ښه لږ ښودل او که چېرې تا ته يې هغوی ډېر زیات ښودلي وَی، (نو) تاسو به خامخا بې زړه شوي وی او تاسو به په خپل مینځ کې په دې کار کې خامخا جګړه کړې وَی او لېکن الله (ستاسو) ساتنه وکړه، بېشکه هغه د سینو په خبرو ښه عالم دی

۴۴:۸ - او کله چې یې تاسو ته هغوی، ستاسو له یو بل سره د مخامخ کېدلو په وخت کې، ستاسو په سترګو کې ډېر لږ ښودل او تاسو یې د هغوی په سترګو کې لږ ښودلئ، د دې لپاره چې الله هغه کار پوره کړي چې مقرر شوی و او خاص د الله په طرف ټول کارونه بېرته ګرځولی شي

۴۵:۸ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! کله چې تاسو د کومې (کافرې) ډلې سره مخامخ شئ، نو ثابت قدم اوسئ او الله ډېر زیات یادوئ، د دې لپاره چې تاسو کامیاب شئ

۴۶:۸ - او تاسو د الله او د هغه د رسول اطاعت کوئ او په خپل مینځ کې جګړه مه کوئ (ګنې) نو بې زړه به شئ او ستاسو زور به لاړ شي او صبر کوئ، بېشکه الله د صبر کوونکو ملګری دی

۴۷:۸ - او تاسو د هغه خلقو په شان مه کېږئ چې له خپلو کورونو نه ووتل، په دې حال کې چې تکبر کوونکي او خلقو ته ځان ښودونکي وو او دوی د الله له لارې نه (خلق) منع کوي او الله د هغو کارونو احاطه کوونکی دی چې دوی یې کوي

۴۸:۸ - او (یاد کړئ) هغه وخت چې شیطان دوی ته د دوی عملونه ښایسته کړل او ویې ویل: نن ورځ پر تاسو باندې له خلقو څخه هیڅوك غالب راتلونکی نشته او بېشکه زه ستاسو ساتونکی یم، نو کله چې دواړه ډلې یو تربله مخامخ شوې، بېرته په منډه په شا لاړ او ویې ویل: بېشکه زه له تاسو بېزاره یم، بېشکه زه هغه څه وینم چې تاسو یې نه وینئ، بېشکه زه له الله څخه وېرېږم او الله ډېر سخت عذاب والا دی

۴۹:۸ - کله چې منافقانو ویل او هغو کسانو چې د هغوی په زړونو کې مرض و: دا خلق خپل دین دوکه کړي دي او څوك چې په الله باندې توکل وکړي، نو یقیناً الله ښه غالب، ښه حکمت والا دی

۵۰:۸ - او که چېرې ته ووینې هغه وخت چې ملایك د کافر شویو کسانو ساګانې قبض کوي، چې د هغوی مخونه او د هغوی شاګانې وهي او (ورته وایي:) سخت سوزونکی عذاب وڅکئ

۵۱:۸ - دا په سبب د هغه (بدو عملونو) چې ستاسو لاسونو مخکې لېږلي دي او په دې چې یقیناً الله په بنده ګانو هېڅ ظلم کوونکی نه دی

۵۲:۸ - لکه حال د فرعونیانو او د هغو کسانو چې له دوی نه مخکې وو، د الله په ایتونو کافر شول، نو الله هغوی د خپلو ګناهونو په سبب ونیول، بېشکه الله قوي، (او) ډېر سخت عذاب والا دی

۵۳:۸ - دا په دې چې یقیناً الله د هغه نعمت بدلوونکی نه دی چې په کوم قوم یې پېرزوکړی وي تر هغه پورې چې هغوی هغه بدل کړي چې د هغوی په نفسونو کې دی او دا په دې چې یقیناً الله ښه اورېدونکی، ښه پوه دی

۵۴:۸ - لکه حال د فرعونیانو او د هغو کسانو چې له دوی نه مخکې وو، د خپل رب د ایتونو تکذیب یې وکړ، نو مونږ هغوی د خپلو ګناهونو په وجه هلاك کړل او فرعونیان مو غرق کړل او (دوی) ټول ظالمان وو

۵۵:۸ - بېشکه د الله په نیز په ځمکه باندې په ګرځېدونکو کې تر ټولو بدتر هغه کسان دي چې کفر یې کړی دی، نو هغوی ایمان نه راوړي

۵٦:۸ - هغه کسان چې تا له دوی سره معاهده کړې وه، بیا هر ځله دوی خپله عهد (تړون) ماتوي او دوی نه وېرېږي

۵۷:۸ - نو که کله هم ته دوی په جنګ کې ومومې، نو دوی ته په سزا ورکولو سره هغه کسان تیت او پرك کړه چې د دوی وروسته دي، لپاره د دې چې دوی (وروستني خلق) نصیحت ومومي

۵۸:۸ - او که چېرې کله هم ته له کومې قوم نه د خیانت (وعده خلافۍ) اندېښنه ولرې، نوته دوی ته په برابرۍ سره (دغه عهد) وغورځوه، بېشکه الله خیانت کوونکي (وعده ماتوونکي) نه خوښوي

۵۹:۸ - او کافر شوي کسان دې کله هم (دا) ګمان ونه کړي چې دوی بچ شول، بېشکه دوی (الله لره) نشي عاجزه کولی

٦۰:۸ - او تاسو قوت او تړلي اسونه تیار کړئ څومره چې استطاعت لرئ، چې په دې سره به تاسو د الله دښمنان او خپل دښمنان وېروئ او له دوی نه سوا نور خلق (هم) چې تاسو هغوی نه پېژني، الله هغوی پېژني او تاسو چې د الله په لاره کې څه شی هم خرچ کوئ، تاسو ته به پوره (بدله) درکړی شي او په تاسو به ظلم نه کېږي

٦۱:۸ - او که دوی (کفار) سولې ته مایل شي، نو ته هم دې ته مایل شه او په الله باندې توکل وکړه، بېشکه هم هغه ښه اورېدونکی، ښه پوه دی

٦۲:۸ - او که دوی له تا سره د دوکې کولو اراده وکړي، نو بېشکه تا لپاره الله کافي دی، دی همغه ذات دی چې ته یې په خپل مدد سره او په مومنانو سره مضبوط کړی یې

٦۳:۸ - او د دوی د زړونو په مینځ کې یې محبت واچاوه، که چېرې تا هغه ټول څه لګولي وی چې په ځمکه کې دي (، نو) تا به د دوی د زړونو په مینځ کې محبت نه و اچولی او لېکن الله د دوی په مینځ کې محبت واچاوه، بېشکه هغه ډېر غالب، ښه حکمت والا دی

٦۴:۸ - ای نبي! تا لپاره او ستا پیروي کوونکو مومنانو لپاره الله کافي دی

٦۵:۸ - ای نبي! ته مومنان (له کفارو سره) په جنګ کولو باندې تېز کړه، که چېرې په تاسو کې شل تنه صبر کوونکي وي، نو په دوه سوه کسانو به غالبه شي او که چېرې په تاسو کې سل تنه صبر کوونکي وي (، نو) په هغو زرو کسانو به غالبه شي چې کافر شوي دي، ځکه چې یقیناً

هغوی داسې قوم دی چې نه پوهېږي

٦٦:٨ - اوس الله په تاسو اساني راوستله او معلومه ( څرګنده) يې کړه چې بېشکه په تاسو کې کمزوري ده، نو که چېرې په تاسو کې سل تنه صبر کوونکي وي، (، نو) په دوه سوه به غالبه شي. او که په تاسو کې زر تنه (صبر کوونکي) وي (، نو) په دوه زره به غالبه شي، د الله په حکم سره، او الله د صبر کوونکو ملګری دی

٦٧:٨ - د نبي لپاره لايق نه دي چې د هغه لپاره دې بنديان وي، تر هغه چې وينې توئ کړي، تاسو د دنيا اسباب غواړئ او الله (تاسو لپاره) د اخرت (د ثواب) اراده لري او الله ښه غالب، ښه حکمت والا دی

٦٨:٨ - که د الله له جانبه مخکينی ليك نه وی (، نو) تاسو ته به د هغې (فديې) په بدل کې چې تاسو واخيستله، خامخا ډېر لوی عذاب دررسېدلی و

٦٩:٨ - نو تاسو خورئ له هغه (ماله) چې تاسو په غنيمت اخيستی دی، چې حلال پاکيزه دی، او له الله نه ووېرېږئ، بېشکه الله ډېر بخښونکی، بې حده مهربان دی

٧٠:٨ - ای نبي! ته هغو بنديانو ته ووايه چې ستاسو په لاس کې دي: که چېرې الله ستاسو په زړونو کې خير (ايمان) معلوم کړي (، نو) تاسو ته به له هغه (مال) نه غوره درکړي چې له تاسو اخيستل شوی دی او تاسو ته به بخښنه وکړي او الله ډېر بخښونکی، بې حده مهربان دی

٧١:٨ - او که دوی له تا سره د خيانت کولو اراده لري، نو يقينًا دوی له دې نه مخکې له الله سره خيانت کړی دی، نو هغه پر دوی باندې (د مومنانو) قابو راوستله، او الله ښه پوه، ښه حکمت والا دی

٧٢:٨ - بېشکه هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی او هجرت يې کړی دی او د الله په لاره کې يې په خپلو ځانونو سره جهاد کړی دی او هغه کسان چې ځای يې ورکړی دی او مرسته يې کړې ده، دغه کسان يو تر بله دوستان دي او هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی او هجرت يې نه دی کړی (، نو) تاسو لپاره د هغوی له دوستۍ نه هېڅ شی نشته تر هغه پورې چې دوی هجرت وکړي او که چېرې دوی له تاسو نه په دين کې مرسته وغواړي، نو پر تاسو باندې مدد کول لازم دي، مګر د هغه (کافر) قوم په خلاف نه چې ستاسو او د هغوی په مينځ کې معاهده وي او الله هغو کارونو لره چې تاسو يې کوئ؛ ښه ليدونکی دی

٧٣:٨ - او هغه کسان چې کفر يې کړی دی؛ دوی يو تر بله دوستان دي، که تاسو دا (کارونه) ونه کړئ (، نو) په ځمکه کې به لويه فتنه او ډېر لوی ورانی جوړ شي

٧٤:٨ - او هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی او هجرت يې کړی دی او د الله په لاره کې يې جهاد کړی دی او هغه کسان چې ځای يې ورکړی دی او مدد يې کړی دی، همدغه کسان په حقه

مومنان دي، د دوی لپاره بخښنه او ډېر د عزت رزق دی

۷۵:۸ - او هغه کسان چې له دې نه پس یې ایمان راوړ او هجرت یې وکړ او ستاسو په ملګرتیا کې یې جهاد وکړ، نو دغه کسان له همـ ستاسو څخه دي او د خپلولۍ والا د الله په کتاب کې د یو بل زیات حقدار دي، بېشکه الله په هر شي ښه پوه دی

## (مدني) پښېماني - التوبة ۹

۱:۹ - (دا) د الله او د هغه د رسول له جانبه بیزاري او صاف ځواب دی، په مشرکانو کې هغو کسانو ته چې تاسو ورسره عهد کړی و

۲:۹ - نو (ای مشرکانو!) تاسو په دغه ځمکه کې څلور میاشتې (په امن سره) ګرځئ او پوه شئ چې یقینًا تاسو الله لره عاجزه کوونکي نه یئ او دا چې یقینًا الله کافرانو لره رسواکوونکی دی

۳:۹ - او د حج اکبر په ورځ د الله او د هغه د رسول له جانبه ټولو خلقو ته (دا) اعلان (او خبرتیا) دی چې بېشکه الله او د هغه رسول له مشرکانو نه بیزاره دی، نو که تاسو توبه وباسئ، نو دا تاسو لپاره ډېر غوره دي او که تاسو مخ وګرځوئ، نو پوه شئ چې یقینًا تاسو الله لره عاجزه کوونکي نه یئ او هغو کسانو ته چې کافران شوي دي د ډېر دردوونکي عذاب زېری ورکړه

۴:۹ - مګر په مشرکانو کې هغه کسان چې تاسو ورسره عهد کړی دی، بیا هغوی تاسو ته هېڅ شی نقصان نه دی دررسولی او نه یې ستاسو په مقابل کې د هیچا مدد کړی دی، نو هغوی ته خپل عهد د هغوی د مودې پورې پوره کړئ، بېشکه الله (له بدعهدۍ نه) ځان ساتونکي خوښوي

۵:۹ - نو کله چې حرامې میاشتې تېرې شي، بیا نو تاسو مشرکان وژنئ چېرته چې تاسو هغوی ومومئ او دوی نیسئ او د دوی محاصره کوئ او د دوی لپاره په هر کمین ځای کې کېنئ، نو که دوی توبه وباسي او لمونځ قایمـ کړي او زکات ادا کړي، بیا نو تاسو د دوی لاره خوشې کړئ، بېشکه الله ډېر بخښونکی، بې حده رحمـ کوونکی دی

۶:۹ - او که په مشرکانو کې یو تن له تا نه امان (پناه) وغواړي، نو هغه ته امان ورکړه تر هغه پورې چې هغه د الله کلامـ واوري، بیا هغه خپل د امن ځای (وطن) ته ورسوه، دا په سبب د دې چې یقینًا دوی داسې قومـ دی چې نه پوهېږي

۷:۹ - د الله په نیز او د هغه د رسول په نیز به د مشرکانو لپاره څنګه عهد وي، غیر له هغو کسانو نه چې تاسو ورسره د مسجد حرامـ په خوا کې عهد کړی دی، نو ترڅو پورې چې هغوی تاسو لپاره (په عهد) پوره قایمـ وي، نو تاسو همـ د هغوی لپاره (په عهد) کلك قایمـ اوسئ، بېشکه الله (له بد عهدۍ نه) ځان ساتونکي خوښوي

۸:۹ - څنګه (کېدی شي د دوی لپاره عهدا!) حال دا چې که دوی پر تاسو باندې لاس بري شي (، نو بیا) دوی ستاسو په حق کې نه خپلولۍ ته ګوري او نه عهد ته، دوی تاسو په خپلو خولو سره راضي کوي او د دوی زړونه انکار کوي او د دوی اکثره فاسقان دي

۹:۹ - دوی د الله د ایتونو (د پرېښودلو) په بدل کې لږ قیمت اخیستی دی، نو منع شوي دي د هغه له لارې نه، بېشکه دوی (چې دي) بد دی هغه عمل چې دوی به کاوه

۱۰:۹ - دوی د مومن په باره کې نه د خپلولۍ لحاظ کوي او نه د عهد، او همدغه کسان (له حد نه) تېرېدونکي دي

۱۱:۹ - نو که دوی توبه وباسي او لمونځ قایم کړي او زکات ادا کړي، نو بیا ستاسو ورونه دي په دین کې او مونږ په تفصیل سره بیانوو ایتونه د هغه قوم لپاره چې پوهېږي

۱۲:۹ - او که دوی خپل قسمونه له خپل عهد نه پس مات کړل او ستاسو په دین کښې یې عیبونه راوېستل شروع کړل، بیا نو د کفر له امامانو (مشرانو) سره جنګ کوئ، بېشکه دوی (چې دي) د دوی لپاره هېڅ قسمونه نشته، د دې لپاره چې دوی منع شي

۱۳:۹ - ولې تاسو له داسې قوم سره نه جنګیږئ چې هغوی خپل قسمونه مات کړي دي او د رسول د وېستلو اراده یې کړې ده، حال دا چې همم دوی په تاسو شروع کړې ده اول ځلې! ایا تاسو له دوی نه وېرېږئ، نو الله تر ټولو زیات حق دار دی د دې چې له هغه نه ووېرېږئ، که تاسو مومنان یئ

۱۴:۹ - له دوی سره وجنګیږئ، الله به دوی لره ستاسو په لاسونو عذاب ورکړي او دوی به رسوا کړي او د دوی په مقابل کې به ستاسو مدد وکړي او د مومنو خلقو سینو ته به شفا ورکړي

۱۵:۹ - او د هغوی د زړونو غصه به لرې کړي او الله چې په چا وغواړي په رحمت سره رجوع کوي او الله ښه پوه، ښه حکمت والا دی

۱۶:۹ - ایا تاسو دا ګمان کړی دی چې تاسو به (همداسې) پرېښودی شئ، حال دا چې لاتر اوسه الله هغه کسان نه دي معلوم (ظاهر) کړي چې جهاد یې کړی دی له تاسو نه، او له الله او د هغه له رسول او مومنانو نه غیر یې بل هېڅ رازدار نه دی نیولی او الله ښه خبردار دی په هغو عملونو چې تاسو یې کوئ

۱۷:۹ - د مشرکانو لپاره دا حق نشته چې د الله جوماتونه اباد کړي، په داسې حال کې چې په خپلو ځانونو باندې د کفر ګواهي کوونکي دي، دغه خلق (چې دي) د دوی عملونه ضایع شوي دي او دوی به په اور کې تل ترتله وي

۱۸:۹ - د الله جوماتونه خو یواځې هغه څوك ابادوي چې په الله او د اخرت په ورځ یې ایمان راوړی

وي او لمونځ قايموي او زكات وركوي او نه وېرېږي غير له الله نه، نو امېد دی چې دغه كسان به له هدايت موندونكو څنې وي

۱۹:۹ - ايا تاسو حاجيانو ته اوبه وركول او د مسجد حرام ابادول د هغه چا (د ايمان) په شان گرځولي دي چې په الله او په ورځ د اخرت يې ايمان راوړی دی او د الله په لاره كې يې جهاد كړی دی، دوی د الله په نيز برابر نه دي او الله ظالم قوم ته هدايت نه كوي

۲۰:۹ - هغه كسان چې ايمان يې راوړی دی او هجرت يې كړی دی او د الله په لاره كې يې په خپلو مالونو او ځانونو سره جهاد كړی دی، د الله په نيز په درجه كې تر ټولو لوی دي، اوهمدغه كسان كامياب دي

۲۱:۹ - دوی ته خپل رب له خپل جانب نه د رحمت او رضامندۍ او د داسی جنتونو زېری وركوي چې د دوی لپاره به په هغو كې همېشنی نعمت وي

۲۲:۹ - په دې حال كې چې په هغو كې به تل ترتله همېشه وي، بېشكه الله (چې دی) له هغه سره ډېر لوی اجر دی

۲۳:۹ - ای هغو كسانو چې ايمان يې راوړی دی! تاسو خپل پلرونه او خپل ورونه دوستان مه نيسئ كه دوی كفر محبوب (او غوره) وگڼي په ايمان باندې، او په تاسو كې چې چا له دغو (كفارو) سره دوستي وكړه، نو همدغه كسان ظالمان دي

۲۴:۹ - (ای پيغمبره!) (ته دوی ته) ووايه: كه چېرې وي ستاسو پلرونه او ستاسو زامن او ستاسو ورونه او ستاسو ښځې او ستاسو قبيله او هغه مالونه چې تاسو هغه گټلي دي او هغه تجارت چې تاسو د هغه د بندېدو وېره كوئ او هغه استوگنې چې تاسو هغه خوښوئ، تاسو ته ډېر محبوب دي له الله او د هغه له رسول او د هغه په لاره كې له جهاد كولو نه، نو بيا انتظار كوئ، تر هغه پورې چې الله خپل حكم راولي او الله فاسقو خلقو ته هدايت نه كوي

۲۵:۹ - يقينًا يقينًا الله په ډېرو ځايونو كې ستاسو مدد كړی دی او د حنين په ورځ هم، كله چې خپل ډېر والي تاسو په تعجب كې اچولي وئ، بيا دا (ډېر والی) ستاسو هېڅ په كار رانغی او پر تاسو باندې ځمكه د هغې د ارتوالي باوجود تنگه شوه، بيا تاسو وگرځېدئ، په داسی حال كې چې شا كوونكي وئ

۲٦:۹ - بيا الله خپل تسكين په خپل رسول او په مومنانو باندې نازل كړ او داسې لښكرې يې نازلې كړې چې تاسو هغه نه وې ليدلې او كافر شويو خلقو ته يې عذاب وركړ او دا د كافرانو جزا ده

۲۷:۹ - بيا به الله له دې نه بعد (په رحمت سره) رجوع وكړي په هغه چا چې يې وغواړي او الله ډېر بخښونكی، ښه حكمت والا دی

۲۸:۹ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! په رښتیا هم دا خبره ده چې مشرکان نجس دي، نو مسجد حرام ته دې له خپل دې کال نه وروسته نه نژدې کېږي او که تاسو له کومې غریبۍ نه وېرېږئ، نو ژر به الله تاسو له خپله فضله غنیان کړي، که هغه وغواړي، بېشکه الله ښه پوه، ښه حکمت والا دی

۲۹:۹ - تاسو له هغو کسانو سره وجنګېږئ چې نه په الله ایمان راوړي او نه د اخرت په ورځ، او هغه څه ته حرام نه وايي چې الله او د هغه رسول حرام کړي دي او نه دینِ حق قبلوي، له هغو کسانو څنې چې کتاب ورته ورکړی شوی دی، تر دې چې دوی له خپله لاسه په داسې حال کې جزیه ورکړي، چې دوی ذلیل وي

۳۰:۹ - او یهودیانو وویل: عزیر د الله زوی دی او نصرانیانو وویل: مسیح د الله زوی دی، دا د دوی په خپلو خولو سره وینا ده، دوی د هغو کسانو له خبرې سره مشابهت کوي چې له دوی نه مخکې کافران وو، الله دې دوی هلاك کړي، څنګه (له سمې لارې نه) ګرځولی شي!

۳۱:۹ - دوی خپل عالمان او خپل عابدان له الله نه غیر خدایان نیولي دي او د مریمې زوی مسیح (یې هم)، حال داچې دوی ته حکم نه و شوی مګر د دې چې دوی دې د یو حق معبود عبادت کوي چې نشته هېڅ حق معبود مګر همدی دی، هغه پاك دی له هغه څه نه چې دوی یې (ورسره) شریکوي

۳۲:۹ - دوی غواړي چې د الله رڼا په (پوکو د) خپلو خولو سره مړه کړي او الله انکار کوي مګر دا چې خپله رڼا پوره کړي اګر که کافران (دا کار) بد ګڼي

۳۳:۹ - دی هم هغه ذات دی چې خپل رسول یې په هدایت او حق دین سره رالېږلی دی، د دې لپاره چې هغه (الله) دا (دین) په نورو ټولو دینونو باندې غالب کړي اګر که مشرکان (دا کار) بد ګڼي

۳۴:۹ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! بېشکه ډېر عالمان (د یهودیانو) او عابدان (د نصرانیانو) د خلقو مالونه په باطلې طریقې سره یقینًا خوري او د الله له لارې نه (خلق) منع کوي، او هغه کسان چې سره زر او سپین زر خزانه کوي او هغه د الله په لاره کې نه لګوي، نو دوی ته د ډېر دردوونکي عذاب زېری ورکړه

۳۵:۹ - په هغې ورځ چې د جهنم په اور کې به دغه (خزانې) ښې ګرمې کړی شي، بیا به په هغې سره د دوی تندي او د دوی اړخونه او د دوی شاګانې داغلی شي (او دوی ته به ویلی شي:) دا هغه څه دي چې تاسو د خپلو ځانونو لپاره خزانه کړي وو، نو تاسو وڅکئ هغه څه چې تاسو خزانه کول

۳۶:۹ - بېشکه د الله په نیز د میاشتو (معتبر) شمېر دولس میاشتې دی، د الله په کتاب کې، په

هغه ورځ چې هغه پیدا کړل اسمانونه او ځمکه، له هغو نه څلور (میاشتی) د حرمت والا دي، همدغه سم (نېغ) دین دی، نو تاسو په دغو کې په خپلو ځانونو ظلم مه کوئ او تاسو ټول له مشرکانو سره جنگ کوئ، لکه څنگه چې دوی له تاسو سره جنگ کوي ټول او پوه شئ چې یقینًا الله د پرهېزگارانو مل دی

۳۷:۹ - اصل خبره دا ده چې تاخیر (د حرمت د یوې میاشتې بلې میاشتې ته) یواځې په کفر کې ډېر والی دی، په دې سره هغه کسان گمراه کولی شي چې کافران شوي دي، دوی دغه (حرامه میاشت) یو کال حلاله گڼي او یو کال هغه حرامه، د دې لپاره چې دوی د هغو (میاشتو) شمېر پوره کړي چې الله حرامې کړې دي، بیا حلالې کړي هغه (میاشتې) چې الله حرامې کړې دي، دوی ته خپل نا کاره عملونه ښایسته کړی شوي دي او الله کافر قوم ته هدایت نه کوي

۳۸:۹ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! په تاسو څه شوي دي چې کله تاسو ته وویل شي: د الله په لاره کې د غزا لپاره ووځئ (، نو) تاسو ځمکې ته درانه (او مایل) شئ؟ ایا تاسو د اخرت په مقابله کې په دې دنیایي ژوند راضي شوي یئ؟ نو د اخرت په مقابله کې د دنیاوي ژوند فایده نه ده مگر ډېره لږه

۳۹:۹ - که تاسو ونه وځئ (نو) هغه (الله) به تاسو ته ډېر دردوونکی عذاب درکړي او له تاسو نه غیر به بل قوم په بدل کې راولي او تاسو به هغه ته هېڅ شی ضرر ونه رسولی شئ او الله په هر شي باندې ښه قادر دی

۴۰:۹ - که تاسو د دغه (رسول) مرسته ونه وکړئ، نو یقینًا الله د هغه مدد کړی دی کله چې دې کافران شویو خلقو په داسې حال کې وویست چې دویم د دوو و،، کله چې هغوی دواړه په غار کې وو، کله چې هغه خپل ملگري ته ویل: غم مه کوه، بېشکه الله زمونږ سره دی، نو الله په هغه باندې خپل تسکین نازل کړ او هغه یې په داسې لښکرو سره مضبوط کړ چې تاسو هغه نه دي لیدلي، او د کافران شویو خلقو کلمه یې ترټولو ښکته کړه او د الله کلمه، همغه تر ټولو لوړه ده، او الله ښه غالب، ښه حکمت والا دی

۴۱:۹ - تاسو غزا ته وځئ، په داسی حال کې چې سپك یئ او درانه او په خپلو مالونو او ځانونو سره د الله په لار کې جهاد کوئ، دا تاسو لپاره ډېر غوره دي، که تاسو پوهېږئ

۴۲:۹ - که هغه، نژدې سامان او منځنی سفر وی (، نو) دوی به لازمًا ستا متابعت کړی و او لېکن په دوی باندې فاصله لرې پرېوته (نو ځکه یې نافرماني وکړه) او ژر به دوی په الله قسمونه خوري که زمونږ طاقت وی (، نو) ضرور به له تاسو سره وتلي وو، دوی خپل ځانونه هلاکوي او الله پوهېږي چې بېشکه دوی یقینًا دروغجن دي

۴۳:۹ - الله ته معاف کړې، د څه لپاره (او ولې) دې دوی ته (دپاتې کېدلو) اجازت ورکړ؟ تر هغه

پورې چې تا ته هغه کسان ښه ښکاره شوي وی چې رښتیا یې ویلي او تا دروغجن (هم) معلوم کړي وی

۴۴:۹ - له تا نه هغه کسان اجازت نه غواړي چې په الله او د اخرت په ورځ ایمان لري له دې نه چې په خپلو مالونو او خپلو ځانونو سره جهاد وکړي او الله په پرهېزګارانو ښه عالم دی

۴۵:۹ - له تا نه اجازت یواځې هغه کسان غواړي چې په الله او د اخرت په ورځ ایمان نه لري او د هغوی زړونه شکمن شوي دي، نو دوی په خپل شك کې حیرانه سرګردانه دي

۴۶:۹ - او که دوی (غزا ته) د وتلو اراده لرلی، نو ارومرو به دوی د دې (وتلو) لپاره د تیاري څه اسباب تیار کړي وو او لېکن الله د دوی پورته کېدل (د جهاد لپاره) نه و خوښ کړي، نو دوی یې په سست کولو سره بند کړل او وویل شو: تاسو کېنئ له کېناستونکو سره

۴۷:۹ - که دوی په (لښکر د) تاسو کې وتلي وی (، نو) دوی به تاسو ته نه و زیات کړی (هیڅ شی) مګر شر او ضرور به دوی ستاسو په مینځ کې (د خرابۍ او چغلۍ لپاره) چابکي کړې وه، په داسې حال کې چې دوی به تاسو لپاره فتنه لټوله او په تاسو کې د هغوی لپاره څه جاسوسان هم شته او الله په ظالمانو ښه پوه دی

۴۸:۹ - یقینًا یقینًا دوی له دې نه مخکې فتنه (خرابي) لټولې وه او تا ته یې ټول کارونه (په حیلو او دسیسو سره) اړولي وو، تر دې چې حق راغی او د الله حکم څرګند (او غالب) شو، په داسې حال کې چې دوی بدګڼونکي وو

۴۹:۹ - په دوی کې ځینې هغه څوك دي چې وایي: ما ته اجازت راکړه او ما په فتنه (ګمراهۍ) کې مه اچوه، خبردار شئ! هم دوی په فتنه کې غورځېدلي دي او بېشکه جهنم یقینًا کافرانو لره راګېروونکی دی

۵۰:۹ - که تا ته څه ښېګڼه دررسېږي (، نو) ...دوی خفه کوي، او که چېرې تا ته څه مصیبت د رورسیږي (نو) دوی وایي: یقینًا مونږ خپل کار (د احتیاط) له مخکې نه نیولی و او واپس کېږي، په داسې حال کې چې دوی (ستا په مصیبت) ډېر خوشحاله وي

۵۱:۹ - ته (دوی ته) ووایه: مونږ ته به له سره مصیبت راونه راسېږي مګر هغه چې الله زمونږ لپاره لیکلی دی، هم هغه زمونږ کارساز دی او پس لازم ده چې مومنان خاص په الله باندې توکل وکړي

۵۲:۹ - ته (دوی ته) ووایه: تاسو زمونږ په باره کې انتظار نه کوئ مګر په دوو تر ټولو غوره څیزونو کې د یو څیز، او مونږ ستاسو په باره کې انتظار کوو د دې چې الله تاسو ته عذاب دررسوي له خپل جانب نه، یا زمونږ په لاسونو سره، پس تاسو انتظار کوئ، بېشکه مونږ هم له تاسو سره انتظار کوونکي یو

۵۳:۹ - ته (دې منافقانو ته) ووایه: تاسو مالونه لګوئ په رضا سره، یا (د اسلام) په زور سره، له سره به له تاسو نه قبول نه کړی شي، بېشکه تاسو له شروع نه فاسقان (کافران) یئ

۵۴:۹ - او دوی لره نه دي منع کړي چې له دوی نه دې د دوی لګولي مالونه قبول کړی شي مګر دې (خبرې) چې یقینًا دوی په الله او د هغه په رسول کافران شوي دي او لمانځه ته نه راځي مګر په داسې حال کې چې سست وي او انفاق نه کوي مګر په داسې حال کې چې ناخوښه وي

۵۵:۹ - نو تا دې په تعجب کې وانه چوي د دوی مالونه او نه د دوی اولادونه، همدا خبره ده چې الله غواړي چې دوی ته په دغو (څیزونو) سره په دنیایي ژوند کې عذاب ورکړي او د دوی روحونه په داسې حال کې ووځي چې دوی کافران وي

۵۶:۹ - او دوی په الله قسمونه خوري چې بېشکه دوی یقینًا له تاسو څنې دي، حال دا چې دوی له تاسو څخه نه دي او لېکن دوی داسې قوم دی چې وېرېږي

۵۷:۹ - که دوی څه د پناه ځای ومومي، یا غارونه، یا بل د ننوتلو ځای (، نو) خامخا به دوی هغه ته وګرځي، په داسې حال کې چې دوی به منډې وهي

۵۸:۹ - او په دوی کې ځینې هغه څوك دي چې د صدقاتو (د تقسیم) په باره کې په تا عیب لګوي، نو که دوی ته له دې (صدقاتو) نه (څه) ورکړی شي (نو) راضي کېږي او که له دې نه ورته څه ورنه کړی شي (نو) سمدستي هماغه وخت غصه کېږي

۵۹:۹ - او که حقیقتًا دوی په هغه څه راضي شوي وی چې الله او د هغه رسول دوی ته ورکړي دي او ویلي یې وی: زمونږ لپاره الله کافي دی.، ژر به الله مونږ ته له خپله فضله راکړي او د هغه رسول (هم له بل غنیمت نه) بېشکه مونږ خاص الله ته رغبت کوونکي یو

۶۰:۹ - بېشکه همدا خبره ده چې صدقې (زکاتونه) یواځې د فقیرانو او مسکینانو لپاره دي او د هغو کسانو لپاره چې په دې باندې عامل (راټولوونکي) وي او د هغو لپاره د چا په زړونو کې چې الفت اچولی شي او په (ازادولو د) څټونو (د مریانو مکاتبانو) کې (به صرف کولی شي) او تاوان مونډونکو لپاره او د الله په لار کې او د مسافرو لپاره (به صرف کولی شي، دغه مقرره (کړی شوې) فریضه ده د الله له جانبه او الله ښه عالم، ښه حکمت والا دی

۶۱:۹ - او په دوی کې ځینې هغه کسان دي چې نبي ته تکلیف رسوي او وایي: هغه (اورېدونکی) غوږ دی (هرڅه اوري او مني یې) ته ووایه: تاسو لپاره د خیر غوږ دی، په الله ایمان لري او په مومنانو باور کوي او په تاسو کې د هغو کسانو لپاره رحمت دی چې ایمان یې راوړی دی، او هغه کسان چې د الله رسول ته تکلیف رسوي؛ د هغوی لپاره ډېر دردوونکی عذاب دی

۶۲:۹ - تاسو لپاره دوی په الله قسمونه خوري، د دې لپاره چې تاسو راضي کړي او الله او د هغه رسول زیات حقدار دي د دې چې دوی هغه راضي کړي، که دوی ایمان راوړونکي وي

۶۳:۹ - ایا دوی په دې نه دي پوه شوي چې بېشکه شان دا دی چې څوك د الله او د هغه د رسول مخالفت کوي، نو (جزا د هغه دا ده چې) یقینًا هم د هغه لپاره د جهنم اور دی، چې په هغه کې به همېشه وي او همدغه ډېره لويه رسوايي ده

۶۴:۹ - منافقان وېرېږي له دې نه چې په دوی باندې داسې سورت نازل کړی شي چې دې (مومنانو) ته د هغه څه خبر ورکوي چې د دوي (منافقانو) په زړونو کې دي ته (ورته) ووایه: تاسو (دغه) استهزا مسخرې کوئ، بېشکه الله د هغه څه ښکاره کوونکی دی چې تاسو (ترې) وېرېږئ

۶۵:۹ - او قسم دی که ته له دوی نه پوښتنه وکړې (، نو) خامخا به وايي: مونږ خو یواځې مشغولتیا او لوبې کولې، ته (ورته) ووایه: ایا تاسو په الله او د هغه په ایتونو او د هغه په رسول پورې استهزا او مسخرې کولې؟

۶۶:۹ - عذرونه (بهانې) مه جوړوئ، یقینًا تاسو له خپل ایمان راوړو نه وروسته کافران شوي یئ، که مونږ په تاسو کې یوې ډلې ته معافي وکړو (، نو) بلې ډلې ته به عذاب ورکړو، په سبب د دې چې هغوی په رښتیا مجرمان وو

۶۷:۹ - منافق سړي او منافقې ښځې د دوی ځینې د ځینو (نورو) څخه دي، دوی د ناروا حکم کوي او له نیکۍ نه منع کوي او خپل لاسونه (له انفاق کولو نه) کلك بند ساتي، دوی الله پرېښوده، نو هغه (الله) دوی پرېښودل، بېشکه همدا منافقان فاسقان (د ایمان له دایرې نه وتونکي) دي

۶۸:۹ - الله له منافقو سړیو او منافقو ښځو او (ټولو) کفارو سره د جهنم د اور وعده کړې ده، په داسې حال کې چې دوی به په هغه کې تل ترتله وي، همدغه د دوی لپاره بس دی او الله په دوی لعنت کړی دی او د دوی لپاره تل (دايمي) عذاب دی

۶۹:۹ - (ای منافقانو! تاسو یئ) په شان د هغو کسانو چې له تاسو نه مخکې وو، هغوی له تاسو نه د قوت په لحاظ ډېر سخت وو او د مالونو او اولادونو په لحاظ سره ډېر زیات وو، نو هغوی له خپلې برخې نه فایده واخیستله، بیا تاسو له خپلې برخې نه فایده واخیستله، لکه څنګه چې هغو کسانو د خپلې برخې نه فایده اخیستې وه چې له تاسو نه مخکې وو او تاسو هم په باطلو خبرو کې ننه داخل شوئ په شان د هغه (داخلېدلو) چې هغوی داخل شوي وو، دغه کسان (چې دي) د دوی عملونه په دنیا او اخرت کې برباد شول او همدغه کسان تاوانیان دي

۷۰:۹ - ایا دوی ته د هغو کسانو (د عذاب) خبر نه دی راغلی چې له دوی نه مخکې وو (یعنې) د نوح قوم او عاد او ثمود او د ابراهیم قوم او د مدین والا او د چپه شویو کلیو (د قومِ لوط)، دوی ته خپلو رسولانو ښکاره معجزې راوړې وې، نو الله له سره داسې نه و چې پر دوی يې ظلم کړی وی او لېکن هغوی پخپله پر خپلو ځانونو ظلم کاوه

۷۱:۹ - او مومن سړي او مومنې ښځې د دوی ځینې د ځینو نورو دوستان دي، دوی د نېکۍ حکم کوي او له بدۍ نه منع کوي او لمونځ قایموي او زکات ورکوي او د الله او د هغه د رسول اطاعت کوي، دغه کسان (چې دي) ضرور به الله په دوی رحم وکړي، بېشکه الله ډېر غالب، ښه حکمت والا دی

۷۲:۹ - الله د مومنو سړیو او مومنو ښځو سره د داسې جنتونو وعده کړې ده چې د هغو له لاندې ولې بهېږي، چې دوی به په هغو کې همیشه وي او د داسې پاکیزه اوسیدنځایونو چې د عدن (تل اوسېدنې) په جنتونو کې به وي. او د الله له جانبه رضامندي تر ټولو لویه ده، همدغه ډېره لویه کامیابي ده

۷۳:۹ - ای نبي! ته له کفارو او منافقانو سره جهاد کوه او په دوی سختي کوه او د دوی د ورتلو ځای جهنم دی او (هغه) د ورتلو بد ځای دی

۷۴:۹ - دوی په الله قسمونه خوري چې دوی (څه) نه دي ویلي او یقینًا یقینًا دوی د کفر الفاظ ویلي دي او له خپل اسلام راوړو نه بعد کافر شوي دي او دوی د هغه څه اراده کړې ده چې دوی (هغه ته) ونه رسېدل او دوی (په الله او د هغه په رسول، عیب ونه لګاوه مګر ځکه چې الله له خپل فضله دوی غنیان کړل او د هغه رسول (د غنیمتونه په تقسیم سره) نو که دوی (له نفاقه) توبه وباسي دا به د دوی لپاره ډېر غوره وي او که دوی وګرځي (نو) الله به دوی ته په دنیا او اخرت (دواړو) کې ډېر دردوونکی عذاب ورکړي، په دې حال کې چې د دوی لپاره به په ځمکه کې هېڅ کارساز او مددګار نه وي

۷۵:۹ - او په دوی کې ځینې هغه څوك دي چې له الله سره یې عهد کړی دی چې قسم دی که هغه مونږ ته له خپله فضله څه راکړل (، نو) خامخا ضرور به خیراتونه کوو او هرومرو لازمًا به له نېکانو څخه کېږو

۷٦:۹ - نو کله چې هغه (الله) دوی ته له خپله فضله (مال) ورکړ (، نو) په هغه (مال) یې بخل وکړ او وګرځېدل، په داسې حال چې اعراض کوونکي وو

۷۷:۹ - نو هغه (الله) دوی ته د دې په نتیجه کې د دوی په زړونو کې داسې نفاق کېښود چې تر هغې ورځې پورې به وي چې له هغه (الله) سره ملاوېږي، په سبب د هغه چې دوی له الله سره د هغې خبرې مخالفت وکړ چې دوی له هغه سره وعده کړې وه او په سبب د دې چې دوی به دروغ ویل

۷۸:۹ - ایا دوی په دې نه دي پوه شوي چې بېشکه الله د دوی په پټو (نیتونو) او د دوی په پټو مشورو عالم دی او (دوی په دې نه دي پوه شوي) چې بېشکه الله په ټولو پټو خبرو ښه عالم دی

۷۹:۹ - هغه کسان چې په نفلي خیرات کوونکو مومنانو باندې د صدقاتو په باره کې عیب لګوي او

په هغو کسانو باندې (عیب لګوي) چې هغوی نه مومي مګر خپل وس او محنت، نو دوی (منافقان) په دوی پورې مسخرې کوي، الله به په دوی پورې مسخرې وکړي او د دوی لپاره ډېر دردوونکی عذاب دی

۸۰:۹ - ته د دوی لپاره استغفار وغواړه، یا د دوی لپاره استغفار مه غواړه که ته د دوی لپاره اویا ځله هم استغفار وغواړې، نو الله به له سره دوی ته بخښنه ونه کړي، دا ځکه چې یقینًا دوی په الله او د هغه په رسول کافران شوي دي او الله فاسق (له حد نه وتونکي) قوم ته هدایت نه کوي

۸۱:۹ - وروسته پاتې کړی شوي خلق، له رسول الله نه شا ته، په خپلو کېناستو باندې خوشحاله شول او دوی بد وګڼل دا چې په خپلو مالونو او ځانونو سره د الله په لاره کې جهاد وکړي او ویې ویل: تاسو په ګرمۍ کې (دې غزا ته) مه وځئ، ته ووایه: بېشکه د جهنم اور د ګرمۍ په لحاظ ډېر سخت دی، که چېرې دوی پوهېدلی

۸۲:۹ - نو دوی دې وخاندې (په دنیا کې) لږ او ودې ژاړي ډېر (په اخرت کې) (دا) جزا ده په سبب د هغو عملونو چې دوی به کول

۸۳:۹ - نو که الله ته بېرته راوستې په دوی کې یوې ډلې ته، بیا دوی له تا نه (بلې غزا ته) د وتلو اجازت وغواړي، نو ته (ورته) ووایه: تاسو به له سره ونه وځئ (جهاد ته) زما سره، هیڅکله، او له سره به زما په ملګرتیا کې د کوم دښمن سره جنګ ونه کړئ، هیڅکله، بېشکه تاسو مخکې ځلې په ناسته راضي شوي وئ، نو (اوس) ناست اوسئ د وروسته پاتې کېدونکو (ښځو، ماشومانو او عاجزو سړیو) سره

۸۴:۹ - او په دوی کې چې کوم یوم مړ شي، نو ته د هغه هیڅکله هم جنازه مه کوه او مه یې (د دعا او تدفین لپاره) په قبر ودرېږه، بېشکه دوی په الله او د هغه په رسول کافران شوي دي او مړه شوي دي، په داسې حال کې چې فاسقان وو

۸۵:۹ - او تا دې په تعجب کې وانه اچوي د دوی مالونه او نه د دوی اولادونه، یقینًا الله همدا اراده لري چې دوی ته په دغو (مالونو او اولادونو) سره عذاب ورکړي او روحونه یې ووځي، په داسې حال کې چې کافران وي

۸۶:۹ - او کله چې کومه سورت نازل کړی شي (او دا حکم په کې وي) چې په الله ایمان راوړئ او د هغه د رسول په ملګرتیا کې جهاد وکړئ، (نو) له تا نه په دوی کښې د (مالي) طاقت والا د پاتې کېدو) اجازت غواړي او وایي: ته مونږ پرېږده چې اوسو (په کورونو کې) له کېناستونکو (ښځو، ماشومانو) سره

۸۷:۹ - دوی په دې راضي شول چې د پاتې شویو (ښځو، ماشومانو) سره وي او د دوی په زړونو مهر لګول شوی دی، ځکه نو دوی نه پوهېږي

۸۸:۹ - لېکن رسول او هغو کسانو چې له ده سره یې ایمان راوړی دی، هغوی په خپلو مالونو او خپلو ځانونو سره جهاد وکړ او خاص د همدغو کسانو لپاره ښېګڼې دي او همدغه کسان کامیاب دي

۸۹:۹ - الله د دوی لپاره داسې جنتونه تیار کړي دي چې د هغو له لاندې ولې بهېږي، په دې حال کې چې همېشه اوسېدونکي به وي په هغو کې، همدغه ډېر لوی بری دی

۹۰:۹ - او د اعرابو (بانډېسیانو) څخه عذر جوړونکي راغلل، د دې لپاره چې دوی ته (د پاتې کېدو) اجازت ورکړی شي او هغه کسان کېناستل چې الله او د هغه رسول ته یې دروغ ویلي وو، ژر به هغو کسانو ته، چې په دوی کې کافران شوي دي؛ ډېر دردوونکی عذاب ورسېږي

۹۱:۹ - هېڅ ګناه او جرم نشته په کمزورو او نه په مریضانو او نه په هغو کسانو چې نه مومي هغه (مال) چې یې ولګوي، کله چې دوی د الله او د هغه د رسول لپاره اخلاص کوي، په نېکي کوونکو باندې هېڅ (د الزام) لار نشته او الله ډېر بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۹۲:۹ - او نه په هغو کسانو (څه حرج شته) چې هرکله تا ته راغلي دي، د دې لپاره چې ته هغوی ته سورلۍ ورکړې، تا وویل: زه نه مومم هغه (سورلي) چې تاسو پر هغې سواره کړم، نو هغوی وګرځې، په داسې حال کې چې د هغوی سترګې په اوښکو سره بهېږي، د دې غم په سبب چې دوی هغه (مال) نه مومي چې دوی یې ولګوي

۹۳:۹ - یقینا همداخبره ده چې لار (د ملامتۍ) خو په هغو کسانو ده چې هغوی له تا نه (د پاتې کېدلو) اجازت غواړي، حال دا چې دوی غنیان دي، دوی راضي شوي دي په دې چې دوی پاتې شي له وروسته پاتې کېدونکو (ښځو، جینکو) سره او الله د دوی په زړونو مهر لګولی دی، نو دوی نه پوهېږي

۹۴:۹ - دوی به تاسو ته عذرونه وړاندې کوي کله چې تاسو دوی ته بېرته راوګرځئ، ته (ورته) ووایه: تاسو عذرونه مه وړاندې کوئ، مونږ به له سره په تاسو باور ونه کړو، یقینًا مونږ، الله ستاسو له ځینو احوالو نه خبر کړي یو. او ژر ده چې الله او د هغه رسول به ستاسو عملونه ویني، بیا به تاسو د پټو او ښکاره وو عالِم (الله) ته ورګرځولی شئ، نو هغه به تاسو په هغو عملونو خبر کړي چې تاسو به کول

۹۵:۹ - یقینًا دوی به تاسو ته په الله سره قسمونه خوري، کله چې تاسو دوی ته واپس راشئ، د دې لپاره چې تاسو له دوی نه اعراض وکړئ، نو تاسو له دوی نه اعراض وکړئ، بېشکه دوی پلیت دي، او د دوی د ورتلو ځای جهنم دی، لپاره د بدلې د هغو عملونو چې دوی به کول

۹۶:۹ - دوی تاسو ته قسمونه خوري، د دې لپاره چې تاسو له دوی نه راضي شئ، نو که تاسو له دوی نه راضي شئ، پس یقینًا الله له فاسق قوم نه نه راضي کېږي

۹۷:۹ - اَعرابيان په کفر او نفاق کې ډېر سخت دي او ډېر لايق دي له دې سره چې د هغو (احکامو) په حدودو پوه نشي چې الله په خپل رسول نازل کړي دي او الله ډېر پوه، ښه حکمت والا دی

۹۸:۹ - او په اعرابيانو کې ځينې هغه دي چې (د الله په لار کې) څه چې خرچ کوي (هغه) تاوان ګڼي او ستاسو په باره کې د زمانې د ګردشونو انتظار کوي، په همدوی باندې دې د بدۍ ګردش وي او الله ښه اورېدونکی، ښه عالم دی

۹۹:۹ - او په اعرابيانو کې ځينې هغه دي چې په الله او په ورځ د اخرت ايمان لري او هغه څه چې (د الله په لار کې يې) لګوي، الله ته د نژدې والي او د رسول د دعاګانو اسباب ګڼي، خبردار شئ! بېشکه دا د دوی لپاره د نژدې والي سبب دی، الله به ژر دوی په خپل رحمت کې داخل کړي، بېشکه الله ډېر بخښونکی، بې حده مهربان دی

۱۰۰:۹ - او له مهاجرينو او انصارو نه هغه وړانديني اولني (ايمان لرونکي) او هغه کسان چې په نېکۍ سره يې د دوی پيروي کړې ده، الله له دوی نه راضي شوی دی او دوی له هغه نه راضي شوي دي او هغه، د دوی لپاره داسې جنتونه تيار کړي دي چې د هغو له لاندې وَلې بهېږي، چې دوی به په هغو کې تل ترتله وي، همدا ډېره لويه کاميابي ده

۱۰۱:۹ - او ستاسو په شاو خوا کې چې اعرابيان دي، په هغو کې ځينې منافقان دي او ځينې د مدينې له اوسېدونکو نه هم، چې په نفاق باندې ټينګ شوي دي، ته (ای نبي!) هغوی نه پېژنې، مونږ يې پېژنو، ژر به مونږ دوی ته دوه ځله عذاب ورکړو، بيا به دوی ډېر لوی عذاب ته ورګرځولی شي

۱۰۲:۹ - او (ځينې) نور (خلق) دي چې په خپلو ګناهونو قايله شوي دي، دوی نېك عمل او بل بد عمل سره ګډ (او ميلاو) کړي دي، امېد دی چې الله به په دوی رجوع وکړي، بېشکه الله ډېر بخښونکی، بې حده مهربان دی

۱۰۳:۹ - (ای نبي!) ته د دوی له مالونو نه صدقه واخله، چې ته دوی پاك کړې او په دې سره يې تزکيه وکړې او دوی ته دعا وکړه، بېشکه ستا دعا د دوی لپاره تسکين دی او الله ښه اورېدونکی، ښه عالم دی

۱۰۴:۹ - ايا دوی نه پوهېدل چې يقينًا الله دی چې هغه له خپلو بنده ګانو توبه قبلوي او صدقې اخلي او دا چې بېشکه الله، هم دی ښه توبه قبلوونکی، بې حده مهربان دی

۱۰۵:۹ - او (ای نبي!) ته ووايه: تاسو عمل کوئ، پس ضرور به الله ستاسو عمل ووينې او د ده رسول او مومنان (هم) او ژر به تاسو بيا بوتلی شئ د پټو او ښکاره وو عالِم (الله) ته، نو هغه به تاسو په هغو کارونو خبر کړي چې تاسو به کول

۱۰٦:۹ - او نور کسان دي چې د الله د حکم لپاره وروسته کړی شوي دي، یا به دوی ته عذاب ورکړي او یا به په دوی باندې مهرباني وکړي او الله ښه عالم، ښه حکمت والا دی

۱۰۷:۹ - اوهغه خلق چې یو جومات یې جوړ کړی دی د ضرر رسولو لپاره او د کفر کولو لپاره او د مومنانو په مینځ کې د بېلتون راوستلو لپاره او د هغو کسانو د انتظار (او کمین) لپاره چا چې له دې نه مخکې (هم) له الله او له هغه د رسول سره جنګ کړی دی. او دوی به یقینًا هرومرو قسمونه خوري چې مونږ اراده نه ده کړې مګر د نېکۍ او الله شاهدي وايي چې بېشکه دوی یقینًا دروغجن دي

۱۰۸:۹ - ته په دغه (جومات) کې هیڅکله هم مه ودرېږه، یقینًا هغه جومات چې بنیاد یې له اولې ورځې نه په تقویٰ ایښودل شوی دی؛ ډېر لایق دی د دې چې ته په کې ودرېږې، په دې (جومات) کې داسې سړي دي چې ښه پاك اوسېدل خوښوي او الله ښه پاك اوسېدونکي خوښوي

۱۰۹:۹ - ایا نو هغه څوك چې د خپلې ابادۍ بنیاد یې د الله په تقویٰ او رضامندۍ باندې ایښی دی، غوره دی، یا هغه څوك چې د خپلې ابادۍ بنیاد یې د نړېدونکې کندې (پاڼډ) په غاړه ایښی دی، نو هغه د جهنم په اور کې له هغه سره ونړېږي او الله ظالم قوم ته هدایت نه کوي

۱۱۰:۹ - د دوی هغه ابادي چې دوی جوړه کړې ده؛ همېشه به د دوی په زړونو کې د شك سبب وي مګر دا چې د دوی زړونه ټوټې ټوټې شي او الله ښه پوه، ښه حکمت والا دی

۱۱۱:۹ - بېشکه الله له مومنانو نه د هغوی ځانونه او د هغوی مالونه اخیستي دي په بدل د دې کې چې یقینًا د دوی لپاره جنت دی، دوی د الله په لاره کې جنګ کوي، نو وژل کوي او وژلی شي، دا په تورات او انجیل او قرآن کې د هغه په ذمه حقه وعده ده او له الله نه په خپلې وعدې باندې زیات ښه وفا کوونکی (بل) څوك دی؟ نو تاسو په خپلې هغې سودا باندې ښه خوشاله شئ چې تاسو له هغه (الله) سره کړې ده او همدغه ډېر لوی بری دی

۱۱۲:۹ - (دوی) توبه کوونکي دي، عبادت کوونکي، ثنا ویونکي، روژه نیونکي، رکوع کوونکي، سجده کوونکي، د نېکۍ حکم کوونکي او له بدو کارونو څخه منع کوونکي دي او د الله د حدودو حفاظت کوونکي دي. او ته مومنانو ته زېری ورکړه

۱۱۳:۹ - د نبي او هغو کسانو لپاره چې ایمان یې راوړی دی؛ روا نه دي چې د مشرکانو لپاره مغفرت وغواړي اګر که دغه (مشرکان) د خپلولۍ والا وي، وروسته له دې نه چې دوی ته دا ښه ښکاره شوه چې یقینًا دوی د دوزخ والا دي

۱۱۴:۹ - او د خپل پلار لپاره د ابراهیم مغفرت غوښتل نه و مګر د یوې وعدې له وجې نه چې د هغې وعده یې له هغه (خپل پلار) سره کړې وه، نو کله چې هغه ته ښه څرګنده شوه چې یقینًا هغه د الله دښمن دی (، نو) له هغه نه بېزاره شو، بېشکه ابراهیم خامخا ډېر آه کوونکی (په زړه

نرم) ډېر تحمل والا و

۱۱۵:۹ - او الله هيڅكله هم داسې نه دی چې يو قوم بې لارې كړي وروسته له دې چې دوی ته يې لاره ښودلې وي تر هغه پورې چې دوی ته هغه څه بيان كړي چې دوی ترې ځان وساتي، بېشكه الله په هر شي باندې ښه پوه دی

۱۱۶:۹ - بېشكه الله چې دی، د اسمانونو او ځمكې سلطنت خاص د هغه لپاره دی، هغه ژوندي كول كوي او هغه مړه كول كوي او تاسو لپاره له الله نه غير نه هېڅ كار ساز شته او نه هېڅ مددگار

۱۱۷:۹ - يقينًا يقينًا الله په مهربانۍ سره رجوع وكړه په خپل نبي او مهاجرو او انصارو باندې، په هغو كسانو باندې چې د تنگۍ په وخت كې يې د هغه متابعت وكړ، وروسته له دې چې قريب وه چې په دوی كې د يوې ډلې زړونه كاږه شي، بيا هغه (الله) په دوی باندې مهرباني وكړه، يقينًا هغه په دوی ډېرنرمي كوونكی، بې حده مهربان دی

۱۱۸:۹ - او په هغو درې كسانو باندې چې وروسته كړی شوي وو، تر دې چې په دوی باندې ځمكه، سره د هغې له ارت والي تنگه شوه او په دوی باندې خپل ځانونه (هم) تنگ شول او دوی يقين وكړ چې د الله (له عذاب) نه د پناه هېڅ ځای نشته مگر هم ده ته دی، بيا هغه (الله) په دوی مهرباني وكړه، د دې لپاره چې دوی توبه وباسي.، بېشكه چې الله، هم دی ښه توبه قبلوونكی، بې حده مهربان دی

۱۱۹:۹ - ای هغو كسانو چې ايمان يې راوړی دی! تاسو له الله نه ووېرېږئ او له رښتينو سره ملگري شئ

۱۲۰:۹ - د مدينې د خلقو لپاره او د دوی چاپېره د هغه چا لپاره چې اعرابيان دي، روا نه دي چې له رسول الله (ﷺ) نه شا ته پاتې شي او نه دا چې خپل ځانونه د هغه له ځان نه ښه او غوره وگڼي، دا ځكه چې يقينًا دوی چې دي، دوی ته نه څه تنده رسي او نه ستړي والی او نه لوږه د الله په لاره كې او نه دوی په كوم داسې ځای قدمونه ږدي چې كفار په غصه كوي اونه رسي دوی دښمن ته په (هېڅ) رسېدلو سره (چې د هغوی وژل، بنديان كول او لوټ كول دي) مگر دوی ته په دې سره نېك عمل ليكلی شي، بېشكه الله د نېكي كوونكو اجر نه ضايع كوي

۱۲۱:۹ - او نه دوی څه نفقه لگوي، نه وړه او نه لويه او نه څه ميدان قطع كوي مگر د دوی لپاره (يې ثواب) ليكلی شي، د دې لپاره چې الله دوی ته د هغو بهترينو عملونو جزا وركړي چې دوی به كول

۱۲۲:۹ - او مومنان داسې نه دي چې ټول له څېرمې ووځي، نو ولې نه وځي د دوی له هرې ډلې نه يو ټولگی؟ د دې لپاره چې دوی په دين كې ژوره پوهه پيدا كړي او خپل قوم ته انذار وركړي كله

چې دوی ته راواپس شي، د دې لپاره چې دوی ووېرېږي

۱۲۳:۹ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو له هغو کفارو سره وجنګېږئ چې تاسو ته نژدې دي او لازم ده چې دوی په تاسو کې سختي ومومي او تاسو پوه شئ چې یقینًا الله د پرهېزګارو ملګری دی

۱۲۴:۹ - او کله چې هم کوم سورت نازل کړی شي، نو په دوی کې ځینې هغه څوك دي چې وايي: په تاسو کې کوم یو دی چې دې (سورت) د هغه ایمان زیات کړ؟ نو هر چې مومنان دي، نو دې (سورت) د دوی ایمان ورزیات کړ، په داسې حال کې چې دوی ښه خوشالېږي

۱۲۵:۹ - او پاتې شو هغه کسان چې د هغوی په زړونو کې مرض دی، نو دې (سورت) هغوی ته د هغوی له ګندګۍ سره ګندګي ور زیاته کړه او دوی مړه شول، په دې حال کې چې دوی کافران وو

۱۲۶:۹ - او ایا دوی نه ګوري چې یقینًا دوی هر کال یو ځله، یا دوه ځله ازمایلی شي، بیا نه دوی توبه وباسي او نه دوی نصیحت اخلي

۱۲۷:۹ - او کله چې هم کوم سورت نازل کړی شي د دوی ځینې ځینو (نورو) ته وګوري چې ایا تاسو څوك ویني؟ بیا واپس شي، الله د دوی زړونه ګرځولي دي، په سبب د دې چې یقینًا دوی داسې قوم دی چې نه پوهېږي

۱۲۸:۹ - یقینًا یقینًا تاسو ته له هم ستاسو له جنسه نه رسول راغلی دی، هغه څه چې تاسو په تکلیف کې اچوي؛ په ده ډېر سخت (او درانه) دي، ستاسو (د هدایت) لپاره پر تاسو باندې ډېر حرصناك دی، په مومنانو باندې ډېر نرمي کوونکی، ډېر مهربان دی

۱۲۹:۹ - نو که چېرې دوی (د حق له قبلولو نه) وګرځي، نو ته ووایه: ما ته الله کافي دی، نشته دی هېڅ لایق د عبادت مګر هغه دی، خاص په هغه باندې ما توکل کړی دی. او هم هغه د عظیم عرش مالك دی

## (مکي) یونس - یونس ۱۰

۱:۱۰ - الف، لام، را، دا له حکمت نه د ډك کتاب ایتونه دي

۲:۱۰ - ایا د خلقو لپاره دا تعجب دی چې مونږ په دوی کې یو سړي ته دا وحي وکړه چې ته خلق ووېروه او هغو کسانو ته زېری ورکړه چې ایمان یې راوړی دی چې یقینًا د دوی لپاره د خپل رب په نیز لویه رښتینې مرتبه ده. (نو) کافرانو وویل: بېشکه دا یقینًا ښکاره جادوګر دی

۳:۱۰ - بېشکه چې ستاسو رب هم هغه الله دی چې پیدا کړي یې دي اسمانونه او ځمکه په

شپږو ورځو کې، بیا دی په عرش باندې برقرار شو، دی د ټولو کارونو تدبیر کوي، هېڅ سفارشي نشته مګر د هغه له اجازت نه وروسته، دغه الله ستاسو رب دی، نو تاسو د ده عبادت کوئ، ایا نو تاسو نصیحت نه اخلئ

۴:۱۰ - خاص همٙ ده ته ستاسو د ټولو واپسي ده، الله حقه وعده کړې ده، بېشکه دی مخلوق لره اول ځل پیدا کوي، بیا یې دوباره ژوندي کوي، د دې لپاره چې هغو خلقو ته چې ایمان یې راوړی دی په انصاف سره بدله ورکړي او نېك عملونه یې کړي دي، او هغه کسان چې کفر یې کړی دی، د دوی لپاره ایشېدلې ګرمې اوبه دي او ېخي دردناك عذاب دی، په دې سبب چې دوی به کفر کاوه

۵:۱۰ - همٙ هغه (الله) دی چې (ټیکلی د) لمر یې تېز ځلېدونکی ګرځولی دی او (ټیکلی د) سپوږمۍ یې روښانه او هغه یې منزلونه منزلونه مقرر کړه (او منزلونه یې مقرر کړل)، د دې لپاره چې تاسو د کلونو شمېره او حساب معلومٙ کړئ۔ الله دا (څیزونه) نه دي پیدا کړي مګر په حقه سره، هغه ایتونه (دلیلونه) په تفصیل سره بیانوي، د هغو خلقو لپاره چې پوهېږي

۶:۱۰ - بېشکه د شپې او ورځې په اختلاف کې او په هغو (شیانو) کې چې الله په اسمانونو او ځمکه کې پیدا کړي دي، خامخا نښې دي د هغو خلقو لپاره چې وېرېږي

۷:۱۰ - بېشکه هغه کسان چې زمونږ د ملاقات امېد نه لري او په دنیایي ژوند راضي شوي دي او په دې (ژوند) مطمئن دي او هغه کسان چې دوی زمونږ له ایتونو نه غافلان دي

۸:۱۰ - دغه کسان، د دوی استوګنه اور دی، په سبب د هغه چې دوی به کول

۹:۱۰ - بېشکه هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي، د دوی رب به دوی ته د خپل ایمان په سبب لارښوونه کوي، د نعمتونو په باغونو کې به د دوی له لاندې نهرونه بهېږي

۱۰:۱۰ - د دوی وینا به په دغو (جنتونو) کې سُبْحَانَكَ اللهمٙ (ای الله! ستا پاکي بیانوو) وي او په دغو (باغونو) کې به د دوی ډالۍ سلامٙ وي او د دوی د وینا اخر به دا وي چې ټول صفتونه خاص د الله لپاره دي چې د ټولو عالمونو ښه پالونکی دی

۱۱:۱۰ - او که چېرې الله خلقو ته بدي جلت ورسوي، په شان د جلت غوښتلو د دوی خیر لره (، نو) خامخا دوی ته به د دوی موده پوره کړی شوې وی، نومونږه هغه کسان چې زمونږ د ملاقات امېد نه لري په خپلې سرکشۍ کې پرېږدو، چې سرګردانه وي

۱۲:۱۰ - او کله چې انسان ته تکلیف ورسېږي (نو) په خپل اړخ باندې (پروت)، یا ناست، یا په ولاړه مونږ بلي، نو کله چې مونږ له هغه نه د هغه تکلیف لرې کړو (نو داسې) تېرېږي لکه چې ده مونږ نه وو بللي (د) هغه تکلیف (لرې کولو) ته چې ده ته ور رسېدلی و، همدارنګه له حد نه تېرېدونکو

ته هغه عملونه ښايسته کړی شول چې دوی به کول

۱۰:۱۳ - او يقيناً يقيناً ستاسو نه مخکې قرنونه (مخکيني خلق) مونږ هلاك كړل كله چې هغوی ظلم وكړ او هغوی ته خپلو رسولانو ښكاره معجزې راوړې وې او هغوی له سره داسې نه وو چې ايمان يې راوړی وی، همدارنګه مونږ مجرمو خلقو ته سزا وركوو

۱۰:۱۴ - بيا مونږه له هغوی نه وروسته تاسو په ځمكه كې ځای ناستي جوړ كړئ، د دې لپاره چې مونږ وګورو تاسو څنګه عمل کوئ

۱۰:۱۵ - او كله چې په دوی باندې زمونږ ايتونه، چې واضح دي ولوستل شي، هغه كسان ووايي چې زمونږ د ملاقات امېد نه لري: ته له ده نه غير قرآن راوړه، يا په ده كې تبديلي وكړه، ته (ورته) ووايه: ما ته دا حق نشته چې زه په ده كې د خپل ځانه تبديلي وكړم،، زه پيروي نه كوم مګر د هغه چې ما ته وحي كولی شي، بېشكه زه د ډېرې سترې ورځې له عذاب نه وېرېږم كه د خپل رب نافرماني وكړم

۱۰:۱۶ - ته ووايه: كه چېرې الله غوښتلی (، نو) ما به دا (قرآن) پر تاسو باندې نه و لوستی او نه به هغه تاسو په ده عالمان كړي وی، پس يقيناً ما له ده نه مخكې په تاسو كې ډېر عمر تېر كړی دی، ايا نو تاسو له عقل نه كار نه اخلئ؟

۱۰:۱۷ - نو له هغه چا نه لوی ظالم څوك دی چې په الله باندې دروغ تپي، يا د هغه د ايتونو تكذيب كوي، بېشكه شان دا دی چې مجرمان به خلاصی ونه مومي

۱۰:۱۸ - او دوی له الله نه غير د هغو څيزونو عبادت كوي چې نه دوی ته ضرر رسولی شي او نه دوی ته نفع رسولی شي او دوی وايي: دا د الله په وړاندې زمونږ سفارشيان دي، ته ووايه: ايا تاسو الله په هغه څه خبروئ چې هغه يې نه په اسمانونو كې پېژني او نه يې په ځمكه كې، هغه ډېر پاك دی او ډېر اوچت دی له هغو څيزونو نه چې دوی يې ورسره شريكوي

۱۰:۱۹ - او خلق نه وو مګر يو امت، بيا دوی مختلفه شول او كه چېرې نه وی هغه خبره چې ستا د رب له خوا مخكې ثابته شوې ده خامخا د دوی په مينځ كې به د هغو خبرو فيصله شوې وی چې دوی په كې اختلاف كوي

۱۰:۲۰ - او دوی وايي: ولې په ده باندې د خپل رب له جانبه معجزه نه ده نازله كړی شوې؟ نو ته (ورته) ووايه: بېشكه همدا خبره ده چې (علم د) غيب د الله لپاره خاص دی، نوتاسو انتظار كوئ، بېشكه زه له تاسو سره له انتظار كوونكو څخه يم

۱۰:۲۱ - او كله چې مونږ په خلقو باندې څه رحمت وڅكو، وروسته له هغه تكليف نه چې دوی ته رسېدلی وي (، نو) ناڅاپه دوی زمونږ په ايتونو كې مكر كوي، ته ووايه: الله د مكر په لحاظ سره تر ټولو جلت دی، بېشكه زمونږ رسولان (ملايك) ليكي هغه څه چې تاسو مكر كوئ

۲۲:۱۰ - هم هغه دی چې تاسو په وچه او بحر کې گرځوي، تر دې چې کله تاسو په کښتیو کې (سواره) شئ، او دا (کښتۍ) له دوی سره په ښې (موافقې) هوا سره رواني شي او په دې سره دوی خوشحاله شي (، نو) په دې (کښتیو) باندې سخت تېز باد راشي او په دې (خلقو) باندې له هر ځایه چپې راشي او دوی یقین وکړي چې بېشکه دوی گېر کړی شول (بیا) دوی الله بلي، په داسې حال کې چې خاص هغه لره دین (عبادت) خالص کوونکي وي (او وایي) یقینًا که چېرې تا مونږ ته له دې (مصیبت) نه خلاصی راکړ (، نو) مونږ به هرومرو لازمًا له شکر کوونکو څخه شو

۲۳:۱۰ - نو کله چې هغه، دوی ته نجات ورکړي ناڅاپه دوی په ځمکه کې ناحقه ظلم فساد کوي، ای خلقو! بېشکه همدا خبره ده چې ستاسو ظلم او سرکشي د خپلو ځانونو په ضرر ده. د دنیایي ژوند فایده (واخلئ) بیا خاص مونږ ته ستاسو واپس راتله دي، نو مونږ به تاسو په هغو عملونو خبر کړو چې تاسو به کول

۲۴:۱۰ - بېشکه همدا خبره ده چې د دنیایي ژوند مثال د هغو اوبو په شان دی چې مونږ له اسمانه نازلې کړې، بیا په (سبب د) هغو سره د ځمکې زرغونه ښه گډه وډه شي له هغو څیزونو ځنې چې خلق او څاروي یې خوري، تر دې چې کله ځمکه خپل زینت واخلي او ښه ښکلې شي او د هغې خاوندان یقین وکړي چې یقینًا دوی په دې قادر دي (، نو) هغې ته زمونږ حکم د شپې راشي، یا د ورځې، نو مونږ هغه رېبل شوې کړو، گویا کې دغه (اباده زرغونه ځمکه) پرون له سره موجوده نه وه، همدارنگه مونږه ایتونه په تفصیل سره بیانوو د هغو خلقو لپاره چې ښه فکر کوي

۲۵:۱۰ - او الله د سلامتۍ کور ته بلنه کوي او چا ته چې وغواړي هغه ته د نېغې لارې هدایت کوي

۲۶:۱۰ - د هغو کسانو لپاره چې نېکي یې کړي ده ډېره نېکه بدله ده او زیادت (د اجر هم شته) او د دوی مخونه به نه هېڅ تورگرد او غبار پټوي او نه څه ذلت، دغه کسان د جنت والا دي دوی به په هغه کې همېشه وي

۲۷:۱۰ - او هغه کسان چې بد کارونه یې کړي دي (د دوی) د بدۍ جزا د هغې په مثل ده او ذلت به دوی لره پټوي، د د دوی لپاره به د الله (له عذاب) نه هېڅ ساتونکی نه وي، گویاکې د دوی مخونه د تکې تیارې شپې په ټکړو پټ کړی شوي دي، دغه کسان د اور والا دي، دوی به په هغه کې همېشه وي

۲۸:۱۰ - او هغه ورځ چې مونږ به دوی ټول راجمع کړو، بیا به مونږ هغو کسانو ته چې شرك یې کړی دی، ووایو: تاسو او ستاسو شریکان په خپل ځای ټینگ ودرېږئ، نو مونږ به د دوی په مینځ کې بېلتون راولو او د دوی شریکان به ووایي: تاسو خو زمونږ عبادت نه کاوه

۲۹:۱۰ - نو الله ښه کافي گواه دی زمونږ په مینځ کې او ستاسو په مینځ کې، بېشکه شان دا دی

چې مونږ ستاسو له عبادته يقيناً ناخبره وو

۳۰:۱۰ - په دغه ځای کې به هر نفس وازمايي هغه څه چې ده مخکې لېږلي دي او دوی به خپل حق مولٰی (مالك) ته واپس بوتلی شي او له دوی نه به هغه څه ورك شي چې دوی به له ځانه دروغ جوړول

۳۱:۱۰ - ته ووايه: تاسو ته له اسمان او ځمکې نه روزي څوك درکوي؟ يا د غوږونو او سترګو مالك څوك دی اوڅوك ژوندی له مړي راوباسي او مړی له ژوندي راوباسي او څوك د کارونو تدبير کوي؟ نو يقيناً دوی به وايي چې الله دی، (نو ته ووايه:) ايا نو تاسو نه وېرېږئ!

۳۲:۱۰ - نو دغه الله ستاسو په حقه رب دی، نو له حق نه بعد نشته مګر ګمراهي، نو تاسو کوم طرف ته ګرځولی شئ؟

۳۳:۱۰ - همدارنګه ستا د رب کلمه په هغو کسانو باندې چې فسق يې کړی دی، ثابته شوه چې يقيناً دوی ايمان نه راوړي

۳۴:۱۰ - ته (دوی ته) ووايه: ايا ستاسو په شريکانو کې داسې څوك شته چې مخلوق لره اول ځل پيدا کوي، بيا يې دوباره ژوندي کوي؟ ته ووايه: الله مخلوق لره اول ځل پيدا کوي، بيا به يې دوباره ژوندي کوي، نو تاسو کوم اړخ ته اړول کېږئ؟

۳۵:۱۰ - ته (دوی ته) ووايه: ايا ستاسو په شريکانو کې داسې څوك شته چې د حق طرف ته هدايت کوي؟ ته ووايه: الله حق ته لار ښوونه کوي، ايا نو هغه څوك چې حق ته لار ښوونه کوي زيات حقدار دی چې متابعت يې وکړی شي، يا که هغه څوك چې (پخپله هم) لاره نشي موندلی مګر دا چې لار ورته وښودلی شي؟ نو په تاسو څه شوي دي، تاسو څنګه فيصله کوئ؟

۳۶:۱۰ - او د دوی زياتره پيروي نه کوي مګر د ګمان، بېشکه ګمان د حق په مقابله کې هېڅ فايده نه ورکوي، بېشکه الله ښه پوه دی په هغو کارونو چې دوی يې کوي

۳۷:۱۰ - او دا قرآن هيڅکله هم داسې نه دی چې له الله نه پرته په دروغو جوړ کړی شي او لېکن دا تصديق دی د هغو (کتابونو) چې له ده نه مخکې دي او د رب العلمين له جانبه د کتاب تفصيل دی چې هېڅ شك په کې نشته

۳۸:۱۰ - ايا دوی وايي چې ده دا له ځانه جوړ کړی دی، ته (دوی ته) ووايه: نو تاسو يو سورت د ده په مثل راوړئ او له الله نه پرته چې څوك کولی شئ راوبلئ، که چېرې تاسو رښتينې يئ

۳۹:۱۰ - بلکې دوی د هغه (قرآن) تکذيب وکړ چې دوی د هغه د علم احاطه نه وه کړې، او دوی ته لا د ده حقيقت نه و راغلی.، همدارنګه تکذيب کړی و هغو کسانو چې له دوی نه مخکې وو، نو ته وګوره د ظالمانو انجام څنګه و؟

۱۰:۴۰ - او ځينې په دوی کې هغه څوك دي چې په ده ايمان راوړي او ځينې په دوی کې هغه څوك دي چې په ده ايمان نه راوړي، او ستا رب پر فساد کوونکو تر ټولو ښه پوه دی

۱۰:۴۱ - او که چېرې دوی ستا تکذيب وکړي، نو ته (دوی ته) ووايه: زما لپاره زما عمل دی او ستاسو لپاره ستاسو عمل دی، او تاسو له هغه عمل نه بېزاره يئ چې زه يې کوم او زه له هغه عمل نه بېزاره يم چې تاسو يې کوئ

۱۰:۴۲ - او ځينې په دوی کې هغه کسان دي چې تا ته په غور سره غوږ نيسي، ايا نو ته کڼو ته اورول کولی شې اگر که دوی عقل هم ونه لري؟

۱۰:۴۳ - او ځينې په دوی کې هغه کسان دي چې تا ته گوري، ايا نو ته ړندو ته لار ښودلی شې اگر که هغوی ليدل هم نه کوي

۱۰:۴۴ - بېشکه الله په خلقو باندې هېڅ شی ظلم نه کوي او لېکن همدا خلق پر خپلو ځانونو ظلم کوي

۱۰:۴۵ - او هغه ورځ چې هغه (الله) به دوی راجمع کړي، په دې حال کې چې لکه دوی (په دنيا کې) نه وو اوسېدلي مگر د ورځې يوه گړۍ، دوی به په خپل مينځ کې يو بل پېژني، يقيناً هغه کسان تاوانيان شول چې د الله د ملاقات تکذيب يې کړی و او دوی هدايت موندونکي نه وو

۱۰:۴۶ - او که کله هم مونږ تا ته ځينې هغه څه وښيو چې مونږه يې له دوی سره وعده کوو، يا تا وفات کړو، نو خاص زمونږ طرف ته د دوی واپس راتلل دي، بيا الله ښه گواه دی په هغو کارونو چې دوی يې کوي

۱۰:۴۷ - او دهر امت لپاره يو رسول و، نو کله چې به د هغوی رسول راغی د هغوی په مينځ کې به په انصاف سره فيصله وکړی شوه، په داسې حال کې چې په دوی به ظلم نه کېده

۱۰:۴۸ - او دوی وايي: دا وعده کله ده که چېرې تاسو رښتيني يئ؟

۱۰:۴۹ - ته (دوی ته) ووايه: زه د خپل ځان لپاره نه د هېڅ ضرر او نه د هېڅ فايدې مالك يم مگر هغه چې الله يې وغواړي، د هر امت لپاره يو نېټه ده (، نو) کله چې د دوی نېټه راشي، نو دوی نه يوه گړۍ وروسته کېږي اونه مخکې کېږي

۱۰:۵۰ - ته (دوی ته) ووايه: تاسو خبر راکړئ! که چېرې په تاسو د هغه عذاب د شپې راشي، يا د ورځې، (نو) څه دی هغه (عذاب) چې مجرمان يې په تلوار غواړي؟

۱۰:۵۱ - ايا بيا به تاسو په دې (عذاب) ايمان راوړئ کله چې واقع شي؟ ايا اوس (ايمان راوړئ چې عذاب نازل شو؟)!، حال دا چې يقيناً تاسو وئ چې د دغه (عذاب) به مو جلتي کوله

۱۰:۵۲ - بيابه ظالمانو ته وويل شي: تاسو د همېشه والي عذاب وڅکئ، تاسو ته سزا نه درکولی

شي مگر په سبب د هغه (عمل) چې تاسو به کاوه

۱۰:۵۳ - او دوی له تا نه پوښتنه کوي چې ایا دا حق دی؟ ته (ورته) ووایه: هوا پخپل رب مې دې قسم وي چې بېشکه دغه خامخا حق دی او تاسو (له الله لره) عاجزه کوونکي نه يئ

۱۰:۵۴ - او که چېرې یقینًا د هر هغه نفس لپاره چې ظلم يې کړی دی، هغه څه وي چې په ځمکه کې دي، نو خامخا به يې فدیه کړي او دوی به پښیماني پټه کړي کله چې دوی عذاب ووینې او د دوی په مینځ کې به فیصله په انصاف سره وکړی شي، په دې حال کې چې په دوی به ظلم نه کېږي

۱۰:۵۵ - اگاه شئ! بېشکه خاص د الله لپاره دي هغه څه چې په اسمانونو او ځمکه کې دي، اگاه شئ! بېشکه د الله وعده حقه ده او لېکن د دوی اکثره نه پوهېږي

۱۰:۵۶ - هغه ژوندي کول کوي او مړه کول کوي او خاص د هغه په طرف به تاسو ورگرځولی شئ

۱۰:۵۷ - ای خلقو! یقینًا تاسو ته د خپل رب له جانبه نصیحت راغلی دی او په سینو کې چې څه (مرضونه) دي د هغو لپاره ستره شفا ده او د مومنانو لپاره هدایت او رحمت دی

۱۰:۵۸ - ته ووایه: د الله په فضل سره او د هغه په رحمت سره، لهذا په دې سره دې دوی خوشحاله شي، دا ډېر غوره دی له هغه نه چې دوی يې جمع کوي

۱۰:۵۹ - ته (دوی ته) ووایه: تاسو ما ته خبرراکړئ! هغه رزق چې الله تاسو لپاره نازل کړی دی، نو تاسو له هغه نه څه حرام او څه حلال گرځولی دی، ته (ورته) ووایه: ایا الله تاسو ته د دې اجازت (خبر) درکړی دی، یا تاسو په الله پورې دروغ تړئ؟

۱۰:٦۰ - او د هغو کسانو، چې په الله باندې له ځانه دروغ تړي، څه گمان دی، د قیامت په ورځ کې (به ورسره څه کېږي) بېشکه الله په خلقو باندې خامخا د فضل کولو والا دی او لېکن د دوی زیاتره شکر نه وباسي

۱۰:٦۱ - او ته نه يې په کوم کار کې (مشغوله) او نه ته لولې له دې نه، یعنې له قرآنه او نه تاسو څه عمل کوئ مگر مونږ پر تاسو باندې شاهدان یو کله چې تاسو په هغه کې بوختېږئ او ستا له رب نه په ځمکه کې اونه په اسمان کې د ذرې په اندازه (شی) هم نه پټېږي او نه له دې نه زیات وړوکی شی او نه له دې نه زیات غټ مگر په واضحه کتاب کې دي

۱۰:٦۲ - اگاه شئ! بېشکه د الله دوستان چې دي؛ پر هغوی باندې نه څه وېره شته او نه دوی غمژن کېږي

۱۰:٦۳ - هغه کسان چې ایمان يې راوړی دی او ځان (له نافرمانیو) ساتي

۱۰:٦٤ - د همدوی لپاره په دنیایي ژوند کې زېری دی او په اخرت کې (هم). د الله کلماتو لره هېڅ بدلول نشته، همدغه ډېر ستر بری دی

۱۰:٦٥ - او د دوی وینا دې تا غمژن نه کړي، بېشکه عزت ټول خاص د الله لپاره دی، هم هغه ښه اورېدونکی، ښه پوه دی

۱۰:٦٦ - خبردار شئ! بېشکه خاص د الله لپاره دي هغه څوك چې په اسمانونو کې دي او هغه څوك چې په ځمکه کې دي او پیروي نه کوي هغه کسان چې له الله نه پرته شریکان بلي، دوی پیروي نه کوي مگر د گمان او نه دي دوی مگر دا چې اټکل چلوي

۱۰:٦۷ - دی همغه ذات دی چې تاسو لپاره یې شپه جوړه کړې ده، د دې لپاره چې تاسو په دې کې په ارام شئ او ورځ یې روښانه (گرځولې ده)، بېشکه په دې کې خامخا نښې دي د هغه قوم لپاره چې اوري

۱۰:٦۸ - دوی وايي: الله (د ځان لپاره) اولاد نیولی دی، هغه پاك دی، هم دی غني (بې پروا) دی، خاص ده لره دي هغه څه چې اسمانونو کې دي او هغه څه چې په ځمکه کې دي تاسو سره په دې خبره هېڅ دلیل نشته، ایا تاسو په الله باندې هغه خبره ورتپئ چې پرې نه پوهېږئ؟

۱۰:٦۹ - ته ووایه: بېشکه هغه کسان چې په الله باندې له ځانه دروغ تړي؛ دوی به خلاصی ونه مومي

۱۰:۷۰ - په دنیا کې لږه فایده اخیستل دي، بیا خاص مونږ ته د دوی واپس راتلل دي، بیا به مونږ دوی ته ډېر سخت عذاب ورڅکوو، په سبب د دې چې دوی کفر کاوه

۱۰:۷۱ - او ته دوی ته د نوح خبر ولوله، کله چې هغه خپل قوم ته وویل: ای زما قومه! که چېرې پر تاسو باندې زما اوسېدل او د الله په ایتونو سره (تاسو ته) زما نصیحت کول سخت (او گران) وي، نو ما خاص په الله باندې توکل کړی دی، نو تاسو له خپلو شریکانو سره د خپل کار پخه اراده وکړئ، بیا دې پر تاسو باندې خپله معامله پټه نه وي، بیا ما ته ضرر راورسوئ او ما ته مهلت (هم) مه راکوئ

۱۰:۷۲ - نو که تاسو وگرځېدئ، پس ما له تاسو نه هېڅ مزدوري نه ده غوښتې، زما اجر یواځې په الله دی او ما ته حکم شوی دی چې زه شم له مسلمانانو څخه

۱۰:۷۳ - پس هغوی د ده تکذیب وکړ، نو مونږ ده ته او هغه چا ته چې له ده سره په بېړۍ کې (سواره) وو، نجات ورکړ او مونږ دوی خلیفگان (ځای ناستي) جوړ کړل او هغه کسان مو غرق کړل چا چې زمونږ د ایتونو تکذیب کړی و، نو ته وگوره د وېرول شویو انجام څنگه و؟

۱۰:۷۴ - بیا مونږ له ده نه بعد خپلو قومونو ته نور رسولان ولېږل، نو هغوی ته یې څرگند دلیلونه

راوړل، پس دوی داسې نه وو چې په هغه څه یې ایمان راوړی وی چې له دې نه مخکې یې د هغه تکذیب کړی و، همدارنګه (په دې وجه) مونږ د زیاتي کوونکو په زړونو مهر لګوو

۷۵:۱۰ - بیا مونږ له دوی نه بعد موسیٰ او هارون ولېږل په ښکاره معجزو سره فرعون او د هغه سردارانو ته، نو هغوی تکبر وکړ او دوی مجرمان خلق وو

۷۶:۱۰ - پس کله چې زمونږ له خوا نه دوی ته حق راغی، دوی وویل: بېشکه دا یقینًا ښکاره جادو دی

۷۷:۱۰ - موسیٰ وویل: ایا تاسو حق ته (جادو) وایئ کله چې تاسو ته راغی، ایا جادو دا دی؟، حال دا چې جادوګر خو بری نه مومي

۷۸:۱۰ - دوی وویل: ایا ته مونږ ته د دې لپاره راغلی یې چې مونږه د هغې (لارې) نه واړوي چې په هغې مونږ خپل پلرونه موندلي دي او په ځمکه کې تاسو دواړو ته لویي (غلبه) حاصله شي؟ او مونږه په تاسو دواړو ایمان راوړونکي نه یو

۷۹:۱۰ - او فرعون وویل: تاسو ما ته هر ښه پوه (ماهر) جادوګر راولئ

۸۰:۱۰ - نو کله چې جادوګر راغلل، موسیٰ دوی ته وویل: وغورځوئ هغه څه چې تاسو یې غورځوونکي یئ

۸۱:۱۰ - پس کله چې دوی (امساګانې او پړي) وغورځول، موسیٰ وویل: هغه څه چې تاسو راوړي دي، واقعي جادو دی، بېشکه الله به یې ژر تباه (بې اثره) کړي، بېشکه الله د فساد کوونکو کار نه جوړوي

۸۲:۱۰ - او الله په خپلو کَلِمو سره حق ثابتوي اګر که مجرمان یې بد ګڼي

۸۳:۱۰ - نو په موسیٰ ایمان رانه وړ مګر د هغه له قومه څو ځلمیانو، د فرعون او د هغوی د سردارانو څخه په دې وېره کې چې دوی به یې په فتنه کې واچوي او بېشکه فرعون په ځمکه کې سرکشي کوونکی و او بېشکه هغه له حده تېرېدونکو څخه و

۸۴:۱۰ - او موسیٰ وویل: ای زما قومه! که چېرې تاسو (داسې) یئ چې په الله مو ایمان راوړی دی، نو خاص په هغه باندې توکل وکړئ که چېرې تاسو مسلمانان یئ

۸۵:۱۰ - پس دوی وویل: خاص په الله باندې مونږ توکل کړی دی، ای زمونږه ربه! مونږ د ظالمو خلقو لپاره فتنه مه جوړوه

۸۶:۱۰ - او په خپل رحمت سره مونږ ته له کافرو خلقو نه نجات راکړه

۸۷:۱۰ - او مونږ موسیٰ او د هغه ورور ته وحي وکړه دا چې تاسو د خپل قوم لپاره په مصر کې څه کوټې مقررې کړئ او خپلې کوټې قبله وګرځوئ او تاسو لمونځ قایموئ او ته مومنانو ته زېری

ورکړه

۸۸:۱۰ - او موسیٰ وویل: ای زمونږ ربه! بېشکه همـ تا فرعون او د هغه سردارانو ته په دنيايي ژوند کې زينت او مالونه ورکړي دي، ای زمونږ ربه! د دې لپاره چې دوی ستا له لارې نه (خلق) بې لارې کړي، ای زمونږ ربه! ته د دوی مالونه محوه کړه او د دوی په زړونو سختي راوله، پس چې دوی ايمان رانه وړي تر هغه چې دېر دردناك عذاب ووينې

۸۹:۱۰ - ويې ويل: يقيناً ستاسو د دواړو دعا قبوله کړی شوه، لهذا سمـ ولاړ اوسئ او هيڅکله همـ د هغو خلقو د لارې پيروي مه کوئ چې نه پوهېږي

۹۰:۱۰ - اومونږه بني اسرائيل له بحر نه پورې وېستل، نو فرعون او د هغه لښکر د ظلمـ او زياتي کولو لپاره د دوی پسې شول، تر دې چې کله دی غرقېدو (ډوبېدو) راونيوه، ده وويل: ما ايمان راوړ په دې (خبره) چې يقيناً شان دا دی چې نشته هېڅ لايق د عبادت مگر هغه ذات چې بني اسرائيلو پر هغه ايمان راوړی دی او زه له مسلمانانو څخه يمـ

۹۱:۱۰ - ايا اوس (ته ايمان راوړې)؟! حال دا چې يقيناً له دې نه مخکې تا نافرماني کوله او ته له فساد کوونکو څخه وې

۹۲:۱۰ - پس نن ورځ به مونږ ستا بدن په لوړ ځای واچوو، د دې لپاره چې ته د هغه چا لپاره چې له تا نه وروسته دي، نښه جوړ شې او بېشکه په خلقو کې ډېر زمونږ له ايتونو څخه يقيناً غافلان دي

۹۳:۱۰ - او يقيناً يقيناً مونږه بني اسرائيلو ته د عزت استوگنه ورکړه او مونږه دوی ته له پاکيزه څيزونو څخه روزي ورکړه، نو دوی اختلاف ونه کړ تر هغه پورې چې دوی ته علمـ راغی، بېشکه ستا رب به د دوی په مينځ کې د قيامت په ورځ فيصله کوي په هغه څيز کې چې دوی په هغه کې اختلاف کاوه

۹۴:۱۰ - نو که چېرې ته د هغه (قرآن) په باره کې په شك کې يې چې مونږ تا ته نازل کړی دی، نو ته له هغو کسانو څخه پوښتنه وکړه چې له تا نه مخکې کتاب لولي، يقيناً يقيناً ستا د رب له جانبه تا ته حق راغلی دی، نو ته هيڅکله همـ له شك کوونکو څخه مه کېږه

۹۵:۱۰ - او هيڅکله همـ مه کېږه له هغو کسانو څخه چې د الله د ايتونو تکذيب يې کړی دی، نو گنې شې به ته له تاوانيانو څخه

۹۶:۱۰ - بېشکه هغه کسان چې ستا د رب خبره پرې ثابته شوې ده، دوی ايمان نه راوړي

۹۷:۱۰ - اگر که دوی ته هره نښه راشي تر هغه پورې چې دوی ډېر دردناك عذاب ووينې

۹۸:۱۰ - نو ولې يو داسې کلی نه و چې ايمان يې راوړی وی، بيا هغه ته د هغه ايمان فايده رسولې وی۔ غير د يونس له قومـ نه کله چې دوی ايمان راوړ (، نو) مونږ له دوی نه په دنيايي ژوند

کې د رسوايۍ عذاب لرې کړو او دوی ته مونږ تر يو وخته پورې فايده ورکړه

۹۹:۱۰ - او که چېرې ستا رب غوښتلی (، نو) خامخا ايمان به راوړی و هغه چا چې په ځمکه کې دي ټول په ټولو، ايا نو ته خلق مجبوروې تر هغه چې دوی مومنان شي؟

۱۰۰:۱۰ - او د هېڅ نفس لپاره ممکن نه دي چې ايمان راوړي مگر په اذن (ارادې) له الله سره او هغه (الله) عذاب په هغو کسانو اچوي چې له عقل نه کار نه اخلي

۱۰۱:۱۰ - ته (ورته) ووايه: تاسو وگورئ په اسمانونو او ځمکه کې څه (څه دليلونه) دي او هغه قوم ته له ايتونو او وېرونکيو څخه فايده نه رسي چې ايمان نه راوړي

۱۰۲:۱۰ - پس دوی انتظار نه کوي مگر په شان د هغو خلقو د بدو ورځو چې له دوی نه مخکې تېر شوي دي، ته (ورته) ووايه: پس تاسو انتظار کوئ، بېشکه زه (هم) له تاسو سره له انتظار کوونکو څخه يم

۱۰۳:۱۰ - بيا مونږ خپلو رسولانو ته نجات ورکوو او همدارنگه هغو کسانو ته چې ايمان يې راوړی دی، پر مونږ ثابته ده دا چې مونږ به مومنانو ته نجات ورکوو

۱۰۴:۱۰ - ته ووايه: ای خلقو! که چېرې تاسوزما د دين په باره کې په شك کې يئ، نو زه خو د هغو څيزونو عبادت نه کوم چې تاسو يې له الله نه پرته (غير) عبادت کوئ او لېکن زه د هغه الله عبادت کوم چې تاسو وفات کوي او ما ته حکم کړی شوی دی دا چې زه شم له مومنانو څخه

۱۰۵:۱۰ - او دا چې ته خپل مخ دين ته سم ودروه، په دې حال کې چې له باطله حق ته مايله يې او ته هيڅکله هم له مشرکانو څخه مه کېږه

۱۰۶:۱۰ - او له الله نه غير هغه شی مه رابله چې تا ته نه فايده دررسولی شي او نه تا ته ضرر دررسولی شي، نو که چېرې ته (دا) وکړې، نو بېشکه ته به په دغه وخت کې له ظالمانو څخه يې

۱۰۷:۱۰ - او که چېرې الله تا ته څه تکليف دررسوي، نو له هغه نه غير هيڅوك هغه (تکليف) لره لرې کوونکی نشته او که چېرې هغه له تا سره د خير اراده وکړي، نو د هغه فضل لره هېڅ منع کوونکی نشته، په خپلو بنده گانو کې چا ته چې وغواړي وررسوي يې او هماغه ښه بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۱۰۸:۱۰ - ته ووايه: ای خلقو! يقيناً تاسو ته د خپل رب له جانبه حق راغی، نو هغه چا چې هدايت اختيار کړ، نو بېشکه همدا خبره ده چې هغه د خپل ځان لپاره هدايت حاصلوي اوڅوك چې بې لارې شي، نو بېشکه همدا خبره ده چې هغه دخپل ځان په ضرر گمراه کېږي او زه پر تاسو باندې نگران نه يم

۱۰۹:۱۰ - او ته متابعت کوه د هغه څه چې تا ته وحي کولی شي او صبر کوه تر هغه پورې چې

# (مکي) هود – هود ۱۱

۱:۱۱ - الف، لام، را، (دا) کتاب دی چې ايتونه يې محکم کړی شوي دي، بيا د ښه حکمت والا، پوره خبردار ذات له خوا نه په تفصيل سره بيان شوي دي

۲:۱۱ - دا چې تاسو عبادت مه کوئ مگر يواځې د الله، بېشکه زه تاسو لپاره د هغه له جانبه (رالېږل شوی) وېروونکی او زېری ورکوونکی يم

۳:۱۱ - او دا چې تاسو له خپل رب نه مغفرت وغواړئ، بيا هغه ته توبه وباسئ (، نو) هغه به تاسو ته د يوې مقررې نېټې پورې ډېره ښکلې فايده درکړي او هر فضل والا ته به د هغه فضل ورکړي او که چېرې تاسو وگرځېدئ، نو بېشکه زه پر تاسو باندې د ډېرې سترې ورځې د عذاب وېره لرم

۴:۱۱ - خاص الله ته ستاسو واپس ورتله دي او هغه په هر شي باندې ښه قادر دی

۵:۱۱ - خبردار شئ! بېشکه دوی خپلې سينې دوه قته کوي، د دې لپاره چې له هغه نه پټ شي، خبردار شي! کله چې دوی خپلې جامې اغوندي، هغه (الله) پوهېږي په هغه څه چې دوی (يې) پټوي اوپه هغه څه چې دوی (يې) ښکاره کوي، بېشکه هغه د سينو په پټوخبرو (هم) ښه پوه دی

۶:۱۱ - او په ځمکه کې هېڅ خوځنده (ذي روح) نشته مگر د هغه رزق خاص په الله باندې دی، او هغه د هغه د اوسېدلو ځای او د هغه د سپارېدلو ځای پېژني (دا) هر څه په واضح کتاب کې (ليك) دي

۷:۱۱ - او دی هماغه ذات دی چې اسمانونه او ځمکه يې په شپږو ورځو کې پيدا کړي دي، په دې حال کې چې د هغه عرش په اوبو باندې و، د دې لپاره چې هغه تاسو وازمايي چې په تاسو کې د عمل په لحاظ څوك ډېر ښه دی. او يقينًا که ته (دې خلقو) ووايې چې بېشکه تاسو به له مرگ نه پس ژوندي کولی شئ (نو) هرومرو لازمًا به هغه کسان ووايي چې کافران شوي دي: ـ نه دی دا مگر ښکاره جادو (باطل)

۸:۱۱ - او يقينًا که چېرې مونږ له دوی نه عذاب تر يو شمېرل شوې مودې پورې وروسته کړو (، نو) دوی به ارومرو لازمًا وايي: دغه (عذاب) لره څه شی ايساروي؟ خبردار شئ! په هغې ورځ کې چې دوی ته هغه (عذاب) راشي (، نو) هغه به له دوی څخه گرځولی نشي او له دوی نه به هغه څه چاپېره شي چې دوی به په هغه پورې استهزا کولې

۹:۱۱ - او يقينًا که چېرې مونږه انسان ته له خپل جانبه رحمت وروڅکوو، بيا مونږ هغه له ده نه

راکښ کړو (، نو) بېشکه هغه (بیا) یقینًا ډېر نا امېده، ډېر ناشکره وي

۱۰:۱۱ - او یقینًا که چېرې مونږ په ده باندې نعمت وروڅکوو له هغه تکلیف نه وروسته چې ده ته رسېدلی و (، نو) ارومرو لازما به هغه وایي: زما څخه ټولې سختۍ لاړې، بېشکه هغه یقینًا ډېر خوشالېدونکی دی، ډېر فخر کوونکی دی

۱۱:۱۱ - مګر هغه کسان چې صبر یې وکړ او نېك عملونه یې وکړل، دغه کسان (چې دي) د همدوی لپاره مغفرت او ډېر لوی اجر دی

۱۲:۱۱ - نو ښایي چې ته پرېښودونکی یې ځینې برخې د هغه (قرآن) لره چې تا ته وحي کولی شي او په ده سره دې خپله سینه تنګېدونکې ده (له دې وېرې) چې دوی به وایي: په ده باندې خزانه ولې نه ده نازله کړی شوې، یا له ده سره مَلَك (ولې نه دی) راغلی؟ بېشکه همدا خبره ده چې ته (یواځې) وېروونکی یې او الله په هر شي باندې نګران دی

۱۳:۱۱ - ایا دوی وایي چې دا یې له خپله ځانه جوړ کړی دی؟ ته (ورته) ووایه: نو تاسو د ده په مثل لس سورتونه راوړئ، چې له خپله ځانه جوړ کړی شوي وي او له الله نه غیر چې څوك کولی شئ راوغواړئ، که چېرې تاسو رښتیني یئ

۱۴:۱۱ - نو که چېرې دوی تاسو ته جواب درنه کړي (ستاسو دعا قبوله نه کړي)، نو تاسو پوه شئ چې یقینًا هغه د الله په علم سره نازل کړی شوی دی او دا چې نشته هېڅ لایق د عبادت مګر هم دی دی، نو ایا تاسو اسلام راوړونکي یئ؟

۱۵:۱۱ - هر څوك چې (داسې) وي چې دنیایي ژوند او د ده ښایست غواړي (، نو) مونږ به په همدې (دنیا) کې هغو ته خپل عملونه پوره ورکړو، په داسې حال کې چې له دوی نه به په دې (دنیا) کې څه کمولی نشي

۱۶:۱۱ - دا هغه کسان دي چې د دوی لپاره په اخرت کې نشته مګر اور او هغه څه برباد شول چې دوی په دې (دنیا) کې کړي وو او باطل دي هغه عملونه چې دوی به کول

۱۷:۱۱ - ایا نو هغه څوك چې د خپل رب له جانبه په څرګند دلیل باندې وي او د هغه له جانبه د ده پسې یو شاهد وي، او له ده نه مخکې د موسیٰ کتاب و، چې پیشوا او رحمت و، دغه کسان په ده ایمان لري او له ډلو څخه چې څوك په ده سره کافر شو، نو اور د هغه د وعدې ځای دی، نو ته د ده په باره کې په هېڅ شك کې مه کېږه، بېشکه هم دا ستا د رب له جانبه حق دی او لېکن اکثره خلق ایمان نه راوړي

۱۸:۱۱ - او له هغه کس نه لوی ظالم څوك دی چې په الله باندې دروغ تړي، دغه کسان به د خپل رب په وړاندې پیش کړی شي، او ګمراهان به ووایي: دا هغه کسان دي چې په خپل رب یې دروغ تړلي وو.، خبردار شئ! د الله لعنت په ظالمانو باندې دی

۱۹:۱۱ - هغه کسان چې د الله له لارې نه منع کول کوي او په هغې (لاره) کې کوږوالی لټوي او له اخرت نه انکار کوونکي (هم) همدوی دي

۲۰:۱۱ - دغه کسان کله هم په ځمکه کې (الله لره) عاجزه کوونکي نه دي، او د دوی لپاره له الله نه سوا هیڅوك مدد کوونکي نشته، دوی ته به دوه چنده عذاب ورکولی شي، دوی اورېدل نشول کولی او نه دوی لیدل کول

۲۱:۱۱ - دا هغه کسان دي چې خپلو ځانونو ته یې تاوان رسولی دی او له دوی نه هغه څه ورك شول چې دوی به دروغ تړل

۲۲:۱۱ - حقه خبره دا ده چې یقینًا هم دوی په اخرت کې تر ټولو زیات زیان کاران دي

۲۳:۱۱ - بېشکه هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي او خپل رب ته یې عاجزي کړې ده، دغه کسان د جنت صاحبان دي، دوی به په هغه کې همېشه وي

۲۴:۱۱ - د دواړو ډلو مثال د ړانده او کاڼه او لیدونکي او اورېدونکي دی، ایا دغه دواړه په مثال کې برابرېدی شي؟ ایا نو تاسو پند نه اخلئ؟

۲۵:۱۱ - او یقینًا یقینًا مونږ نوح خپل قوم ته لېږلی و، (ورته ویې ویل) بېشکه زه تاسو لپاره ښکاره وېروونکی یم

۲۶:۱۱ - چې تاسو له الله نه غیر (د هیچا) عبادت مه کوئ، بېشکه زه پر تاسو باندې د ډېرې دردوونکې ورځې له عذاب نه وېرېږم

۲۷:۱۱ - نو د هغه له قومه کافر شویو مشرانو وویل: مونږ تا نه وینو مګر زمونږ په شان یو بشر او مونږ نه وینو تا چې ستا پیروي کړې ده مګر هغو کسانو چې دوی زمونږ تر ټولو لاندې خلق دي، په سرسري فکر سره، تاسو لپاره مونږ په خپل ځان باندې هېڅ بهتري (غوره والی) نه وینو، بلکې مونږ پر تاسو باندې ددروغجنو ګمان کوو

۲۸:۱۱ - هغه وویل: ای زما قومه! تاسو ما ته خبر راکړئ که زه یم په هغه څرګند دلیل باندې چې زما د رب له جانبه دی او هغه ما ته له خپل جانبه رحمت راکړی وي، بیا پر تاسو باندې هغه پټ کړی شوی وي، ایا مونږه په هغه باندې تاسو مجبوره کولی شو، په دې حال کې چې تاسو هغه لره بد ګڼونکي یئ

۲۹:۱۱ - او ای زما قومه! زه له تاسو نه په دغه (تبلیغ) باندې مال نه غواړم، زما اجر یواځې په الله باندې دی او زه د هغو کسانو شړونکی نه یم چې ایمان یې راوړی دی، بېشکه دوی له خپل رب سره ملاقات کوونکي دي او لېکن زه تاسو وینم داسې قوم چې جهالت کوئ

۳۰:۱۱ - او ای زما قومه! له الله نه به ما څوك بچ کړي که زه دوی وشړم؟ ایا نو تاسو نصیحت نه

قبلوئ!

۳۱:۱۱ - او زه تاسو ته (دا) نه وایم چې زما سره د الله خزانې دي او نه دا (وایم) چې زه په غیبو پوهېږم او نه (دا) وایم چې بېشکه زه مَلك یم او نه زه د هغو کسانو په حق کې چې ستاسو سترګې یې سپك ګڼي دا وایم چې الله به دوی ته له سره څه خیر ورنه کړي، الله ښه عالم دی په هغو (خبرو) چې د دوی په نفسونو کې دي.، بېشکه زه به په دغه وخت کې خامخا له ظالمانو څخه یم

۳۲:۱۱ - دوی وویل: ای نوحه! یقیناً تا زمونږ سره جګړه وکړه، نو زمونږ (سره) جګړه دې ډېره زیاته کړه، لهذا ته مونږ ته هغه (عذاب) راوړه چې ته یې زمونږه سره وعده کوې، که ته له صادقانو څخه یې

۳۳:۱۱ - هغه وویل: یواځې الله هغه (عذاب) راولي که وېې غواړي او تاسو عاجزه کوونکي نه یئ (الله لره)

۳۴:۱۱ - او زما نصیحت تاسو ته نفع نه دررسوي که زه تاسو ته د نصیحت کولو اراده وکړم، که چېرې الله ستاسو د ګمراه کولو اراده لري، هم هغه ستاسو رب دی او خاص هغه ته به ورګرځولی شئ

۳۵:۱۱ - بلکې دوی وایي: ده له ځانه دا (قرآن) جوړ کړی دی، ته ووایه: که ما دا له ځانه جوړ کړی وي، نو خاص په ما باندې دی (انجام) زما (د) جرم او زه بري یم له هغو جرمونو نه چې تاسو یې کوئ

۳۶:۱۱ - او نوح ته وحي وکړی شوه چې بېشکه شان دا دی چې ستا له قومه به (څوك هم) ایمان رانه وړي غیر له هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی، نو مه غمجن کېږه په هغو کارونو چې دوی یې کوي

۳۷:۱۱ - او زمونږ د سترګو په وړاندې او زمونږ د وحي مطابق بېړۍ جوړه کړه او د هغو کسانو په باره کې له ما سره خبرې مه کوه چې ظلم (شرك) یې کړی دی، بېشکه دوی غرقېدونکي دي

۳۸:۱۱ - او هغه (نوح) بېړۍ جوړوله، په داسې حال کې چې کله به هم په ده باندې د ده له قومه څه مشران تېرېدل (نو) په ده پورې به یې مسخرې کولې، هغه وویل: که تاسو په مونږ پورې مسخرې کوئ، نو بېشکه مونږ به هم په تاسو پورې مسخرې وکړو، لکه څنګه چې تاسو مسخرې کوئ

۳۹:۱۱ - نو ژر به تاسو هغه څوك وپېژنئ چې ورته به داسې عذاب راشي چې هغه به رسوا کړي او په ده باندې به دایمي عذاب راکوز شي

۴۰:۱۱ - تر هغه پورې چې کله زمونږ حکم راغی او تنور راوخوټېده، مونږ وويل: په دې (بېړۍ) کې له هر قسمه نه جوړه دوه دوه سواره کړه او خپل اهل هم، (خو) له هغه چا نه پرته چې په هغه باندې خبرې سبقت کړی دی. او هغه څوك هم (سواره کړه) چې ايمان يې راوړی دی او له ده سره ايمان نه و راوړی مگر ډېرو لږو (خلقو)

۴۱:۱۱ - او هغه وويل: په دې کې سواره شئ (او وايئ:) د الله په نامه سره د دې روانېدل او د دې ودرېدل دي، بېشکه زما رب يقينًا ډېر بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۴۲:۱۱ - دې به دوی په داسې چپو کې وړل لکه غرونه، او نوح خپل زوی ته اواز وکړ، په داسې حال کې چې هغه په يوې غاړه کې و: ای زما بچوړيه! زمونږ سره راسور شه او له کافرانو سره مه کېږه

۴۳:۱۱ - هغه وويل: ژر به زه د داسې غره په سر کې ځای ونيسم چې ما به له اوبو نه بچ کړي، هغه (نوح) وويل: نن ورځ د الله له حکم نه هيڅوك ساتونکی (بچ کوونکی) نشته مگر هغه چې دغه (الله) پرې رحم وکړي، او د دواړو په مينځ کې چپه حايله شوه، نو دی شه د غرق کړی شويو نه

۴۴:۱۱ - او وويل شول: ای ځمکې! خپلې اوبه ونغړه (جذب کړه) او ای اسمانه! اوبه ورول بند کړه او اوبه کمې کړی شوې او کار پوره کړی شو او هغه (بېړۍ) په جودي غر ودرېده او وويل شول: لرې والی دې وي (له رحمت نه) د ظلم کوونکو خلقو لپاره

۴۵:۱۱ - او نوح خپل رب ته اواز (سوال) وکړ، نو ويې ويل: ای زما ربه! بېشکه زما زوی زما له اهله دی او بېشکه هم ستا وعده حقه ده او ته ترټولو ښه فيصله کوونکی يې

۴۶:۱۱ - ويې ويل: ای نوحه! بېشکه هغه (ستا زوی) ستا له (مومن) اهله ځنې نه دی، بېشکه هغه (خاوند د) ناکاره عمل دی، نو له ما نه د هغه څيز سوال مه کوه چې تا ته د هغه په باره کې څه علم نه وي، بېشکه زه تا ته له دې نه نصيحت کوم چې ته شې له جاهلانو نه

۴۷:۱۱ - هغه وويل: ای زما ربه! بېشکه زه په تا پورې پناه نيسم له دې نه چې له تا نه د هغه څه سوال وکړم چې ما ته د هغه په باره کې څه علم نه وي او که ته ما ته بخښنه ونه کړې او په ما رحم ونه کړې (، نو) شم به زه له تاوانيانو نه

۴۸:۱۱ - وويل شو: ای نوحه! کوز شه په سلامتۍ سره زمونږ له جانبه او سره د هغو برکتونو چې په تا باندې دي او په څو ډلو باندې له هغو ځنې چې له تا سره دي. او نورې ډلې دي چې ژر به مونږ هغوی ته نفع ورکړو، بيا به هغوی ته زمونږ له جانبه ډېر دردوونکی عذاب ورسېږي

۴۹:۱۱ - دغه د غيبو له خبرونو ځنې دي چې مونږ يې تا ته وحي کوو، له دې نه مخکې نه ته په دې عالِم وې او نه ستا قوم، نو صبر کوه، بېشکه ښه انجام د پرهېزگارانو لپاره دی

۵۰:۱۱ - او (مونږ لېږلی و) قومِ عاد ته د هغوی ورور هود، هغه وویل: ای زما قومه! تاسو د الله عبادت کوئ، تاسو لپاره له هغه نه غیر هېڅ حق معبود نشته، نه یئ تاسو مگر دروغ تړونکي

۵۱:۱۱ - ای زما قومه! زه له تاسو نه په دې (تبلیغ) باندې څه مزدوري نه غواړم، زما اجر نه دی مگر په هغه ذات چې زه یې پیداکړی یم، ایا نو تاسو له عقل نه کار نه اخلئ

۵۲:۱۱ - او ای زما قومه! له خپل رب نه مغفرت وغواړئ، بیا هغه ته رجوع وکړئ، هغه به پر تاسو باندې باران راخوشي کړي، چې په شېبو شېبو به ورېدونکی وي۔ او ستاسو قوت ته به (نور) قوت ورزیات کړي او تاسو (له ایمان او توبې نه) مخ مه گرځوئ، په دې حال کې چې مجرمان یئ

۵۳:۱۱ - هغوی وویل: ای هوده! تا مونږ ته څه واضح دلیل نه دی راوړی او ستا د وینا له وجې مونږ هېڅ کله هم خپل خدایان پرېښودونکي نه یو او هېڅ کله هم مونږ په تا ایمان راوړونکي نه یو

۵۴:۱۱ - (ستا په باره کې) مونږ یواځې همدا وایو چې تا ته زمونږ ځیني خدایانو څه ضرر دررسولی دی، هغه وویل: بېشکه زه الله گواه کوم او تاسو (هم) گواه شئ چې یقیناً زه له هغو (خدایانو) نه بېزاره یم چې تاسو یې شریکان کوئ

۵۵:۱۱ - غیر له هغه (الله) نه، نو تاسو ټول ما ته تدبیرونه جوړ کړئ، بیا ما ته مهلت مه راکوئ

۵۶:۱۱ - بېشکه ما په الله باندې توکل کړی دی چې زما رب دی او ستاسو رب دی، نشته هېڅ یو خوځنده مگر هم دغه (الله) د هغه وچولي (د تندي وېښتانو) لره نیوونکی دی، بېشکه زما رب په نېغه لار دی

۵۷:۱۱ - نو که تاسو مخ واړوئ، نو یقیناً ما تاسو ته هغه (پېغام) درورساوه چې زه په هغه سره تاسو ته رالېږلی شوی وم۔ او زما رب به له تاسو نه غیر بل قوم ستاسو په ځای راولي او تاسو به هغه (الله) ته هېڅ ضرر ونه رسولی شئ، بېشکه زما رب په هر شي باندې ښه نگران او ساتونکی دی

۵۸:۱۱ - او کله چې زمونږ حکم (عذاب) راغی (، نو) مونږ هود ته او هغو کسانو ته چې له هغه سره یې ایمان راوړی و له خپل جانب نه په رحمت سره نجات ورکړ او مونږه دوی له ډېر سخت عذاب نه خلاص کړل

۵۹:۱۱ - او دغه عادیان دي چې د خپل رب له ایتونو نه یې انکار کړی و او د هغه (الله) د رسولانو نافرماني یې کړې وه او د هر سرکشه عنادي د حکم تابع شوي وو

۶۰:۱۱ - او په دوی پسې په دې دنیا کې لعنت ولگولی شو او د قیامت په ورځ هم، خبردار شئ! بېشکه عادیان په خپل رب سره کافران شوي دي، خبردار شئ چې (د الله له رحمت نه) لرې والی

دی، عادیانو ته چې د هود قوم دی

۶۱:۱۱ - او (مونږ لېږلی و) ثمودیانو ته د هغوی ورور صالح، هغه (دوی ته) وویل: ای زما قومه! تاسو د الله عبادت کوئ، ستاسو لپاره له هغه نه غیر (بل) هېڅ حق معبود نشته.، هم هغه تاسو له ځمکې نه پیدا کړئ یئ او په دې کې یې تاسو اوسولي یئ، نو تاسو له ده نه مغفرت وغواړئ، بیا تاسو ده ته رجوع وکړئ، بېشکه زما رب ډېر نژدې دی، د دعا قبلوونکی دی

۶۲:۱۱ - دوی وویل: ای صالحه، ته په مونږ کې مخکې له دې (دعوې د نبوت) نه امېد کړی شوی وې، ایا ته مونږ د هغو (بتانو) له عبادت نه منع کوې چې زمونږ پلرونو به یې عبادت کاوه او بېشکه مونږ د هغه (توحید) په باره کې چې ته مونږ هغه ته بلې یقینًا په اضطراب اچوونکي (پریشانه کوونکي) شك كې يو

۶۳:۱۱ - هغه وویل: ای زما قومه! تاسو ما ته خبر راکړئ! که زه د خپل رب له جانبه په ښکاره دلیل باندې یم او هغه له خپله جانبه ما ته رحمت (نبوت) راکړی وي، نو له الله نه به ما څوك خلاص کړي كه زه د هغه نافرماني وکړم، نو تاسو به ما ته له نقصان نه غیر (بل څه) زیات نه کړئ

۶۴:۱۱ - ای زما قومه! دا د الله اوښه ده چې ستاسو لپاره لویه نښه ده، نو تاسو دا پرېږدئ چې د الله په ځمکه کې خوراك (څر) کوي او دې ته هېڅ تکلیف مه رسوئ (ګنې) نو ډېر نژدې عذاب به مو ونیسي

۶۵:۱۱ - نو دوی د هغې پړکي پرې کړل (او مړه يې کړه) نو هغه (ورته) وویل: تاسو په خپلو کورونو کې درې ورځې فایده واخلئ، دا داسې وعده ده چې هېڅ دروغ په کې نشته

۶۶:۱۱ - نو کله چې زمونږ (د عذاب) حکم راغی، مونږ صالح ته او هغو کسانو ته چې له هغه سره یې ایمان راوړی و په خپل رحمت سره خلاصی ورکړ او د هغې ورځې له رسوایۍ نه، بېشکه ستا رب، هم هغه قوي، ډېر غالب دی

۶۷:۱۱ - او هغه کسان چې ظلم یې کړی و؛ چغې ونیول، نو سهار مهال په خپلو کورونو کې پړ مخې پراته شول

۶۸:۱۱ - ګویاکې دوی په دې (کورونو) کې له سره اوسېدلي نه وو، خبردار شئ! بېشکه ثمودیان په خپل رب سره کافران شوي وو، اګاه شئ! د ثمودیانو لپاره (د رحمت نه) لرې والی دی

۶۹:۱۱ - او یقینًا یقینًا زمونږ استازو ابراهیم ته زېری راوړ، ویې ویل: (په تا) سلام (اچوو) ابراهیم وویل: (په تاسو) سلام، نو درنګ (وخت) یې تېر نه کړ چې رایې وړ وریت کړی شوی سخی

۷۰:۱۱ - نو کله چې یې د هغوی لاسونه ولیدل چې دې (وریتې غوښې) ته نه رسېږي، نو دوی یې

نا اشنا وګڼل او له دوی نه یې په زړه کې وېره وکړه، دوی وویل: ته مه وېرېږه، بېشکه مونږ د لوط قوم ته رالېږل شوي یو (چې هلاك یې کړو)

۷۱:۱۱ - او د ده ښځه ولاړه وه، نو ویې خندل، نو مونږ دې ته اسحق زېرى ورکړ او د اسحق نه پس د (لمسي) یعقوب (زېرى ورکړ)

۷۲:۱۱ - هغې وویل: اى زما تعجبه! ایا زه به بچى راوړم، حال دا چې زه زړه (بوډۍ) یم او دا زما خاوند دى زوړ، بېشکه دا یقینًا ډېر عجیبه شى (کار) دى

۷۳:۱۱ - هغوى وویل: ایا ته د الله په امر تعجب کوې؟ د الله رحمت او د هغه برکتونه دې په تاسو وي اى اهلِ بیتو، بېشکه هغه (الله) ډېر ستایل شوى، د ډېرې لویې والا دى

۷۴:۱۱ - نو کله چې له ابراهیم نه وېره لاړه او ده ته زېرى راغى، (نو بیا یې) د لوط د قوم په حق کې زمونږ (رسولانو) سره بحث کاوه

۷۵:۱۱ - بېشکه ابراهیم یقینًا ډېر تحمل والا، آه کوونکى (په زړه ډېر نرم او الله ته) رجوع کوونکى دى

۷۶:۱۱ - اى ابراهیمه! له دې نه تېر شه، بېشکه شان دا دى چې یقینًا ستا د رب حکم راغلى دى او بېشکه دوى چې دي، دوى ته داسې عذاب راتلونکى دى چې بېرته ګرځولى به نشي

۷۷:۱۱ - او کله چې زمونږ استازي (ملایك) لوط ته راغلل، نو دى په دوى غمجن شو او د دوى په وجه یې سینه تنګه شوه او ویې ویل: دا ډېره سخته ورځ ده

۷۸:۱۱ - او ده ته د ده قوم راغى، چې د ده په طرف یې بې اختیاره منډې وهلې او دوى مخکې له دې نه (هم) د بدو کارونو کوونکي وو، ده وویل: اى زما قومه! دا زما لوڼه دي (په نکاح یې واخلئ) دا تاسو لپاره ښېخې پاکې (او حلالې) دي، نو تاسو له الله نه ووېرېږئ او زما د مېلمنو په حق کې ما مه شرموئ، ایا په تاسو کې کوم یو پوه سړى نشته؟

۷۹:۱۱ - دوى وویل: یقینًا یقینًا تا ته معلومه ده چې مونږ ته ستا په لوڼو کې هېڅ حق (رغبت) نشته او بېشکه ته خامخا په هغه کار پوهېږې چې مونږ یې غواړو

۸۰:۱۱ - ویې ویل: کاشکې واقعي ما ته ستاسو په مقابله کې قوت حاصل وى یا مې ډېر مستحکم پناه ځاى (خپل قوي قوم) ته پناه وړى شوى

۸۱:۱۱ - (ملایکو) وویل: اى لوطه! مونږ ستا د رب استازي یو، دوى به تا ته له سره در ونه رسي، نو ته خپل اهل د شپې په یوه حصه کې بوځه او په تاسو کې دې هیڅوك بېرته (شا ته) نه ګوري، ستا له ښځې نه پرته، بېشکه شان دا دى چې هغې ته هغه عذاب رسېدونکى دى چې هغوى ته رسېږي، بېشکه د دوى د وعدې وخت سهار دى، ایا سهار ډېر نژدې نه دى؟

۸۲:۱۱ - نو کله چې زمونږ حکم راغی (نو) مونږ د هغه (کلي) برنی اړخ د هغه لاندې اړخ وګرځاوه او پر هغه مو د داسې کاڼو باران ووراوه چې له ختو جوړ په اور پخ شوي وو، لاندې باندې (پرله پسې) وو

۸۳:۱۱ - ستا د رب په نیز په نښه کړی شوي وو، او د ظالمانو (د مکې له مشرکانو) نه هغه (کاڼي یا ښارونه) ډېر لرې نه دي

۸۴:۱۱ - او (لېږلی و مونږ) مدین ته د هغوی ورور شعیب، هغه وویل: ای زما قومه! تاسو د الله عبادت کوئ، تاسو لپاره له هغه نه غیر (بل) هېڅ حق معبود نشته او تاسو پیمانه او تله مه کموئ، بېشکه زه تاسو په خیر (ښه حال) وینم او بېشکه زه پر تاسو باندې د چا پېرېدونکې ورځې له عذاب نه وېرېږم

۸۵:۱۱ - او ای زما قومه! تاسو پیمانه او تله په انصاف سره پوره ورکوئ او خلقو ته د هغوی څیزونه مه کموئ او په ځمکه کې ورانی کوونکي مه ګرځئ، فساد کوونکي

۸۶:۱۱ - د الله باقي پاتې کړی (رزق) تاسو لپاره ډېر غوره دی که تاسو مومنان یئ او زه پر تاسو باندې څه نګران خو نه یم

۸۷:۱۱ - هغوی وویل: ای شعیبه! ایا ستا لمونځ تا ته د دې حکم کوي چې مونږ هغه (څیزونه) پرېږدو چې زمونږ پلرونو به یې عبادت کاوه یا دا چې په خپلو مالونو کې چې مونږ څه کول غواړو (هغه پرېږدو)، بېشکه هم ته یقیناً ډېر تحمل والا، ډېر پوه یې

۸۸:۱۱ - هغه وویل: ای زما قومه! تاسو ما ته خبر راکړئ! که زه یم په ښکاره دلیل باندې د خپل رب له جانبه او ما ته یې له خپله جانبه ډېر ښکلی رزق راکړی وي (نو زه یې ولې نافرماني وکړم) او زه نه غواړم چې ستاسو مخالفت وکړم (او راشم) هغه کار ته چې تاسو له هغه نه منع کوم، زه یواځې اصلاح کول غواړم، څومره چې زما وس وي او زما توفیق یواځې دالله په مدد سره دی، خاص په هغه باندې ما توکل کړی دی او خاص هغه ته رجوع کوم

۸۹:۱۱ - او ای زما قومه! زما سره دښمني دې تاسو د دې حقدار ونه ګرځوي چې تاسو ته په مثل د هغه (عذاب) ورسېږي چې د نوح قوم یا د هود قوم یا د صالح قوم ته رسېدلی و او له تاسو نه د لوط قوم ډېر لرې نه دی

۹۰:۱۱ - او تاسو له خپل رب نه مغفرت وغواړئ، بیا هغه ته رجوع وکړئ، بېشکه زما رب ډېر مهربان، بې حده مینه کوونکی دی

۹۱:۱۱ - دوی وویل: ای شعیبه! مونږ په ډېرو هغو خبرو نه پوهېږو چې ته یې وایې او بېشکه مونږ خو تا په مونږ کې کمزوری وینو او که چېرې ستا دا خپلوان نه وی (چې مونږ سره په کفر کې شریکان دي) نو مونږ به ته خامخا سنګسار کړی وی او ته پر مونږ باندې هېڅ عزتناك نه یې

۹۲:۱۱ - هغه وویل: ای زما قومه! ایا زما خپلوان پر تاسو باندې له الله نه ډېر عزتناك (او مخور) دي او تاسو دا (الله) ګرځولی دی خپل وروسته، شا ته غورځول شوی، بېشکه زما رب په هغو کارونو چې تاسو یې کوئ ښه احاطه کوونکی دی

۹۳:۱۱ - او ای زما قومه! تاسو په خپل ځای (او طریقې) عمل کوئ، یقینًا زه هم عمل کوونکی یم، ژر به تاسو وپېژنئ هغه څوك چې ده ته به داسې عذاب راځي چې هغه به رسواکوي او هغه څوك چې دروغجن دی، او تاسو انتظار کوئ بېشکه زه (هم) له تاسو سره انتظار کوونکی یم

۹۴:۱۱ - او کله چې زمونږ حکم (د عذاب) راغی (، نو) مونږ شعیب ته او هغو کسانو ته چې له هغه سره یې ایمان راوړی و خلاصی ورکړ په رحمت سره له خپل جانب نه او هغه کسان چې ظلم یې کړی و چغې ونیول، نو شول په خپلو کورونو کې پرمخې مړه پراته

۹۵:۱۱ - ګویاکې دوی په دې (کورونو) کې نه وو اوسېدلي، اګاه شئ (د الله له رحمت نه) لرې والی دی مدین ته لکه څنګه چې ثمودیان لرې (او هلاك) شول

۹۶:۱۱ - او یقینًا یقینًا مونږ موسیٰ په خپلو (نهو) معجزو او ښکاره دلیل سره لېږلی و

۹۷:۱۱ - فرعون او د هغه سردارانو ته، نو دغه (سرداران) د فرعون د حکم تابع شول، حال دا چې د فرعون حکم له سره درست نه و

۹۸:۱۱ - د قیامت په ورځ به د خپل قوم په مخکې شي، نو اور ته به یې داخل کړي او بد ځای د ورتلو دی چې (دوی هغه ته) وروستلی شي

۹۹:۱۱ - اوپه دوی پسې په دې دنیا کې لعنت ولګول شو او د قیامت په ورځ (هم)، بد دی هغه انعام چې (دوی ته) ورکولی شي

۱۰۰:۱۱ - دا د کلیو له خبرونو ځنې دي چې دا مونږ تا ته بیانوو، ځینې په دوی کې ولاړ دي او (ځینې یې) رېبل شوي دي

۱۰۱:۱۱ - او مونږ په دوی ظلم نه و کړی او لېکن دوی (پخپله) په خپلو ځانونو ظلم وکړ، نو د دوی هغه خدایان چې دوی به له الله نه غیر بلل هېڅ شی په کار رانغلل، کله چې ستا د رب حکم راغی او دغو (خدایانو) دوی ته له هلاکت نه غیر (نور څه) ورزیات نه کړل

۱۰۲:۱۱ - او په شان د دغو (نیولو) نیول د رب ستا دي کله چې هغه کلي نیسي، په داسې حال کې چې هغه (کلي) ظالم وي، بېشکه د هغه نیول ډېر دردوونکي، ډېر سخت دي%

۱۰۳:۱۱ - بېشکه په دغو (ذکر شوو قصو) کې خامخا (د عبرت) لویه نښه ده د هغه چا لپاره چې د اخرت له عذاب نه وېرېږي، دا داسې ورځ ده چې په دې کې به خلق جمع کولی شي او دا داسې ورځ ده چې حاضري به ورته وشي

۱۰۴:۱۱ - او مونږ دا (ورځ) نه وروسته کوو مګر د معلومې نېټې (د پوره کېدلو) لپاره

۱۰۵:۱۱ - په کومه ورځ چې (د هغه قیامت هیبت) راشي (نو) هېڅ نفس به د هغه (الله) له اجازت نه پرته خبرې نه کوي، نو ځینې به په دوی کې بدبخته وي او (ځینې به) نېك بخته وي

۱۰۶:۱۱ - نو هر چې هغه کسان دي چې بدبخته شوي دي، نو (د جهنم) په اور کې به د دوی لپاره په هغه کې (د خره په شان) سختې اوچتې رمبارې او ټيټې نرمې رمبارې وي

۱۰۷:۱۱ - په داسې حال کې چې دوی به په هغه کې تل ترتله وي، څو چې اسمانونه او ځمکه وي مګر هغه چې ستا رب (څه) وغواړي (او زمهریر ته یې بوځي)، بېشکه ستا رب د هغه کار کوونکی دی چې اراده یې وکړي

۱۰۸:۱۱ - او پاتې شو هغه کسان چې نېکبخته شوي دي، نو په جنت کې به وي، چې تل ترتله به وي، څو چې اسمانونه او ځمکه وي مګر هغه چې ستا رب اراده وکړي (چې رضوان ته او د ځان ملاقات ته یې بوځي) (دغه) نه ختمېدونکې عطا (ورکړه) ده

۱۰۹:۱۱ - نو ته په هېڅ شك کې مه کېږه د هغو په باره کې چې دا خلق یې عبادت کوي، دوی عبادت نه کوي مګر لکه څنګه چې پخوا د دوی پلرونو عبادت کاوه او بېشکه مونږ هرومرو دوی ته د دوی برخه کامله، بې له نقصانه پوره ورکوونکي یو

۱۱۰:۱۱ - او یقینًا یقینًا مونږ موسیٰ ته کتاب ورکړی و، نو (د خلقو له خوا نه) په ده کې اختلاف وکړی شو، او که هغه کلمه (حکم) نه وی چې ستا د رب له جانبه ړومبی (لیکل) شوې ده (نو) خامخا به د دوی په مینځ کې فیصله شوې وی او یقینًا دوی د دې (قرآن) په باره کې خامخا په اضطراب اچوونکي شك کې دي

۱۱۱:۱۱ - او بېشکه هره ډله (د مومنانو او کافرانو) کله چې وخت راشي (په قیامت کې، نو) خامخا لازماً به دوی ته د دوی رب د خپلو عملونو پوره پوره جزا (بدله) ورکړي، بېشکه هغه (الله) په هغو کارونو چې دوی یې کوي ښه خبردار دی

۱۱۲:۱۱ - نو ته په استقامت (او ثابت) اوسه لکه څنګه چې تا ته حکم کړی شوی دی او هغه څوك هم چې له تا سره یې توبه وېستلې ده او (ای خلقو) تاسو سرکشي مه کوئ، بېشکه هغه (الله) د هغو کارونو چې تاسو یې کوئ؛ ښه لیدونکی دی

۱۱۳:۱۱ - او تاسو د هغو کسانو په طرف مه مایلېږئ چې ظلم یې کړی دی، (ګنې) نو (د دوزخ) اور به تاسو ته دروررسېږي، په داسې حال کې چې تاسو لپاره به له الله نه غیر هېڅ کارسازي (دوستان) نه وي، بیا به له تاسو سره مدد نه کولی شي

۱۱۴:۱۱ - او ته لمونځ قایموه د ورځې په دوه طرفونو کې او د شپې په څه ګړیو کې، بېشکه نېکی

بدی لرې کوي، دا د ذکر کوونکو (نصیحت قبلوونکو) لپاره نصیحت دی

۱۱۵:۱۱ - او ته صبر کوه، پس بېشکه الله د نېکي کوونکو اجر نه ضائع کوي

۱۱۶:۱۱ - نو له تاسو نه مخکې په تېر شویو امتونو کې ولې داسې د عقل او فکر خاوندان نه وو چې منع کولی یې (خلق) په ځمکه کې له فساد کولو نه (چې عذاب پرې نه وی راغلی) خو (منع کوله) لږو خلقو له هغه چا نه چې په دغو (خلقو) کې مونږ (هغوی ته) نجات ورکړ، او پیروي وکړه هغو کسانو چې ظلم یې کړی و د هغې (لارې) چې په هغې کې اسوده کړی شوي وو او هغوی مجرمان وو

۱۱۷:۱۱ - او ستا رب له سره داسې نه دی چې کلي په ظلم سره (ناحقه) هلاك کړي، په دې حال کې چې د هغو اوسېدونکي اصلاح کوونکي (مومنان) وي

۱۱۸:۱۱ - او که ستا رب غوښتلی خامخا به یې خلق ټول یو امت گرځولي وو او دوی به همېشه اختلاف کوونکي وي

۱۱۹:۱۱ - مگر هغه څوك چې ستا رب پرې رحم وکړي.او د دغه (اختلاف او رحمت) لپاره یې دوی پیدا کړي دي او ستا د رب خبره پوره شوې ده چې خامخا هرومرو به زه جهنم له پېریانو او انسانانو ټولو نه ضرور ډکوم

۱۲۰:۱۱ - او مونږ تا ته د رسولانو له خبرونو څنې ټول هغه څه بیانوو چې په هغو سره مونږ ستا زړه کلکوو او تا ته په دې (خبرونو) کې راغلی دی حق او نصیحت او یادونه لپاره د مومنانو

۱۲۱:۱۱ - او ته هغو کسانو ته چې ایمان نه راوړي، ووایه: تاسو په خپل ځای (او حال) عمل کوئ، بېشکه مونږ هم عمل کوونکي یو

۱۲۲:۱۱ - او تاسو انتظار کوئ، بېشکه مونږ هم انتظار کوونکي یو

۱۲۳:۱۱ - او خاص الله لره دی د اسمانونو او ځمکې (علمِ) غیب او خاص هم ده ته بېرته گرځولی شي (د بنده گانو) کار ټول، نو ته د ده عبادت کوه او په ده توکل کوه او ستا رب له سره غافله نه دی له هغو کارونو نه چې تاسو یې کوئ

## (مکي) یوسف - یوسف ۱۲

۱:۱۲ - الف، لام، را، دا د واضح کتاب ایتونه دي

۲:۱۲ - بېشکه مونږ دا نازل کړی دی، په داسې حال کې چې عربي قرآن دی، د دې لپاره چې تاسو پوه شئ

۳:۱۲ - مونږ تا ته تر ټولو ښه بیان (قصه) بیانوو په دې سبب چې مونږ تا ته دا قرآن وحي کړی دی، او بېشکه شان دا دی چې ته د دې (قرآن له نازلېدلو) نه مخکې خامخا له ناخبرو څخه وې

۴:۱۲ - (یاد کړه هغه وخت) کله چې یوسف خپل پلار ته وویل: ای زما پلار جانه! بېشکه ما (په خوب کې) یوولس ستوري او لمر او سپوږمۍ ولیدل، ما دوی ولیدل چې ما ته سجده کوونکي وو

۵:۱۲ - (یعقوب) وویل: ای زما بچوړیه! خپل (دا) خوب خپلو وروڼو ته مه بیانوه، (ګنې) بیا به دوی تا ته څه چل جوړ کړي، څه چل جوړول، بېشکه شیطان د انسان لپاره ښکاره دښمن دی

۶:۱۲ - او همدارنګه ستا رب به تا غوره کړي او تا ته به د خبرو (خوبونو) څه اصل حقیقت (تعبیر کول) وښیي او په تا باندې او د یعقوب په کورنۍ به خپل نعمت پوره کړي لکه چې هغه پوره کړی و دا (نعمت) له تا نه مخکې ستا په دوو پلرونو (نیکه او ورنیکه) ابراهیم او اسحق باندې، بېشکه ستا رب ښه پوه، ښه حکمت والا دی

۷:۱۲ - یقینًا یقینًا په یوسف او د هغه په وروڼو کې د تپوس کوونکو لپاره ډېرې نښې دي

۸:۱۲ - کله چې هغوی (په خپل مینځ کې) وویل: خامخا یوسف او د هغه سکنی ورور زمونږ پلار ته زمونږ نه زیات محبوب دي، حال دا چې مونږ یوه قوتناکه ډله یو، بېشکه زمونږ پلار خامخا په ښکاره خطا کې (پروت) دی

۹:۱۲ - تاسو یوسف قتل کړئ یا هغه په کومې (لرې نامعلومه) ځمکه کې وغورځوئ چې ستاسو لپاره د خپل پلار مخ خالص (او وزګار) شي او له دې (کاره) وروسته به تاسو نېك خلق شئ

۱۰:۱۲ - په دوی کې یو ویونکي وویل: تاسو یوسف مه وژنئ او (بلکې) هغه د ګمنامي کوهي په تیاره بېخ کې وغورځوئ چې په تېرېدونکو (لارویانو) کې به یې ځینې (څوك) واخلي که تاسو کوونکي یئ (د هغه کار چې ستاسو مقصد پرې پوره کېږي)

۱۱:۱۲ - دوی وویل: ای زمونږ پلاره! څه باعث دی تا لره چې ته مونږ په یوسف باندې امینان نه ګرځوې، حال (دا چې مونږ د ده یقینًا خیر غوښتونکي یو

۱۲:۱۲ - ته مونږ سره سبا دا ولېږه چې ډېرې مېوې وخوري (مزې وکړي) او لوبې وکړي او بېشکه مونږ د ده خامخا ساتونکي یو

۱۳:۱۲ - هغه وویل: بېشکه زه چې یم، یقینًا ما دا (اراده) غمجنوي چې تاسو دا بوځئ او زه له دې نه وېرېږم چې دا (یوسف) به لیوه (شرمښ) وخوري، په داسې حال کې چې تاسو به له ده نه غافلان یئ

۱۴:۱۲ - هغوی وویل: قسم دی که ده لره لیوه وخوري، حال دا چې مونږه یوه قوتناکه ډله یو (،

نو) بېشکه مونږ به په دغه وخت کې خامخا تاوانیان (او هلاکېدونکي) یو

۱۵:۱۲ - نو کله چې دوی هغه بوته او په دې یې اتفاق وکړ چې دی د (گمنامي) کوهي په تیاره بېخ کې وغورځوي او مونږ ده (یوسف) ته وحي وکړه چې قسم دی چې ته به خامخا ضرور دوی ته د دوی د دې کار خبر ورکړې، په دې حال کې چې دوی به نه پوهېږي (چې ته یوسف یې)

۱۶:۱۲ - او دوی خپل پلار ته په بېگاه (تیاره) کې راغلل چې ژړل یې (په دروغو سره)

۱۷:۱۲ - ویې ویل: ای زمونږ پلاره! بېشکه مونږ لاړو مسابقه مو سره کوله او مونږ یوسف له خپلو اسبابو سره پرېښوده، نو هغه شرمخ وخوړ او ته پر مونږ باندې باور کوونکی نه یې اگر که مونږ رښتیني یو

۱۸:۱۲ - او دوی د هغه د کمیس له پاسه دروغجنه وینه راوړه، یعقوب وویل: (دا دروغ دي) بلکې تاسو ته ستاسو نفسونو (دا بد) کار ښایسته کړی دی، نو (زما کار) صبر جمیل دی او د هغو خبرو په هکله خاص له الله نه مدد غوښتلی شي چې تاسو یې بیانوئ

۱۹:۱۲ - او قافله راغله، نو دوی خپل اوبه راوړونکی ولېږه، نو هغه خپله بوکه (په کوهي کې) ورخوشې کړه (نو یوسف دغې بوکې پورې و نښت، چې یې ولیده، نو) ویې ویل: ای زما خوشحالۍ! دا یو هلك دی او دوی هغه د تجارت د مال په توگه پټ کړ او الله په هغو کارونو ښه عالم دی چې دوی کول

۲۰:۱۲ - او دوی هغه په ډېر کم قیمت خرڅ کړ، چې څو شمېرل شوې روپۍ وې او دوی د هغه په حق کې له بې رغبتو څخه وو

۲۱:۱۲ - او هغه سړي چې دی یې له مصره اخیستی و، خپلې ښځې ته وویل: د ده استوگنه عزتمنه ساته.، امېد دی چې دا به مونږ ته فایده راورسوي یا به دا مونږ زوی ونیسو او همدارنگه مونږ یوسف ته په ځمکه کې ځای (او قدرت) ورکړ او د دې لپاره چې مونږ هغه ته د خبرو څه تاویل (او تعبیر) وښیو او الله په خپل کار غالب دی او لیکن اکثره خلق نه پوهېږي

۲۲:۱۲ - او کله چې هغه خپل قوت ته ورسېده (، نو) مونږ هغه ته حکم او علم ورکړ او همداسې مونږ نېکي کوونکو ته بدله ورکوو

۲۳:۱۲ - او هغې ښځې، چې دا د هغې په کور کې و، هغې له ده نه له هغې سره د بدکارۍ مطالبه وکړه او (ټولې) دروازې یې کلکې پورې کړې او ویې ویل: هله، ته زر راشه! هغه وویل: زه په الله پورې پناه نیسم، بېشکه دا (عزیز) زما مالك دی، هغه زما استوگنه ښه کړې ده، بېشکه شان دا دی چې ظالمان فلاح (او خلاصی) نه مومي

۲۴:۱۲ - او یقینًایقینًا هغې ده ته قصد کړی و، او ده به هغې ته قصد کړی و که چېرې ده د خپل

رب دليل نه وی ليدلی، همداسې (مونږ يوسف وساته) د دې لپاره چې مونږ له هغه نه بد او ناکاره (بې حيا) فعل وگرځوو (واړوو)، بېشکه دغه (يوسف) زمونږ د غوره کړی شو بنده گانو څخه دی

۲۵:۱۲ - او دواړو دروازې ته سره منډې شروع کړې او هغې د ده کميس له شا طرف نه څيرې کړ او دواړه د هغې له خاوند سره دروازې ته نژدې مخامخ شول، هغې وويل: نه ده سزا د هغه چا چې ستا د اهل سره يې د بدۍ اراده وکړه مگر دا چې هغه بندي کړی شي يا (د هغه لپاره) ډېر دردوونکی عذاب دی

۲۶:۱۲ - هغه وويل: همم دې له ما نه د بدکارۍ غوښتنه کړې ده، او د هغې د کورنۍ يو شاهد شاهدي ورکړه (داسې چې) که د ده کميس له مخامخ اړخ نه څېرې کړی شو ی وي، نو هغې رښتيا ويلي دي او دا له دروغجنانو څخه دی

۲۷:۱۲ - او که د ده کميس له شا اړخ نه څيرې کړی شوی وي، نو دې دروغ ويلي دي او هغه (يوسف) له رښتينو څخه دی

۲۸:۱۲ - نو کله چې هغه (عزيز) د ده کميس وليد چې د شا اړخ نه څيرې کړی شوی دی، ويې ويل: بېشکه (ای ښځو) دا ستاسو له فريبونو څخه دی، بېشکه ستاسو فريب (او چل) ډېر لوی دی

۲۹:۱۲ - ای يوسفه! د دې خبرې نه مخ واړوه او (ای ښځې) ته د خپلې گناه لپاره مغفرت وغواړه، بېشکه هم ته له خطا کارانو څنې وې

۳۰:۱۲ - او په ښار کې ښځو وويل: د عزيز ښځه له خپل غلام نه د بدکارۍ مطالبه کوي، يقينًا د مينې په لحاظ سره هغه د دې د زړه پرده څيرې کړې ده، بېشکه مونږ خامخا هغه په ښکاره گمراهۍ کې وينو

۳۱:۱۲ - نو کله چې هغې د دوی مکر واورېده (، نو) دوی ته يې پيغام ولېږه او د دوی لپاره يې مجلس تيار کړ او په دوی کې يې هرې يوې ته چاړه ورکړه او هغې (ده ته) وويل: دوی ته راووځه، نو کله چې دوی هغه وليده (، نو) ډېر لوی ښايسته يې ومونده او خپل لاسونه يې پرې کړل او ويې ويل الله ته پاکي ده، دا خو بشر نه دی، دا نه دی مگر ډېر عزتمن مَلك

۳۲:۱۲ - هغې وويل: دا هماغه (زلمی) دی چې تاسو زه د ده (له ده سره د مينې) په باره کې ملامته کړې ومه او يقينًا يقينًا ما له ده نه د ده د ځان غوښتنه کړې وه، نو ده ځان وساته او قسم دی که ده هغه کار ونه کړ چې زه يې ده ته حکم کوم (، نو) خامخا هرومرو به دی بندي کړی شي او خامخا هرومرو به دی شي له ذليلانو نه

۳۳:۱۲ - هغه وويل: ای زما ربه! بندي خانه ما ته ډېره خوښه ده له هغه کار نه چې دوی ما هغه ته

بلي او كه ته زما څخه د دوی مكر فريب وانهړوې (، نو) زه به دوی ته مايله شم او شم به له جاهلانو نه

۳۴:۱۲ - نو خپل رب يې د ده دعا قبوله كړه، نو له ده نه يې د دوی مكر فريب وګرځاوه، بېشكه هغه، هم هغه ښه اورېدونكی، ښه پوه دی

۳۵:۱۲ - بيا دوی (عزيز او د هغه كسانو) ته ښكاره شوه (صلاح يې وكړه)، وروسته له دې چې دوی (د يوسف د پاكۍ) نښې ولېدې، چې دوی به دا خامخا هرومرو تر يو وخته پورې بندي كړي

۳۶:۱۲ - او له ده سره زندان ته دوه زلمي ننوتل، په دې دواړو كې يو وويل: بېشكه زه چې يم، زه ځان (په خوب كې) وينم، چې د شرابو لپاره انګور نچوړوم او بل وويل: بېشكه زه چې يم، ځان وينم، په دې حال كې چې د خپل سر له پاسه مې ډوډۍ بار كړې ده، چې له هغې نه مرغان خوراك كوي، مونږ. د دې (خوبونو) په تعبير خبر كړه، بېشكه مونږ تا له نيكوكارانو څخه وينو

۳۷:۱۲ - (يوسف) وويل: چې تاسو ته به هغه طعام لا نه وي راغلی چې تاسو ته هغه دركاوه شي مګر چې تاسو به د دې (خوبونو) په تعبير خبر كړم، مخكې له دې نه چې تاسو ته هغه راشي، دا (تعبير) له هغه علم څخه دی چې زما رب ما ته ښودلی دی، بېشكه ما د هغه قوم دين پرېښی دی چې په الله ايمان نه لري او په اخرت هم كافران دي

۳۸:۱۲ - او ما د خپلو پلرونو د ملت پيروي كړې ده چې ابراهيم او اسحق او يعقوب دی، زمونږ. لپاره له سره جايز نه دي چې له الله سره څه شی شريك كړو، دا د الله له فضله څخه دي پر مونږ. باندې او په (نورو) خلقو باندې او لېكن زياتره خلق شكر نه وباسي

۳۹:۱۲ - ای د زندان دواړو ملګرو! ايا ګڼ او متفرق خدايان غوره دي يا كه هغه الله چې يو دی، ډېر قوي او غالب دی

۴۰:۱۲ - تاسو له الله نه غير عبادت نه كوئ مګر د داسې نومونو چې تاسو او ستاسو پلرونو ايښي (او نومولي) دي (او) الله د دوی (د الوهيت) په باره كې هېڅ دليل نه دی نازل كړی، حكم يواځې الله ته خاص دی، هغه حكم كړی دی چې تاسو يواځې د هغه عبادت كوئ، همدا سم دين دی او لېكن زياتره خلق نه پوهېږي

۴۱:۱۲ - ای د زندان دواړو ملګرو! هر چې په تاسو كې يو دی، نو هغه به په خپل مالك شراب ورڅښوي او پاتې شو بل، نو هغه به په دار كولی شي، نو مرغان به د ده له سر نه (غوښې) خوري، هغه كار فيصله شوی دی چې تاسو د هغه په باره كې (له ما نه) تعبير پوښتئ

۴۲:۱۲ - او هغه كس ته يې وويل چې په هغه يې دا يقين و چې يقينًا دا په دې دواړو كې خلاصی موندونكی دی: ته ما د خپل مالك په نيز ياد كړه، نو شيطان له هغه نه خپل مالك ته (د يوسف) يادول هېر كړل، نو هغه په زندان كې څوكاله پاتې شو

۴۳:۱۲ - او بادشاه وویل: بېشکه زه چې یمہ، زه اوه چاقې څربه غواګانې وینمہ، چې اوه خوارې غواګانې یې خوري او اوه شنه وږي او نور وچ (اوه وږي وینمہ) ای سردارانو! تاسو ما ته زما د خوب تعبیر ووایئ، که چېرې تاسو د خوب تعبیر کولی شئ

۴۴:۱۲ - هغوی وویل: (دا) ګډوډ (تخیلي) خوبونه دي او مونږ د خیالي ګډو وډو خوبونو په تعبیر باندې عالمان نه یو

۴۵:۱۲ - او هغه کس وویل چې په هغو دوارو کې ده نجات موندلی و او له ډېرې مودې نه پس یې یاد شو: زه تاسو د دې (خوب) په تعبیرخبرومہ، نو تاسو ما (یوسف ته) ولېږئ

۴۶:۱۲ - ای یوسفه! ای ډېره رښتینه! ته مونږ ته تعبیر بیان کړه د اوو څربو غواګانو په باره کې چې اوه خوارې یې خوري او د اوو شنو وږو او نورو (اوو) وچو (وږو) په باره کې، د دې لپاره چې زه خلقو ته واپس لاړشمہ د دې لپاره چې هغوی پوه شي

۴۷:۱۲ - هغه وویل: تاسو به اوه کاله پرله پسې په ډېر کوشش سره کر کوئ، نو څه چې تاسو وربېئ هغه (غله) په خپل وږې کې پرېږدئ، خو لږ له هغو نه چې تاسو یې خورئ

۴۸:۱۲ - بیا به د دې (کلونو) نه پس ډېر سخت اوه (کاله) راځي چې هغه (غلې) به وخوري چې تاسو مخکې د دغو (کلونو) لپاره ذخیره کړي دي۔ مګر لږ شان له هغه نه چې تاسو یې ساتئ

۴۹:۱۲ - بیا به له دې (کلونو) نه پس یو کال راځي چې په هغه کې به (په باران سره) د خلقو فریاد رسي وشي او په ده کې به دوی (مېوې) نچوړي

۵۰:۱۲ - او بادشاه وویل: تاسو هغه (یوسف) ما ته راولئ، نو کله چې ده ته استازی راغی، (نو) ده (ورته) وویل: خپل مالك ته بېرته لاړ شه، نو له هغه نه تپوس وکړه چې د هغو ښځو څه حال و چې خپل لاسونه یې پرې کړي وو، بېشکه زما رب د هغوی په مکر او چل ښه پوه دی

۵۱:۱۲ - هغه وویل: ستاسو څه حال (معامله) وه کله چې تاسو له یوسف نه د هغه د نفس غوښتنه کوله؟ هغوی وویل: الله ته پاکي ده، مونږ په هغه کې هېڅ بدي نه وه معلومه کړې، د عزیز ښځې وویل: اوس حقه (رښتیا) خبره ظاهره شوه، ما له هغه نه مطالبه کړې وه او بېشکه هغه یقیناً له رښتینو څخه دی

۵۲:۱۲ - دا د دې لپاره چې هغه (عزیز) پوه شي چې ما پسې شا له هغه سره خیانت نه دی کړی، او دا چې یقیناً الله د خیانتګرو مکر نه برابروي (سر ته یې نه رسوي)

۵۳:۱۲ - او زه خپل نفس نه بري کومہ، یقیناً نفس خو په بدۍ سره ډېر حکمہ کوونکی دی، مګر هغه چې زما رب پرې رحمہ وکړي، یقیناً زما رب ښه مغفرت کوونکی، بې حده رحمہ کوونکی دی

۵۴:۱۲ - او باچا وویل: هغه ما ته راولئ چې زه یې د خپل ځان لپاره خالص کړمہ، نو کله چې یې له

هغه سره خبرې وکړې، ویې ویل: بېشکه ته نن ورځ زمونږ په نیز د مرتبې خاوند، (او) امانتګر یې

۵۵:۱۲ - هغه وویل: ته ما د ځمکې په خزانو باندې مقرر کړه، بېشکه زه ښه ساتونکی، ښه پوه یم

۵۶:۱۲ - او همدارنګه مونږ یوسف ته په ځمکه کې اقتدار ورکړ، چې په دې (ځمکه) کې به یې چېرې چې غوښتل؛ ځای نیوه، مونږ خپل رحمت رسوو چا ته چې مونږ وغواړو او مونږ د نېکي کوونکو اجر نه ضایع کوو

۵۷:۱۲ - او یقینًا د اخرت اجر د هغو کسانو لپاره ډېر غوره دی چې ایمان یې راوړ او پرهېزګاري یې کوله

۵۸:۱۲ - او د یوسف وروڼه راغلل، نو په ده باندې ورننوتل، نو ده هغوی وپېژندل او هغوی ده لره ناپېژندونکي وو

۵۹:۱۲ - او کله چې هغه دوی ته د دوی د سفر اسباب تیار کړل، ویې ویل: تاسو ما ته خپل هغه ورور راولئ چې ستاسو له پلاره دی، ایا تاسو نه وینئ چې بېشکه زه پېمانه (دانې) پوره ورکوم او زه تر ټولو غوره مېلمه پال یم

۶۰:۱۲ - نو كه چېرې تاسو هغه ما ته رانه وسته، بیا نو ستاسو لپاره زما سره هېڅ پېمانه نشته او (بیا) تاسو ما ته مه رانژدې کېږئ

۶۱:۱۲ - هغوی وویل: مونږ به د هغه په هکله د هغه له پلاره په کوښښ سره غوښتنه کوو او بېشکه مونږ خامخا (دا کار) کوونکي یو

۶۲:۱۲ - او هغه خپلو ځلمیو ته وویل: د هغوی پنګه (سرمایه) د هغوی په بارونو کې کېږدئ، د دې لپاره چې دوی هغه وپېژني، کله چې دوی خپل اهل ته واپس لاړ شي، د دې لپاره چې دوی واپس راشي

۶۳:۱۲ - نو کله چې دوی خپل پلار ته بېرته وګرځېدل، ویې ویل: ای زمونږ پلاره! زمونږ نه یوه پیمانه منع کړی شوې ده، نو ته زمونږ سره زمونږ ورور ولېږه چې پیمانه راواخلو او بېشکه مونږ خامخا د ده حفاظت کوونکي یو

۶۴:۱۲ - هغه وویل: ایا زه تاسو په ده باندې امینان کړم مګر په شان د هغه چې ما تاسو له دې نه مخکې د ده په ورور باندې امینان ګرځولي وئ، نو الله ډېر غوره ساتونکی دی او هغه تر ټولو زیات رحم کوونکی دی

۶۵:۱۲ - او کله چې دوی خپل سامان پرانسته، دوی خپله پنګه وموندله چې دوی ته بېرته واپس کړی شوې ده، دوی وویل: ای زمونږ پلاره! مونږ (نور) څه غواړو، دا زمونږ پنګه ده چې مونږ ته

بېرته واپس کړی شوې ده، او مونږ به د خپل اهل لپاره غله راوړو او خپل ورور به ساتو او د يو اوښ بار به زيات راوړو، دغه ډېره اسانه پېمانه ده

٦٦:١٢ - هغه وويل: هيڅکله به هم زه له تاسو سره هغه ونه لېږم تر هغه پورې چې تاسو ما ته د الله پخه وعده راکړئ چې تاسو به هغه خامخا لازمًا ما ته بېرته راولئ، مگر دا چې تاسو گېر کړی شئ، نو کله چې هغوی ده ته خپله پخه وعده ورکړه، هغه وويل: الله وکيل (او شاهد) دی په هغه څه چې مونږ يې وايو

٦٧:١٢ - او هغه وويل: ای زما زامنو! تاسو (ټول) له يوې دروازې نه مه ننوځئ او له بېلو بېلو دروازو نه ورننوځئ او زه له تاسو نه د الله (له فيصلې) نه هېڅ شی نشم لرې کولی، حکم نشته مگر خاص د الله لپاره دی، خاص په هغه باندې ما توکل کړی دی اولازم دي چې توکل کوونکي يواځې په هغه باندې توکل وکړي

٦٨:١٢ - او کله چې دوی ننوتل له هغه ځايه چې دوی ته يې خپل پلار حکم کړی و، هغه له دوی نه د الله (له فيصلې) نه هېڅ شی نشو لرې کولی، مگر دا د يعقوب په زړه کې يو حاجت و چې هغه يې ادا کړ، او بېشکه هغه يقينًا د علم خاوند و، په سبب د دې چې مونږ هغه ته تعليم ورکړی و او لېکن د خلقو اکثريت نه پوهېږي

٦٩:١٢ - او کله چې دوی په يوسف باندې ورننوتل، (نو) هغه خپل ورور خپل ځان ته رانژدې کړ، ويې ويل: بېشکه زه چې يم، هم دا زه ستا ورور يم، نو ته په هغو کارونو مه خفه کېږه چې دوی کول

٧٠:١٢ - نو کله چې هغه، دوی ته د دوی سامانونه تيار کړل (، نو) د څښلو جام يې د خپل ورور په بار کې کېښود، بيا غږ کوونکي غږ وکړ! ای قافلې! بېشکه تاسو خامخا غله يئ

٧١:١٢ - هغوی وويل او دوی ته يې مخ راواړوه: تاسو څه شی ورك کړی دی؟

٧٢:١٢ - هغوی وويل: مونږ د بادشاه پېمانه ورکه کړې ده، او د هغه چا لپاره چې دغه راوړي، د يو اوښ بار دی، او زه د دې ضامن يم

٧٣:١٢ - هغوی وويل: قسم په الله، يقينًا يقينًا تاسو پوه شوي يئ چې مونږ د دې لپاره نه يو راغلي چې په دې ځمکه کې فساد وکړو، او مونږ خو غله نه يو

٧٤:١٢ - هغوی وويل: نو د هغه جزا به څه وي که تاسو غله وئ؟

٧٥:١٢ - دوی وويل: د هغه جزا هغه کس دی د چا په بار کې چې دغه ومومندل شي، نو هم دغه کس د هغه جزا دی، همدارنگه مونږ ظالمانو ته جزا ورکوو

٧٦:١٢ - نو د خپل ورور له بار نه مخکې يې د هغوی په بارونو شروع وکړه، بيا يې دغه پېمانه د خپل

وروړ له بار نه راوښکله، همدارنګه مونږ د یوسف لپاره تدبیر وکړ، هغه (یوسف د دې حقدار) نه و چې د بادشاه په قانون کې خپل وروړ راونيسي، مګر دا چې الله وغواړي، چا ته چې مونږ وغواړو په درجو کې يې اوچتوو او د هر علم والا له پاسه لوی عالم دی

۷۷:۱۲ - هغوی وویل: که دا غلا کوي، نو یقينًا له ده نه مخکې د ده وروړ (هم) غلا کړې ده.، نو یوسف دا په خپل نفس کې پټه وساتله او دایې دوی ته ښکاره نه کړه، ویې ویل: تاسو د مرتبې په لحاظ ډېر بد يئ او الله ښه عالم دی په هغې خبره چې تاسو يې بیانوئ

۷۸:۱۲ - دوی وویل: ای عزیزه! بېشکه د ده ډېر زوړ عمرخوړلی پلار دی، نو ته د ده په ځای پر مونږ کې یو تن ونیسه، بېشکه مونږ تا له احسان کوونکو څنې وینو

۷۹:۱۲ - هغه وویل: د الله پناه غواړو (له دې خبرې نه) چې مونږ (بل څوك) ونیسو، غیر له هغه کس نه چې مونږ له هغه سره خپل سامان موندلی دی، بېشکه مونږ به په دغه وخت کې خامخا ظالمان يو

۸۰:۱۲ - نو کله چې دوی له هغه نه نا امېده شول (، نو یوې خوا ته) بېل شول، په دې حال کې چې مشوره کوونکي وو، د دوی مشر وویل: ایا تاسو په دې پوه نه يئ چې یقينًا ستاسو پلار له تاسو نه د الله پخه وعده اخیستې ده او له دې نه مخکې چې تاسو د یوسف په باره کې څه تقصير کړی دی، نو زه خو به هیڅکله هم له دې ځمکې ونه خوځم تر هغه پورې چې ما ته زما پلار اجازت راکړي، یا الله زما لپاره فيصله وکړي او هغه تر ټولو غوره فیصله کوونکی دی

۸۱:۱۲ - تاسو خپل پلار ته بېرته لاړ شئ، نو (ورته) ووایئ، ای زمونږ پلاره! بېشکه ستا زوی غلا کړې ده او مونږ ګواهي نه ده کړې مګر په هغه څه چې مونږ پرې پوه شوي يو. او مونږ د پټ کار ساتونکي نه وو

۸۲:۱۲ - او ته له هغه کلي نه تپوس وکړه، چې مونږ په کې وو. او له هغې قافلې نه (هم) چې مونږ په هغې کې راغلو. او بېشکه مونږ لازمًا رښتيا ویونکي يو

۸۳:۱۲ - هغه وویل: بلکې تاسو لپاره ستاسو نفسونو یو کار ښایسته کړی دی، نو (زما کار) صبر جمیل دی، امېد دی چې الله به ما ته هغوی ټول راولي، بېشکه هغه، هم هغه ښه پوه، ښه حکمت والا دی

۸۴:۱۲ - او له هغوی نه يې مخ وګرځاوه او ویې ویل: ای زما غمه په یوسف باندې! او د هغه دواړه سترګې له غمه تکې سپینې شوې، نو هغه (له قهره) ډك و

۸۵:۱۲ - هغوی وویل: په الله قسم دی چې ته به همېشه یوسف يادوې، تر هغه پورې چې ته په وېلې کېدو سره مرګ ته قریب شې یا ته د هلاکېدونکو نه شې

۸٦:۱۲ - هغه وويل: بېشکه همدا خبره ده چې زه د خپل واړه او لوی غم شکايت الله ته کوم، او زه د الله له جانبه په هغه څه پوهېږم چې تاسو پرې نه پوهېږئ

۸۷:۱۲ - ای زما زامنو! تاسو لاړ شئ، نو د یوسف او د هغه د ورور لټون وکړئ او د الله له رحمت نه مه نا امیده کېږئ، بېشکه شان دا دی چې د الله له رحمت نه نه نا امیده کېږي مگر کافر قوم

۸۸:۱۲ - نو کله چې دوی په هغه ورننوتل، دوی وويل: ای عزيزه! مونږ ته او زمونږ کورنۍ ته سختي رسېدلې ده او مونږ ناقصه (کمه) پنگه راوړې ده، نو ته مونږ ته پوره پېمانه راکړه او پر مونږ صدقه وکړه، بېشکه الله خيرات کوونکو ته بدله ورکوي

۸۹:۱۲ - ويې ويل: ايا تاسو په هغه فعل عالمان يئ چې تاسو له یوسف او د هغه له ورور سره کړی و، کله چې تاسو ناپوهان وئ؟

۹۰:۱۲ - هغوی وويل: ايا يقيناً ته چې يې، په رښتيا هم ته یوسف يې؟ هغه وويل: هم زه یوسف یم او دغه مې سکه ورور دی، يقيناً الله پر مونږ احسان وکړ، بېشکه شان دا دی چې څوك تقویٰ اختيار کړي او صبر وکړي، نو بېشکه الله د نېکي کوونکو اجر نه ضائع کوي

۹۱:۱۲ - هغوی وويل: قسم په الله چې يقيناً په رښتيا سره الله ته پر مونږ باندې غوره کړی يې او بېشکه مونږ خامخا خطا کار وو

۹۲:۱۲ - هغه وويل: نن ورځ پر تاسو باندې هېڅ ملامتي نشته، الله دې تاسو وبخښي او هغه تر ټولو زيات رحم کوونکی دی

۹۳:۱۲ - تاسو زما دا کميس يوسئ، نو دا زما د پلار په مخ واچوئ، هغه به بېرته بينا شي او تاسو، سره له خپل اهله ټول ما ته راشئ

۹۴:۱۲ - او کله چې قافله (د مصر له حدودو) ووتله، د هغوی پلار وويل: بېشکه زه چې يم خامخا د یوسف خوشبويي محسوسوم که چېرې تاسو ما ته د بوډاوالي د کم عقلۍ نسبت ونه کړئ (نو زما تصديق به وکړئ)

۹۵:۱۲ - (ده ته حاضرينو) وويل: بېشکه ته چې يې، خامخا په خپلې پخوانۍ خطا کې پروت يې

۹٦:۱۲ - نو هغه وخت چې زېری کوونکی څنگه راغی، نو د ده په مخ يې هغه (کميس) واچوه، نو دی بينا وگرځېده.، هغه (يعقوب) وويل: ايا ماتاسو ته نه و ويلي؟ بېشکه زه (د الله په ښودنې سره) په هغه څه پوهېږم چې تاسو پرې نه پوهېږئ

۹۷:۱۲ - هغوی وويل: ای زمونږ پلاره! زمونږ لپاره (له الله نه) زمونږ د گناهونو بخښنه وغواړه، بېشکه مونږ خطا کار وو

۹۸:۱۲ - هغه وويل: عنقريب به زه تاسو لپاره له خپل رب نه بخښنه وغواړم، بېشکه هغه، هم

هغه، ښه بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۹۹:۱۲ - نو کله چې دوی په یوسف ورننوتل، نو خپل مور او پلار یې خپل ځان ته رانژدې کړل او ویې ویل: تاسو مصر ته داخل شئ، په داسې حال کې چې په امن کې به یئ۔ که الله وغواړي

۱۰۰:۱۲ - او خپل مور او پلار یې (له ځان سره) په تخت باندې پورته کړل، او دوی (ټول) ده ته پرېوتل سجده کوونکي۔ او ده وویل: ای زما پلار جانه! دا زما د هغه خوب تعبیر دی چې مخکې (مالېدلی) و، یقینًا هغه زما رب رښتیا وګرځاوه، او یقینًا هغه په ما احسان وکړ کله چې یې زه له جېل نه راووېستم او تاسو یې له میرې (صحرا) نه راوستئ، وروسته له دې چې شیطان زما او زما د ورونو په مینځ کې جګړه غورځولې وه، بېشکه زما رب باریك تدبیر والا دی، د هغه (شي) لپاره چې اراده یې وکړي، بېشکه هغه، هم هغه، ښه عالم، ښه حکمت والا دی

۱۰۱:۱۲ - ای زما ربه! یقینًا تا ما ته (د) څه (علاقې) بادشاهي راکړې ده، او تا ما ته د خوبونو د تعبیر علم راکړی دی، ای د اسمانونو او ځمکې پېدا کوونکیه! په دنیا او اخرت کې هم ته زما کارساز یې، ته ما ته وفات راکړه، په داسې حال کې چې مسلمان یم او ته ما له نېکانو صالحانو سره یو ځای کړه

۱۰۲:۱۲ - دا د غیب له خبرونو ځنې دي چې هغه مونږ تا ته وحي کوو او ته له هغوی سره نه وې کله چې هغوی د خپل کار پخه اراده وکړه، په داسې حال کې چې دوی مکر (او فرېب) کاوه%

۱۰۳:۱۲ - او زیاتره خلق، اګر که ته (د دوی په ایمان راوړلو) حرص وکړې (بیا هم) هېڅکله ایمان راوړونکي نه دي

۱۰۴:۱۲ - او ته له دوی نه په دې (تبلیغ د قرآن) باندې هېڅ اجر نه غواړې، نه دی دا مګر د ټولو خلقو لپاره (د الله له جانبه) نصیحت

۱۰۵:۱۲ - او څومره ډېر دلیلونه دي په اسمانونو او ځمکه کې، چې دوی پرې تېرېږي، په داسې حال کې چې دوی له هغو نه مخ اړوونکي وي

۱۰۶:۱۲ - او د دوی زیاتره په الله ایمان نه لري، مګر په داسې حال کې چې دوی شرك کوونکي وي

۱۰۷:۱۲ - ایا نو دوی په امن کې شوي دي له دې نه چې په دوی باندې د الله له عذاب نه پټوونکې (راګېرونکې) برخه راشي، یا په دوی باندې ناڅاپه قیامت راشي، په داسې حال کې چې دوی به نه پوهېږي

۱۰۸:۱۲ - ته ووایه: دا زما لاره ده، د الله په طرف بلنه کوم، په ښه بیان او بصیرت سره، زه او هغه څوك چې زما پیروي کوي، او الله پاك دی، او زه له شرك کوونکو ځنې نه یم

۱۰۹:۱۲ - او مونږ له تا نه مخکې نه دي لېږلي مګر سړي چې مونږ به هغوی ته وحي کوله، چې د کليو (ښارونو) اوسېدونکي وو، ايا نو دوی په ځمکه کې نه دي ګرځېدلي، پس چې ليدلي يې وی چې د هغو (مجرمو) کسانو انجام څنګه و چې له دوی نه مخکې وو، او يقينًا د اخرت کور د هغو کسانو لپاره ډېر غوره دی چې (له شرك او كفر نه) ځان ساتي، ايا نو تاسو له عقل نه کار نه اخلئ؟

۱۱۰:۱۲ - تر هغه پورې چې رسولان به نا امېده شول او هغو (خلقو) به دا يقين وکړ چې بېشکه دوی (رسولان) چې دي، يقينًا دوی ته دروغ ويل شوي دي (، نو) دوی (رسولانو) ته به زمونږ مدد راغی، بيا به هغه چا ته نجات ورکړی شو چې مونږ به غوښتل او زمونږ عذاب له مجرمو (کافرو) خلقو نه نشي دفع کېدلی

۱۱۱:۱۲ - يقينًا يقينًا د دوی (د قصې) په بيان کې د خالصو عقلونو والاو لپاره ښه عبرت دی.، دغه (قرآن) داسې خبره ښځې نه ده چې له ځانه په دروغو جوړه کړی شوې وي او لېکن (دغه قرآن) د هغو (کتابونو) تصديق دی چې له ده نه مخکې وو او د هر شي تفصيل (بيان) دی او هدايت او رحمت دی د هغه قوم لپاره چې (په الله او د هغه په رسول) ايمان لري

## (مکي) تندر - الرعد ۱۳

۱:۱۳ - الف، لام، ميم، را، دا د کتاب ايتونه دي او هغه (کتاب) چې تا ته د خپل رب له جانبه نازل کړی شوی دی، حق دی او لېکن زياتره خلق ايمان نه راوړي

۲:۱۳ - الله هغه ذات دی چې اسمانونه يې پورته کړي دي، بې له ستنو، چې تاسو هغه وينئ، بيا يې په عرش باندې برقرار شو، او ده لمر او سپوږمۍ مسخر کړي دي، هر يو يې تر مقررې نېټې پورې روان دی، هغه، د هر کار تدبير کوي، دليلونه ښه په تفصيل سره بيانوي، د دې لپاره چې تاسو د خپل رب په ملاقات يقين وکړئ

۳:۱۳ - او دی همغه ذات دی چې ځمکه يې غوړولې ده او په هغې کې يې پاخه غرونه او نهرونه جوړ کړي دي او له هر قسمه مېوو نه يې په دغې کې دوه دوه جوړې پيدا کړې دي، هغه په شپې سره ورځ پټوي، بېشکه په دې کې د هغو خلقو لپاره لازمًا نښې دي چې فکر (او غور) کوي

۴:۱۳ - او په ځمکه کې څنګ په څنګ پيوستې ټوټې دي او د انګورو باغونه دي او فصلونه دي او د کجورو ونې دي چې له يوه بېخه پورته شوي دي او ځينې ځان ته (جدا) بېخ لري، چې په يوه قسم اوبو سره اوبه کولی شي. او مونږ په هغو کې ځينو ته په نورو باندې په مېوه (او خوند) کې فضيلت ورکوو، بېشکه په دې کې د هغو خلقو لپاره يقينًا نښې دي چې د عقل نه کار اخلي

۵:۱۳ - او که ته تعجب کوې، نو د دوی (دا) خبره ډېره عجيبه ده چې (وايي:) ايا چې کله مونږ

خاورې شو، ایا نو مونږ به په رښتیا نوي تخلیق کې یو (بیا به له نوي سره پیدا کولی شو)؟ دوی همغه کسان دي چې په خپل رب سره کافران شوي دي او دغه کسان دي چې طوقونه به یې په غاړو کې وي او دغه کسان د اور ملګري دي، دوی به په هغه کې تل ترتله وي

۶:۱۳ - او دوی له تا نه د نېکۍ (رحمت) نه مخکې بدي ژر غواړي او یقینًا له دوی نه مخکې (له عبرته ډك) عذابونه تېر شوي دي او بېشکه ستا رب د خلقو لپاره د هغوی د ظلم باوجود یقینًا د لوی مغفرت والا دی او بېشکه ستا رب یقینًا ډېر سخت عذاب والا دی

۷:۱۳ - او هغه کسان چې کفر یې کړی دی، وایي: ولې په ده باندې د خپل رب له جانبه کومه نښه نه ده نازله کړی شوې؟ یقینًا همدا خبره ده چې ته وېرووونکی یې او د هر قوم لپاره یو لار ښودونکی دی

۸:۱۳ - الله پوهېږي په هغه څه چې هره ښځه یې (په خپله خېټه کې) اوچتوي او په هغه څه چې رحمونه یې کموي او په هغه څه چې زیاتوي یې او هر شی له هغه سره په اندازې سره دی

۹:۱۳ - د غیبو او د ښکاره و عالم دی، ډېر لوی، لوړ برتر دی

۱۰:۱۳ - یو شان دي، په تاسو کې چې څوك خبره پټوي او څوك چې یې څرګندوي او هغه څوك چې هغه په شپه کې پټېدونکی دی او په ورځ کې ظاهرېدونکی دی

۱۱:۱۳ - د ده لپاره له مخې نه او د ده له شا نه نوبت په نوبت یو د بل پسې راتلونکي (ملایك) دي چې د الله په امر سره د ده ساتنه کوي.، بېشکه الله د هېڅ قوم حالت نه بدلوي تر هغه پورې چې هغوی (پخپله) د خپلو نفسونو حالت بدل کړي او کله چې الله په یو قوم د بدۍ اراده وکړي، نو د هغې لپاره هېڅ بېرته ګرځېدل نشته او د دوی لپاره له هغه نه غیر هیڅوك مددګار نشته

۱۲:۱۳ - دی همغه ذات دی چې تاسو ته برېښنا د وېرولو او طمع درکولو لپاره درښیي او درنې ورېځې پیدا کوي

۱۳:۱۳ - او رعد د هغه له حمد سره تسبیح وایي او ملایك (هم) د هغه له وېرې نه او هغه تندرونه لېږي، نو چا ته چې وغواړي دا ورته رسوي، په داسې حال کې چې دوی د الله په باره کې جګړه کوي او هغه ډېر سخت سزا والا دی

۱۴:۱۳ - خاص د هغه لپاره حق بلل دي او هغه (معبودان) چې دوی یې له هغه نه پرته بلي؛ هغه د دوی هېڅ دعا نشي قبلولی مګر په شان د هغه کس چې اوبو ته خپل دواړه ورغوي غځونکی وي، د دې لپاره چې هغه د ده خولې ته راورسي، حال دا چې دغه (اوبه خولې د) ده ته رسېدونکې نه دي او د کافرانو دعا نه ده مګر بېخي په تاوان کې ده

۱۵:۱۳ - او خاص الله ته سجده کوي هغه څوك چې په اسمانونو او ځمکه کې دي په خوښه او په

زور او د هغوی سیوري (هم سجده کوي) سبا او بېګاه

۱۶:۱۳ - ته (دوی ته) ووایه: د اسمانونو او ځمکې رب څوك دی؟ ته ووایه: الله دی، (نو ورته) ووایه: ایا نو تاسو له هغه نه غیر نور کار سازان (دوستان) جوړ کړي دي چې د خپلو ځانونو لپاره نه د نفعې اختیار لري او نه د ضرر (لرې کولو) ته ووایه: ایا ړوند او بینا سره برابر دي؟ بلکې (دا ورته ووایه:) ایا سره برابرې دي تیارې او رڼا، یا دوی د الله لپاره داسې شریکان مقرر کړي دي چې د هغه د پیدا کولو په شان پیدا کول یې کړي دي، بیا په دوی باندې پیدا کول مشتبه شوي دي؟ ته ووایه: الله د هر شي پیدا کوونکی دی او هم هغه یو دی، ډېر غالب دی

۱۷:۱۳ - هغه له بره نه اوبه نازلې کړې، نو خوړونه په خپلې اندازې سره وبهېدل، نو سیلاب اوچت شوی ځګ راپورته کړ او له هغو څیزونو نه هم چې دوی پرې په اور کې د ګاڼې، یا سامان جوړولو لپاره بلول کوي، د دې په مثل ځګ وي، همدارنګه الله (مثال د) حق او باطل بیانوي، نو هر چې ځګ دی، نو هغه بې کاره لاړ شي او هر چې هغه څیز دی چې خلقو ته فایده رسوي، نو هغه په ځمکه کې پاتې کېږي، همدارنګه الله مثالونه بیانوي

۱۸:۱۳ - هم د هغو کسانو لپاره نېکه بدله ده چې د خپل رب حکم یې قبول کړی دی او هغه کسان چې د هغه حکم یې نه دی قبول کړی که له دوی سره په رښتیا هر هغه څه وي چې په ځمکه کې دي ټول او د ده په مثل نور هم له ده سره وي (، نو) خامخا به دوی هغه په فدیه کې ورکړي، دغه کسان دي چې د دوی لپاره بد حساب دی او د دوی استوګنځای جهنم دی او هغه بد ارام ځای دی

۱۹:۱۳ - ایا نو هغه څوك چې په دې پوهېږي چې بېشکه هغه (قرآن) چې تا ته د خپل رب له جانبه نازل کړی شوی دی، حق دی، د هغه چا په شان دی چې هغه ړوند دی؟ یقینًا همدا خبره ده چې نصیحت د خالصو عقلونو والا اخلي

۲۰:۱۳ - هغه کسان چې د الله وعده پوره کوي او پخه وعده نه ماتوي

۲۱:۱۳ - او هغه کسان چې هغه څه وصل کوي چې الله د هغه د میلاوولو حکم کړی دی او له خپل رب څخه وېرېږي او له بد حساب نه وېره کوي

۲۲:۱۳ - او هغه کسان چې د خپل رب د مخ لټونې لپاره یې صبر کړی دی او لمونځ یې قایم کړی دی او له هغه څه نه یې چې مونږ ورته ورکړي دي؛ په پټه او ښکاره انفاق کړی دی او هغوی په نېکۍ سره بدي دفع کوي دغه کسان چې دي د دوی لپاره د اخرت ښه انجام دی

۲۳:۱۳ - چې د تل اوسېدلو جنتونه دي، دوی به هغو ته داخلېږي، او هغوی هم چې صالح وي د دوی له پلرونو څخه او د دوی له جوړو (ښځو) څخه او د دوی له اولادونو څخه. او ملایك به په دوی باندې له هرې دروازې نه ورننوځي

۲۴:۱۳ - (او وايي به) ستاسو د صبر كولو په سبب دې پر تاسو باندې سلام وي، نو (دا) د اخرت ښه انجام دی

۲۵:۱۳ - او هغه كسان چې د الله عهد ماتوي د هغه (عهد) له پخولو نه وروسته. او هغه څه پرېكوي چې الله د هغه د ميلاوولو حكم كړی دی او په ځمكه كې فساد كوي، هم دغه كسان چې دي د دوی لپاره لعنت دی او هم د دوی لپاره د اخرت بدي ده

۲۶:۱۳ - الله روزي فراخوي چا ته چې وغواړي او تنگوي يې (چا ته چې يې وغواړي) او دوی په دنيايي ژوند خوشحاله شوي دي او دنيايي ژوند د اخرت په مقابله كې نه دی مگر لږه متاع (سامان)

۲۷:۱۳ - او وايي هغه كسان چې كفر يې كړی دی: په ده باندې د خپل رب له جانبه كومه نښه (معجزه) ولې نه ده نازله كړی شوې؟ ته (ورته) ووايه: بېشكه الله چې چا ته وغواړي گمراه كوي يې او خپل طرف ته هغه چا ته هدايت كوي چې رجوع وكړي

۲۸:۱۳ - هغه كسان چې ايمان يې راوړی دی او د هغوی زړونه د الله په ذكر سره مطمئن كېږي، خبردار شئ! د الله په ذكر سره زړونه مطمئن كېږي

۲۹:۱۳ - هغه كسان چې ايمان يې راوړی دی او نېك عملونه يې كړي دي، د دوی لپاره ښه حال دی او ښه استوگنځای دی

۳۰:۱۳ - همدارنگه ته مونږ په داسې امت كې لېږلی يې چې يقينًا له هغه نه مخكې ډېر امتونه تېر شوي دي، د دې لپاره چې ته دوی ته هغه (قرآن) ولولې چې مونږ تا ته وحي كړی دی، په داسې حال كې چې دوی په رحمٰن سره كفر كوي، ته ووايه: هغه زما رب دی، له هغه نه غير د عبادت هېڅ لايق نشته، خاص په هم ده باندې ما توكل كړی دی او خاص هم ده ته زما بېرته ورتله دي

۳۱:۱۳ - او كه بېشكه قرآن چې دی (داسې شي چې) په ده سره غرونه روان كړی شي، يا په ده سره ځمكه ټوټې كړی شي، يا په ده سره مړي په خبرو راوستلی شي. (بيا به هم دوی ايمان رانه وړي) بلكې امر (اختيار) ټول خاص الله لپاره دی، ايا نو هغه كسان چې ايمان يې راوړو (د دغو خلقو له ايمان نه) نا امېده شوي نه دي، (حال دا چې دغه مومنان پوهېږي چې) كه الله غوښتلی، نو يقينًا ټولو خلقو ته به يې هدايت كړی و. او هغه كسان چې كفر يې كړی دی، همېشه به دوی ته د خپلو كړو عملونو په سبب زړه ټكوونكی (عذاب) رسېږي، يا به د دوی كورونو ته نژدې راكوزېږي، تر هغه پورې چې د الله وعده راشي، بېشكه الله د وعدې خلاف نه كوي

۳۲:۱۳ - او يقينًا يقينًا له تا نه مخكې رسولانو پورې استهزا (او مسخرې) شوې وې، نو ما كافران شويو خلقو ته مهلت وركړ، بيا مې هغوی ونيول، نو (بيا) زما عذاب څنگه و؟

۳۳:۱۳ - ايا نو هغه ذات چې ولاړ (او نگران) دی پر هر نفس باندې سره د هغه عمل چې هغه

کړی دی (نو بل څوك د ده برابر کېدی شي؟) او دوی د الله لپاره شريکان مقرر کړل، ته (ورته) ووايه: تاسو د دوی نومونه (او صفتونه) ذکر کړئ، يا تاسو هغه (الله) ته د هغه څه خبر ورکوئ چې هغه يې په ځمکه کې نه پېژني، بلکې تاسو په ظاهره وينا سره (تش په خولې، بې دليله دوی شريکان کوئ) بلکې کافران شويو کسانو ته خپل مکرونه (او دروغ) ښايسته کړی شوي دي او له سمې لارې نه بند کړی شوي دي او هغه څوك چې الله يې گمراه کړي، نو د هغه لپاره هېڅ هدايت ورکوونکی نشته

۳۴:۱۳ - شته دی د دوی لپاره عذاب په دنيايي ژوند کې او خامخا د اخرت عذاب ډېر سخت دی، او د دوی لپاره به د الله (له عذاب) نه هېڅ ساتونکی نه وي

۳۵:۱۳ - د هغه جنت حال چې له متقيانو سره يې وعده شوې ده (دا دی چې) د هغه له لاندې ولې بهېږي، د هغه مېوې همېشنۍ دي او د هغه سيوری هم، دغه (جنت) د هغو کسانو انجام (او د رجوع ځای) دی چې پرهېزگاري کوي او د کافرانو انجام اور دی

۳۶:۱۳ - او هغه کسان چې مونږ هغوی ته (له تا نه مخکې) کتاب ورکړی دی، هغوی په هغه (کتاب، قرآن) باندې خوشحالېږي چې تا ته نازل کړی شوی دی، او (د اهل کتابو) په ډلو کې ځينې هغه دي چې د ده ځينې برخه نه مني، ته (دوی ته) ووايه: ما ته په دې سره حکم شوی دی چې زه د الله عبادت کوم او له هغه سره شريك ونه نيسم، خاص د هغه طرف ته بلنه کوم او خاص هم ده ته زما ورتله دي

۳۷:۱۳ - او همداسې مونږ دا (قرآن) نازل کړی دی، په عربۍ ژبه حکم کوونکی او قسم دی که ته د دوی د خواهشاتو پیروي وکړې وروسته له دې چې تا ته علم راغی (، نو) تا لپاره به د الله په مقابله کې نه هېڅ کارساز وي او نه بچ کوونکی

۳۸:۱۳ - او يقينًا يقينًا مونږ له تا نه مخکې رسولان لېږلي وو او مونږ دوی ته ښځې او اولادونه ورکړي وو، او د هېڅ رسول لپاره دا اختيار نه و چې کومه معجزه راوړي مگر د الله په اذن (او حکم) سره.، د هرې يوې مودې لپاره يو ليك دی

۳۹:۱۳ - الله محوه کوي هغه چې اراده يې وکړي او ثابتوي يې او له هغه سره اصل د کتاب دی

۴۰:۱۳ - او که لازمًا مونږ تا ته ځينې له هغه (عذاب) نه وښيو چې دوی ته يې مونږ وعده ورکوو، يا خامخا مونږ تا وفات کړو، نو په تا خو يواځې تبليغ کول دي او پر مونږ باندې حساب کول دي

۴۱:۱۳ - ايا دوی نه گوري چې يقينًا مونږ ځمکې ته راځو چې د هغې له اطرافو نه يې کموو او الله حکم کوي، هيڅوك د هغه د حکم رد کوونکی نشته او هغه ډېر ژر حساب کوونکی دی

۴۲:۱۳ - او تحقيق هغو (کافرانو) مکر کړی و چې له دې (کافرانو) نه مخکې وو، نو خاص الله لره دي پټ تدبيرونه ټول، هغه پوهېږي په هغه څه چې هر نفس يې کوي، او کافران به ژر پوه شي

چې د چا لپاره د اخرت ښه انجام دی

۴۳:۱۳ - او کافران شوي خلق وايي: ته رسول نه يې، ته (ورته) ووايه: زما په مينځ کې او ستاسو په مينځ کې د ګواه په توګه الله ښه کافي دی او هغه څوک (هم) چې له هغه سره د کتاب علم دی

## (مکي) ابراهيم - ابراهيم ۱۴

۱:۱۴ - الف، لام، را، (دا) کتاب دی چې مونږ تا ته نازل کړی دی، د دې لپاره چې ته خلق له تيارو نه رڼا ته وباسې د دوی د رب په اذن سره، د ډېر غالب، ښه ستايل شوي ذات لارې ته

۲:۱۴ - چې الله دی، هغه چې خاص د هغه لپاره دي څه چې په اسمانونو کې دي او څه چې په ځمکه کې دي او کافرانو ته له ډېر سخت عذاب نه هلاکت دی

۳:۱۴ - هغه کسان چې دنيايي ژوند په اخرت باندې غوره ګڼي او د الله له لارې نه بندول کوي او په دې کې کوږوالی لټوي، دغه کسان په ډېرې لرې ګمراهۍ کې دي

۴:۱۴ - او مونږ هېڅ يو رسول نه دی لېږلی مګر د خپل قوم په ژبه، د دې لپاره چې دوی ته بيان (او وضاحت) وکړي، بيا نو الله ګمراه کوي هغه څوک چې يې وغواړي او هدايت ورکوي هغه چا ته چې يې وغواړي، او هم دی ښه غالب، ښه حکمت والا دی

۵:۱۴ - او يقينًا يقينًا مونږ موسٰی په خپلو معجزو سره لېږلی و چې خپل قوم له تيارو نه رڼا ته راوباسه او دوی ته د الله د ورځو يادونه وکړه، بېشکه په دې کې خامخا د هر ښه صبر کوونکي، ډېر شکر کوونکي لپاره نښې دي

۶:۱۴ - او کله چې موسٰی خپل قوم ته وويل: تاسو د الله هغه نعمت رایاد کړئ چې پر تاسو باندې شوی دی، کله چې يې تاسو له اٰلِ فرعون نه خلاص کړئ چې هغوی به تاسو ته ډېر سخت عذاب دررساوه او ستاسو زامن به يې حلالول او ستاسو ښځې (لوڼې) به يې ژوندۍ پرېښودلې او په دې کې ستاسو د رب له جانبه ډېر لوی ازمېښت و

۷:۱۴ - او کله چې ستاسو رب اعلان وکړ چې قسم دی که تاسو شکر وباسئ (، نو) زه به خامخا هرومرو تاسو ته اضافه وکړم او قسم دی که تاسو ناشکري وکړئ، نو بېشکه زما عذاب خامخا ډېر سخت دی

۸:۱۴ - او موسٰی وويل: که کافران شئ تاسو او هغه څوک چې په ځمکه کې دي، ټول، نو بېشکه الله خامخا ډېر بې پروا، ډېر ستايل شوی دی

۹:۱۴ - ايا تاسو ته د هغو خلقو خبر نه دی راغلی چې له تاسو نه مخکې وو، چې د نوح قوم او

عاديان او ثموديان وو او هغه کسان چې له دوی نه پس وو، چې يوازې الله پر هغوی عالم دی، دوی ته خپلو رسولانو ښکاره دليلونه راوړي وو، نو دوی خپل لاسونه خپلو خولو ته وګرځول او ويې ويل: بېشکه مونږ کافران شوي يو په هغه څه چې تاسو په هغه سره رالېږل شوي يئ او بېشکه مونږ يقينًا د هغه څه په هکله چې تاسو مونږ هغه ته بلئ په اضطراب اچوونکي شك کې يو

۱۰:۱۴ - د دوی رسولانو وويل: ايا د الله په باره کې شك دی، چې د اسمانونو او ځمکې پيدا کوونکی دی؟ هغه تاسو رابلي، د دې لپاره چې هغه تاسو لپاره ستاسو څه ګناهونه وبخښي او تاسو مقررې نېټې ته وروسته کړي.، دوی وويل: نه يئ تاسو مګر زمونږ په شان بشر، تاسو غواړئ چې مونږ له هغه څه نه منع کړئ چې زمونږ پلرونو يې عبادت کاوه، نو تاسو مونږ ته ښکاره دليل (معجزه) راوړئ

۱۱:۱۴ - دوی ته خپلو رسولانو وويل: مونږ نه يو مګر ستاسو په شان بشر، او لېکن الله په خپلو بنده ګانو کې چې په چا وغواړي احسان کوي او مونږ ته له سره اختيار نشته چې تاسو ته کوم دليل (معجزه) راوړو مګر د الله په حکم سره. او لازم ده چې خاص په الله باندې مومنان توکل وکړي

۱۲:۱۴ - او مونږ ته څه عذر دی چې مونږ به په الله توکل نه کوو، حال دا چې هغه مونږ ته د خپلو لارو هدايت کړی دی او خامخا هرومرو به مونږ په هغو تکليفونو صبر کوو چې تاسو يې مونږ ته راکوئ، او لازم ده چې خاص په الله باندې توکل کوونکي توکل وکړي

۱۳:۱۴ - او کافران شويو خلقو خپلو رسولانو ته وويل: خامخا هرومرو به مونږ تاسو له خپلې ځمکې نه وباسو، يا به خامخا هرومرو تاسو زمونږ دين ته راګرځئ، نو دغو (رسولانو) ته خپل رب وحي وکړه چې خامخا ضرور به مونږ ظالمان هلاکوو

۱۴:۱۴ - او خامخا ضرور به مونږ له دوی نه پس تاسو په دغه ځمکه کې واوسوو، دغه (د ظالمانو هلاکول او د نېکانو اوسول حق دي) د هغه چا لپاره چې زما په وړاندې له ودرېدلو نه وېرېږي اوزما له وعيد نه وېرېږي

۱۵:۱۴ - او هغوی (رسولانو) فتح وغوښته او هر متکبر سرکشه نامراده شو

۱۶:۱۴ - چې د هغه په وړاندې جهنم دی او په هغه به د وينو زويو اوبه څښولی شي

۱۷:۱۴ - چې هغه به په تکليف سره ګوټ ګوټ څښي او نژدې به نه وي چې هغه تېرې کړي او ده ته به له هره ځايه مرګ راشي، حال دا چې هغه به مړ کېدونکی نه وي او د ده شا او مخې ته به ډېر سخت عذاب وي

۱۸:۱۴ - حال د هغو کسانو چې په خپل رب سره کافران شوي دي، د دوی عملونه د هغه ايرو په

شان دي چې په سخته بادي ورځ کې پرې تيز باد راوالوځي، دوی به له خپلو کړو عملونو نه په هېڅ شي قادره نشي.، همدغه ډېره لرې گمراهي ده

۱۹:۱۴ - ايا ته نه وينې چې بېشکه الله اسمانونه او ځمکه په حقه سره پيدا کړي دي، که هغه وغواړي (، نو) تاسو به ختم کړي او نوي خلق به راولي

۲۰:۱۴ - او دغه (کار) په الله باندې هېڅ گران نه دی

۲۱:۱۴ - او دوی به ټول الله ته ظاهر شي، نو کمزوران به هغو کسانو ته ووايي چې کبر او لويي به يې کوله: بېشکه مونږ ستاسو پيروي کوونکي وو، نو ايا تاسو زمونږ څخه د الله له عذاب نه څه شی لرې کوونکي يئ؟ هغوی به ووايي: که الله مونږ ته هدايت کړی وی (نو) مونږ به خامخا تاسو ته لار ښوونه کړې وی، پر مونږ برابر دي که مونږ شور او فرياد وکړو، يا مونږ صبر وکړو، زمونږ لپاره هېڅ د خلاصي ځای نشته

۲۲:۱۴ - او کله چې د خبرې فيصله وشي، شيطان به ووايي: بېشکه الله له تاسو سره وعده کړې وه حقه وعده او ما له تاسو سره وعده کړې وه، نو ما له تاسو سره خلاف وکړو، او زما لپاره پر تاسو باندې هېڅ غلبه نه وه غير له دې نه چې ما تاسو راوبللئ، نو تاسو زما بلنه قبوله کړه (اوس) نو تاسو ما مه ملامتوئ او (بلکې) خپل ځانونه ملامته کړئ، نه زه ستاسو فريادرس يم او نه تاسو زما فرياد رسان يئ، بېشکه زه کافر (او بېزاره) شوی يم په هغه څه چې تاسو زه (له الله سره) شريك کړی ومه له دې نه مخکې.، بېشکه دا ظالمان چې دي د هغوی لپاره ډېر دردوونکی عذاب دی

۲۳:۱۴ - او هغه کسان به چې ايمان يې راوړی دی او نېك عملونه يې کړي دي داسې جنتونو ته داخل کړی شي چې د هغو له لاندې ولې بهېږي، په دې حال کې چې دوی به په هغو کې تل ترتله وي، د خپل رب په حکم سره. او د دوی پيشکشي به په دغو (جنتونو) کې سلام وي

۲۴:۱۴ - ايا ته نه وينې چې الله څنگه يو مثال بيانوي: پاکيزه کلمه (چې لا اله الا الله ده) د هغې پاکيزه ونې په شان ده چې د هغې بېخ کلك وي (په ځمکه کې) او د هغې څانگې په اسمان کې وي

۲۵:۱۴ - خپله مېوه د خپل رب په حکم سره هر وخت ورکوي. او الله د خلقو لپاره مثالونه بيانوي، د دې لپاره چې دوی نصيحت واخلي

۲۶:۱۴ - او د خبيثې کلمې (چې د کفر کلمه ده) مثال د خبيثې (بدبويې) ونې دی چې د ځمکې له پاسه نه وېستل شوې وي، چې د هغې لپاره هېڅ قدر قرار نه وي

۲۷:۱۴ - الله هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی په ثابته خبره باندې مضبوطوي، په دنيايي ژوند کې او په اخرت کې او الله ظالمان گمراه کوي او الله چې څه وغواړي هغه کوي

۲۸:۱۴ - ایا تا نه دي کتلي هغو کسانو ته چې په ناشکرۍ سره يې د الله نعمت بدل کړ او خپل قومـ يې د هلاکت کور ته راکوز کړو

۲۹:۱۴ - چې جهنمـ دی، دوی به په هغه کې داخلېږي او هغه داستوګنې بد ځای دی

۳۰:۱۴ - او دوی د الله لپاره شریکان مقرر کړل، د دې لپاره چې د هغه له لارې نه (خلق) ګمراه کړي، ته (ورته) ووایه: تاسو نفع واخلئ، پس بېشکه ستاسو بېرته ورتله (د دوزخ) اور ته دي

۳۱:۱۴ - ته زما هغو بنده ګانو ته ووایه چې ایمان يې راوړی دی چې لمونځ دې قایموي او له هغه مال نه دې چې مونږ دوی ته ورکړی دی په پټه او ښکاره انفاق کوي، مخکې له دې نه چې هغه ورځ راشي چې په هغې کې نه اخیستل خرڅول شته او نه دوستي

۳۲:۱۴ - الله هغه ذات دی چې اسمانونه او ځمکه يې پیدا کړي دي او له بره نه يې اوبه نازلې کړې دي، پس په هغو سره يې له مېوو نه تاسو لپاره رزق راویستلی دی او تاسو لپاره يې بېړۍ مسخرې کړې دي، د دې لپاره چې هغه (بېړۍ) د هغه په حکمـ سره په سمندر کې روانې وي، او تاسو لپاره يې نهرونه مسخر کړي دي

۳۳:۱۴ - او تاسو لپاره يي لمر او سپوږمۍ په کار لګولي دي، په داسې حال کې چې د قانون مطابق ګرځي او تاسو لپاره يې شپه او ورځ په کار لګولي دي

۳۴:۱۴ - او تاسو ته يې له هغو څیزونو نه چې تاسو هغه غوښتي، ځینې درکړي دي او که تاسو د الله نعمتونه وشمېرئ (نو) تاسو به هغه ونشمېرلی شئ، بېشکه انسان خامخا ډېر ظلمـ کوونکی، ډېر ناشکره دی

۳۵:۱۴ - او (یاد کړه) هغه وخت چې ابراهیمـ وویل: ای زما ربه! ته دا ښار د امن والا وګرځوه او ما او زما زامن د بتانو له عبادت نه لرې وساته

۳۶:۱۴ - بېشکه دوی (بتانو) له خلقو څخه ډېر زیات (خلق) ګمراه کړي دي، نو چا چې زما پیروي وکړه، نو بېشکه هغه زما څخه دی او چا چې زما نافرماني وکړه، نو بېشکه ته ډېر بخښونکی، بې حده رحمـ کوونکی يې

۳۷:۱۴ - ای زمونږه ربه! بېشکه ما واوسول خپل ځینې بچي په داسې ناو (دره) کې چې د فصل والا نه دی، ستا د عزتمن کور په خوا کې، ای زمونږ ربه! د دې لپاره چې دوی لمونځ قایمـ کړي، نو ته د ځینو خلقو زړونه راوګرځوه، چې په مینې سره د دوی خوا ته راځغلي او ته دوی ته له مېوو ځنې روزي ورکړه، د دې لپاره چې دوی شکر وباسي

۳۸:۱۴ - ای زمونږ ربه! بېشکه ته عالمـ يې په هغه څه چې مونږ يې پټوو او په هغه څه چې مونږ يې ښکاره کوو او په الله باندې هېڅ شی نه پټېږي، په ځمکه کې او نه په اسمان کې

۳۹:۱۴ - ټوله ثنا خاص د هغه الله لپاره ده چې ما ته يې سره له زوړوالي نه اسمعيل او اسحق رابخښلی دي، بېشکه زما رب خامخا د دعا ښه اورېدونکی دی

۴۰:۱۴ - ای زما ربه! ته ما د لمونځ همېشه قايموونکی وګرځوې او زما په اولاد کې هم، ای زما ربه! او ته زما دعا قبوله کړې

۴۱:۱۴ - ای زمونږ ربه! ته ما وبخښې او زما مور او پلار او مومنان په هغې ورځ چې حساب قايمېږي

۴۲:۱۴ - او ته په الله باندې له سره (دا) ګمان مه کوه چې هغه غافله دی له هغو کارونو نه چې ظالمان يې کوي، بېشکه همدا خبره ده چې هغه، دوی هغې ورځې ته وروسته کوي چې په هغې کې به سترګې خلاصې پاتې شي

۴۳:۱۴ - چې منډې وهونکي به وي، د خپلو سرونو اوچت نيوونکي به وي، دوی ته به د خپلو سترګو رپول بېرته نه راګرځي، او د دوی زړونه به (له عقل او فهم نه) تش وي

۴۴:۱۴ - او ته خلق له هغې ورځې نه ووېروه چې دوی ته به (په هغې کې) عذاب راشي، نو وايي به هغه کسان چې ظلم يې کړی دی.: ای زمونږ ربه! ته مونږ تر نژدې نېټې پورې وروسته کړه (مهلت راکړه) ستا بلنه به قبوله کړو او د رسولانو پيروي به وکړو، (الله به ووايي:) ايا تاسو نه وئ چې مخکې له دې نه به مو قسم کاوه چې تاسو لپاره هېڅ زوال نشته

۴۵:۱۴ - او تاسو د هغو کسانو په کورونو کې اوسېدلي وئ چې په خپلو ځانونو به يې ظلم کاوه او تاسو ته (دا خبره) ښه ښکاره شوې وه چې مونږ له هغوی سره څنګه کار کړی و، او تاسو ته مونږ مثالونه بيان کړي وو

۴۶:۱۴ - او يقينًا هغوی خپل مکر (او فريب) ښه په کوشش سره وکړ، حال دا چې د دوی مکر الله سره دی، او د دوی مکر داسې نه و چې د هغه په وجه به غرونه زايل شي

۴۷:۱۴ - نو ته هيڅکله هم په الله باندې له خپلو رسولانو سره د وعدې خلاف کوونکي ګمان مه کوه، بېشکه الله ډېر غالب، (او) انتقام والا دی

۴۸:۱۴ - (ياده کړه) هغه ورځ چې دغه ځمکه به په بلې ځمکې سره بدله کړی شي او اسمانونه (هم) او دوی (ټول) به خاص الله ته چې يو دی، ډېر غالب دی، مخامخ ودرېږي

۴۹:۱۴ - او ته به په دغې ورځ کې مجرمان وينې چې يو له بل سره به زولنو کې تړلی شوي وي

۵۰:۱۴ - د دوی قميصونه به د نانزړو وي او د دوی مخونه به اور رالاندې (او پټ) کړي

۵۱:۱۴ - د دې لپاره چې الله بدله ورکړي هر نفس ته د هغه څه چې ده کړي دي، بېشکه الله ډېر ژر حساب والا دی

۵۲:۱۴ - دا (قرآن) د خلقو لپاره پېغام دی او د دې لپاره چې په ده سره خلق ووېرول شي او د دې لپاره چې دوی په دې پوه شي چې یقینًا همدا خبره ده چې هغه (الله) واحد (بې شریکه) حق معبود دی او د دې لپاره چې د خالصو عقلونو خاوندان نصیحت واخلي

## (مکي) تیره - الحجر ۱۵

۱:۱۵ - الف، لام، را، دغه د کتاب او د واضح قرآن ایتونه دي

۲:۱۵ - ډېر ځلې به ارزو کوي هغه کسان چې کافران شوي دي چې کاش چې دوی مسلمانان وی

۳:۱۵ - ته دوی پرېږده چې خوري او فایده اخلي او امېدونه یې غافله کړي، نو ژر ده چې دوی به پوه شي

۴:۱۵ - او مونږه هېڅ یو کلی نه دی هلاك کړی مګر په دې حال کې چې د هغه به لیك (مقرر وخت) معلوم و

۵:۱۵ - هېڅ امت له خپل وخت نه نه مخکې کېږي او نه وروسته کېږي

۶:۱۵ - او دوی ووېل: ای هغه کسه چې په هغه باندې ذکر نازل کړی شوی دی! یقینًا ته خو لیونی یې

۷:۱۵ - ولې ته مونږ ته ملایك نه راولې! که چېرې ته له رښتینو څخه یې

۸:۱۵ - (ای خلقو واورئ!) مونږ ملایك نه نازلوو مګر په حقه سره او دوی به په دغه وخت کې مهلت ورکړی شوي نه وي

۹:۱۵ - بېشکه هُم مونږ پخپله ذکر نازل کړی دی او بېشکه مونږ د ده خامخا ساتونکي یو

۱۰:۱۵ - او یقینًا یقینًا مونږ له تا نه مخکې د ړومبنیو خلقو په ډلو کې (رسولان) لېږلي وو

۱۱:۱۵ - او دوی ته به هېڅ یو رسول نه راته مګر دوی به په هغه پورې مسخرې کولې

۱۲:۱۵ - همدارنګه مونږ دا خبره د مجرمانو په زړونو کې ننباسو

۱۳:۱۵ - دوی په ده ایمان نه راوړي او یقینًا د پخوانیو (کافرو) طریقه تېره شوې ده

۱۴:۱۵ - او که مونږ په دوی باندې له اسمان نه کومه دروازه پرانستلې وی، بیا دوی په هغې کې تل ختلی

۱۵:۱۵ - دوی به خامخا ویل چې همدا خبره ده چې زمونږ سترګې تړل شوې دي، بلکې مونږ جادو کړی شوي خلق یو

۱۶:۱۵ - او یقینًا یقینًا مونږ په اسمان کې برجونه پیدا کړي دي او مونږ هغه د کتونکو لپاره ښایسته کړی دی

۱۷:۱۵ - او مونږ هغه ساتلی دی له هر شیطان ویشتل شوي نه

۱۸:۱۵ - مګر هغه (شیطان) چې اورېدل شوې خبره غلا کړي، نو په هغه پسې شي یوه ښکاره شعله

۱۹:۱۵ - او ځمکه، مونږ هغه غځولې ده او مونږ په هغې کې غرونه غورځولي دي او مونږ په هغې کې هر اندازه کړی شوی شی زرغون کړی دی

۲۰:۱۵ - او مونږ تاسو لپاره په هغې کې معیشتونه پیدا کړي دي او هغه هم چې تاسو هغه ته روزي ورکوونکي نه یئ

۲۱:۱۵ - او نشته هېڅ څیز مګر زمونږ سره د هغه خزانې دي او مونږ هغه نه نازلوو مګر په معلومې اندازې سره

۲۲:۱۵ - او مونږ هواګانې لېږلې دي، چې بلاربوونکې دي، پس مونږ له بره اوبه نازلې کړې، نو مونږ هغه په تاسو وڅښولې او تاسو دغو (اوبو) لره خزانه کوونکي نه یئ

۲۳:۱۵ - او بېشکه مونږ، یقینًا همدا مونږ ژوندي کول کوو او مرګ ورکوو او همدا مونږ وارثان یو

۲۴:۱۵ - او یقینًا یقینًا مونږ په تاسو کې مخکې کېدونکي پېژندلي دي او یقینًا یقینًا مونږ وروسته کېدونکي (هم) پېژندلي دي

۲۵:۱۵ - او بېشکه ستا رب، هغه به دوی راټولوي، بېشکه هغه ښه حکمت والا، ښه عالم دی

۲۶:۱۵ - او یقینًا یقینًا مونږه انسان پیدا کړی دی له کړنګېدونکې وچې ختې نه، چې له تورې سخا کړی شوې ختې ځنې وه

۲۷:۱۵ - او جانّ (پلار د پېریانو) مونږ هغه له ده نه مخکې د بې لوګي اور څخه پیدا کړی دی

۲۸:۱۵ - او کله چې ستا رب ووېل: بېشکه زه د یو بشر پیدا کوونکی یم د کړنګېدونکې وچې ختې نه چې له تورې سخا کړی شوې ختې ځنې ده

۲۹:۱۵ - نو کله چې زه هغه برابر کړم او په هغه کې له خپله روح پُو کړم، نو تاسو هغه ته پرېوځئ، سجده کوونکي

۳۰:۱۵ - نو ملایکو ټولو عامو سجده وکړه

۳۱:۱۵ - له ابلیس نه غیر، هغه له دې نه انکار وکړ چې له سجده کوونکو سره ملګری شي

۳۲:۱۵ - ویې ویل: ای ابلیسه! تا ته څه عذر دی چې ته له سجده کوونکو سره نه ملګری کېږې؟

۳۳:۱۵ - هغه ووېل: زه داسې نه یم چې بشر ته سجده وکړم چې تا هغه پیدا کړی دی له کړنګېدونکو وچو کودرو نه، چې له تورې سخا شوې خټې ځنې و

۳۴:۱۵ - وفرمایل: (الله) نو ته ووځه له دې ځای نه، پس یقینًا ته رټل شوی یې

۳۵:۱۵ - او بېشکه په تا باندې د قیامت د ورځې پورې لعنت دی

۳۶:۱۵ - هغه ووېل: ای زما ربه! نو ته ما ته د هغې ورځې پورې مهلت راکړه چې خلق به بیا ژوندي کولی شي

۳۷:۱۵ - ویې ویل: پس یقینًا ته له مهلت ورکړی شویو څخه یې

۳۸:۱۵ - د معلوم وخت تر ورځې پورې

۳۹:۱۵ - ویې ویل: ای زما ربه! په سبب د دې چې تا زه ګمراه کړم خامخا هرومرو به زه په ځمکه کې د دوی لپاره ښکلي کول کوم او خامخا هرومرو به زه دوی ټول ګمراه کوم

۴۰:۱۵ - مګر په دوی کې ستا خالص کړی شوي بنده ګان

۴۱:۱۵ - ویې فرمایل: دا لار ده چې تر ما پورې نېغه ده

۴۲:۱۵ - بېشکه زما بنده ګان چې دي نشته تا لپاره په دوی باندې هېڅ غلبه مګر هغه چې ستا پیروي کوي له ګمراهانو څخه

۴۳:۱۵ - او بېشکه جهنم، خامخا د دوی د ټولو د وعدې ځای دی

۴۴:۱۵ - د هغه اوه دروازې دي، د هرې دروازې لپاره به تقسیم (بېله) کړی شوې برخه وي له دوی نه

۴۵:۱۵ - بېشکه متقیان به په باغونو او چینو کې وي

۴۶:۱۵ - تاسو دغو ته په سلامتۍ سره ننوځئ، په داسې حال کې چې په امن کې به یئ

۴۷:۱۵ - او مونږ به وباسو هغه کینه چې د دوی په سینو کې وي، په داسې حال کې چې ورونه به وي، په تختونو به یو بل ته مخامخ ناست وي

۴۸:۱۵ - دوی ته به په دغو (جنتونو) کې هېڅ تکلیف (سترې والی) نه رسېږي او نه به دوی له دغو نه له سره وېستل شوي وي

۴۹:۱۵ - ته زما بنده ګانو ته خبر ورکړه چې بېشکه زه، همدا زه ډېر بخښونکی، بې حده رحم کوونکی یم

۵۰:۱۵ - او دا چې بېشکه زما عذاب، هم هغه ډېر دردوونکی عذاب دی

۵۱:۱۵ - او ته دوی ته د ابراهیم د مېلمنو په باره کې خبر ورکړه

۵۲:۱۵ - کله چې هغوی په ده ورننوتل، نو دوی وویل: (مونږ سلام وایو) سلام ویل: هغه وویل: بېشکه مونږ له تاسو څخه وېرېدونکي یو

۵۳:۱۵ - هغوی وویل: ته مه وېرېږه، بېشکه مونږ تا ته د ډېر پوه هلك زېری درکوو

۵۴:۱۵ - هغه وویل: ایا تاسو ما ته زېری راکړ، سره له دې چې ما ته زوړوالی (بوډاوالی) را رسېدلی دی، نو تاسو په کومه وجه زېری راکوئ؟

۵۵:۱۵ - هغوی وویل: مونږ تا ته په حقه سره زېری درکړی دی، نو ته له ناامېدانو نه مه کېږه

۵٦:۱۵ - هغه وویل: له گمراهانو نه غیر (بل) څوك دی چې د خپل رب له رحمت نه به نا امېده کېږي!

۵۷:۱۵ - هغه وویل: نو ستاسو (نور) څه مقصد دی، ای رالېږل شویو؟

۵۸:۱۵ - هغوی وویل: یقینًا مونږ د مجرم قوم په طرف رالېږل شوي یو

۵۹:۱۵ - غیر له آل لوط نه، بېشکه مونږ خامخا هغوی ټولو ته نجات ورکوونکي یو

٦۰:۱۵ - (خو) د هغه له ښځې نه غیر، مونږ دا فیصله کړې ده چې یقینًا هغه به لازمًا له وروسته پاتې کېدونکو څخه وي

٦۱:۱۵ - نو کله چې د لوط آل ته رالېږل شوي (ملایك) راغلل

٦۲:۱۵ - هغه وویل: بېشکه تاسو یو ناپېژندگلو خلق یئ

٦۳:۱۵ - هغوی وویل: بلکې مونږ تا ته هغه (عذاب) راوړی دی چې دوی به په هغه کې شك کاوه

٦۴:۱۵ - او مونږ تا ته حق راوړی دی او بېشکه مونږ یقینًا رښتیني یو

٦۵:۱۵ - نو ته خپل اهل د شپې په یوه حصه کې بوځه او ته د دوی شا ته ورپسې ځه او په تاسو کې دې هیڅوك بېرته نه گوري او ځئ هغه ځای ته چې تاسو ته یې حکم کېږي

٦٦:۱۵ - او مونږ هغه ته د دې کار فیصله وحي کړه چې یقینًا د دې خلقو بېخ پرې کېدونکی دی، په دې حال کې چې دوی به په سبا کې داخلېدونکي وي

٦۷:۱۵ - او د ښار اوسېدونکي راغلل چې ډېره خوشحالي یې کوله

٦۸:۱۵ - وویل (لوط): بېشکه دا زما مېلمانه دي، نو تاسو ما مه شرموئ

٦۹:۱۵ - او له الله نه ووېرېږئ او ما مه سپکوئ

۷۰:۱۵ - هغوی وویل: ایا ته مونږ د خلقو (د پناه ورکولو) نه نه وې منع کړی؟

۷۱:۱۵ - هغه وویل: دا زما لوڼه دي که تاسو (له دوی سره نکاح) کوونکي یئ

۷۲:۱۵ - ستا په عمر مې دې قسم وي! بېشکه دوی خامخا به خپلې مستۍ (نشه) کې سرگردان دي

۷۳:۱۵ - نو دوی یو هیبت ناك غږ ونیول، په داسې حال کې چې د لمرختو په وخت کې داخلېدونکي وو

۷۴:۱۵ - نو مونږ د هغه (ښار) پورته طرف ښکته طرف وگرځاوه او په دوی باندې مونږ د کوټکاڼو کاڼي وورول

۷۵:۱۵ - بېشکه په دې کې خامخا د پوهو، عبرت اخیستونکو لپاره نښې دي

۷۶:۱۵ - او بېشکه دغه (ښاریه) خامخا په سمه (چلنده) لار کې پرته ده

۷۷:۱۵ - بېشکه په دې کې د مومنانو لپاره خامخا غټه نښه ده

۷۸:۱۵ - او بېشکه شان دا دی چې د ځنگل والا یقینًا ظالمان وو

۷۹:۱۵ - نو مونږ له هغوی نه انتقام واخیست او بېشکه دغه دواړه (ښارونه) په لویه ښکاره لار کې پراته دي

۸۰:۱۵ - او یقینًا یقینًا حجر والاو د رسولانو تکذیب کړی و

۸۱:۱۵ - او مونږ هغوی ته خپلې نښې ور (ښکاره) کړې وې، نو دوی له هغو نه مخ گرځوونکي وو

۸۲:۱۵ - او دوی به له غرونو څخه کوټې توږلې، په دې حال کې چې په امن به وو

۸۳:۱۵ - نو دوی یو هیبتناك غږ ونیول، په داسې حال کې چې په سبا کې داخلېدونکي وو

۸۴:۱۵ - نو د دوی په کار رانغلل هغه (شیان) چې دوی به حاصلول

۸۵:۱۵ - او مونږ اسمانونه او ځمکه او هغه څه چې د دې دواړو په مینځ کې دي؛ نه دي پیدا کړي مگر په حقه سره او بېشکه قیامت خامخا راتلونکی دی، نو ته (له دوی څخه) څنگ وکړه په ښکلو څنگ کولو سره

۸۶:۱۵ - بېشکه ستا رب، هم دی ښه پیداکوونکی، بې حده علم والا دی

۸۷:۱۵ - او یقینًا یقینًا مونږ تا ته بیا بیا لوستل کېدونکي اوه ایتونه درکړي دي او عظیم قرآن (هم)

۸۸:۱۵ - او ته خپلې سترگې هغو شیانو ته مه ور اوږدې کوه (مه پورته کوه) چې مونږ په هغو سره فایده ورکړې ده دغو خلقو ته، چې قسم قسم شیان دي او په دوی باندې مه غمگین کېږه او خپل وزر د مومنانو لپاره ښکته کړه

۸۹:۱۵ - او ته ووایه: بېشکه زه چې یم، هم دا زه ښکاره وېروونکی یم

۹۰:۱۵ - (له داسې عذابه) لکه څنګه چې مونږ نازل کړی و په تقسیموونکو باندې

۹۱:۱۵ - هغه کسان چې قرآن یې ټوټې ټوټې کړی و

۹۲:۱۵ - نو قسم دی په رب ستا چې خامخا هرومرو به مونږ له دوی ټولو څخه تپوس کوو

۹۳:۱۵ - د هغو کارونو په باره کې چې دوی به کول

۹۴:۱۵ - نو ته ښه ښکاره بیان کړه هغه څه چې تا ته یې حکم کولی شي او له مشرکانو نه مخ واړوه

۹۵:۱۵ - بېشکه مونږ ستا لپاره استهزا کوونکو ته کافي شوي یو

۹٦:۱۵ - هغه کسان چې له الله سره نور معبودان مقرروي (شریکوي) نو ژر به دوی پوه شي

۹۷:۱۵ - او یقینًا یقینًا مونږ ته معلوم دي چې بېشکه ستا سینه تنګېږي په هغو خبرو چې دوی یې وایي

۹۸:۱۵ - نو ته د خپل رب له حمد (ستاینې) سره تسبیح وایه او ته شه له سجده کوونکو څخه

۹۹:۱۵ - او د خپل رب عبادت کوه تر هغه پورې چې تا ته یقین (مرګ) راشي

## (مکي) د شاتو مچی - النحل ۱٦

۱:۱٦ - د الله حکم راغی، نو تاسو هغه په تلوار مه غواړئ، هغه لره پاکي ده او هغه ډېر اوچت دی له هغه څه نه چې دوی یې ورسره شریکوي

۲:۱٦ - هغه په خپل حکم ملایك له وحې سره نازلوي په هغه چا باندې چې یې وغواړي په خپلو بنده ګانو کې، چې تاسو (خلق) خبردار کړئ، په دې خبره چې بېشکه شان دا دی چې نشته هېڅ لایق د عبادت مګر زه یم، نو تاسو له ما نهووېرېږئ

۳:۱٦ - هغه اسمانونه او ځمکه په حقه سره پیدا کړي دي، هغه اوچت دی له هغه چې دوی یې ورسره شریکوي

۴:۱٦ - هغه، انسان له نطفې نه پیدا کړی دی، نو ناڅاپه دغه (انسان) ښه ښکاره سخت جګړه کوونکی دی

۵:۱٦ - او څاروي، هغه یې پیدا کړي دي، تاسو لپاره په دوی کې د ګرمۍ اسباب او (نورې) ګټې دي او ځینې په دوی کې تاسو خورئ

٦:۱٦ - او تاسو لپاره په دوی کې جمال (او ښایست) دی کله چې یې بېرته ماښام (کور ته) راولئ او کله چې یې د څر لپاره بوځئ

۷:۱٦ - او دوی ستاسو درانه بارونه پورته کوي هغه ښار ته چې تاسو هغه ته رسېدونکي نه وئ مګر د ځانونو په مشقت سره، بېشکه ستاسو رب یقینًا ډېر نرمي کوونکی، بې حده مهربان دی

۸:۱٦ - او اسونه او قچر او خره (یې پیدا کړي دي،) د دې لپاره چې تاسو په دغو باندې سواره شئ او د زینت لپاره او پیدا کوي هغه څه چې تاسو یې نه پېژنئ

۹:۱٦ - او خاص په الله باندې د سمې لارې بیان دی او ځینې په دغو کې کږې دي او که هغه غوښتلی (، نو) لازمًا به یې تاسو ټولو ته هدایت کړی و

۱۰:۱٦ - دی همغه ذات دی چې تاسو لپاره یې له بره نه اوبه نازلې کړې دي، له هغو څخه مشروب دی او له هغو څخه ونې (وابښه) هم دي چې په هغو کې تاسو (څاروي) څروئ

۱۱:۱٦ - هغه په دې سره تاسو لپاره فصل او زیتون او کجورې او انګور او هر قسمه مېوې زرغونوي، بېشکه په دوی کې خامخا لویه نښه ده د هغو خلقو لپاره چې ښه غور فکر کوي

۱۲:۱٦ - او هغه مُسخَّره کړې ده تاسو لپاره شپه او ورځ او لمر او سپوږمۍ، او ستوري د هغه په حکم سره مسخر دي، بېشکه په دغو کې خامخا ډېرې نښې دي د هغو خلقو لپاره چې له عقل نه کار اخلي

۱۳:۱٦ - او (مسخر کړي یې دي) هغه څه چې تاسو لپاره یې په ځمکه کې پیدا کړي دي، په داسې حال کې چې رنګونه یې مختلف دي، بېشکه په دوی کې یقینًا لویه نښه ده د هغو خلقو لپاره چې نصیحت قبلوي

۱۴:۱٦ - دی همغه ذات دی چې سمندر یې مسخر کړی دی، د دې لپاره چې تاسو له هغه نه تازه غوښه وخورئ او له هغه نه ګاڼه (زېورات) راوباسئ چې تاسو یې اغوندئ او ته په ده کې بېړۍ وینې، چې اوبه څیرونکې وي او د دې لپاره چې تاسو د هغه فضل طلب کړئ او د دې لپاره چې تاسو شکر وباسئ

۱۵:۱٦ - او هغه په ځمکه کې پاخه غرونه غورځولي دي چې پر تاسو باندې ونه ښورېږي او (پیدا کړي یې دي) ولې (نهرونه) او لارې، د دې لپاره چې تاسو لار ومومئ

۱٦:۱٦ - او علامې (یې مقرر کړې دي) او په ستورو سره دوی لار مومي

۱۷:۱٦ - ایا نو هغه ذات چې پیدا کوي په شان د هغه چا دی چې (څه) نشي پیدا کولی؟ ایا نو تاسو پند نه اخلئ؟

۱۸:۱٦ - او که چېرې تاسو د الله نعمتونه شمېرل شروع کړئ، (، نو) هغه به ونشمېرلی شئ، بېشکه الله یقینًا ډېر بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۱۹:۱٦ - او الله ته معلوم دي هغه څه چې تاسو یې پټوئ او هغه څه چې تاسو یې ښکاره کوئ

۲۰:۱٦ - او هغه کسان چې دوی يې له الله نه غير بلي، هغوی هېڅ شی نشي پيدا کولی، حال دا چې دوی پخپله پيداکاوه شي

۲۱:۱٦ - مړه دي، ژوندي نه دي او دوی نه پوهېږي چې کله به دوی بيا راژوندي کولی شي

۲۲:۱٦ - ستاسو حق معبود يو معبود دی، نو هغه کسان چې په اخرت ايمان نه راوړي د هغوی زړونه منکر دي او دوی تکبر کوونکي دي

۲۳:۱٦ - حقيقت دا دی چې بېشکه الله پوهېږي په هغه څه چې دوی يې پټوي او په هغه څه چې دوی يې ښکاره کوي، بېشکه هغه (الله) تکبر کوونکي نه خوښوي

۲٤:۱٦ - او کله چې دوی ته وويل شي: ستاسو رب څه نازل کړي دي؟ دوی وايي: د پخوانيو (خلقو) باطلې افسانې

۲٥:۱٦ - د دې لپاره چې دوی خپل پېټي پوره پورته کړي د قيامت په ورځ او د هغو خلقو له پېټو نه (هم) چې دوی يې په جهالت سره گمراه کوي، خبردار شئ! بد دی هغه څيز چې دوی يې باروي

۲٦:۱٦ - يقينًا له دوی نه مخکې خلقو مکر کړی و، نو الله د دوی عمارتونو ته له بنيادونو نه راغی، نو په دوی باندې د دوی له پاسه چتونه راپرېوتل او دوی ته عذاب له هغه ځايه راغی چې دوی نه پوهېدل

۲۷:۱٦ - بيا به هغه د قيامت په ورځ دوی رسوا کوي او وايي به: زما هغه شريکان چېرته دي چې تاسو به د هغوی په باره کې مخالفتونه کول؟ وبه وايي هغه کسان چې علم ورته ورکړ شوی دی: بېشکه په نن ورځ کې رسوايي او بدي په کافرانو باندې ده

۲۸:۱٦ - هغه کسان چې ملايك يې (روح) قبضوي، په داسې حال کې چې دوی په خپلو ځانونو ظلم کوونکي وي، نو دوی به روغه (تسليمي) وړاندې کړي چې مونږ هېڅ بد عمل نه کاوه، ولې نه! بېشکه الله ښه پوه دی په هغو عملونو چې تاسو به کول

۲۹:۱٦ - نو تاسو د جهنم په دروازه کې ننوځئ، په داسې حال کې، چې په ده کې به همېشه وئ، نو يقينًا د تکبر کوونکو استوگنه بده ده

۳۰:۱٦ - او هغو کسانو ته به وويل شي چې تقویٰ يې غوره کړې ده: ستاسو رب څه نازل کړي دي؟ هغوی به ووايي: خير (يې نازل کړی دی). د هغو کسانو لپاره چې په دې دنيا کې يې نېکي کړې ده؛ نېکه بدله ده او يقينًا د اخرت کور ډېر غوره دی او يقينًا ښه کور د متقيانو دی

۳۱:۱٦ - چې د همېشه اوسېدلو جنتونه دي چې دوی به هغو ته داخلېږي، د هغو له لاندې ولې بهېږي، د دوی لپاره په دغو (جنتونو) کې هغه څه دي چې دوی يې غواړي.، همدارنگه الله متقيانو ته بدله ورکوي

۳۲:۱٦ - هغه کسان چې ملایك یې (روح) قبض کوي، په دې حال کې چې هغوی پاك وي، دوی به (ورته) وایي: په تاسو دې سلام وي، تاسو جنت ته داخل شئ، په سبب د هغو عملونو چې تاسو به کول

۳۳:۱٦ - دوی انتظار نه کوي مگر د دې چې دوی ته ملایك راشي، یا ستا د رب حکم راشي، همدارنگه کار کړی و هغو کسانو چې له دوی نه مخکې وو او الله پر هغوی ظلم نه و کړی او لېکن هغوی په خپلو ځانونو ظلم کاوه

۳۴:۱٦ - نو هغوی ته د خپلو عملونو بدي ورسېدله او هغوی گېرکړل هغه څه چې دوی به ورپورې استهزا کوله

۳۵:۱٦ - او ووېل هغو کسانو چې شرك یې کړی دی: که چېرې الله غوښتلې (، نو) مونږ به له هغه نه غیر د هېڅ شي عبادت نه و کړی او نه به زمونږ پلرونو او نه به مونږ د هغه (له حکم) نه غیر څه شی حرام کړی و، همدارنگې کار کړی و هغو کسانو چې له دوی نه مخکې وو، نو د رسولانو په ذمه نشته مگر ښکاره رسَوَل

۳٦:۱٦ - او یقینًا یقینًا مونږ په هر یو امت کې یو رسول لېږلی و (په دې سره) چې تاسو د الله عبادت کوئ او له طاغوت نه ځان وساتئ، نو په دوی کې ځینو ته الله هدایت وکړ او ځینې په دوی کې هغه دي چې گمراهي پرې ثابته شوه، نو تاسو په ځمکه کې وگرځئ، بیا وگورئ چې د تکذیب کوونکو انجام څنگه و؟

۳۷:۱٦ - که ته د دوی په هدایت راړولو باندې حرص وکړې، نو بېشکه الله هدایت نه کوي هغه چا ته چې هغه یې گمراه کړي او د دوی لپاره هیڅوك مددکوونکي نشته

۳۸:۱٦ - او دوی په (نوم د) الله باندې قسمونه کوي، خپل پاخه قسمونه، چې الله به هغه څوك بیا راژوندي نه کړي چې مري، ولې نه! (ژوندي کوي به یې، څکه چې وعده یې کړې ده) وعده حقه په هغه لازمه او لېکن اکثره خلق نه پوهېږي

۳۹:۱٦ - لپاره د دې چې د دوی لپاره هغه شی ښه ښکاره کړي چې دوی په هغه کې اختلاف کوي او لپاره د دې چې هغه کسان چې کفر یې کړی دی، پوه شي چې یقینًا دوی دروغژن وو

۴۰:۱٦ - همدا خبره ده چې زمونږ وینا یو شي ته چې کله یې مونږ اراده وکړو؛ دا ده چې مونږ هغه ته وایو: وشه نو هغه وشي

۴۱:۱٦ - او هغه کسان چې د الله لپاره یې هجرت کړی دی وروسته له دې چې ظلم پرې وکړی شو خامخا هرومرو به مونږ دوی ته په دنیا کې ښه ځای ورکړو او یقینًا د اخرت اجر تر ټولو لوی دی، که چېرې وی دوی چې پوهېدی

۴۲:۱۶ - هغه کسان چې صبر یې کړی دی او خاص په خپل رب باندې دوی توکل کوي

۴۳:۱۶ - او مونږ له تا نه مخکې نه دي لېږلي مگر سړي چې مونږ هغوی ته وحي کوله، نو تاسو له اهلِ علمو نه تپوس وکړئ که چېرې تاسو یئ چې نه پوهېږئ

۴۴:۱۶ - په ښکاره معجزو اوکتابونو سره او مونږ تا ته ذکر (وحي) نازل کړی دی، د دې لپاره چې ته خلقو ته هغه څه ښه واضحه کړې چې دوی ته نازل کړی شوي دي او د دې لپاره چې دوی ښه فکر وکړي

۴۵:۱۶ - ایا نو هغه کسان چې ناکاره مکرونه یې کړي دي؛ له دې نه په امن کې شوي دي چې الله دوی په ځمکه کې ډوب کړي یا دوی ته عذاب له داسې ځایه راشي چې دوی (پرې) نه پوهېږي

۴۶:۱۶ - یا دوی ونیسي د خپلو گرځېدو په وخت کې، نو دوی هیڅکله هم (الله لره) عاجزه کوونکي نه دي

۴۷:۱۶ - یا دوی په وېره ونیسي، پس یقینًا ستاسو رب خامخا ډېر نرمي کوونکی، بې حده مهربان دی

۴۸:۱۶ - ایا دوی هغه ته نه دي کتلي چې الله کوم شی پیدا کړی دی چې د هغه سیوري له ښي اړخ او چپو اړخونو نه گرځي، چې الله ته سجده کوونکي دي، په داسې حال کې چې دوی عاجزي کوونکي دي

۴۹:۱۶ - او خاص د الله لپاره سجده کوي هغه څه چې په اسمانونو کې دي او هغه څه چې په ځمکه کې دي له خوځنده ځیزونو څخه او ملایك هم په داسې حال کې چې دوی تکبر نه کوي

۵۰:۱۶ - دوی له خپل رب څخه وېرېږي چې د دوی له پاسه دی او دوی کوي هغه څه چې دوی ته حکم کاوه شي

۵۱:۱۶ - او الله وویل: تاسو دوه معبودان مه نیسئ، همدا خبره ده چې هغه یو معبود دی، نو تاسو خاص له ما نهووېرېږئ

۵۲:۱۶ - او خاص د هغه لپاره دي هغه څه چې په اسمانونو او ځمکه کې دي او عبادت خاص هم د ده لپاره دی، همېشه، ایا نو تاسو غیر له الله نه (له بل چا نه) وېرېږئ؟

۵۳:۱۶ - او په تاسو چې څه نعمت شوی دی، نو د الله له طرفه دی، بیا چې کله تاسو ته ضرر درورسېږي، نو خاص هغه ته زاري کوئ

۵۴:۱۶ - بیا کله چې هغه له تاسو نه تکلیف لرې کړي (، نو) ناڅاپه یوه ډله په تاسو کې له خپل رب سره شریکان جوړوي

۵۵:۱۶ - د دې لپاره چې ناشکري وکړي د هغه څه چې مونږ دوی ته ورکړي دي، نو تاسو فایده

واخلئ، پس ژر به تاسو پوه شئ

٥٦:١٦ - او دوی د هغه څه لپاره چې په هېڅ نه پوهېږي؛ برخه مقرروي په هغه څه کې چې مونږ دوی ته ورکړي دي، قسم دی په الله چې خامخا له تاسو به هرومرو پوښتنه کېږي، د هغه څه په باره کې چې تاسو به دروغ تړل

٥٧:١٦ - او دوی د الله لپاره لوڼه مقرروي، هغه پاك دی، او د دوی لپاره دي هغه څه چې دوی یې خوښوي

٥٨:١٦ - او کله چې په دوی کې یو ته د لور زېری ورکړی شي د هغه مخ تك تور شي، په دې حال کې چې له قهره ډك وي

٥٩:١٦ - له خلقو څخه پټ ګرځي د هغه څه د بدۍ په وجه چې ده ته یې زېری ورکړی شوی دی (او سوچ کوي چې)، ایا دی دغه (لور) سره له ذلته وساتي، یا هغه په خاورو کې ومندي، خبردار شئ! بد دي هغه څه چې دوی یې فیصله کوي

٦٠:١٦ - د هغو کسانو لپاره چې په اخرت ایمان نه راوړي بد مثال دی او خاص د الله لپاره تر ټولو لوړ مثال دی او هم هغه ښه غالب، ښه حکمت والا دی

٦١:١٦ - او که چېرې الله خلق د ظلم په وجه نیولی (، نو) هغه به د دې (ځمکې) په سر هېڅ خوځنده نه و پرېښی او لېکن هغه دوی تر مقررې نېټې وروسته کوي، نو کله چې د دوی نېټه راشي (بیانو) دوی یوه ګړۍ نه وروسته کېږي او نه مخکې کېږي

٦٢:١٦ - او دوی د الله لپاره هغه څه ثابتوي چې (پخپله) یې بد ګڼي او د دوی ژبې دروغ بیانوي چې بېشکه د همدوی لپاره تر ټولو ښه حالت دی، حقیقت دا دی چې بېشکه د همدوی لپاره اور دی او بېشکه همدوی تر ټولو مخکې لېږدول شوي دي

٦٣:١٦ - قسم دی په الله! یقینًا یقینًا مونږ امتونو ته له تا نه مخکې رسولان لېږلي وو، نو شیطان دوی ته د دوی عملونه ښکلي کړل، نو نن ورځ همغه د دوی دوست دی او د دوی لپاره ډېر دردوونکی عذاب دی

٦٤:١٦ - او مونږ په تا باندې کتاب نه دی نازل کړی مګر د دې لپاره چې ته دوی ته هغه ښه واضحه کړې چې دوی په هغه کې اختلاف کړی دی۔ او د هغه قوم د هدایت او رحمت لپاره چې ایمان لري

٦٥:١٦ - او الله له بره نه اوبه نازلې کړې دي، بیا یې په هغو سره ځمکه راژوندۍ کړې ده د هغې له مرګ نه پس، بېشکه په دې کې خامخا لویه نښه ده د هغو خلقو لپاره چې اوري

٦٦:١٦ - او بېشکه تاسو لپاره په څارویو کې خامخا لوی عبرت دی، مونږ تاسو ته د ر څښوو ځیني

له هغو څيزونو څخه چې د دوی په ګېډو کې دي د غوشاييو او وينې په مينځ کې خالص شيده (پی) چې د څښونکو لپاره له حلق نه په اسانۍ سره تېرېدونکي دي

٦٧:١٦ - او د کجورو او انګورو له مېوو څخه، تاسو له دغو نه نشه کوونکي او ښکلی رزق جوړوئ، بېشکه په دې کې خامخا لويه نښه ده د هغو خلقو لپاره چې له عقل نه کار اخلي

٦٨:١٦ - او ستا رب د شاتو مچيو ته په زړه کې واچوله چې په غرونو کې کورونه جوړ کړه او په ونو کې او په هغو کې چې خلق يې لوړ جوړوي

٦٩:١٦ - بيا ته خوره له هر قسمه مېوو څخه، نو ته ځه د خپل رب په لارو باندې چې اسانې دي، د دوی له خېټو نه مشروب راوځي چې رنګونه يې مختلف دي، په ده کې د خلقو لپاره شفا ده، بېشکه په دې کې لويه نښه ده د هغه قوم لپاره چې ښه فکر کوي

٧٠:١٦ - او الله تاسو پيداکړي يئ، بيا به هغه تاسو وفات کوي او په تاسو کې ځينې هغه دي چې ډېر خوار ژوندون ته ورګرځولی شي، د دې لپاره چې له علم نه بعد په هېڅ شي پوه نشي، بېشکه الله ښه عالم، ښه قادر دی

٧١:١٦ - او الله ستاسو ځينې په ځينو نورو باندې په رزق کې غوره کړي دي، نو هغه کسان چې غوره کړی شوي دي هغوی خپل رزق لره ورګرځوونکي نه دي په هغو کسانو باندې چې دوی يې مالکان شوي دي، نو دوی په ده کې برابر دي؟ ايا نو د الله په نعمت سره دوی انکار کوي

٧٢:١٦ - او الله تاسو لپاره ستاسو له جنسه جوړې پيدا کړي دي او تاسو لپاره يې ستاسو له جوړو نه زامن او لمسي پيدا کړي دي او تاسو ته يې د پاکيزه څيزونو څخه روزي درکړې ده، ايا نو په باطل باندې دوی ايمان راوړي او د الله په نعمت سره دوی کفر کوي

٧٣:١٦ - او دوی له الله نه غير د هغو څيزونو عبادت کوي چې د دوی لپاره اختيار نه لري د هېڅ رزق د اسمانونو او ځمکې نه د هېڅ شي او نه دوی طاقت لري

٧٤:١٦ - نو تاسو د الله لپاره مثالونه مه بيانوئ، بېشکه الله پوهېږي او تاسو نه پوهېږئ

٧٥:١٦ - الله يو مثال بيانوي چې يو مملوك مريی دی چې په هېڅ شي قدرت نه لري او (بل) هغه څوك دی چې مونږ هغه ته له خپل جانبه ښکلی رزق ورکړی دی، نو هغه له ده نه په پټه او ښکاره انفاق کوي، ايا دوی سره برابرېږي؟ ټولې ستاينې خاص د الله لپاره دي، بلکې د دوی زياتره نه پوهېږي

٧٦:١٦ - او الله يو مثال بيانوي چې دوه سړي دي، په دواړو کې يو ګونګی دی، په هېڅ شي قدرت نه لري، په دې حال کې چې هغه په خپل بادار باندې بار (بوج) دی، چې چېرته يې هم ولېږي هېڅ خير نه راوړي، ايا برابرېږي دغه کس او هغه څوك چې په انصاف سره حکم کوي او هغه په نېغې

لاړې باندې قایمہ دی

۷۷:۱۶ - او خاص د الله لپاره دی غیب د اسمانونو او ځمکې، او د قیامت امر نه دی مګر په شان د رپ د سترګو، یا هغه زیات قریب دی (له دې نه همہ) بېشکه الله په هر شي باندې ښه قادر دی

۷۸:۱۶ - او الله تاسو د خپلو میندو له خیټو نه راوویستئ، په داسې حال کې چې په هېڅ شي نه پوهېدلئ او تاسو ته یې غوږونه او سترګې او زړونه پیدا کړل، د دې لپاره چې تاسو شکر وباسئ

۷۹:۱۶ - ایا دوی مرغانو ته نه دي کتلي چې د اسمان په فضا کې مسخر کړی شوي دي، دوی لره نه ساتي (له غورځېدلو نه) مګر الله، بېشکه په دې کې خامخا ډېرې نښې دي د هغو خلقو لپاره چې ایمان راوړي

۸۰:۱۶ - او الله تاسو لپاره ستاسو له کورونو نه د استوګنې ځایونه جوړ کړي دي او تاسو لپاره یې د څارویو له څرمنو نه کورونه جوړ کړي دي چې تاسو یې د خپل سفر په ورځ سپك مومئ او د اقامت په ورځ همہ او د هغو له وړیو او د هغو له وېښتانو او د هغو له وژغنو نه یې اسبابونه او تر یو وخته پورې د نفعې سامانونه (جوړ کړي دي)

۸۱:۱۶ - او الله تاسو لپاره له هغو څیزونو نه چې ده پیدا کړي دي سیوري پیدا کړي دي او تاسو لپاره یې په غرونو کې پټ ځایونه جوړ کړي دي او تاسو لپاره یې قمیصونه پیدا کړي دي چې تاسو له ګرمۍ نه ساتي او قمیصونه (زغرې) چې تاسو له جنګ نه ساتي، همدارنګې هغه خپل نعمتونه پر تاسو باندې پوره کوي، د دې لپاره چې تاسو اسلامہ راوړئ

۸۲:۱۶ - نو که دوی مخ واړوي، نو همدا خبره ده چې په تا باندې یواځې ښکاره رَسَوَل (تبلیغ کول) لازمہ دي

۸۳:۱۶ - دوی د الله نعمتونه پېژني، بیا له هغو نه انکار کوي او د دوی زیاتره کافران دي

۸۴:۱۶ - او هغه ورځ چې مونږ به له هر امت نه یو ګواه راپورته کړو، بیا به هغو کسانو ته چې کفر یې کړی دی، اجازت نه ورکولی شي او نه به له دوی نه د راضي کولو طلب کولی شي

۸۵:۱۶ - او کله چې ووینې هغه کسان چې ظلمہ یې کړی دی عذاب لره، نو له دوی نه به هغه سپك (کمہ) نه کړی شي او نه به دوی ته مهلت ورکولی شي

۸۶:۱۶ - او کله چې مشرکان خپل شریکان ووینې، دوی به ووایې: ای زمونږ ربه! دا زمونږ هغه شریکان دي چې مونږ به له تا نه غیر بلل، نو شریکان به دوی ته خبره وروغورځوي چې بېشکه تاسو یقینًا دروغجنان یئ

۸۷:۱۶ - او مشرکان به په دغې ورځې کې صلح الله ته وغورځوي او له دوی نه به هغه څه ورك

شي چې دوی به دروغ تړل

۸۸:۱٦ - هغه کسان چې کفر يې کړی دی او د الله له لارې نه يې بندول کړي دي، مونږ به هغوی ته عذاب د عذاب له پاسه ورزيات کړو، په سبب د هغه چې دوی به فساد کاوه

۸۹:۱٦ - او په هغې ورځې کې چې مونږ به په هر امت کې يو گواه راپورته کړو د دوی په خلاف د همدوی له نفسونو نه او مونږ به تا په دوی باندې گواه راولو او مونږ په تا باندې کتاب نازل کړی دی، په داسې حال کې چې د هر شي لپاره واضحه بيان دی او هدايت او رحمت او زېری دی د مسلمانانو لپاره

۹۰:۱٦ - بېشکه الله د انصاف کولو او احسان کولو او خپلوانو ته د ورکړې حکم کوي او له فحاشۍ او بدو کارونو او سرکشۍ نه منع کوي، هغه تاسو ته نصيحت کوي، د دې لپاره چې تاسو نصيحت قبول کړئ

۹۱:۱٦ - او تاسو د الله وعده پوره کړئ کله چې تاسو وعده وکړئ او خپل قسمونه د هغو له پخولو نه بعد مه ماتوئ، حال دا چې تاسو الله په خپلو ځانونو کفيل (ضامن) گرځولی دی، بېشکه الله پوهېږي په هغه څه چې تاسو يې کوئ

۹۲:۱٦ - او تاسو د هغې ښځې په شان مه کېږئ چې خپل ورېشلي تارونه به يې له مضبوطوالي نه پس بېرته اومه کول، په دې حال کې چې ټوټې ټوټې وي، تاسو خپل قسمونه په خپل مينځ کې د ټگۍ ذريعه جوړوئ، په دې وجه چې وي يوه ډله، هغه ډېره زياته له بلې ډلې څخه، همدا خبره ده چې الله تاسو په دې سره ازمايي او خامخا ضرور به د قيامت په ورځ تاسو ته بيانوي هغه څه چې تاسو په هغه کې اختلاف کاوه

۹۳:۱٦ - او که چېرې الله غوښتلی (نو) خامخا تاسو به يې يو امت گرځولي وی او لېکن هغه گمراه کوي څوك چې وغواړي او هدايت ورکوي چا ته چې وغواړي۔ او خامخا ضرور به له تاسو نه تپوس کېږي د هغو عملونو په باره کې چې تاسو به کول

۹۴:۱٦ - او تاسو خپل قسمونه په خپل مينځ کې د ټگۍ ذريعه مه جوړوئ، نو (گنې) قدم به د هغه له ټېنگېدلو نه پس وښويږي او تاسو به بدي وڅکئ، په سبب د هغه چې تاسو د الله له لارې نه بندول کړي دي او تاسو لپاره ډېر لوی عذاب دی

۹۵:۱٦ - او تاسو د الله په عهد سره لږې پيسې مه اخلئ، بېشکه هغه څه چې د الله په نيز دي هغه تاسو لپاره ډېر غوره دي، که چېرې تاسو پوهېږئ

۹٦:۱٦ - هغه څه چې له تاسو سره دي هغه ختمېږي او څه چې له الله سره دي هغه باقي دي او خامخا ضرور به مونږ هغو کسانو ته په عوض کې د هغوی اجر ورکړو چې صبر يې کړی دی د هغو تر ټولو ښو عملونو په بدل کې چې دوی به کول

۹۷:۱۶ - چا چې نېك عمل وكړ، سړى وي، يا كه ښځه، په داسې حال كې چې مومن وي، نو خامخا هرومرو به مونږ هغه ته ژوند وركړو، ډېر پاكېزه ژوند او خامخا هرومرو به مونږ هغوى ته د هغوى د اجر جزا وركړو د هغو تر ټولو ښو عملونو په بدل كې چې دوى به كول

۹۸:۱۶ - نو كله چې ته قرآن لولې، نو د الله پناه وغواړه د رټل شوي شيطان نه (له شر)

۹۹:۱۶ - بېشكه دا، نشته ده ته هېڅ غلبه په هغو كسانو باندې چې ايمان يې راوړى دى او چې خاص په خپل رب باندې هغوى توكل كوي

۱۰۰:۱۶ - همداخبره ده چې د ده غلبه په هغو كسانو باندې ده چې له ده سره دوستي كوي او په هغو كسانو باندې چې هغوى له هغه (الله) سره شريك جوړونكي دي

۱۰۱:۱۶ - او كله چې مونږ يو ايت د بل ايت په ځاى كې بدل راوړو، او الله ښه پوه دى په هغه څه چې هغه يې نازلوي، دوى وايې: خبره همدا ده چې ته دروغ تړونكى يې، بلكې د دوى اكثره نه پوهېږي

۱۰۲:۱۶ - ته ووايه: هغه ستا د رب له جانبه په حقه سره روح القدس (جبريل) نازل كړى دى، د دې لپاره چې هغه كسان ثابت او ټينګ كړي چې ايمان يې راوړى دى او د مسلمانانو د هدايت او زېري لپاره

۱۰۳:۱۶ - او يقينًا يقينًا مونږ پوهېږو چې بېشكه دوى وايي: خبره همدا ده چې ده ته يو انسان ښوونه كوي، د هغه كس ژبه چې دوى هغه ته نسبت كوي؛ عجمي ده او دا (قرآن) واضحه عربي ژبه ده

۱۰۴:۱۶ - بېشكه هغه كسان چې د الله په ايتونو باندې ايمان راوړي، الله دوى ته هدايت نه كوي او دوى ته ډېر دردوونكى عذاب دى

۱۰۵:۱۶ - خبره همدا ده چې دروغ هغه كسان تړي چې د الله په ايتونو باندې ايمان نه راوړي او همدغه خلق دروغجن دي

۱۰۶:۱۶ - هغه څوك چې په الله سره كافر شو د خپل ايمان له راوړلو نه پس، غير له هغه كس نه چې زور پرې وكړى شي، په دې حال كې چې د هغه زړه په ايمان سره مطمئن وي۔ او لېكن هغه څوك چې په كفر سره خپله سينه فراخه كړي، نو په دغو خلقو باندې د الله له جانبه غضب دى او د دوى لپاره ډېر لوى عذاب دى

۱۰۷:۱۶ - دا په سبب د دې چې بېشكه دوى دنيايي ژوند په اخرت باندې غوره كړى دى او دا چې بېشكه الله كافر قوم ته هدايت نه كوي

۱۰۸:۱۶ - دا همغه كسان دي چې الله د دوى په زړونو او د دوى په غوږونو او د دوى په سترګو

باندې مهر لګولی دی او همدغه کسان غافلان دي

۱۰۹:۱٦ - حقیقت دا دی چې بېشکه دوی په اخرت کې، همدوی تاوانیان دي

۱۱۰:۱٦ - بیا بېشکه ستا رب د هغو کسانو لپاره چې هجرت یې کړی دی وروسته له دې چې په فتنه کې واچول شول، بیا یې جهاد کړی دی او صبر یې کړی دی، بېشکه ستا رب له دې نه پس خامخا ښه مغفرت کوونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۱۱۱:۱٦ - هغه ورځ چې هر کس به په داسې حال کې راځي چې د خپل نفس له طرف نه به جګړه کوي او هر نفس ته به پوره ورکړی شي هغه څه چې ده کړي دي، په دې حال کې چې په دوی به ظلم ونه کړی شي

۱۱۲:۱٦ - او الله د یو کلي مثال بیانوي چې د امن والا (او) اطمینان والا و، دغه (کلي) ته به د هغه رزق له هره ځایه پرېمانه راته، نو دغه کلي د الله د نعمتونو ناشکري وکړه، نو الله په دغه کلي باندې د لوږې او وېرې لباس وڅکاوه په سبب د هغو عملونو چې دوی به کول

۱۱۳:۱٦ - او یقینًا یقینًا دوی ته له همدوی څخه رسول راغلی و، نو دوی د هغه تکذیب وکړ، نو دوی عذاب ونیول، په داسې حال کې چې دوی ظالمان وو

۱۱۴:۱٦ - نو تاسو خورئ له هغو (خوراکونو) نه چې تاسو ته الله درکړي دي، چې حلال، پاکیزه دي او تاسو د الله د نعمتونو شکر وباسئ که چېرې تاسو خاص د هغه عبادت کوئ

۱۱۵:۱٦ - همدا خبره ده چې هغه پر تاسو باندې حرامه کړې ده مرداره او وینه او د خنزیر غوښه او هغه چې په هغه باندې د غیرالله لپاره اواز پورته کړی شوی وي، نو هغه څوك چې مجبوره شي، په دې حال کې چې نه ظالم وي او نه (له حده) تجاوز کوونکی وي، نو بېشکه الله ډېر بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۱۱٦:۱٦ - او په دې وجه چې ستاسو ژبې دروغ بیانوې تاسو دا مه وایئ چې دا حلال دی او دا حرام دی، د دې لپاره چې تاسو په الله باندې له ځانه دروغ جوړ کړئ، بېشکه هغه کسان چې په الله باندې دروغ تړي، هغوی به خلاصی ونه مومي

۱۱۷:۱٦ - ډېره لږه فایده ده، او د دوی لپاره ډېر دردوونکی عذاب دی

۱۱۸:۱٦ - او په هغو کسانو باندې چې یهودیان شوی دي، مونږ حرام کړي دي هغه څه چې مونږ تا ته له دې نه مخکې بیان کړي دي او مونږ پر هغوی باندې ظلم نه دی کړی او لیکن هغوی وو چې په خپلو ځانونو یې ظلم کاوه

۱۱۹:۱٦ - بیا بېشکه ستا رب هغو کسانو ته چې بدي یې په ناپوهۍ سره کړې ده، بیا یې له دې نه بعد توبه وېستله او اصلاح یې وکړه، بېشکه ستا رب له دې (توبې) نه بعد خامخا ډېر

بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۱۲۰:۱۶ - بېشکه ابراهیم یو امت و، د الله فرمان منونکی، حق ته مایله او نه و هغه له مشرکانو څخه

۱۲۱:۱۶ - د هغه د نعمتونو شکر کوونکی و، هغه یې غوره کړی و او هغه ته یې د نېغې لارې هدایت کړی و

۱۲۲:۱۶ - او مونږ هغه ته په دنیا کې نېکي (او ښېګڼه) ورکړې وه او بېشکه هغه په اخرت کې خامخا له صالحانو څخه دی

۱۲۳:۱۶ - بیا مونږ تا ته وحي وکړه چې د ابراهیم د ملت پیروي وکړه چې حنیف و او له مشرکانو څخه نه و

۱۲۴:۱۶ - همدا خبره ده چې (ورځ د) خالي په هغو کسانو مقرره شوې ده چې په دې کې یې اختلاف کړی و او بېشکه ستا رب به خامخا د دوی په مینځ کې د قیامت په ورځ فیصله کوي په هغه څیز کې چې دوی به په هغه کې اختلاف کاوه

۱۲۵:۱۶ - ته د خپل رب لارې ته په حکمت سره او ښکلي نصیحت سره بلنه کوه او له دوی سره په هغې طریقې سره مجادله (مباحثه) کوه چې هغه تر ټولو ښه وي، بېشکه ستا رب (چې دی) هغه ښه پوه دی په هغه کس چې د هغه له لارې نه گمراه شوی دی او هغه ښه پوه دی په لار موندونکو باندې

۱۲۶:۱۶ - او که تاسو سزا (عذاب) ورکوئ، نو د هغې سزا (عذاب) په مثل یې ورکوئ چې تاسو ته په هغه سره عذاب درکړی شوی او البته که تاسو صبر وکړئ، (نو) یقینًا دا د صبر کوونکو لپاره ډېر غوره دی

۱۲۷:۱۶ - او ته صبر کوه او نه دی صبر ستا مگر په توفیق د الله سره او په دوی باندې مه غمژن کیږه او په زړه تنگی کې مه کیږه د هغو مکرونو په وجه چې دوی یې کوي

۱۲۸:۱۶ - بېشکه الله د هغو کسانو ملگری دی چې پرهېزگاري کوي او د هغو کسانو چې هغوی نېکي کوونکي دي

## (مکي) اسرائیل - الإسراء ۱۷

۱:۱۷ - هغه ذات لره پاکي ده چې خپل بنده یې د شپې په یوه لږه برخه کې له مسجد حرام نه مسجد اقصیٰ ته بوتلو، هغه (مسجد اقصیٰ) چې مونږ د هغه گېرچاپېره برکت اچولی دی، د دې لپاره چې مونږ هغه ته له خپلو نښو څخه ځینې وښیو، بېشکه هم هغه ښه اورېدونکی، ښه

لېدونکی دی.

۲:۱۷ - او مونږ موسیٰ ته کتاب ورکړی و او هغه مو د بني اسرائیلو لپاره هدایت گرځولی و، چې تاسو زما نه غیر هېڅ کارساز مه نیسئ

۳:۱۷ - ای د هغه چا اولاده چې مونږ له نوح سره سواره کړي وو.، بېشکه هغه ډېر شکر ایستونکی بنده و

۴:۱۷ - او مونږ بني اسرائیلو ته په کتاب کې قطعي حکم لېږلی و چې تاسو به خامخا هرومرو په ځمکه کې دوه ځلې فساد کوئ او خامخا هرومرو به تاسو سرکشي کوئ، ډېره لویه سرکشي

۵:۱۷ - نو کله چې په هغو دواړو کې د اول ځلې وعده راغله (نو) مونږ پر تاسو باندې خپل داسې بنده گان مسلط کړل چې د ډېر سخت جنگ والا (سخت جنگي خلق) وو، نو هغوی د ښارونو په مینځ کې ښه وگرځېدل او وه دا یوه وعده پوره کړی شوې

۶:۱۷ - بیا مونږ بېرته تاسو ته پر هغوی باندې غلبه دروگرځوله او ستاسو مدد مو وکړ په مالونو او زامنو سره او تاسو مو د ملاتړ په لحاظ بېخي زیات کړئ

۷:۱۷ - که تاسو نېکي وکړئ (نو) د خپلو ځانونو لپاره به نېکي وکړئ او که چېرې تاسو بدي وکړئ، نو د همدغو (نفسونو) لپاره ده، نو کله چې د اخري ځل وعده راغله (نو مونږ پر تاسو باندې نور بنده گان مسلط کړل)، د دې لپاره چې ستاسو مخونه بد وران کړي او د دې لپاره چې جومات ته داخل شي لکه څنگه چې اول ځلې ده ته داخل شوي وو، او د دې لپاره چې هلاك او تباه کړي هر هغه شی چې دوی پرې غالب شي، سخت هلاکول

۸:۱۷ - نژدې دی چې ستاسو رب به په تاسو رحم وکړي او که تاسو بېرته وگرځېدئ (سرکشی ته، نو) مونږ به هم راوگرځو (عذاب درکولو ته)، او مونږ جهنم د کافرانو لپاره زندان گرځولی دی

۹:۱۷ - بېشکه دا قرآن هغې (لارې) ته هدایت کوي چې تر ټولو برابره نېغه ده او هغو مومنانو ته زېری ورکوي چې نېك عملونه کوي، د دې چې یقینًا د دوی لپاره ډېر لوی اجر دی

۱۰:۱۷ - او دا چې بېشکه هغه کسان چې په اخرت باندې ایمان نه راوړي، مونږ د هغوی لپاره ډېر دردوونکی عذاب تیار کړی دی

۱۱:۱۷ - او انسان د شر دعا غواړي د خپلې خیر د دعا (په شان) او انسان له شروع نه ډېر تلوار کوونکی دی

۱۲:۱۷ - او مونږ شپه او ورځ دوه نښې جوړې کړي دي، بیا مونږ د شپې نښه محوه کړه او د ورځې نښه مو روښانه وگرځوله، د دې لپاره چې تاسو د خپل رب فضل طلب کړئ او د دې لپاره چې تاسو د کلونو شمېر او حساب وپېژنئ او هر شی، مونږ هغه ښه په تفصیل سره بیان کړی

دی

۱۳:۱۷ - او هر انسان لره، مونږ هغه ته خپل عمل د هغه په غاړه کې لازم کړی دی او د قیامت په ورځ به ده ته یو کتاب راوباسو چې ورسره به مخامخ شي، په داسې حال کې چې غوړېدلی به وي

۱۴:۱۷ - ته خپل کتاب ولوله، نن ورځ ستا په خلاف هم ستا خپل نفس کافي دی، حساب کوونکی

۱۵:۱۷ - چا چې نېغه لار ونیوله، نو همدا خبره ده چې هغه د خپل ځان (د فایدې) لپاره نېغه لار نیسي او څوك چې بې لارې شو، نو همدا خبره ده چې هغه د همدغه (نفس) په ضرر بې لارې کېږي او هېڅ بار اوچتونکی د بل بار نه اوچتوي او مونږ کله هم عذاب ورکوونکي نه یو تر هغه پورې چې رسول ولېږو

۱۶:۱۷ - او کله چې مونږ اراده وکړو چې یو کلی هلاك کړو (نو) مونږ د هغه (کلي) کبرجنو مالدارو ته حکم وکړو، نو هغوی په ده کې فسق وکړي، نو په هغه باندې خبره ثابته شي، بیا مونږ هغه هلاك کړو، سخت هلاك کول

۱۷:۱۷ - او مونږ له نوح نه وروسته څومره ډېر قرنونه (امتونه) هلاك کړي دي! او ستا رب ښه کافي دی د خپلو بنده ګانو په ګناهونو باندې ښه خبردار، ښه لیدونکی

۱۸:۱۷ - هغه څوك چې داسې وي چې دنیا غواړي (نو) مونږ به هغه ته په دې کې هغه څه په تلوار ورکړو چې مونږ یې غواړو، د هغه چا لپاره چې مونږ یې اراده وکړو.، بیا مونږ د هغه لپاره جهنم مقرروو چې دی به هغه ته ننوځي، په داسې حال کې چې ملامت کړی شوی، شړل شوی به وي

۱۹:۱۷ - او هغه څوك چې اخرت غواړي او د هغه لپاره کوشش کوي، د هغه لایق کوشش، په دې حال کې چې مومن (هم) وي، نو دغه خلق، د دوی سعي قدر کړی شوې (او مقبوله) ده

۲۰:۱۷ - له هر یو سره مونږ ستا د رب له ورکړې څخه مدد کوو، له دوی سره اوله دغو سره، او ستا د رب عطاء (ورکړه په دنیا کې) کله هم منع کړی شوې نه ده

۲۱:۱۷ - ته وګوره! څرنګه مونږ د دوی ځینې، په ځینو نورو باندې غوره کړي دي او خامخا اخرت د درجو په لحاظ تر ټولو لوی او د فضیلت ورکولو په لحاظ تر ټولو غټ دی

۲۲:۱۷ - ته له الله سره بل معبود مه نیسه، نو (ګنې) ملامت کړی شوی، بې یارومددګار به کېنې

۲۳:۱۷ - او ستا رب حکم کړی دی چې تاسو عبادت مه کوئ (د بل هیچا) مګر یواځې د هغه او له مور او پلار سره ښه احسان کوئ او که چېرې په دوی کې یو یا دواړه له تا سره لازمًا زوړوالي (بوډاوالي) ته ورسېږي، نو ته دې دواړو ته اُف (هم) مه وایه او مه دوی رټه او ته دوی ته ډېره

تعظیمي خبره وایه

۲۴:۱۷ - او ته د دوی لپاره له مهربانۍ نه د تواضع وزر ښکته کړه او وایه: ای زما ربه! ته په دوی دواړو مهرباني وکړه، لکه څنګه چې دوی دواړو زما پالنه کړې ده، په دې حال کې چې زه وړوکی وم

۲۵:۱۷ - ستاسو رب په هغه څه ښه پوه دی چې ستاسو په نفسونو کې دي. که تاسو نېکان یئ، نو بېشکه هغه له شروع نه د توبه کوونکو لپاره ډېر مغفرت کوونکی دی

۲۶:۱۷ - او د خپلوۍ خاوند ته د هغه حق ورکړه او مسکین او مسافر ته (هم) او اسراف مه کوه، اسراف کول

۲۷:۱۷ - بېشکه اسراف کوونکي د شیطانانو وروڼه دي او شیطان له همېشه د خپل رب ډېر ناشکره دی

۲۸:۱۷ - او که چېرې ته له دوی نه اعراض کوې، د خپل رب له جانبه د رحمت د طلب لپاره چې ته یې امېد لرې، نو دوی ته ډېره اسانه خبره وایه

۲۹:۱۷ - او مه کوه خپل لاس تر خپلې غاړې پورې تړل شوی او مه هغه غځوه، بېخي پوره غځول (ګنې) نو ملامت کړی شوی، پښېمانه شوی به کېنې

۳۰:۱۷ - بېشکه ستا رب رزق فراخوي چا ته چې وغواړي او تنګوي یې، (چا ته چې وغواړی) بېشکه هغه په خپلو بنده ګانو ښه خبردار، ښه لیدونکی دی

۳۱:۱۷ - او تاسو خپل اولاد د فقر له وېرې مه وژنئ، هم دا مونږ هغوی ته روزي ورکوو او تاسو ته (هم) بېشکه د دوی وژل له شروع نه ډېره لویه ګناه ده

۳۲:۱۷ - او تاسو زنا ته مه نژدې کېږئ، بېشکه دا له شروع نه غټه بې حیایي ده او بده لار ده

۳۳:۱۷ - او تاسو هغه نفس مه وژنئ چې الله حرام کړی دی مګر په حقه سره او څوك چې ووژل شي، په دې حال کې چې مظلوم وي، نو یقینًا مونږ د هغه ولي (وارث) ته پوره غلبه ورکړې ده، نو هغه دې په وژلو کې اسراف نه کوي، بېشکه دغه (وارث) مدد کړی شوی دی

۳۴:۱۷ - او تاسو د یتیم مال ته مه نژدې کېږئ مګر په هغې طریقې سره چې هغه ترټولو ښه وي، تر هغه پورې چې هغه خپل د بلوغ حد ته ورسېږي او تاسو عهد پوره کوئ، بېشکه عهد دی پوښتل شوی

۳۵:۱۷ - او تاسو پېمانه پوره ورکوئ کله چې تاسو (څه شی) پېمانه کوئ او په ډېرې برابرې تلې سره تول کوئ دا (کار) تر ټولو غوره او د انجام په لحاظ تر ټولو ښه دی

۳۶:۱۷ - او ته د هغه شي پیروي مه کوه چې تا ته د هغه علم نه وي، بېشکه غوږونه او سترګې او زړه، هر یو له دغو (درې واړو) دی د هغه په هکله تپوس کړی شوی

۳۷:۱۷ - او په ځمکه کې په تکبر سره مه ګرځه، بېشکه چې ته به ځمکه بېخي څیرې نه کړی شې او په اوږدوالي کې به غرونو ته بېخي ونه رسېږې

۳۸:۱۷ - دغه ټول کارونه (چې دي)، د دوی بدي ستا د رب په نیز له شروع نه ناخوښه ده

۳۹:۱۷ - دا (ټول حکمونه) له هغو څخه دي چې ستا رب له حکمته څخه تا ته وحي کړي دي او ته له الله سره بل هېڅ معبود مه نیسه (ګڼې) نو په جهنم کې به وغورځول شې، ملامت کړی شوی، رټل شوی

۴۰:۱۷ - ایا ستاسو رب تاسو په زامنو سره غوره کړي یئ او (پخپله) هغه د ملایکو څخه جینکۍ نیولي دي؟ بېشکه تاسو یقینًا ډېره لویه خبره وایئ

۴۱:۱۷ - او یقینًا یقینًا مونږ په دې قرآن کې مکرر بیان کړی دی، د دې لپاره چې دوی نصیحت واخلي (خو دغه بیان) دوی ته نه زیاتوي مګر تېښته (لرې والی)

۴۲:۱۷ - ته ووایه: که له دغه (الله) سره نور معبودان وی، لکه څنګه چې دوی وایي (، نو) په دغه وخت کې به دوی خامخا د عرش د مالك په طرف لاره لټولې وی

۴۳:۱۷ - هغه لره پاکي ده او هغه ډېر اوچت دی له هغو خبرو نه چې دوی یې وایي ډېر لوی اوچتېدل

۴۴:۱۷ - د هغه لپاره تسبیح وایي اوه اسمانونه او ځمکه او هغه څوك چې په دغو کې دي، او نشته هېڅ یو شی مګر د هغه د ستاینې سره تسبیح وایي او لېکن تاسو د هغو په تسبیح نه پوهېږئ، بېشکه هغه له ازله ډېر تحمل والا، ډېر بخښونکی دی

۴۵:۱۷ - او کله چې ته قرآن لولې (، نو) مونږ ستا په مینځ کې او د هغو کسانو په مینځ کې چې په اخرت ایمان نه راوړي یوه پټه پرده پیدا کړو

۴۶:۱۷ - او مونږ د هغوی په زړونو باندې پردې واچوو له دې نه چې دوی په ده پوه شي او د دوی په غوږونو کې کوڼوالی (پیداکړو)، او کله چې ته په قرآن کې یواځې خپل رب یاد کړې، نو دوی په خپلو شاګانو بېرته وګرځي، په داسې حال کې چې ترهېدونکي وي

۴۷:۱۷ - مونږ ښه پوه یو په هغه (نیت) چې دوی په هغه سره اورېدل کوي، کله چې دوی تا ته غوږ ږدي او کله چې دوی پټې مشورې کوي، کله چې دا ظالمان وایي: تاسو پیروي نه کوئ مګر د داسې سړي چې جادو پرې شوی دی

۴۸:۱۷ - ته وګوره! دوی ستا په باره کې مثالونه څنګه بیان کړل، نو ګمراه شول، نو د سمې لارې استطاعت نه لري

۴۹:۱۷ - او دوی وایي ایا کله چې مونږ هډوکي او میده شوې خاورې شو، ایا یقینًا مونږ به خامخا

بیا راژوندي کړی شو په نوو پیدا کولو سره

۵۰:۱۷ - ته ووایه: تاسو کاڼي شئ، یا اوسپنه

۵۱:۱۷ - یا کوم داسې مخلوق له هغه قسمه نه چې ستاسو په سینو کې لوی ښکاري، نو دوی به ژر ووایي: څوك به مونږ بیا راژوندي کوي؟ ته ووایه: هغه ذات چې تاسو یې اول کرت پیدا کړي یئ.، نو ژر به دوی خپل سرونه تا ته (د استهزا په ډول) وخوځوي او وایي به: دا به کله وي؟ ته ووایه: امېد دی چې دغه به ډېر نژدې وي

۵۲:۱۷ - په هغې ورځ کې چې هغه (الله) به تاسو راوبلي، نو تاسو به (د هغه بلل) قبول کړئ، په داسې حال کې چې د هغه ثنا به وایئ، او گمان به کوئ چې تاسو نه یئ پاتې شوي مگر لږ شانې

۵۳:۱۷ - او ته زما بنده گانو ته ووایه چې هغه خبره دې وایي چې هغه تر ټولو ښه وي، بېشکه شیطان د دوی په مینځ کې دښمني اچوي، بېشکه شیطان د انسان لپاره له شروع نه ښکاره دښمن دی

۵۴:۱۷ - ستاسو رب په تاسو ښه پوه دی، که هغه وغواړي (نو) په تاسو به رحم وکړي او که هغه وغواړي (نو) تاسو ته به عذاب درکړي او ته مونږ په دوی باندې ذمه وار نه یې لېږلی

۵۵:۱۷ - او ستاسو رب ښه عالم دی په هغه چا چې په اسمانونو او ځمکه کې دي او یقینًا یقینًا مونږ ځینو نبیانو ته په ځینو نورو باندې فضیلت ورکړی دی او مونږ داود ته زبور ورکړی و

۵۶:۱۷ - ته ووایه: تاسو هغه (معبودان) راوبلئ چې تاسو یې له هغه (الله) نه غیر عقیده لرئ، نو دوی اختیار نه لري له تاسو نه د ضرر لرې کولو او نه یې د گرځولو

۵۷:۱۷ - دغه خلق چې دوی یې بلي، هغه خلق دي چې خپل رب ته وسیله لټوي چې په دوی کې کوم یو زیات قریب دی، او د هغه د رحمت امېد لري او د هغه له عذابه وېرېږي، بېشکه ستا د رب عذاب له همېشه داسې دی چې وېره ترې وکړی شي

۵۸:۱۷ - او نشته هېڅ یو کلی مگر د قیامت له ورځې نه مخکې مونږ هغه لره هلاك کوونکي یو، یا هغه لره عذاب ورکوونکي یو، ډېر سخت عذاب.، دا له شروع نه په کتاب کې لیکل شوي دي

۵۹:۱۷ - او مونږ نه یو منع کړي له دې نه چې (د دوی د غوښتنې سره سم) معجزې ولېږو مگر دې خبرې چې اولنیو خلقو د دغو (معجزو) تکذیب کړی و او مونږ ثمود ته اوښه ورکړه، چې ښکاره معجزه وه، نو هغوی له دې سره ظلم وکړ او مونږ معجزې نه رالېږو مگر د وېرولو لپاره

۶۰:۱۷ - او هغه وخت (یاد کړه) چې مونږ تا ته وویل: بېشکه ستا رب ټول خلق راگېر کړي دي او مونږ هغه منظره چې مونږ تا ته وښووله نه ده گرځولې مگر د خلقو لپاره ازمایش او هغه ونه چې په قرآن کې پرې لعنت کړی شوی دی او مونږ دوی وېروو، نو (دغه وېرول) دوی ته نه زیاتوي مگر

ډېره لويه سرکشي

٦١:١٧ - او کله چې مونږ ملايکو ته وويل: تاسو ادم ته سجده وکړئ، نو دوی سجده وکړه غير له ابليس نه، هغه وويل: ايا زه هغه چا ته سجده وکړم چې تا له خټې پيدا کړی دی

٦٢:١٧ - هغه وويل: ما ته خبر راکړه! دا سړی چې تا دا په ما باندې بهتر کړی دی، يقينًا که تا زه د قيامت د ورځې پورې وروسته کړم (نو) زه به خامخا هرومرو د ده د اولادې بېخ وباسم، سوا له لږو څخه

٦٣:١٧ - (الله) وويل چې ځه! نو په دوی کې چې چا ستا پيروي وکړه، نو بېشکه جهنم ستاسو جزا ده، ډېره پوره جزا

٦٤:١٧ - او ته په خپل اواز سره له دوی ځنې هغه څوك راپورته کړه چې ستا پرې وس رسېږي، او ته په دوی باندې خپل سواره او پياده راجمع کړه اوله دوی سره په مالونو او اولادونو کې شريك شه او دوی ته وعده ورکړه، او شيطان دوی ته وعده نه ورکوي مگر د دوکې

٦٥:١٧ - بېشکه زما بنده گان چې دي، تالره پر هغوی باندې هېڅ غلبه نشته او ستا رب ښه کافي کارساز دی

٦٦:١٧ - ستاسو رب هغه دی چې تاسو لپاره په سمندر کې بېړۍ روانوي، د دې لپاره چې تاسو د هغه فضل ولټوئ، بېشکه هغه په تاسو له شروع نه ډېر رحم کوونکی دی

٦٧:١٧ - او کله چې تاسو ته په سمندر کې سختي دروړسېږي (، نو) هغه څوك (ستاسو له فکره) ورك شي چې تاسو يې بلئ مگر يواځې هغه (الله بلئ)، نو کله چې تاسو وچې ته بچ کړي (، نو) تاسو مخ اړوئ (له توحيده) او انسان دی ډېر ناشکره

٦٨:١٧ - ايا نو تاسو له دې نه په امان کې يئ چې هغه تاسو د وچې ځمکې په يوه خوا کې ډوب (ښخ) کړي، يا پر تاسو باندې کاڼي وروونکی سخت باد راولېږي (او) بيا تاسو د خپل ځان لپاره هېڅ ساتونکی ونه مومئ

٦٩:١٧ - يا تاسو له دې نه په امان کې يئ چې په دغه (سمندر) کې مو بېرته په دوهم ځلې واپس کړي، نو پر تاسو باندې ماتوونکی سخت باد راولېږي، نو تاسو د کفر کولو په سبب غرق کړي، بيا به تاسو د خپل ځان لپاره زمونږ په ضد راپسې گرځېدونکی ونه مومئ

٧٠:١٧ - او يقينًا يقينًا مونږ د ادم اولادې ته ډېر عزت ورکړی دی، او مونږ دوی (په سورليو باندې) په وچه کې او په سمندر کې سواره کړي دي او مونږ دوی ته خوندور پاکيزه شيان ورکړي دي او مونږ دوی په خپل مخلوق کې په ډېرو زياتو باندې غوره کړي دي، غوره کول

٧١:١٧ - او (ياده کړه) هغه ورځ چې مونږ به ټول خلق (انسانان) سره له خپل امامه راوبلو، نو

هغه څوك چې هغه ته خپل كتاب (عمل نامه) په خپل ښي لاس كې وركړی شو، نو دغه كسان به خپل كتاب (عمل نامه) لولي او په دوی به د كجورې د نري تار هومره ظلمـ (همـ) نه كېږي

۷۲:۱۷ - او څوك چې په دې (دنيا) كې ړوند و، نو هغه به په اخرت كې همـ ړوند وي، او (د نجات) د لارې په لحاظ به ډېر بې لارې وي

۷۳:۱۷ - او بېشكه شان دا دی چې دوی نژدې وو چې تا له هغه (قرآن) نه واړوي چې مونږ تا ته وحي كړی دی، د دې لپاره چې ته پر مونږ باندې له دې (قرآن) نه غير راوتړې او په دغه وخت كې به دوی ته دوست نيولی وی

۷۴:۱۷ - او كه ته مونږه (په حق باندې) نه وی ټينگ كړی. (، نو) يقينًا يقينًا ته نژدې وې چې دوی لږ څه مايله شې

۷۵:۱۷ - (نو) په دغه وخت كې به خامخا مونږ په تا څكلی وی دوه چند عذاب د ژوندون (په دنيا كې) او دوه چنده عذاب د مرگ (په اخرت كې) بيا به ته د خپل ځان لپاره زمونږ په خلاف مدد كوونكی ونه مومې

۷۶:۱۷ - او بېشكه شان دا دی چې دوی قريب وو چې تا خامخا له دې ځمكې نه وخوځوي، د دې لپاره چې تا له دې نه وباسي او په دغه وخت كې به دوی له تا نه وروسته درنگ (وخت) نه وی تېر كړی مگر ډېر لږ

۷۷:۱۷ - (زمونږ) طريقه (ده) په هغه چا كې چې يقينًا مونږ له تا نه مخكې لېږلي وو د خپلو رسولانو څنې، او ته به زمونږ طريقې لره هيڅ تبديلېدل ونه مومې

۷۸:۱۷ - ته لمونځ قايموه د لمر له زواله وورسته د شپې تر تيارې پورې او د سبا قرآن (لمونځ) همـ (قايموه) بېشكه د سبا قرآن، ده ته حاضرې كولی شي

۷۹:۱۷ - او د شپې په څه حصه كې خوب پرېږده، چې تا لپاره دا زياتي عبادت دی.، امېد دی چې ستا رب به تا مقامِ محمود (ستايل شوي ځای) ته پورته كړي

۸۰:۱۷ - او ته ووايه: ای زما ربه! ته ما داخل كړه په رښتيا داخلولو سره او ته ما وباسه په رښتيا وېستلو سره او ته زما لپاره د خپل جانب نه يو قوت مددكوونكی مقرر كړه

۸۱:۱۷ - او ته ووايه: حق راغی او باطل په تېښته ورك شو، بېشكه باطل دی وركېدونكی

۸۲:۱۷ - او مونږ قرآن نازلوو هغه چې د مومنانو لپاره شفا او رحمت دی او ظالمانو ته نه زياتوي مگر تاوان

۸۳:۱۷ - او كله چې مونږ په (نافرمان) انسان باندې انعامـ وكړو (نو) هغه مخ وگرځوي او خپل اړخ لرې كړي او كله چې ده ته شر (او تكليف) ورسي (نو) ډېر نااميده شي

۸۴:۱۷ - ته ووایه: هر کس په خپلې مناسب حالې طریقې عمل کوي، نو ستا رب ښه عالم دی په هغه چا چې هغه د لارې په لحاظ ښه هدایت والا دی

۸۵:۱۷ - او دوی له تا نه د روح په باره کې پوښتنه کوي ته (ورته) ووایه: روح زما د رب له امره څخه دی او تاسو ته له علم څخه (برخه) نه ده درکړ شوې مگر ډېره لږه

۸۶:۱۷ - او یقینًا که مونږ وغواړو (نو) خامخا ضرور به هغه (قرآن) بېرته یوسو چې مونږ تا ته وحي کړی دی، بیا به ته د خپل ځان لپاره په دې باره کې زمونږ په خلاف هېڅ وکیل (او کارساز) ونه مومې

۸۷:۱۷ - خو د خپل رب له جانبه د مهربانۍ په وجه، بېشکه د هغه فضل په تا باندې ډېر لوی دی

۸۸:۱۷ - ته ووایه: خامخا که انسانان او پېریان ټول په دې خبره سره جمع شي چې د دې قرآن مِثل راوړي (، نو) د ده په مثل به رانه وړی شي اگر که د دوی ځینې د ځینو نورو ملاتړي (هم) وي

۸۹:۱۷ - او یقینًا یقینًا مونږ په دې قرآن کې هر قسمه مثال بیا بیا بیان کړی دی، نو زیاترو خلقو انکار وکړ غیر له کفر کولو نه

۹۰:۱۷ - او دوی وویل: مونږ به په تا له سره ایمان رانه وړو تر دې چې ته زمونږ لپاره په دې ځمکه کې خوټېدونکې چینه جاري کړې

۹۱:۱۷ - یا چې تا لپاره باغ وي د کجورو او انگور، بیا ته د دې (باغ) په مینځ کې ولې روانې کړې، روانول

۹۲:۱۷ - یا چې لکه څنگه چې ستا خیال دی ته پر مونږ باندې اسمان ټوټې ټوټې راوغورځوې، یا چې ته الله او ملایك مخامخ (ښکاره) راولې

۹۳:۱۷ - یا چې تا لپاره د سرو زرو کور وي، یا چې ته پورته اسمان ته وخېژې او مونږ به ستا په (تشو) ختلو له سره ایمان رانه وړو تر هغه پورې چې ته پر مونږ باندې داسې یو کتاب راکوز کړې چې مونږ یې لولو.، ته (دوی ته) ووایه: زما رب لپاره پاکي ده، زه نه یم مگر یو انسان (د نورو رسولانو په شان) رالېږل شوی

۹۴:۱۷ - او خلق د ایمان له راوړلو نه نه دي منع کړي، کله چې دوی ته هدایت راغی، مگر دې خبرې چې دوی به ویل: ایا الله یو انسان رسول رالېږلی دی!

۹۵:۱۷ - ته (دوی ته) ووایه: که په ځمکه کې (د انسانانو په ځای) ملایك وی، چې په ارام سره گرځېدلی (نو) مونږ به خامخا په دوی باندې له اسمان نه مَلَك رسول رالېږلی وی

۹۶:۱۷ - ته ووایه: زما په مینځ کې او ستاسو په مینځ کې الله ښه کافي گواه دی، بېشکه هغه په خپلو بنده گانو باندې ښه خبردار، ښه لیدونکی دی

۹۷:۱۷ - او چا ته چې الله هدايت وکړي، نو هم هغه هدايت موندونکی دی او هغه څوك چې هغه (الله) يې بې لارې کړی، نو ته به د هغوی لپاره له هغه (الله) نه غير هېڅ کارسازي (دوستان) له سره ونه مومې او د قيامت په ورځ به مونږ دوی په خپلو مخونو باندې (نسکور) راجمع کړو، چې ړانده او گونگيان او کاڼه به وي او د دوی اوسېدنځای به جهنم وي، هر کله چې (د جهنم اور) غلی شي، (نو) مونږ به دوی ته لمبې وهونکی اور ورزيات کړو

۹۸:۱۷„ - دا د دوی جزا ده، په سبب د دې چې بېشکه دوی زمونږ په ايتونو سره کفر کړی و او ويل به يې: ايا کله چې مونږ هډوکي او رېژېدلې خاورې شو، ايا په رښتيا به مونږ هرومرو بيا ژوندي کولی شو، په نوي تخليق سره

۹۹:۱۷ - ايا دوی نه دي کتلي چې بېشکه هغه الله چې اسمانونه او ځمکه يې پيدا کړي دي په دې قادر دی چې د دوی په مثل (نور) پيدا کړي. او هغه د دوی لپاره يوه نېټه مقرر کړې ده چې په هغې کې هېڅ شك نشته، نو ظالمانو انکار وکړ مگر له کفر کولو نه

۱۰۰:۱۷ - ته (دوی ته) ووايه: که تاسو زما د رب د رحمت د خزانو مالکان شئ (نو) په دغه وخت کې به تاسو هرومرو امساك (بخل) وکړئ د لگېدلو (خرچ کېدو) له وېرې نه او انسان دی ډېر بخيل

۱۰۱:۱۷ - او يقينًا يقينًا مونږ موسیٰ ته نهه واضحې معجزې ورکړې وې، نو ته له بني اسرائيلو نه پوښتنه وکړه کله چې هغه دوی ته راغی، نو هغه ته فرعون وويل: بېشکه زه خامخا ضرور په تا د جادو کړی شوي عقيده ساتم ای موسیٰ!

۱۰۲:۱۷ - ويې ويل: يقينًا يقينًا ته پوهېږې (په زړه کې) چې دا (نهه معجزې) نه دي نازلې کړي مگر داسمانونو او ځمکې رب، په داسې حال کې چې دليلونه دي، او بېشکه زه خامخا هرومرو په تا باندې ای فرعونه! د هلاك شوي يقين کوم

۱۰۳:۱۷ - نو هغه (فرعون) اراده وکړه چې دوی له ځمکې نه وخوځوي، نو مونږ هغه او څوك چې له هغه سره وو ټول؛ غرق (ډوب) کړل

۱۰۴:۱۷ - او د هغه (له هلاکت) نه وروسته مونږ بني اسرائيلو ته وويل: تاسو په دغه ځمکه کې اوسئ، نو کله چې د اخرت وعده (قيامت) راشي (نو) مونږ به تاسو ټول سره گډ راولو

۱۰۵:۱۷ - او په حقه سره مونږ دا نازل کړی دی او په حقه سره نازل شوی دی. او ته مونږ نه يې لېږلی مگر زېری ورکوونکی او وېروونکی

۱۰۶:۱۷ - او (مونږه) قرآن (نازل کړی دی) مونږ هغه ټوټه ټوټه (نازل) کړی دی، د دې لپاره چې ته دا خلقو ته ولولې په ارام (او وقفې) سره او مونږ دا نازل کړی دی (لږ لږ) نازلول

۱۰۷:۱۷ - ته (دوی ته) ووایه چې تاسو په ده ایمان راوړئ، یا ایمان مه راوړئ، بېشکه هغه کسان چې له دغه (قرآن) نه مخکې هغوی ته علم ورکړی شوی دی، کله چې هغوی ته دا لوستی شي (نو) هغوی په زنو باندې نسکور پرېوځي، چې سجده کوونکي وي

۱۰۸:۱۷ - او وايي زمونږ رب ته پاکي ده، بېشکه زمونږ د رب وعده خامخا کېدونکې ده

۱۰۹:۱۷ - او دوی په زنو نسکور پرېوځي، چې ژاړي او عاجزي يې (د قرآن اورېدل) ورته ورزياته کړي

۱۱۰:۱۷ - ته (دوی ته) ووایه: تاسو الله بلئ، یا تاسو رحمٰن بلئ، هر یو (نوم) یې چې وبلئ، نو خاص د هغه لپاره دي تر ټولو ښکلي نومونه او ته (قراءت د) خپل لمونځ ډېر مه ظاهروه او مه یې ډېر پټوه او د دې دواړو په مینځ کې (منځنۍ) لار ولټوه

۱۱۱:۱۷ - او ته ووایه: ټوله ثنا هغه الله لپاره خاص ده چې نه یې څوك اولاد نیولی دی او نه د هغه لپاره به بادشاهۍ کې څوك شريك شته او نه د هغه لپاره د عاجزۍ په وجه څوك دوست شته او ته د هغه لويي بيانوه، لويي کامله

## (مکي) غار - الكهف ۱۸

۱:۱۸ - ټولې ستاینې خاص د هغه الله لپاره دي چې په خپل بنده یې کتاب نازل کړی دی او په ده کې یې هېڅ کوږوالی نه دی ایښی

۲:۱۸ - په دې حال کې چې سم برابر دی، د دې لپاره چې هغه دوی له ډېر سخت عذاب نه ووېروي، چې د هغه (الله) له جانبه (راتلونکی) دی او هغو مومنانو ته زېری ورکړي چې نېك عملونه کوي چې بېشکه د دوی لپاره ډېر ښکلی اجر دی

۳:۱۸ - چې دوی به تل ترتله په هغه کې اوسېدونکي وي

۴:۱۸ - او چې هغه کسان ووېروي چې (له ډېره جهله) وايي: الله (د ځان لپاره) اولاد نیولی دی

۵:۱۸ - دوی ته په دې خبره هېڅ علم نشته او نه د دوی پلرونو ته، دا د خبرې په لحاظ ډېره غټه (خبره) ده چې د دوی له خولو نه راوځي، دوی نه وايي مګر دروغ

۶:۱۸ - نو ښايي چې ته د دوی پسې وروسته (په ګرځېدو سره) له ډېره غمه د خپل ځان وژونکی شې که دوی په دې خبره (قرآن) ایمان رانه وړي

۷:۱۸ - بېشکه مونږ (چې یو) مونږ هر هغه څیز چې د ځمکې له پاسه دی د دغې لپاره زينت ګرځولی دی، د دې لپاره چې مونږ دوی و ازمايو چې په دوی کې کوم یو د عمل په لحاظ ډېر غوره دی

۸:۱۸ - او بېشکه مونږ خامخا هغه څه چې په دې (ځمکه) باندې دي؛ وچ کلك ډاگ گرځوونکي یو

۹:۱۸ - ایا ته گمان کوې چې بېشکه د غار او تختۍ والا زمونږ په نښو کې ډېر عجیبه وو؟

۱۰:۱۸ - (یاد کړه) هغه وخت چې ځلمیانو غار ته رجوع وکړه، نو ویې ویل: اى زمونږه ربه! ته مونږ ته له خپل جانب نه رحمت راکړه او زمونږ لپاره زمونږ په دې کار کې هدایت برابر کړه

۱۱:۱۸ - نو مونږ د دوى په غوږونو خوب واچاوه، په غار کې څو کاله په شمېر

۱۲:۱۸ - بیا مونږ دوى له خوبه راپاڅول، د دې لپاره چې مونږ معلوم کړو چې په دوه ډلو کې کومې یوې هغه موده یاده ساتلې ده چې دوى تېره کړې ده

۱۳:۱۸ - مونږ تا ته د دوى خبر په حقه سره بیانوو، بېشکه دوى داسې ځلمیان وو چې په خپل رب یې ایمان راوړى و او مونږ دوى په هدایت کې ورزیات کړي وو

۱۴:۱۸ - او مونږ د دوى زړونه مضبوط کړي وو، کله چې دوى ولاړ شول، نو ویې ویل: زمونږ رب د اسمانونو او ځمکې رب دى، مونږ به هیڅکله له هغه نه غیر بل معبود ونه بلو (که مونږ بل معبود وباله نو)، یقینًا یقینًا په دغه وخت کې به مونږ ډېره غلطه خبره ویلې وي

۱۵:۱۸ - زمونږ دې قوم له هغه (الله) نه غیر نور معبودان ونیول، دوى په (عبادت د) دغو (باطلو معبودانو) باندې ښکاره دلیل ولې نه راوړي؟ نو له هغه چا نه لوى ظالم څوك دى چې په الله باندې دروغ تړي!

۱۶:۱۸ - او کله چې تاسو جدا شوئ له دوى نه او له هغه څه نه چې دوى یې له الله نه غیر عبادت کوي، نو تاسو په غار کې ځاى ونیسئ، ستاسو رب به تاسو لپاره خپل رحمت خور کړي او تاسو لپاره به ستاسو په کار کې اسانې تیاره کړي

۱۷:۱۸ - او ته به لمر وینې کله چې راخېژي، نو د دوى له غاره ښي اړخ ته میلان کوي او کله چې پرېوځي (نو) د دوى په څنگ تېر شي چپ اړخ ته او دوى له دې (غار) نه په ارت میدان کې دي، دغه د الله له نښو څنې دي، چا ته چې الله هدایت وکړي، نو هم هغه هدایت موندونکى دى او څوك چې گمراه کړي، نو ته به د هغه لپاره له سره ونه مومې، کوم لار ښوونکى دوست

۱۸:۱۸ - او ته به په دوى د ویښو گمان کوې، حال دا چې دوى ویده دي او مونږ دوى په ښي اړخ او چپ اړخ اړوو. او د دوى سپى (د غار) په خولې کې د خپلو څنگلو غځوونکى دى.، که ته په دوى له بره نظر واچوې (نو) ته به خامخا له دوى نه په تېښته راوگرځې او خامخا به ته د وېرې په لحاظ ډك کړى شې

۱۹:۱۸ - او همداسې مونږ دوى بیا راوېښ کړل، د دې لپاره چې دوى په خپل مینځ کې یو له بله پوښتنه وکړي، په دوى کې یو ویونکي وویل: تاسو څومره وخت تېر کړى دى؟ دوى وویل: مونږ

یوه ورځ، یا د ورځې څه حصه وخت تېر کړی دی، ـ نورو وویل: ستاسو رب ښه عالم دی په هغې مودې چې تاسو تېره کړې ده، ـ نو تاسو خپل یو تن له خپلو دې سپینوزرو سره ښار ته ولېږئ.، نو هغه دې وګوري چې د دې (ښار) کوم یو کس د طعام په لحاظ ډېر پاکیزه دی، نو دی دې تاسو ته له هغه نه خوراك راوړي او نرمي او زیرکي دې کوي او په تاسو دې هیڅوك له سره خبر نه کړي

۲۰:۱۸ - بېشکه دوی که په تاسو خبر (او غالبه) شي (نو) دوی به تاسو سنګسار کړي، یا به تاسو خپل دین ته بېرته وګرځوي او په دغه وخت کې به تاسو له سره کامیاب نشئ، هیڅکله

۲۱:۱۸ - او همداسې مونږ په دوی باندې (خلق) خبر کړل، د دې لپاره چې دغه (خلق) پوه شي چې بېشکه د الله وعده حقه ده او دا چې بېشکه قیامت (چې دی) په ده کې هېڅ شك نشته، (مونږ خلق) هغه وخت (خبر کړل) چې دوی په خپل مینځ کې د هغوی په معامله کې جګړې کولې، نو دوی وویل: تاسو په دوی باندې یوه ودانۍ جوړه کړئ، د دوی رب په دوی ښه عالم دی، هغو کسانو وویل چې د دوی په معامله کې غالبه شوي وو، مونږ به خامخا هرومرو په دوی باندې جومات جوړوو

۲۲:۱۸ - ژر به دغه (خلق) وايي چې (دوی) درې دي، د دوی څلورم د دوی سپی دی او وايي به چې (دوی) پنځه دي، د دوی شپږم د دوی سپی دی، په داسې حال کې چې بې نښې ناليدلي ويشتل کوي او وايي به چې (دوی) اوه دي. او د دوی اتم د دوی سپی دی.، ته ووایه: زما رب د دوی په شمېر ښه عالم دی، په دوی خبر (او عالِم) نه دي مګر ډېر لږ (خلق) .، نو ته د دوی په باره کې له سرسري بحث نه غیر بحث مه کوه او ته د دوی په باره کې په دغو (اهل کتابو) کې له هیچا نه فتوٰی مه غواړه

۲۳:۱۸ - او ته د هېڅ شي په باره کې له سره داسې مه وایه چې بېشکه زه سبا ته د دغه کار کوونکی یم

۲۴:۱۸ - مګر (جوخت ورسره وایه) که الله يې وغواړي او خپل رب یادوه کله چې دې هېر شي، او ته ووایه امېد دی چې ما ته به زما رب لار ښوونه وکړي د نېکۍ په لحاظ دې ته د قریب ترې لارې

۲۵:۱۸ - او دوی په خپل غار کې درې سوه کاله تېر کړل او نهه يې (پرې) ور زیات کړل

۲۶:۱۸ - ته ووایه: الله ښه عالم دی په مقدار د هغې مودې چې دوی تېره کړې ده.، خاص د هغه لپاره د اسمانونو او ځمکې غیب (پټ اَسرار) دي، هغه څه ښه لیدونکی او څه ښه اورېدونکی دی.! د دوی لپاره له هغه نه غیر هېڅ کارساز (او حمایتي) نشته او هغه په خپل حکم (او قضاء) کې هیڅوك نه شریکوي

۲۷:۱۸ - او ته لوله هغه چې تا ته د خپل رب له کتابه وحي کړی شوی دی، د هغه (الله) کلمو لره

هیڅوك بدلوونكى نشته او له هغه نه غیر به ته له سره پناه ځای ونه مومې

۲۸:۱۸ - او ته خپل ځان له هغو كسانو سره بند (او ټینگ) وساته چې خپل رب د ورځې په شروع كې او د ورځې په اخر كې بولي، دوى د هغه مخ غواړي۔ او ستا سترگې دې له دوى نه تېرې نشي، چې ته د دنیایي ژوند ښایست غواړې او ته د هغه چا اطاعت مه كوه چې مونږ له خپل ذكر نه د هغه زړه غافل كړى دى او هغه د خپل خواهش تابع شوى دى او د هغه كار له حد نه وتلى دى

۲۹:۱۸ - او ته (دوى ته) ووایه: حق ستا د رب له جانبه دى، نو څوك چې (د ایمان) اراده وكړي، نو هغه دې ایمان راوړي او څوك چې (د كفر) اراده وكړي، نو هغه دې كافر شي، بېشكه مونږ د ظالمانو لپاره داسې اور تیار كړى دى چې له دغو نه د هغه پردې چاپېره شوي دي۔ او كه دوى (له تندې نه) فریاد وكړي (نو) په داسې اوبو سره به یې فریاد رسي وشي لكه زوې (د تیلو خټ) چې مخونه به وریتوي، بد دى دغه مشروب او دغه بد ځاى دى د اوسېدلو

۳۰:۱۸ - بېشكه هغه كسان چې ایمان یې راوړى دى او نېك عملونه یې كړي دي، (، نو) بېشكه مونږ د هغه چا اجر نه ضایع كوو چې ښه عمل یې كړى دى

۳۱:۱۸ - دغه كسان چې دي، د دوى لپاره د تل استوگنې جنتونه دي چې د هغو له لاندې ولې بهېږي، دوى به په هغو كې د سروزرو په وښیو اراسته (او ښكلي) كاوه شي او دوى به د نري وریښمو او پېړو وریښمو شنې جامې اغوندي، په داسې حال كې چې په دغو (جنتونو) كې به په تختونو باندې تكیه وهونكي وي، دغه ښه بدل دى او ښه د ارام ځای دى

۳۲:۱۸ - او دوى ته یو مثال بیان كړه، دوه سړي دي، په دوى كې یو ته مونږ د انگورو دوه باغونه وركړي دي، او دغه دواړه (باغونه) مونږ په كجورو سره پټ كړي دي او د دواړو په مینځ كې مونږ فصل (كښت) پیدا كړى دى

۳۳:۱۸ - دغه دواړه باغونه خپلې مېوې كوي اوهېڅ شى ترې نه نه كموي او مونږ د دواړو په مینځ كې ویاله بهولې ده

۳۴:۱۸ - او د ده لپاره نورې مېوې هم شته، نو ده خپل ملگري ته وویل، په دې حال كې چې یو بل سره یې خبرې كولې: زه له تا نه په مال كې زیات یم او په ملاتړ (سړیو) كې ډېر غالب یم

۳۵:۱۸ - او دى خپل باغ ته داخل شو، په داسې حال كې چې په خپل ځان ظلم كوونكى و، ویې ویل: زه گمان نه كوم چې دا (باغ) به كله هم هلاك (او خراب) شي

۳۶:۱۸ - او زه گمان نه كوم چې قیامت قایمېدونكى دى او قسم دى كه زه خپل رب ته بوتلى شوم، نو خامخا هرومرو به زه له دې (باغ) نه غوره د بېرته ورتلو ځای ومومم

۳۷:۱۸ - ده ته خپل (مومن) ملګري وويل، په داسې حال کې چې ده ته يې جواب ورکاوه: ايا ته په هغه ذات سره کافر شوی يې چې ته يې له خاورو پيداکړې، بيا يې له نطفې نه، بيا يې ته سړی برابر کړې

۳۸:۱۸ - لېکن زه چې يم (زه وايم چې) شان دا دی چې هم الله زما رب دی، او زه له خپل رب سره هيڅوك نه شريکوم

۳۹:۱۸ - او کله چې ته خپل باغ ته داخل شوې تا دا ولې ونه ويل: مَاشَاءَ اللهُ لَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ (کېږي هغه چې الله يې اراده وکړی، هېڅ طاقت نشته مګر د الله په توفيق سره) که ته ما له خپل ځان نه په مال او اولاد کې کم وينې

۴۰:۱۸ - نو امېد دی چې ما ته به زما رب ستا له باغ نه غوره راکړي او په دغه (باغ) به له اسمانه عذاب (تندر) نازل کړي، نو هغه به وچ ښوی ميدان شي

۴۱:۱۸ - يابه د ده اوبه وچې ډوبې شي، بيا به ته د دغو (ډوبو اوبو) په لټولو له سره ونه توانېږې

۴۲:۱۸ - او د ده مېوې ګېرې کړی شوې، (هلاکې شوې) نو داسې شه چې خپل ورغوي يې (له افسوسه) مښل په هغه (مال) باندې چې ده په دغه (باغ) کې لګولی و، په داسې حال کې چې هغه د خپلو چتونو له پاسه لوېدلی و، او ده ويل: ای کاشکې ما د خپل رب سره هيڅوك نه وی شريك کړی

۴۳:۱۸ - او د ده هېڅ داسې ډله نه وه چې له الله نه غير يې دده مرسته کړې وی او نه دا پخپله بدله اخيستونکی (د ځان مدد کوونکی) و

۴۴:۱۸ - په دغه وخت کې ټول د اختيار حق الله لره دی، هغه د ثواب په لحاظ ډېر غوره دی او د انجام په لحاظ ډېر ښه

۴۵:۱۸ - او ته دوی ته د دنيايي ژوند مثال بيان کړه چې د هغو اوبو په شان دی چې مونږ له اسمان نه نازلې کړې دي، نو په دغو سره د ځمکې زرغونه يو بل سره ګډه وډه شي، بيا (دغه زرغونه) وچه کلکه ماته ماته شي، چې بادونه يې الوځوي او الله په هر شي باندې قدرت لرونکی دی

۴۶:۱۸ - مال او زامن د دنيايي ژوند زينت دی، او باقي پاتې کېدونکي نېك عملونه ستا د رب په نيز د ثواب په لحاظ غوره دي او د امېد په لحاظ ډېر ښه

۴۷:۱۸ - او (ياده کړه) هغه ورځ چې مونږ به غرونه روان کړو او ته به ځمکه ښکاره (صاف ميدان) وينې او مونږ به دوی (ټول) راجمع کړو، نو په دوی کې به يو تن هم پرې نه ږدو

۴۸:۱۸ - او دوی به خپل رب ته صف صف وړاندې کړی شي (او وبه ويلی شي:) يقينًا يقينًا تاسو مونږ ته داسې (لغړ او يواځې) راغلئ لکه چې مونږ تاسو په ړومبي ځل پيدا کړي وئ، بلکې تاسو

دا ګڼله چې مونږ به تاسو لپاره له سره کومه میعاد مقرر نه کړو

۱۸:۴۹ - او کتاب به کېښودلی شي، نو ته به مجرمان ويني چې له هغه څه نه به وېرېدونکي وي چې په ده کې دي او وايي به: ای زمونږ هلاکته! د دې کتاب (اعمالنامې) څه حال دی چې نه وړه (ګناه) پرېږدي او نه غټه مګر هغه يې حساب کړې ده او دوی به خپل کړي عملونه حاضر ومومي، او ستا رب په هيچا ظلم نه کوي

۱۸:۵۰ - او (ياد کړه) هغه وخت چې مونږ ملايکو ته وويل: تاسو ادم ته سجده وکړئ، نو دوی سجده وکړه، غير له ابليس نه، دا له جناتو څخه و، د خپل رب د حکم نافرماني يې وکړه.، ايا نو تاسو له ما نه غير هغه او د هغه اولاده دوستان جوړوئ، حال دا چې دوی ستاسو دښمنان دي، او د ظالمانو لپاره بد بدل دی

۱۸:۵۱ - ما دغه (شيطانان) د اسمانونو او ځمکې پيدا کولو ته نه دي حاضر کړي او نه د دوی د ځانونو پيدا کولو ته او زه ګمراه کوونکو لره مټ (بازو) جوړوونکی (نيونکی) نه يم

۱۸:۵۲ - او (ياده کړه) هغه ورځ چې وبه وايي (الله): تاسو زما هغو شريکانو ته اواز وکړئ چې تاسو به ګڼل، نو دوی به هغوی ته چغې ووهي، نو هغوی به دوی ته هېڅ جواب ورنه کړي او د دوی تر مينځه به مونږ د هلاکت ځای (دوزخ) وګرځوو

۱۸:۵۳ - او مجرمان به اور ويني، نو يقين به وکړي چې بېشکه دوی په ده کې لوېدونکي دي او دوی به له دغه (اور) نه د په څنګ کېدلو ځای ونه مومي

۱۸:۵۴ - او يقينًا يقينًا مونږ په دې قرآن کې د خلقو لپاره هر قسمه مثالونه مکرر بيان کړي دي، او انسان په جګړه کې تر هر شي زيات دی

۱۸:۵۵ - او نه دي منع کړي خلق له دې نه چې ايمان راوړي، کله چې دوی ته هدايت راغی او له دې نه چې د خپل رب نه مغفرت وغواړي مګر (دې خبرې) چې دوی ته د ړومبنو خلقو طريقه راشي، يا دوی ته عذاب مخامخ راشي

۱۸:۵۶ - او مونږ رسولان نه لېږو مګر زېری ورکوونکي او وېرونکي، او کافران شوي خلق په باطله سره جګړه کوي، د دې لپاره چې په دې سره حق ورك او لرې کړی. او دوی زما ايتونه او هغه څه چې دوی پرې وېرول شوي وو؛ مسخره ونيول

۱۸:۵۷ - او له هغه کس نه لوی ظالم څوك دی چې ده ته دخپل رب په ايتونو سره نصيحت ورکړی شي، نو دی له هغو نه مخ واړوي او هغه عملونه هېر کړي چې د ده لاسونو مخکې لېږلي دي، بېشکه مونږ د دوی په زړونو پردې اچولې دي، د دې لپاره چې دوی په ده پوه (نه) شي او د دوی په غوږونو کې مو کوڼوالی (اچولی دی) او که ته دوی هدايت ته بلې، نو دوی به له سره هيڅکله هم هدايت ونه مومي

۵۸:۱۸ - او هم ستا رب ډېر بخښونکی، د رحمت والا دی، که دوی یې د خپلو کړو ګناهونو په سبب نیولي وی، (نو) دوی ته به یې عذاب خامخا ژر رالېږلی و، بلکې د دوی لپاره د وعدې وخت شته، (نو) دوی به له هغه (الله) نه غیر هېڅ پناه ځای ونه مومي

۵۹:۱۸ - او دغه کلي دي چې مونږ دوی هلاك کړل، کله چې دوی ظلم وکړ او مونږ د دوی هلاکت ته یوه نېټه ټاکلې وه

۶۰:۱۸ - او (یاد کړه) هغه وخت چې موسیٰ خپل ځلمي ته وویل: زه به تل ځمه، تر هغه پورې چې د دوه دریابونو د جمع کېدو ځای ته ورسېږم، یا به ګرځمه ډېرې زمانې

۶۱:۱۸ - نو کله چې دوی دواړه د هغو دواړو (دریابونو) په خپل مینځ کې د یو ځای کېدو مقام ته ورسېدل، نو دوی خپل کب هېرکړ، نو هغه په سمندر کې (د) سرنګ (په شان) خپله لار ونیوله

۶۲:۱۸ - نو کله چې دوی (له دغه ځایه) تېر شول، خپل ځلمي ته یې وویل: ته مونږ ته زمونږ سبا ناری راوړه، بېشکه یقینًا مونږ له خپل دې سفره له ستومانۍ سره مخامخ شو

۶۳:۱۸ - هغه وویل: ایا ته خبر شوې کله چې مونږ لوېې تېرې ته ځای ونیوه، نو بېشکه ما هغه کب هېر کړ. او هغه له ما نه هېر نه کړ مګر شیطان چې زه هغه (تا ته) یاد کړم او هغه په سمندر کې خپله لاره ډېر عجیبه جوړه کړه

۶۴:۱۸ - وېې ویل: دغه هغه څه دي چې مونږ یې طلب کاوه، پس بېرته په همغو خپلو قدمونو قدم په قدم راوګرځېدل

۶۵:۱۸ - بیا نو دوی زمونږ په بنده ګانو کې یو بنده ومونده، چې مونږ هغه ته له خپله جانبه رحمت ورکړی و او له خپل جانبه مو هغه ته (خاص) علم ښوولی و

۶۶:۱۸ - ده ته موسیٰ وویل: ایا زه ستا تابع شمه په دې شرط سره چې ته به ما ته ښیې له هغه (علم) نه چې تا ته نېغه لار ښوول شوې ده

۶۷:۱۸ - هغه وویل: بېشکه ته به زما سره هیڅېرې د صبر کولو طاقت ونه لرې

۶۸:۱۸ - او ته به څنګه په هغه کار صبر وکړې چې د علم په لحاظ تا د هغه احاطه نه ده کړې

۶۹:۱۸ - هغه وویل: که الله وغواړي ته به ما ضرور صبر کوونکی ومومې او زه به ستا د حکم نافرماني نه کوم

۷۰:۱۸ - هغه وویل: که ته زما متابعت کوې، نو ته له ما نه د هېڅ شي په باره کې تر هغه پورې تپوس مه کوه چې زه تا ته د هغه ذکر شروع کړم

۷۱:۱۸ - نو دوی دواړه روان شول تر دې چې کله دوی په کشتۍ کې سواره شول، نو ده هغه کشتۍ سورۍ کړه، موسیٰ وویل: ایا تا دا د دې لپاره سورۍ کړه چې ته د دې اهل (سورلۍ)

غرق کړې، یقینًا یقینًا تا ډېر دروند (او ناروا) کار وکړ

۷۲:۱۸ - هغه وویل: ایا ما تا ته ویلي نه وو چې بېشکه ته به زما سره هیچېرې د صبر کولو طاقت ونه لرې

۷۳:۱۸ - ده وویل: ته ما په هغه کار مه نیسه چې ما په هېره وکړ او ته په ما د دې کار په وجه سختي مه راچوه

۷۴:۱۸ - نو دواړه روان شول، تر دې چې کله دوی له یو هلك سره مخامخ شول، نو ده هغه قتل کړ، (موسیٰ) وویل: ایا تا یو پاکیزه (بې گناه) نفس وواژه، بې له عوضه د بل نفس، یقینًا یقینًا تا ډېر ناکاره کار وکړ

۷۵:۱۸ - هغه (خضر) وویل: ایا ما تا ته ویلي نه وو چې بېشکه ته به زما سره د صبر کولو طاقت بېخي ونه کړى شې

۷۶:۱۸ - هغه (موسیٰ) وویل: که له دې نه بعد ما له تا نه د څه شي په باره کې پوښتنه وکړه، نو بیا ته ما د ځان مه ملگرى کوه، یقیناً ته زما له جانبه (حد د) عذر ته ورسېدې

۷۷:۱۸ - بیا دواړه روان شول تر هغه پورې چې د یو کلي اوسېدونکو ته راغلل (، نو) د هغه (کلي) له اوسېدونکو نه یې طعام (خوراك) وغوښت، نو هغوى دوى دواړو ته د مېلمستیا ورکولو نه انکار وکړ، بیا دوى په دغه (کلي) کې یو دېوال وموند چې غوښتل یې ونړېږي، نو ده (خضر) هغه سم کړ، هغه (موسیٰ) وویل: که تا غوښتلى (نو) خامخا په دې (سازولو) به دې مزدوري اخیستې وى

۷۸:۱۸ - ده وویل: دا زما په مینځ کې اوستا په مینځ کې (د) بېلتون (وخت) دى.، ژر به زه تا د هغو خبرو په حقیقت خبر کړم چې په هغو باندې تا د صبر کولو طاقت ونه کړى شو

۷۹:۱۸ - هرچې کشتۍ وه، نو هغه د هغو مسکینانو وه چې په بحر کې یې کار کاوه، نو ما اراده وکړه چې زه هغه عیبجنه کړم، په داسې حال کې چې د دوى په مخه کې یو داسې باچا و چې هره (روغه) کشتۍ به یې په زور سره اخیستله

۸۰:۱۸ - او هر چې هلك و، نو د هغه مور او پلار مومنان وو، نو مونږ له دې ووېرېدو چې دى به هغوى په سرکشۍ او کفر مجبوره کړي

۸۱:۱۸ - نومونږ وغوښتل چې دوى ته د دوى رب (داسې) بدل ورکړي (چې) د دغه (هلك) نه په پاکۍ کې غوره وي او (له دغه نه) په مهربانۍ کې ډېر نژدې وي

۸۲:۱۸ - او پاتې شو دېوال.، نو هغه د دوه یتیمو هلکانو و، چې په ښارکې وو، او له هغه نه لاندې د هغو دواړو لپاره خزانه وه او د دغو دواړو پلار نېك (سړى) و، نو ستا رب اراده وکړه چې دوى

دواړه خپلې ځوانۍ (او قوت) ته ورسي او (بیا) خپله خزانه راوباسي، ستا د رب د مهربانۍ په وجه. او دغه (کار) ما (له خپله ځانه) په خپل حکم نه دی کړی.، دغه حقیقت د هغه څه دی چې تا په هغو د صبر کولو طاقت ونشو کړی

۸۳:۱۸ - او دوی له تا نه د ذوالقرنین په باره کې تپوس کوي، ته (دوی ته) ووایه: ژر به زه تاسو ته د هغه په هکله څه احوال ولولم

۸۴:۱۸ - بېشکه مونږ ده ته په ځمکه کې قدرت ورکړی و او مونږ ده ته له هر شي نه یوه لاره (او وسیله) ورکړې وه

۸۵:۱۸ - نو ده لاره ونیوله (او هغه اسباب چې مغرب ته یې ورساوه)

۸۶:۱۸ - تر هغه پورې چې کله دی د لمر پرېوتو ځای ته ورسېده (نو) ده دغه (لمر) ومونده چې د تورو خټو په لویه چینه کې ډوبېده، او ده هغې (چینې) ته نژدې یو قوم ومونده.، مونږ ووېل: ای ذوالقرنینه! یا خو دا چې ته (دوی ته) عذاب ورکړې او یا خو دا چې ته د دوی په هکله ښه لار ونیسي

۸۷:۱۸ - ده ووېل: هرچې هغه کس دی چې (له دې نه بعد) ظلم (شرك) وکړي، نو ژر به مونږ ده ته (دنیایي) سزا ورکړو، بیا به دی خپل رب ته بېرته بوتلی شي، نو هغه به ده ته عذاب ورکړي ډېر سخت عذاب

۸۸:۱۸ - او پاتې شو هغه کس چې ایمان راوړي او نېك عمل وکړي، نو د هغه لپاره په بدله کې غوره ښېګڼه ده (چې جنت دی) او ژر ده چې مونږ به ده ته له خپله کاره اساني ووایو (پیدا کړو)

۸۹:۱۸ - بیا ده بله لاره ونیوله (او هغه اسباب چې مشرق ته یې ورساوه)

۹۰:۱۸ - تر هغه پورې چې کله دی د لمر ختو ځای ته ورسېده (، نو) دغه (لمر) یې ومونده چې په داسې قوم راختېژي چې مونږ دوی ته د دغه (لمر) نه لاندې کومه پرده نه وه ګرځولې

۹۱:۱۸ - همداسې (حال) و. او یقینًا مونږ د خبردارۍ په لحاظ په هغه څه احاطه کړې وه چې له ده سره وو

۹۲:۱۸ - بیا ده بله لاره ونیوله (او نور اسباب یې تیار کړل)

۹۳:۱۸ - تر هغه پورې چې کله دی د دوه غرونو مینځ ته ورسېده (، نو) د دغو دواړو وړاندې یې داسې قوم ومونده چې نژدې نه وو چې دوی (د ذوالقرنین) په خبره پوه شي

۹۴:۱۸ - دوی ووېل: ای ذوالقرنینه! بېشکه یاجوج او ماجوج په ځمکه کې فساد کوونکي دي، نو ایا مونږ تا لپاره لګښت مقرر کړو، د دې لپاره چې ته زمونږ په مینځ کې او د دوی مینځ کې یو دېوال جوړ کړې؟

۹۵:۱۸ - ده وویل: هغه څیزونه چې ما ته په هغو کې زما رب قدرت راکړی دی (هغه) ډېر غوره دي، نو تاسو زما سره مرسته په محنت (او کار) سره وکړئ، زه به ستاسو په مینځ کې او د دوی په مینځ کې ښه مضبوط دېوال جوړ کړم

۹۶:۱۸ - تاسو ما ته د اوسپنې تختې راکړئ، تر هغه پورې (يې ايښودلې چې) کله دغه (دېوال) د (غرونو) دوو څوکو په مینځ کې برابر شو، ويې ويل چې پو کړئ، تر هغه پورې چې کله يې دغه (اوسپنه) اور وگرځوله (، نو) ويې ويل: تاسو ما ته راوړئ چې زه په دې (دېوال) وېلې کړی شوې تانبه توئ کړم

۹۷:۱۸ - نو د دوی به طاقت نه وي چې په ده وخېژي او نه به دوی د سوري کولو طاقت ولرلی شي

۹۸:۱۸ - دغه زما د رب له جانبه یو رحمت دی، نو کله چې زما د رب وعده راشي دا به د ځمکې سره هموار وگرځوي او زما د رب وعده حقه ده

۹۹:۱۸ - او مونږ به په دغه ورځ کې د دوی ځینې پرېږدو چې په ځینو نورو کې به موجونه وهي (ننوځي به) او په شپېلۍ کې به پوکی وکړی شي، نومونږ به دوی راجمع کړو، پوره جمع کول

۱۰۰:۱۸ - او په دغې ورځ به مونږ جهنم کافرانو ته راوړاندې کړو، ښه راوړاندې کول

۱۰۱:۱۸ - هغو کسانو ته چې د هغوی سترگې زما له ذکر نه په پرده کې وې او دوی اورېدل نشو کولی

۱۰۲:۱۸ - ایا نو کافران شویو کسانو گمان کړی دی چې دوی به له ما نه غیر زما بنده گان کارسازوونکي ونیسي (او بیا به يې هم زه نه په عذاب کوم، نه) بېشکه مونږ د کافرانو لپاره جهنم مېلمستیا تیار کړی دی

۱۰۳:۱۸ - ته (دوی ته) ووایه: ایامونږ تاسو ته د اعمالو په لحاظ د تر ټولو زیاتو تاواني کسانو خبر درکړو؟

۱۰۴:۱۸ - دوی هغه کسان دي چې په دنیایي ژوند کې د دوی منډې توی (او بې ځایه) تللي دي، حال دا چې دوی دا گمان کوي چې یقیناً هم دوی عمل ښه کوي

۱۰۵:۱۸ - هم دغه کسان دي چې د خپل رب په ایتونو او د هغه په ملاقات سره کافر (او انکاري) شوي دي، نو د دوی عملونه برباد شول، نو د قیامت په ورځ به مونږ د دوی لپاره هېڅ وزن ونه درووو

۱۰۶:۱۸ - دغه، د دوی بدله جهنم دی په سبب د دې چې دوی کافران شول او زما ایتونه او زما رسولان يې مسخره نیولي وو

۱۰۷:۱۸ - بېشکه هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي، د دوی لپاره د فردوس (اعلٰی) جنتونه مېلمستیا دي

۱۰۸:۱۸ - چې په دغو کې به تل وي، دوی به له دغو نه ګرځېدل (او تبدیلېدل) نه غواړي

۱۰۹:۱۸ - ته (دوی ته) ووایه: كه سمندر زما د رب د کلماتو لپاره سیاهي وي، (نو) سمندر به خامخا خلاص شي، مخکې له دې چې زما د رب کلمات تمام شي، اګر كه مونږ د دغه (سمندر) په مثل مدد هم راوړو

۱۱۰:۱۸ - ته (دوی ته) ووایه: بېشکه همدا خبره ده چې زه یواځې ستاسو په شان بشر یم، ما ته وحي کولی شي چې بېشکه ستاسو معبود یواځې یو معبود دی، نو هغه څوك چې د خپل رب د ملاقات امېد لري، نو هغه دې نېك عمل وکړي او د خپل رب په عبادت کې دې هیڅوك نه شریکوي

## (مکي) مريم - مريم ۱۹

۱:۱۹ - کاف، ها، یا، عین، صاد

۲:۱۹ - (دا) ستا د رب د رحمت ذکر دی په خپل بنده زکریا باندې

۳:۱۹ - کله چې ده خپل رب ته اواز وکړ ډېر ورو اواز

۴:۱۹ - ویې ویل: ای زما ربه! یقینًا زه چې یم زما هډوکي کمزوري (ضعیف) شوي دي او سر (مې) د سپین والي په وجه شغلې وهي، په دې حال کې چې ای زما ربه! زه هیڅکله له تا نه په سوال سره محروم (او نا امېده) نه یم پاتې شوی

۵:۱۹ - او بېشکه زه چې یم، خپل وروسته له خپلوانو نه وېرېږم، او زما ښځه له شروع نه شنډه ده، نو ته ما ته له خپل جانب نه یو وارث راکړه

۶:۱۹ - چې وارث شي د دین زما او وارث شي د دین د اولاد د یعقوب او دی وګرځوه ای ربه غوره شوی

۷:۱۹ - ای زکریا! بېشکه مونږ تا ته د داسې هلك زېری درکوو چې د ده به نوم یحیٰی وي، مونږ ده ته له دې نه مخکې څوك همنامی نه دی ګرځولی

۸:۱۹ - ده وویل: ای زما ربه! زما لپاره به هلك څنګه کېږي، په داسې حال کې چې زما ښځه له شروع نه شنډه ده اویقینًا زه د ډېر زوړوالي په وجه ډېرې کمزورۍ ته رسېدلی یم

۹:۱۹ - (الله) ورته وویل: هم داسې دي،، ستا رب فرمایلي دي چې دغه (کار) ما ته ډېر اسان دی

او تحقیق ته ما پیدا کړی یې له دې نه مخکې، حال دا چې ته هېڅ شی نه وې

۱۰:۱۹ - ده وویل: ای زما ربه! ته زما لپاره یوه نښه مقرره کړه (الله) وویل: ستا نښه داده چې ته به له خلقو سره درې شپې (او ورځې) خبرې نشې کولی، په داسې حال کې چې ته به ښه روغ یې

۱۱:۱۹ - نو دی په خپل قوم باندې له عبادت ځای څخه راووت، پس دوی ته یې اشاره وکړه داسې چې تاسو سبا او بېګاه تسبیح وایئ

۱۲:۱۹ - ای یحیٰی! ته دغه کتاب په قوت سره ونیسه، او مونږ ده ته حکم (حکمت او نبوت) ورکړ، په داسې حال کې چې دی هلك و

۱۳:۱۹ - او له خپل جانب نه مو (ده ته)، مهرباني (ورکړې وه) او پاکي۔ او دی ډېر پرهېزګاره و

۱۴:۱۹ - او له خپل مور و پلار سره نېکي کوونکی و، او سرکشه، نافرمانه نه و

۱۵:۱۹ - او په ده دې سلام وي په هغې ورځ چې دی وزېږول شو او په هغې ورځ چې دی به مري او په هغې ورځ چې دی به بیا ژوندی راپورته کړی شي

۱۶:۱۹ - او ته په کتاب کې (قصه د) مریم یاده کړه کله چې هغه له خپلې کورنۍ نه هغه ځای ته په څنګ شوه چې (د کور) مشرقي جانب و

۱۷:۱۹ - نو دې د دوی په طرف پرده ونیوله، نو مونږ دې ته خپل روح ولېږه، نو هغه دې ته خپل شکل د کامل سړي جوړ کړ

۱۸:۱۹ - (نو) دې وویل: بېشکه زه له تا نه په رحمٰن پورې پناه نیسم، که چېرې ته پرهېزګاره یې

۱۹:۱۹ - هغه وویل: یقینًا زه خو یواځې ستا د رب رسول یم، د دې لپاره چې (د خپل رب په حکم) تا ته یو ډېر پاك هلك درکړم

۲۰:۱۹ - دې وویل: زما به هلك څنګه پیدا شي؟ حال دا چې ما ته هېڅ بشر نه دی رارسېدلی، او زه چېرې بدکاره هم نه یم

۲۱:۱۹ - ویې ویل: خبره همداسې ده (لېکن) ستا رب فرمایلي دي: دغه کار ما ته ډېر اسان دی او د دې لپاره چې مونږ دی د خلقو لپاره نښه وګرځوو او له خپل جانب نه رحمت۔ او دغه یو فیصله شوی کار دی

۲۲:۱۹ - نو (مریم) په دغه (عیسٰی) سره حامله شوه، نو سره له ده یو لرې ځای ته په څنګ شوه

۲۳:۱۹ - نو دغې (مریم) لره د لنګوال درد د کجورې د ونې تنې (ډډ) ته راوسته، دې وویل: ای کاشکې زه له دې نه مخکې مړه شوې وی او زه بېخي هېره شوې، له زړونو وتلې وی

۲۴:۱۹ - نو دې ته یې د دې له لاندې نه اواز وکړ چې مه خفه کېږه، یقینًا ستا رب له تا نه لاندې

چینه پیدا کړې ده

۲۵:۱۹ - او خپل ځان ته د کجورې تنه راوخوځوه، هغه به په تا پخې تازه لوندې کجورې راوغورځوي

۲۶:۱۹ - پس (دغه کجورې) خوره او (دغه اوبه) څښه او (په عیسٰی سره) سترګې یخې کړه، پس که خامخا تا له خلقو ځنې یو څوك ولیده، نو (ورته) وایه: بېشکه ما د رحمٰن لپاره په ځان د روژې نذر منلی دی، پس نن ورځ به زه له سره خبرې ونه کړم له هېڅ یوه انسان سره

۲۷:۱۹ - نو دې (مریمې) هغه (عیسٰی) خپل قوم ته راوړ، چې دی یې راخیستی و، دوی (ورته) وویل: ای مریمې! یقینًا یقینًا تا ډېر بدکار کړی دی

۲۸:۱۹ - ای د هارون خورې! ستا پلار خو بد سړی نه و او نه ستا مور بدکاره (بد عمله) وه

۲۹:۱۹ - نو هغې ده (عیسٰی) ته اشاره وکړه، دوی وویل: مونږ له هغه چا سره څنګه خبرې وکړو چې دی په غېږ کې دی، چې وړوکی دی

۳۰:۱۹ - ده وویل: بېشکه زه د الله بنده یم، هغه ما ته کتاب راکړی دی او زه یې نبي ګرځولی یم

۳۱:۱۹ - او زه یې برکت ناك ګرځولی یم په هر ځای کې چې اوسم او ده ما ته په لمانځه او زکات سره کلك حکم راکړی دی، ترڅو چې زه ژوندی یم

۳۲:۱۹ - (او زه یې ګرځولی یم) له خپلې مور سره نېکي کوونکی او زه یې سرکشه، بدبخته نه یم ګرځولی

۳۳:۱۹ - او په ما دې سلام وي په هغې ورځ چې زه وزېږول شوم او په هغې ورځ چې زه به مرم او په هغې ورځ چې زه به بیا ژوندی راپورته کولی شم

۳۴:۱۹ - دغه عیسٰی د مریمې زوی دی (الله د ده په باره کې) حقه خبره کړې ده، هغه چې دوی په هغې کې سره جګړې کوي

۳۵:۱۹ - د الله لپاره نه ښایېږي چې دی دې څوك اولاد ونیسي، ده لره پاکي ده.، دی چې کله د څه کار فیصله وکړي، نو بېشکه همدا خبره ده چې ده ته وایي: وشه! نو هغه (کار) وشي

۳۶:۱۹ - او بېشکه چې الله زما رب دی او ستاسو رب دی، نو تاسو د ده عبادت کوئ، دا ډېره نېغه لار ده

۳۷:۱۹ - نو دغه ډلې په خپل منځ کې سره مختلفې شوې، نو کافران شویو کسانو لپاره د ډېرې سترې ورځې له حاضرېدو هلاکت (او خرابي) دی

۳۸:۱۹ - دوی به څه ښه اورېدونکي او څه ښه لیدونکي وي! په هغې ورځ چې مونږ ته به راځي، لېکن ظالمان نن ورځې په ښکاره ګمراهۍ کې دي

۳۹:۱۹ - او ته دوی د حسرت (او ارمان) له ورځې نه ووېروه کله چې به کار فیصله کړی شي، حال دا چې دوی (اوس) په غفلت کې دي او دوی ایمان نه راوړي

۴۰:۱۹ - بېشکه مونږ چې یو، همم دا مونږ د ځمکې او د هغه چا چې په دغه (ځمکه) باندې دي؛ وارثان کېږو او خاص مونږ ته به دوی بېرته راوستی شي

۴۱:۱۹ - او په کتاب کې ابراهیم یاد کړه، بېشکه دی ډېر رېښتینی (او) نبي و

۴۲:۱۹ - کله چې ده خپل پلار ته وویل: ای زما پلار جانه! ته ولې د هغه څیز عبادت کوې چې نه (څه) اوري او نه ویني او له تا نه هېڅ شی (تکلیف) نشي لرې کولی

۴۳:۱۹ - ای زما پلار جانه! بېشکه زه چې یم یقینًا ما ته (د الله له جانبه) هغه علم راغلی دی چې تا ته نه دی راغلی، نو ته زما پیروي وکړه، زه به تا ته نېغه (سمه) لار وښیم

۴۴:۱۹ - ای زما پلار جانه! د شیطان بندګي مه کوه، یقینًا شیطان له رحمان نه نافرمان دی

۴۵:۱۹ - ای زما پلارجانه! بېشکه زه چې یم، زه له دې نه وېرېږم چې تا ته به د رحمٰن له جانبه عذاب درورسېږي، نو ته به د شیطان دوست شې

۴۶:۱۹ - هغه (پلار د ابراهیم) وویل: ای ابراهیمه! ایا ته زما له معبودانو نه مخ ګرځوونکی یې، یقینًا که ته منع نه شوې، نو زه به تا خامخا ضرور سنګسار کړم او له ما څخه ډېره موده لرې شه

۴۷:۱۹ - ده وویل: په تا دې سلام وي، ضرور به زه تا لپاره له خپل رب نه مغفرت غواړم، بېشکه دی په ما باندې ډېر مهربان دی

۴۸:۱۹ - او زه جدا کېږم له تاسو نه او له هغو څیزونو نه چې تاسو یې له الله نه غیر بلئ، او زه خپل رب رابلم، امېد دی چې زه به د خپل رب په رابللو سره بدبخته نشم

۴۹:۱۹ - نو کله چې دی له دوی نه او له هغو نه چې دغه خلق یې له الله نه غیر عبادت کوي؛ بېل شو (، نو) مونږ ده ته اسحق او یعقوب عطا کړل او دا هر یو مونږ نبیان ګرځولي وو

۵۰:۱۹ - مونږ دغو ته له خپل رحمته عطا ورکړه او مونږ دوی ته د صدق ډېره اوچته ژبه ورکړې وه

۵۱:۱۹ - او په کتاب کې موسٰی یاد کړه، بېشکه چې دی خالص کړی شوی و او رسول (او)، نبي و

۵۲:۱۹ - او مونږ ده ته د طور غر له ښي اړخ نه اواز کړی و او مونږ دی قریب کړ، چې د راز خبرې مو ورسره کولې

۵۳:۱۹ - او مونږ ده ته له خپل رحمته د ده ورور هارون ورکړ، چې نبي و

۵۴:۱۹ - او په کتاب کې اسماعیل یاد کړه، بېشکه دی د وعدې رښتینی و او رسول (او) نبي و

۵۵:۱۹ - او ده به خپل اهل ته په لمانځه او زكات سره حكم كاوه او دى د خپل رب په نيز پسنديده و

۵٦:۱۹ - او په كتاب كې ادريس ياد كړه، يقينًا دى رښتينى (او) نبي و

۵۷:۱۹ - او دى مونږ ډېر اوچت ځاى ته پورته كړى دى

۵۸:۱۹ - دغه خلق هغه كسان دي چې الله په دوى باندې له انبياوو څنې انعام كړى دى، د ادم په اولاده كې او د هغه چا (په اولاد كې) چې مونږ له نوح سره بار كړي وو او د ابراهيم او اسرائيل (يعقوب) په اولاده كې۔ او له هغه چا نه چې مونږ (ورته) هدايت كړى و او مونږ غوره كړي وو كله چې به په دوى د رحمٰن ايتونه ولوستى شول (نو) دوى به پرېوتل، سجده كوونكي او ژړېدونكي

۵۹:۱۹ - نو له دوى نه وروسته داسې بد ځاى ناستي پيدا شول چې لمونځونه يې ضايع كړل او د شهوتونو پيروي يې وكړه، نو ژر به دوى د خپلې بدۍ له انجام سره ملاقات وكړي

٦۰:۱۹ - مگر هغه څوك چې توبه وباسي او ايمان راوړي او نېك عمل وكړي، نو دغه كسان دي چې دوى به جنت ته داخلېږي او په دوى به هېڅ شى ظلم نه كېږي

٦۱:۱۹ - د تل اوسېدونې جنتونو ته، هغه چې رحمٰن يې وعده كړې ده له خپلو بنده گانو سره په ناليدلو، بېشكه دى (الله) چې دى، د ده وعده (خامخا) راتلونكې ده

٦۲:۱۹ - دوى به په دغو (جنتونو) كې لغوه خبرې نه اوري غير له سلام نه، او د دوى لپاره په دغو (جنتونو) كې سبا او بېگاه د دوى رزق دى

٦۳:۱۹ - دغه هغه جنتونه دي چې مونږ يې په خپلو بنده گانو كې هغه څوك وارث گرځولو چې پرهېزگاره وي

٦۴:۱۹ - او (جبريل ووېل) مونږ نه راكوځېږو مگر د خپل رب په امر سره، خاص د هغه لپاره دي هغه څه چې زمونږ په وړاندې دي او هغې چې زمونږ وروسته دي او هغه څه چې د دغو په مينځ كې دي۔ او ستا رب هيڅكله هېروونكى نه دى

٦۵:۱۹ - (دغه) د اسمانونو او ځمكې رب دى او د هغه څه چې د دغو دواړو په مينځ كې دي، نو ته د ده عبادت كوه او د ده په عبادت ښه ټينگ اوسه۔، ايا ته د ده كوم همنام پېژنې

٦٦:۱۹ - او دغه (له بعث نه منكر) انسان وايي: ايا كله چې زه مړ شم خامخا عنقريب به زه بيا ژوندى را ايستلى شم

٦۷:۱۹ - ايا دغه انسان نه يادوي چې بېشكه مونږ دى له دې نه مخكې پيدا كړى و، او دى هېڅ شى نه و

٦۸:۱۹ - نو قسم دى ستا په رب چې مونږ به خامخا ضرور دوى او شيطانان ټول راجمع كړو، بيا

به مونږ دوی خامخا ضرور د دوزخ چاپېره په ګونډو پراته راحاضر کړو

۶۹:۱۹ - بیا به خامخا ضرور مونږ له هرې ډلې نه راوباسو هر هغه څوك چې د سرکشۍ په لحاظ په رحمٰن باندې ډېر سخت دی

۷۰:۱۹ - بیا خامخا مونږ په هغو خلقو ښه عالمان یو چې هغوی دغه (دوزخ) ته د داخلولو (او سوځولو) ښه لایق دي

۷۱:۱۹ - او نشته دی په تاسو کې هیڅوك مګر ده ته واردېدونکی دی دغه (واردېدل) ستا د رب په ذمه یقیني او فیصله کړی شوي دي

۷۲:۱۹ - بیا به مونږ هغو کسانو ته نجات ورکړو چې پرهېزګاري یې کړې ده او ظالمان (کافران) به په دغه (دوزخ) کې په ګونډو پراته پرېږدو

۷۳:۱۹ - او کله چې دوی ته زمونږ ایتونه لوستی شي، چې ښه واضح دي، (، نو) کافران شوي کسان هغو کسانو ته چې ایمان یې راوړی دی؛ وايي په دغو دواړو ډلو کې کومه یوه د مقام په لحاظ ډېره غوره او د مجلس په لحاظ ډېر ښایسته ده

۷۴:۱۹ - او له دوی نه مخکې مونږ څومره ډېر قرنونه (امتونه) هلاك کړي دي، چې هغوی د سامانونو او لیدنې (شکل) په لحاظ ډېر ښه وو

۷۵:۱۹ - ته (دوي ته) ووایه: هر هغه څوك چې په ګمراهۍ کې وي، نو رحمٰن دې ده ته مهلت ورکړي، مهلت ورکول، تر هغه پورې چې کله دوی هغه څه ووینې چې له دوی سره یې وعده کولی شي، یا عذاب، یا قیامت، نو دوی به ژر پوه شي چې څوك دی د ځای په لحاظ ډېر بد او د لښکر په لحاظ ډېر کمزوری

۷۶:۱۹ - او الله هغو کسانو ته هدایت نور هم زیاتوي چې نېغه لار یې موندلې ده، او نېکۍ باقي پاتې کېدونکې ستا د رب په نیز د ثواب په لحاظ ډېرې غوره دي او د بېرته ورتللو په لحاظ ډېرې ښې دي

۷۷:۱۹ - ایا تا هغه کس لیدلی چې زمونږ په ایتونو باندې کافر شوی دی او وايي چې ما ته به (په اخرت کې) خامخا ضرور مال او اولاد راکول کېږي

۷۸:۱۹ - ایا دی په غیبو خبر شوی دی، یا ده د رحمٰن په نیز کومه وعده اخیستې ده

۷۹:۱۹ - داسې نه ده ضرور مونږ لیکو هغه څه چې دی یې وايي او ده ته به له عذابه وغځوو، غځول

۸۰:۱۹ - او په میراث به اخلو هغه څه چې دی یې وايي، او دی به مونږ ته یواځې (ځانله) راځي

۸۱:۱۹ - او دوی له الله نه غیر (نور) معبودان ونیول، د دې لپاره چې دغه (معبودان) د دوی د عزت

سبب شي

۸۲:۱۹ - داسې نه ده، ژر به دغه (معبودان) د دوی په عبادت سره منکر شي او دغه به د دوی په ضد (او خلاف) شي

۸۳:۱۹ - ایا ته نه ګورې چې مونږ شیطانان په کافرانو باندې راخوشې کوو، چې دوی تېزوي، تېزول

۸۴:۱۹ - نو ته په دوی باندې (د عذاب په راتلو کې) تلوار مه کوه، بېشکه مونږ د دوی لپاره شمېرل کوو، شمېرل

۸۵:۱۹ - (یاده کړه) هغه ورځ چې مونږ به متقیان راجمع کړو د رحمٰن په طرف بلل شوي سواره مېلمانه

۸۶:۱۹ - او مجرمان (کافران) به د جهنم په طرف تږي پیاده شړو

۸۷:۱۹ - هغوی د شفاعت اختیار نه لري، مګر هغه څوك چې د رحمٰن په نیز یې وعده اخیستې ده

۸۸:۱۹ - او دغه (کافران) وايي: رحمٰن د ځان لپاره اولاد نیولی دی

۸۹:۱۹ - یقینًا یقینًا تاسو ډېره لویه د ګناه خبره وکړه

۹۰:۱۹ - نژدې دي چې اسمانونه له دې نه وچوي او ځمکه ټوټې ټوټې شي او غرونه راولوېږي ذرې ذرې

۹۱:۱۹ - په دې خبره چې دوی د رحمٰن لپاره اولاد وباله

۹۲:۱۹ - او رحمٰن ته نه ښايي چې اولاد ونیسي

۹۳:۱۹ - نه دي دغه هر یو چې په اسمانونو او ځمکه کې دي مګر رحمٰن ته راتلونکي دي، په دې حال کې چې بنده به وي

۹۴:۱۹ - یقینًا یقینًا ده دوی راګېر کړي دي او دوی یې شمېرلي دي، شمېرل

۹۵:۱۹ - او هر یو له دوی نه ده ته راتلونکی دی په ورځ د قیامت کې یواځې

۹۶:۱۹ - بېشکه هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي ژر به رحمٰن د دوی لپاره (د خلقو په زړونو کې) مینه (او محبت) پیدا کړي

۹۷:۱۹ - پس بېشکه همدا خبره ده چې مونږ دغه (قرآن) ستا په ژبه آسان کړی دی، د دې لپاره چې ته په ده سره پرهېزګارانو ته زېری ورکړې او ته په ده سره ډېر جګړه کوونکی قوم ووېروې

۹۸:۱۹ - او له دوی نه مخکې مونږه څومره ډېر قرنونه هلاك کړي دي! ایا ته په دوی کې یو تن محسوسوې، یا ته د دوی کوم نرم غږ (اواز) هم اورې

# (مکي) طه - طه ۲۰

۱:۲۰ - طا، ها

۲:۲۰ - مونږ قرآن په تا باندې د دې لپاره نه دی نازل کړی چې ته په سختۍ او مشقت کې پرېوځې

۳:۲۰ - مګر (نازل کړی دی مونږ) نصیحت د هغه چا لپاره چې وېرېږي

۴:۲۰ - (نازل کړی شوی دی) په نازلېدلو سره د هغه (الله) له جانبه چې ځمکه او ډېر اوچت اسمانونه یې پیدا کړي دي

۵:۲۰ - رحمٰن په عرش باندې برقراره شو

۶:۲۰ - خاص د ده لپاره دي هغه څه چې په اسمانونو کې دي او هغه څه چې په ځمکه کې دي او هغه څه چې د دواړو په مینځ کې دي او هغه څه چې د لوندې ځمکې نه لاندې دي

۷:۲۰ - او که ته خبره په جهر سره کوې، نو یقینًا هغه په پټه خبره او په ډېره پټه خبره هم پوهېږي

۸:۲۰ - الله (چې دی) نشته دی هېڅ لایق د عبادت مګر هم دی دی، خاص د ده لپاره تر ټولو ښکلي نومونه دي

۹:۲۰ - او ایا تا ته د موسٰی قصه (خبره) راغلې ده

۱۰:۲۰ - کله چې ده اور ولیده، نو خپل اهل ته یې وویل: تاسو ایسار شئ، بېشکه ما اور ولیده، کېدی شي چې زه له هغه نه تاسو ته لګولې (بله) لمبه راوړم، یا به په اور باندې څه لار ښوونه (لار ښود) ومومم

۱۱:۲۰ - نو کله چې دی دغه (اور) ته راغی، ده ته اواز وکړی شو چې ای موسٰی!

۱۲:۲۰ - بېشکه زه چې یم، زه ستا رب یم، نو ته خپلې پڼې وباسه، بېشکه ته په مقدسه (سپېڅلې) وادۍ (دره) طُوٰی کې یې

۱۳:۲۰ - او ته ما غوره کړی یې، نو ته هغه څه ته ښه غوږ شه چې وحي کولی شي

۱۴:۲۰ - بېشکه زه چې یم، زه الله یم، نشته دی هېڅ لایق د عبادت مګر همدا زه یم، نو ته زما عبادت کوه، او زما د یادولو لپاره لمونځ قایموه

۱۵:۲۰ - بېشکه قیامت راتلونکی دی، زه غواړم چې دغه (قیامت) پټ وساتم، د دې لپاره چې هر نفس ته د هغو عملونو په سبب بدله ورکړی شي چې دی یې کوي

۱۶:۲۰ - نو تا دې هیڅکله بند نه کړي له دغه (قیامت) نه هغه څوك چې په ده ایمان نه راوړي او هغه د خپل خواهش پیروي کوي (، ګنې) نو ته به هلاك شې

۲۰:۱۷ - او ای موسیٰ! ستا په ښي لاس کې څه شی دی؟

۲۰:۱۸ - ده ووېل: دا زما امسا ده په دې زه تکیه لګوم، او په دې سره زه خپلو ګډو (بیزو) ته پاڼې څنډوهم، او زما لپاره په دې کې نور حاجتونه (او فایدې) هم دي

۲۰:۱۹ - (الله) ووېل: ای موسیٰ! ته دا وغورځوه

۲۰:۲۰ - نو ده دغه وغورځوله، نو ناڅاپه دغه (امسا) مار شو، منډې یې وهلې

۲۰:۲۱ - (الله) ووېل: ته دا راونیسه، او ته مه وېرېږه، ژر به مونږ دا خپل ړومبني شکل ته راوګرځوو

۲۰:۲۲ - او ته خپل لاس خپل تخرګ ته پیوست کړه، دا به راووځي، چې تك سپین به وي، بې له عیب (او بیمارۍ) نه، په داسې حال کې چې دا بله نښه (او معجزه) ده

۲۰:۲۳ - د دې لپاره چې مونږ تا ته د خپلو ترټولو لویو نښو ځنې (څه) وښیو

۲۰:۲۴ - ته فرعون ته لاړ شه، بېشکه ده سرکشي شروع کړې ده

۲۰:۲۵ - ده ووېل: ای زما ربه! ته ما لره زما سینه (خلاصه) پرانیځه

۲۰:۲۶ - او ما ته زما کار اسان کړه

۲۰:۲۷ - او زما له ژبې نه غوټه پرانیځه

۲۰:۲۸ - چې دوی زما په خبره پوه شي

۲۰:۲۹ - او زما لپاره زما له اهل نه یو وزیر (مددګار) وټاکه

۲۰:۳۰ - هارون، چې زما ورور دی

۲۰:۳۱ - په ده سره ته زما مَلا قوي کړه

۲۰:۳۲ - او دی زما په کار کې شریك کړه

۲۰:۳۳ - د دې لپاره چې مونږ ستا ډېره تسبیح ووایو

۲۰:۳۴ - او ستا ډېر ذکر وکړو

۲۰:۳۵ - بېشکه هم ته زمونږ حال ښه لیدونکی یې

۲۰:۳۶ - (الله) ووېل: ای موسیٰ! یقینًا تا ته ستا سوال درکړی شو

۲۰:۳۷ - او یقینًا یقینًا مونږ په تا باندې یو ځل بل احسان کړی و

۲۰:۳۸ - کله چې مونږ ستا مور ته الهام وکړ هغه چې (تا ته اوس) وحي کولی شي

۲۰:۳۹ - چې ته (ای مورې د موسیٰ) دا (موسیٰ) په تابوت (صندوق) کې واچوه، بیا دغه

(صندوق) په سیند کې وغورځوه، نو دغه (صندوق) لره دې سیند په ساحل کې وغورځوي، چې دغه (موسیٰ) لره ونیسي زما دښمن او د ده دښمن او ما په تا باندې له خپل جانبه محبت اچولی و، او د دې لپاره ستا تربیت زما د سترګو په وړاندې وشي

۴۰:۲۰ - کله چې ستا خور (په تا پسې) روانه وه (ته یې ولیدې چې د هیچا تی (پی،) نه اخلې) نو دې ویل: ایا زه تاسو ته هغه څوك وښیم چې د ده کفالت (او تربیت) به کوي.، نو ته مونږ خپلې مور ته بېرته راوستې، د دې لپاره چې د هغې سترګې یخې شي او غمژنه نشي او تا یو کس مړ کړی و، نو ته مونږ له غم نه خلاص کړې. او ته مونږ په قسما قسم ازموینو سره وازمایلې، نو تا څو کاله په اهل مدین کې تېر کړل، بیا ته په ټاکلې اندازې سره راغلې، ای موسیٰ!

۴۱:۲۰ - او ته ما د خپل ځان لپاره تیار کړی یې

۴۲:۲۰ - ته لاړ شه او ستا ورور دې هم، زما په معجزو سره او تاسو دواړه زما په ذکر (یاد) کې سستي مه کوئ

۴۳:۲۰ - تاسو دواړه فرعون ته لاړ شئ، بېشکه هغه باغي شوی دی

۴۴:۲۰ - نو تاسو هغه ته ډېره نرمه خبره وکړئ، ښایي چې دی پند واخلي، یا ووېرېږي

۴۵:۲۰ - دواړو وویل: ای زمونږه ربه! بېشکه مونږ له دې نه وېرېږو چې دی به زمونږ سره زیاتی وکړي، یا به سرکشي شروع کړي

۴۶:۲۰ - (الله) وویل: تاسو مه وېرېږئ، بېشکه زه له تاسو سره یم، زه اورم او زه وینم

۴۷:۲۰ - نو تاسو ده ته ورشئ، پس (ورته) ووایئ چې بېشکه مونږ ستا د رب رسولان یو، نو ته زمونږ سره بني اسرائیل خوشې کړه، او ته دوی مه په عذابوه، په تحقیق مونږ تا ته ستا د رب له معجزې سره راغلي یو، او (له عذاب نه) سلامتي ده د هغه چا لپاره چې د هدایت پیروي وکړي

۴۸:۲۰ - بېشکه مونږ چې یو، یقینًا مونږ ته وحي کړی شوې ده چې بېشکه عذاب په هغه چا دی چې (د رسولانو) تکذیب کوي او (له اسلامه) مخ ګرځوي

۴۹:۲۰ - ده (فرعون) وویل: ای موسیٰ ستاسو د دواړو رب څوك دی؟

۵۰:۲۰ - ده وویل: زمونږ رب هغه ذات دی چې هر شي ته یې د ده (موافق) شکل ورکړی دی، بیا یې لار ښودلې ده

۵۱:۲۰ - (فرعون) وویل: د ړومبنو زمانو د خلقو څه حال دی؟

۵۲:۲۰ - ده وویل: د هغو علم زما له رب سره دی په یو کتاب کې، زما له رب نه څه ورَکېږي او نه ترې هېرېږي

۵۳:۲۰ - هغه ذات چې تاسو لپاره یې ځمکه فرش ګرځولې ده او تاسو لپاره یې په دې کې لارې

چلولې دي او له بره نه يې اوبه نازلې کړې دي، پس په دغو (اوبو) سره مونږ بېلا بېل (او) قسما قسمہ زرغونې را ايستلي دي

۵۴:۲۰ - تاسو يې خورئ او خپل څاروي (په کې) څروئ، بېشکه په دغو (شيانو) کې د عقل والاو لپاره يقينًا ډېرې نښې دي

۵۵:۲۰ - له همہ دې (ځمکې) نه مونږ تاسو پيدا کړي يئ او په همہ دې کې به مونږ تاسو ننه باسو، او بل کرت به مونږ تاسو راوباسو

۵۶:۲۰ - او يقينًا يقينًامونږ ده ته خپلې ټولې نښې (او معجزې) وروښوولې، نو ده تکذيب وکړ او انکار يې وکړ

۵۷:۲۰ - وويل: (فرعون) ايا ته مونږ ته راغلى يې اى موسٰى؟، د دې لپاره چې ته په خپل سحر (جادو) سره مونږ له خپلې ځمکې نه وباسې

۵۸:۲۰ - نو مونږ به خامخا ضرور تا ته د دغه (سحر) په مثل سحر راوړو، نو ته زمونږ په مينځ کې او په خپل مينځ کې يوه وعده مقرره کړه چې نه به مونږ د هغې مخالفت کوو او نه ته.، داسې ځاى چې مساوي (هوار) وي

۵۹:۲۰ - ده وويل: ستاسو د وعدې وخت د زينت (او جشن) ورځ ده او دا چې خلق دې د څاښت په وخت کې راجمع کړى شي

۶۰:۲۰ - نو فرعون وگرځېده، نو خپل مکر (او چل) يې راجمع کړ، بيا راغى

۶۱:۲۰ - (موسٰى جادوگرو ته) وويل: تاسو هلاك شئ! په الله باندې دروغ مه تړئ (گنې) نو هغه به تاسو په عذاب سره هلاك کړي، او په تحقيق نا امېده (او نامراد) شو هغه کس چې (په الله) يې دروغ وتړل

۶۲:۲۰ - نو دغو (جادوگرو) په خپل کار کې په خپل مينځ سره جگړه وکړه او دغه پټه مشوره يې خفيه وساتله

۶۳:۲۰ - دوى وويل: بېشکه چې دا دواړه خامخا ساحران (جادوگر) دي، دوى دواړه غواړي چې تاسو له خپلې ځمکې (خاورې) نه په خپل سحر (جادو) سره وباسي او ستاسو ډېر غوره لار (د دين) ختمه کړي

۶۴:۲۰ - نو تاسو خپل ټول چل مکر راجمع کړئ، بيا تاسو (ميدان ته) راشئ صف صف، او يقينًا نن ورځ هغه څوك کامياب دى چې غالب شو

۶۵:۲۰ - ده وويل: اى موسٰى! يا به ته (امسا) غورځوې، يا به مونږ شو اول د هغه چا چې (امسا) غورځوي

٦٦:٢٠ - ده وويل: بلكې تاسو وغورځوئ، نو ناڅاپه د دوی رسۍ او د دوی امساګانې د دوی د سحر په وجه د ده (موسیٰ) خيال ته داسې راوستی شوې چې په رښتيا دغه منډې وهي

٦٧:٢٠ - نو موسیٰ په خپل نفس (زړه) کې وېره ومونده

٦٨:٢٠ - مونږ (ده ته) وويل: ته مه وېرېږه، بېشکه همٔ ته ښه غالب يې

٦٩:٢٠ - او ته هغه (امسا) وغورځوه چې ستا په ښي لاس کې ده، چې هغه څه لواړ (ښوی) تېر کړي چې دغو جوړ کړي دي، بېشکه هغه شی چې دوی تيار کړی دی د جادوګر چل مکر دی، او جادوګر بری نه مومي هر چېرته چې راشي

٧٠:٢٠ - نو ساحران وغورځولی شول، سجده کوونکي، وېې ويل: مونږ د هارون او موسیٰ په رب ايمان راوړ

٧١:٢٠ - (فرعون) وويل چې تاسو د ده تصديق وکړ مخکې له دې چې زه تاسو ته اجازت درکړمٔ، بېشکه دی يقينًا ستاسو هغه مشر دی چې تاسو ته يې سحر (جادو) ښودلی دی، نو زه به خامخا ضرور ستاسو لاسونه او ستاسو پښې ادل بدل پرې کومٔ او زه به خامخا ضرور تاسو د کجور په تنو کې په دار کومٔ او تاسو به خامخا ضرور پوه شئ چې په مونږ کې کومٔ يو د عذاب ورکولو په لحاظ ډېر سخت دی او ډېر باقي پاتې کېدونکی دی (زه او که موسیٰ)

٧٢:٢٠ - هغوی وويل: مونږ به تا ته له سره ترجيح درنه کړو په هغه باندې چې مونږ ته راغلی دی چې ښکاره معجزې دي او هغه (الله) چې مونږ يې پيدا کړي يو، نو ته هغه کار وکړه چې ته د هغه کوونکی يې، بېشکه ته يواځې د دې دنيايي ژوند فيصله کولی شې

٧٣:٢٠ - بېشکه مونږ په خپل رب ايمان راوړی دی، د دې لپاره چې هغه زمونږ خطاګانې وبخښي او هغه (جرمٔ) چې تا مونږ په هغه مجبوره کړي وو، چې سحر دی او الله ډېر غوره۔ او تل پاتې کېدونکی دی

٧٤:٢٠ - بېشکه شان دا دی چې هغه څوك چې خپل رب ته راشي، په دې حال کې چې کافر وي، نو بېشکه د ده لپاره دوزخ دی، دی به په ده کې نه مري او نه به (ښه) ژوندون کوي

٧٥:٢٠ - او هغه څوك چې ده ته په داسې حال کې راشي چې مومن وي، نېك عملونه يې کړي وي (، نو) د دوی لپاره ډېرې اوچتې درجې دي

٧٦:٢٠ - چې د تل اوسېدنې جنتونه دي چې د هغو له لاندې ولې بهېږي، چې دوی به په هغو کې تل ترتله وي، دغه د هغه چا بدله ده چې ځان يې (له شرك او کفر نه) پاك ساتلی وي

٧٧:٢٠ - او يقينًا يقينًا موږ موسیٰ ته وحي وکړه چې ته زما بنده ګان د شپې وباسه، نو ته د دوی لپاره په سمندر کې يوه وچه لاره جوړه کړه، ته به نه وېرېږې له نيول کېدو نه او نه به وېرېږې (له

ډوبېدو نه)

۷۸:۲۰ - نو فرعون سره له خپلو لښکرو په دوی پسې راغی، نو دوی لره له سمندر نه هغه شي لاندې کړل چې دوی یې لاندې کړل

۷۹:۲۰ - او فرعون خپل قوم لره گمراه کړ او نېغه لار یې ور ونه ښودله

۸۰:۲۰ - ای بني اسرائیلو بېشکه مونږ تاسو ته ستاسو له دښمن نه نجات درکړ او د طور غر ښي اړخ ته مو له تاسو سره وعده وکړه او مونږ پر تاسو باندې مَن (ترنجبین) او مرزان (ډوله مرغان) نازل کړل

۸۱:۲۰ - تاسو هغه پاکیزه څیزونه خورئ چې مونږ تاسو ته درکړي دي او تاسو په دغه (رزق) کې تجاوز مه کوئ (گنې) نو په تاسو به زما غضب راکوز شي اوهغه څوك چې په هغه باندې زما غضب راکوز شي، نو یقینًا دی وغورځېده (هلاك شه)

۸۲:۲۰ - او بېشکه زه خامخا ډېر بخښونکی یم هغه چا ته چې توبه وباسي او ایمان راوړي او نېك عمل کوي، بیا په نېغه لار روان اوسي

۸۳:۲۰ - او ته څه شي راگړندی کړې له خپل قوم نه ای موسیٰ!

۸۴:۲۰ - ده وویل: دوی دغه دي په ما پسې راروان دي او زه تا ته جلت راغلم ای زما ربه! د دې لپاره چې ته راضي شې

۸۵:۲۰ - (الله) وویل: نو بېشکه مونږ ستا قوم له تا نه وروسته وازمایه او سامري دوی گمراه کړل

۸۶:۲۰ - نو موسیٰ خپل قوم ته راواپس شو، چې ډېر په غصه او غمجن و، ویې ویل: ای زما قومه! ایا تاسو سره ستاسو رب ډېره ښه وعده نه وه کړې، ایا نو په تاسو زمانه ډېره اوږده شوه، یا که تاسو اراده کړې وه چې په تاسو باندې د خپل رب غضب راکوز شي، نو تاسو زما د وعدې خلاف ورزي وکړه

۸۷:۲۰ - دوی وویل: مونږ ستا د وعدې مخالفت په خپل اختیار سره نه دی کړی، او لېکن پر مونږ باندې د (قبطیانو د) قوم د ښکلا زیورات بار کړی شوي وو، نو مونږ هغه وغورځول، نو همداسې سامري هغه (په اور کې) وغورځول

۸۸:۲۰ - نو ده د دوی لپاره (له هغې کندې څخه) یو سخی چې جسد و؛ راوویست، چې د ده لپاره د سخي اواز و، نو دوی وویل: دا ستاسو معبود دی او د موسیٰ معبود دی، پس هغه هېر کړی دی

۸۹:۲۰ - (الله فرمایي) نو ایا دوی نه گوري چې بېشکه شان دا دی چې دغه (سخی) دوی ته بېرته خبره نه راگرځوي او دی د دوی لپاره نه د ضرر اختیار لري او نه د نفعې

۹۰:۲۰ - او یقینًا یقینًا هارون دوی ته د دې (موسٰی له راتلو) نه مخکې ویلي وو چې ای زما قومه! بېشکه همدا خبره ده چې تاسو په دې سره ازمایل شوي یئ، او ستاسو رب خو رحمٰن دی، نو تاسو زما پیروي وکړئ او زما د حکم اطاعت وکړئ

۹۱:۲۰ - دوی وویل: مونږ به تل به په (عبادت) د ده محکم ولاړ اوسو، تر هغه پورې چې موسٰی مونږ ته بېرته راشي

۹۲:۲۰ - (موسٰی چې راغی نو) ویې ویل: ای هارونه! ته څه شي منع کړی وې، کله چې تا دوی ولیدل چې گمراه شول

۹۳:۲۰ - چې تا زما پیروي ونه کړه، ایا نو تا زما د حکم نافرماني وکړه؟

۹۴:۲۰ - ده وویل: ای زما د مور زویه! ته مه زما ږیره نیسه او مه زما سره، بېشکه زه ووېرېدم له دې نه چې ته به وایې چې تا د بني اسرائیلو په مینځ کې بېلتون واچاوه او زما خبرې ته دې ونه کتل

۹۵:۲۰ - (موسٰی) وویل: نو ستا څه کار و ای سامري!

۹۶:۲۰ - هغه وویل: ما هغه شی ولیده چې دوی هغه نه و لیدلی نو ما یو موټی (خاوره) راوخیسته د رسول له قدمه، نو هغه ما (د دغه سخي په خوله کې) وغورځوله او همداسې ما ته زما نفس (دا کار) ښایسته کړی و

۹۷:۲۰ - ده وویل: نو ته ځه! پس بېشکه تا لره په ژوندن کې دا دي چې ته به وایې: (په ما) مه لگېږئ، او بېشکه تا لپاره د وعدې یو وخت دی چې له تا سره به د هغې وعدې هېڅ خلاف ونه کړی شي، او ته خپل هغه معبود ته وگوره چې ته په (عبادت) د ده باندې محکم ولاړ وې، مونږ به دی خامخا ضرور سوځوو، بیا مونږ دی په سمندر کې بادوو، بادول

۹۸:۲۰ - بېشکه همدا خبره ده چې ستاسو معبود هغه الله دی چې نشته هېڅ لایق د عبادت مگر هم دی دی، ده د علم په لحاظ هر شی، راگېر کړی

۹۹:۲۰ - هم داسې مونږ تا ته بیانوو ځینې له هغو خبرونو نه چې مخکې تېر شوي دي او په تحقیق تا ته مونږ درکړی دی له خپل جانب نه ذکر (چې قرآن دی)

۱۰۰:۲۰ - هرڅوك چې له ده نه مخ وگرځوي، پس بېشکه دغه کس به د قیامت په ورځ (د عذاب بار پورته کوي

۱۰۱:۲۰ - چې تل به وي په دغه (عذاب) کې او دغه بد دی د دوی لپاره د بارولو په لحاظ

۱۰۲:۲۰ - په هغې ورځ کې چې په شپېلۍ کې به (په دوهم ځل) وپوکل شي. او په دغې ورځ کې به مونږ مجرمان (کافران) راجمع کوو چې شین سترگي (تور مخې) به وي

۱۰۳:۲۰ - دوی به په خپل مینځ کې پټې پټې خبرې کوي چې تاسو وخت نه دی تېر کړی (په دنیا

کې) مګر لس شپې

۱۰۴:۲۰ - مونږ ښه عالمان یو په هغو خبرو چې دوی یې وایي، کله چې په دوی کې د روش په لحاظ ډېر کامل وایي: تاسو وخت نه دی تېر کړی مګر یوه ورځ

۱۰۵:۲۰ - او دوی له تا نه د غرونو په باره کې پوښتنه کوي، نو ته (ورته) ووایه چې زما رب به دغه (غرونه) تار په تار کړي، تار تار کول

۱۰۶:۲۰ - نو دغه (ځمکه) به تش هوار ډاګ پرېږدي

۱۰۷:۲۰ - چې ته به په دې کې نه ښکته والی وینې او نه څه اوچت والی

۱۰۸:۲۰ - په دغې ورځ کې به دوی د بلونکي پیروي کوي، دغې (بلنې) ته به هېڅ کوږ والی نه وي، او ټول اوازونه به رحمٰن ته چوپ شي، نو ته به نه اورې مګر کشاری (د قدمونو)

۱۰۹:۲۰ - په دغې ورځ کې به شفاعت فایده نه رسوي مګر هغه چا ته چې د هغه په حق کې رحمٰن اجازت وکړي او دغه (الله) د ده په خبره راضي شوی وي

۱۱۰:۲۰ - دغه (الله) پوهېږي په هر هغه څه چې د دوی په وړاندې دي او په هر هغه څه چې د دوی وروسته دي او دوی د هغه د علم احاطه نشي کولی

۱۱۱:۲۰ - او مخونه تل ژوندي، د ټول عالم انتظام کوونکي ذات ته ټیټ شول او تحقیق نامراده شو هغه کس چې (د) ظلم (بار) یې پورته کړ

۱۱۲:۲۰ - او هغه څوك چې نېك عمل وکړي، په دې حال کې چې مومن وي، نو دی به نه له ظلم (بې انصافۍ) نه وېرېږي او نه له نقصان نه

۱۱۳:۲۰ - او همدا شان مونږ دغه (کتاب) نازل کړی دی عربي قرآن، او مونږ په ده کې (ایتونه) له وعید ځنې بیا بیا راوړي دي، د دې لپاره چې دوی پرهېزګاره شي یا دغه (قرآن) دوی ته څه پند پیدا کړي

۱۱۴:۲۰ - نو اوچت دی الله حق بادشاه دی او ته په (لوستلو د) قرآن سره تلوار مه کوه مخکې له دې چې تا ته د ده وحي پوره کړی شي او ته وایه: ای زما ربه ما ته (زما) په علم کې زیاتوالی راکړې

۱۱۵:۲۰ - او یقینًا په تحقیق سره مونږ ادم ته له دې نه مخکې حکم کړی و، نو هغه هېر کړ او مونږ د ده پخه اراده ونه مونده

۱۱۶:۲۰ - او کله چې مونږ ملایکو ته وویل: تاسو ادم ته سجده وکړئ، نو دوی سجده وکړه، غیر له ابلیس نه، ده انکار وکړ

۱۱۷:۲۰ - نو مونږ ادم ته وویل: بېشکه دا (ابلیس) ستا او ستا د ښځې دښمن دی، نو دی دې تاسو هرګز له جنت نه ونه باسي، (ګنې) نو په مشقت کې به پرېوځئ

۱۱۸:۲۰ - بېشکه تا لپاره دا مقرر ده چې ته به په دې (جنت) کې نه وږی کېږې او نه به بربنډېږې

۱۱۹:۲۰ - او دا چې بېشکه ته به نه په ده کې تږی کېږې او نه به دې گرمي کېږي

۱۲۰:۲۰ - نو ده ته شیطان وسوسه واچوله، ویې ویل: ای ادمه! ایا زه تا ته د تل ژوندي پاتې کېدلو ونه وښیم او داسې بادشاهي چې نه به ختمېږي

۱۲۱:۲۰ - نو دوی دواړو (ښځې خاوند) له دغې (ونې) نه خوراك وکړ، نو دوی ته خپل د شرم ځایونه ښکاره شول او دوی شروع شول چې په خپلو ځانونو یې د جنت پاڼې نښلولې او ادم د خپل رب نافرماني وکړه، نو وښویده

۱۲۲:۲۰ - بیا دی خپل رب غوره کړ، نو د ده توبه یې قبوله کړه او هدایت یې وکړ (ده ته)

۱۲۳:۲۰ - (الله) وویل: تاسو دواړه له دې (جنت) نه کوز شئ ټول، ستاسو ځینې به د ځینو نورو دښمنان وي، نو که تاسو ته زما له جانبه هدایت راغی، نو چا چې زما د هدایت پیروي وکړه، نو دی به نه گمراه کېږي او نه به بدبخته کېږي

۱۲۴:۲۰ - او هغه څوك چې زما له ذکر (قرآن) نه مخ وگرځوي، نو بېشکه د ده لپاره ډېر تنگ گذران (او ژوند) دی او دی به مونږ د قیامت په ورځ ړوند راپورته کوو

۱۲۵:۲۰ - دی به وایي: ای زما ربه! تا زه ولې ړوند راپاڅولم، حال دا چې زه (په دنیا کې) بینا وم

۱۲۶:۲۰ - (الله به) ووایي: همداسې و، تا ته زمونږ ایتونه راغلي وو، نو تا هغه هېر کړل، او همداسې به ته نن ورځ هېرولی شې

۱۲۷:۲۰ - او همداسې مونږ جزا ورکوو هغه چا ته چې له حده ووت او د خپل رب په ایتونو یې ایمان رانه وړ او خامخا د اخرت عذاب ډېر سخت دی او ډېر باقي پاتې کېدونکی دی

۱۲۸:۲۰ - ایا نو دوی ته نه ده څرگنده شوې چې څومره ډېرې پېړۍ (امتونه) مونږ هلاکې کړې دي، چې دوی د هغوی په استوگنځایونو کې تېرېږي، بېشکه په دغو کې د عقل والاو لپاره ډېرې نښې دي

۱۲۹:۲۰ - او که چېرې هغه خبره نه وی چې ستا د رب له جانبه مخکې شوې ده (، نو) خامخا دغه (هلاکت د دوی) به لازم و، (او که چېرې نه وی، مقرر شوې نېټه

۱۳۰:۲۰ - نو (ای نبي!) ته په هغو خبرو صبر کوه چې دوی یې وایي او ته د خپل رب له ستاینې سره تسبیح وایه له لمر ختو نه مخکې او مخکې د پرېوتو له ده نه، او د شپې په ځینو وختونو کې، نو ته تسبیح وایه. او د ورځې په غاړو کې، ښایي چې ته به خوشاله شې

۱۳۱:۲۰ - او ته خپلې سترگې هرگز مه اوږدوه هغه څیز ته چې مونږ په هغه سره دغو ته نفع ورکړې ده چې قسما قسم څیزونه دي. د دنیایي ژوند ښایست، د دې لپاره چې مونږ دغه (کفار)

په دې کې وازمايو۔ او ستا د رب رزق ډېر غوره او ډېر باقي پاتې کېدونکی دی

۱۳۲:۲۰ - او ته خپل اهل ته د لمانځه حکم کوه او ته هم په دې (لمانځه) ټينګ ولاړ اوسه، مونږ له تا نه رزق نه غواړو، مونږ تا ته رزق درکوو، او ښه انجام د پرهېزګارۍ لپاره دی

۱۳۳:۲۰ - او دوی وايي: دی (محمد) د خپل رب له جانبه مونږ ته کومه نښه (معجزه) ولې نه راوړي؟ ايا دوی ته واضح دليل له هغه څه نه دی راغلی چې په ړومبنيو صحيفو کې دي

۱۳۴:۲۰ - او که يقيناً مونږ دوی له دغه (قرآن) نه مخکې هلاك کړي وی (، نو) خامخا دوی به ويلی: ای زمونږ ربه! تا مونږ ته ولې يو رسول راونه لېږه، پس چې مونږ ستا د ايتونو پيروي کړې وی، مخکې له دې نه چې مونږ ذليله شو او رسوا شو

۱۳۵:۲۰ - ته (دوی ته) ووايه: هر يو انتظار کوونکی دی، نو تاسو (هم) انتظار کوئ، نو ژر ده چې تاسو به پوه شئ چې د نېغې لارې خاوندان څوك دي او څوك دی چې نېغه لار يې موندلې ده

## (مکي) وړاندويوونکي - الأنبياء ۲۱

۱:۲۱ - خلقو ته د هغوی (د) حساب (وخت) ډېر نژدې شو، حال دا چې دوی په غفلت کې دي، مخ ګرځوونکي دي

۲:۲۱ - دوی ته د خپل رب له جانبه هېڅ نوی نصيحت نه راځي مګر دوی هغه اوري، په داسې حال کې چې دوی لوبې (مسخرې پرې) کوي

۳:۲۱ - په دې حال کې چې د دوی زړونه غافله وي، او خفيه مشوره يې پټه وساتله هغو کسانو چې ظلم يې کړی دی (او ويې ويل:) دا (محمد) نه دی مګر ستاسو په شان يو انسان دی، ايا نو تاسو جادو ته راځئ، حال دا چې تاسو ګورئ

۴:۲۱ - (رسول دوی ته) وويل: زما رب په اسمان او ځمکه کې په هره خبره پوهېږي او هم هغه ښه اورېدونکی، ښه عالم دی

۵:۲۱ - بلکې دوی وايي: (دا قرآن) ګډوډ خوبونه دي، بلکې دا يې له خپل ځانه جوړ کړی دی، بلکې دا شاعر دی، نو دا دې مونږ ته لويه نښه (معجزه) راوړي، له څنګه چې ړومبني (پېغمبران په هغو سره) لېږل شوي وو

۶:۲۱ - ايمان نه دی راوړی له دوی نه مخکې هېڅ يو داسې کلي، چې مونږ هغه هلاك کړی، ايا نو دوی به ايمان راوړي؟

۷:۲۱ - او مونږ له تا نه مخکې رسولان نه دي لېږلي مګر سړي چې مونږ به هغوی ته وحي کوله، نو تاسو د ذکر له خاوندانو (عالمانو) نه تپوس وکړئ که تاسو نه پوهېږئ

۸:۲۱ - او مونږ هغه (رسولان داسې) جسدونه نه ووګرځولي چې طعام به نه خوري او هغوی تل ژوندي پاتې کېدونکي نه وو

۹:۲۱ - بیا مونږ له دوی سره وعده رښتیا کړه، نو مونږ دوی ته نجات ورکړ او هغه چا ته چې زمونږ اراده (د هغوی د نجات) وه او له حد نه تېرېدونکي مو هلاك كړل

۱۰:۲۱ - یقینًا یقینًا مونږ تاسو ته داسې کتاب نازل کړی دی چې په هغه کې ستاسو ذکر (او عزت) دی، ایا نو تاسو عقل نه لرئ؟

۱۱:۲۱ - او څومره ډېر کلي چې ظالم وو، مونږ مات (او ټوټې) کړي دي او له هغو نه پس مو نور خلق پیدا کړل

۱۲:۲۱ - نو کله چې به یې زمونږ عذاب محسوس کړ، ناڅاپه به هغوی له دغو (کلیو) نه (په ډېره بیړه) تښتېدل

۱۳:۲۱ - تاسو مه تښتئ، او واپس لاړ شئ هغو (نعمتونو) ته چې تاسو ته په هغو کې خوشحالي درکړی شوې وه او خپلو کورونو ته، د دې لپاره چې له تاسو نه پوښتنه وکړی شي

۱۴:۲۱ - دوی وویل: ای زمونږ هلاکته! بېشکه همدا مونږ ظالمان وو

۱۵:۲۱ - نو تل به د دوی دغه چغه وه تر دې چې مونږ به دوی وګرځول رېبل شوي، مړه یخ پراته

۱۶:۲۱ - او مونږ اسمان او ځمکه او هغه څه چې د دواړو په مینځ کې دي (داسې) نه دي پیدا کړي، چې لوبې کوونکي یو

۱۷:۲۱ - که مونږ اراده کړې وی چې څه لوبه تماشه جوړه کړو (نو) یقینًا هغه به مو له خپلې خوا نه جوړه کړې وی که مونږ (دا کار) کوونکي وی

۱۸:۲۱ - بلکې مونږ په حق سره باطل وُلو، نو دا د هغه دماغ راوباسي، نو ناڅاپه هغه ختمېدونکی وي، او تاسو ته د هغه څه په وجه هلاکت دی چې تاسو یې بیانوئ

۱۹:۲۱ - او خاص د هغه لپاره دي هغه څوك چې په اسمانونو او ځمکه کې دي، او هغه څوك چې له هغه سره دي، هغوی د هغه له عبادت نه تکبر نه کوي او نه ستومانه کېږي

۲۰:۲۱ - هغوی شپه او روځ تسبیح وایي، نه څه وقفه کوي

۲۱:۲۱ - ایا دوی له ځمکې نه نور معبودان نیولي دي چې هغوی ژوندي کول کوي؟

۲۲:۲۱ - که چېرې په دغو (ځمکه او اسمان) کې له الله نه پرته نور معبودان وی (نو) دواړه به خامخا وران شوي وو، نو الله د عرش مالك، پاك دی له هغو خبرو چې دوی یې بیانوي

۲۳:۲۱ - له هغه نه پوښتنه نشي کېدی د هغه څه په باره کې چې هغه یې کوي او له دوی نه

۲۴:۲۱ - ایا دوی له هغه (الله) نه پرته نور معبودان نیولي دي، ته ووایه: تاسو خپل پوخ دلیل راوړئ، دا (وحي) د هغه چا نصیحت دی چې زما سره دي او د هغه چا نصیحت دی چې له ما نه مخکې تېر شوي دي، بلکې د دوی (کافر) اکثره خلق حق نه پېژني، نو دوی مخ گروځونکي دي

۲۵:۲۱ - او مونږ له تا نه مخکې هېڅ رسول نه دی لېږلی مگر چې هغه ته به مونږ (دا) وحي کوله چې بېشکه شان دا دی چې له ما نه پرته بل هېڅ حق معبود نشته، لهذا تاسو زما عبادت کوئ

۲۶:۲۱ - او دوی (کافر) وايي: الله (د ځان لپاره) اولاد نیولی دی، هغه (له دې نه) پاك دی، بلکې (ملایك خو) ډېر معزز بنده گان دي

۲۷:۲۱ - له هغه (الله) نه په خبره کولو کې ړومبی والی نه کوئ او دوی خاص د هغه په حکم عمل کوي

۲۸:۲۱ - هغه ته معلوم دي څه چې د دوی په وړاندې دي او څه چې له دوی نه وروسته دي، او دوی شفاعت نشي کولی مگر د هغه چا لپاره چې هغه (الله) ترې راضي وي او دوی خاص د هغه له هیبته وېرېدونکي دي

۲۹:۲۱ - او په دوی کې چې څوك ووايي چې بېشکه زه له هغه (الله) نه پرته معبود یم، نو دغه دی چې مونږ ده ته (د) جهنم جزا ورکوو، همداسې مونږ ظالمانو ته جزا ورکوو

۳۰:۲۱ - ایا هغه کسان چې کافران شوي دي په دې نه دي خبر شوي چې یقینًا یقینًا اسمانونه او ځمکه دواړه سره نښتي وو، بیا مونږ دواړه بېل کړل، او مونږ له اوبو څخه هر ژوند شی پیدا کړی دی، ایا نو دوی ایمان نه راوړي؟

۳۱:۲۱ - او مونږ په ځمکه کې پاخه غرونه پیدا کړي دي چې په دوی باندې (دغه ځمکه) ونه خوځېږي او مونږ په دې کې لارې پیدا کړې دي، چې ارتې پراخه دي، د دې لپاره چې دوی لار ومومي

۳۲:۲۱ - او مونږ اسمان محفوظ چت جوړ کړی دی او دوی (کفار) د هغه (اسمان) له نخښونه مخ گرځوونکي دي

۳۳:۲۱ - او دی همغه ذات دی چې شپه او ورځ او لمر او سپوږمۍ یې پیدا کړي دي، هر یو په (خپل) فلك (دایره) کې گرځي

۳۴:۲۱ - اومونږ له تا نه مخکې هېڅ یو انسان ته تل ژوندي پاتې کېدل نه دي مقرر کړي، ایا نو که ته مړ شې، نو دوی به تل ژوندي پاتې کېدونکي وي؟

۳۵:۲۱ - هر یو نفس د مرگ (مزه) څکونکی دی، او مونږ تاسو په شر او خیر سره ازمایو، ازمایل،

او تاسو به خاص مونږ ته راوستلی شئ

۳٦:۲۱ - او کله چې تا هغه کسان ووینې چې کافران شوي دي (نو) دوی تا نه نیسي مګر مسخره کړی شوی (او په خپل مینځ کې وایي:) ایا دا همغه کس دی چې ستاسو معبودان (په سپکه) یادوي؟ حال دا چې همدوی پخپله د رحمن له یادولو نه انکاري دي

۳۷:۲۱ - انسان له تلواره پیدا کړی شوی دی، ژر به تاسو ته خپلې نښې وښیم، لهذا له ما نه ژر مطالبه مه کوئ

۳۸:۲۱ - او دوی وایي: دغه وعده به کله وي، که تاسو رښتیني یئ؟

۳۹:۲۱ - که کافران شوي کسان په هغه وخت کې پوه شي چې له خپلو مخونو نه به اور نشي منع کولی او نه له خپلو شاګانو او نه به د دوی مرسته کولی شي

۴۰:۲۱ - بلکې دا (قیامت) به په دوی ناڅاپه راشي، نو دوی به حیران کړي، بیا دوی د هغه د لرې کولو طاقت نه لري او نه به دوی ته مهلت ورکاوه شي

۴۱:۲۱ - او یقینًا یقینًا له تا نه مخکې رسولانو پورې استهزاګانې شوې دي، نو ګېر کړل هغو کسانو لره چې په دوی پورې به یې مسخرې کولې، هغه شي چې دوی به ورپورې استهزا کوله

۴۲:۲۱ - (دوی ته) ته ووایه: تاسو د رحمن (له عذاب) نه د شپې او د ورځې څوك ساتي؟ بلکې دوی دخپل رب له ذکر نه مخ ګرځوونکي دي

۴۳:۲۱ - ایا د دوی لپاره نور معبودان شته چې زمونږ نه پرته دوی ساتي؟ هغوی د خپلو ځانونو د مرستې طاقت نه لري او نه دوی زمونږ (د عذاب) نه ساتل کیږي

۴۴:۲۱ - بلکې مونږ دوی ته او د دوی پلرونو ته نفع ورکړه تر دې چې په دوی باندې عمر اوږد شو، ایا نو دوی نه ویني چې بېشکه مونږ ځمکې ته راځو، د هغې له غاړو نه هغه کموو، ایا نو هم دوی غالب دي؟

۴۵:۲۱ - ته (دوی ته) ووایه: یقینًا زه تاسو یواځې په وحي سره وېروم او کاڼه بلنه نه اوري کله چې هغوی وېرولی شي

۴٦:۲۱ - او که یقینًا دوی ته ستا د رب له عذاب نه لږ تپ ورسېږي، (نو) دوی به خامخا لازمًا وایي: ای زمونږ هلاکته! بېشکه هم مونږ ظالمان وو

۴۷:۲۱ - او د قیامت په ورځ به مونږ ډېر د انصاف تلې کیږدو، نو په هېڅ نفس باندې به هېڅ شی ظلم ونه کړی شي او که دا (عمل) د اوري د دانې په وزن وي مونږ به هغه راوړو او هم مونږ حساب کوونکي بس یو

۴۸:۲۱ - او یقینًا یقینًا مونږ موسیٰ او هارون ته فرقان (حق او باطل سره بېلوونکی کتاب) او رڼا

او د متقیانو لپاره ذکر (نصیحت) ورکړی و

۴۹:۲۱ - هغه کسان چې له خپل رب نه خشیت (وېره) کوي بې له لیدلو او دوی د قیامت څخه وېرېدونکي دي

۵۰:۲۱ - او دا (قرآن) مبارك نصیحت دی چې مونږ دا نازل کړی دی، ایا نو تاسو له ده نه انکار کوونکي یئ

۵۱:۲۱ - او یقینًا یقینًا مونږ ابراهیمہ ته د هغه هدایت له دې نه مخکې ورکړی و او مونږ په هغه باندې پوه وو

۵۲:۲۱ - کله چې هغه خپل پلار او خپل قومہ ته وویل: دا بتان، څه شی دی هغه چې تاسو دوی ته په عبادت ټینگ ولاړ یئ؟

۵۳:۲۱ - هغوی وویل: مونږ خپل پلرونه دوی ته عبادت کوونکي موندلي دي

۵۴:۲۱ - هغه وویل: یقینًا یقینًا تاسو او ستاسو پلرونه په ښکاره گمراهۍ کې یئ

۵۵:۲۱ - هغوی وویل: ایا تا مونږ ته حق راوړی دی، یا ته له لوبو کوونکو څخه یې؟

۵۶:۲۱ - هغه وویل: بلکې ستاسو رب د اسمانونو او ځمکې رب دی۔ هغه (رب) چې دغه یې پیدا کړي دي او زه په دې باندې له گواهانو ځنې یمہ

۵۷:۲۱ - او په الله قسمہ دی چې هرومرو خامخا به زه ستاسو له بتانو سره یو چال چلومہ وروسته له دې چې تاسو وگرځئ شاکوونکي

۵۸:۲۱ - نو هغه، دغه (بتان) ټوټې ټوټې کړل د هغو له لوی نه غیر (چې هغه یې پرېښود)، د دې لپاره چې هغوی همده ته رجوع وکړي

۵۹:۲۱ - دوی وویل: زمونږ له معبودانو سره دا کار چا کړی دی، بېشکه دغه کس یقینًا له ظالمانو ځنې دی

۶۰:۲۱ - دوی وویل: مونږ له یو زلمي نه اورېدلي وو، چې دوی به یې (په سپکه) یادول، هغه ته ابراهیمہ ویلی شي

۶۱:۲۱ - هغوی وویل: نو هغه د خلقو د سترگو په وړاندې راولئ، د دې لپاره چې هغوی (یې وویني او) گواهي وکړي

۶۲:۲۱ - ویې ویل: ای ابراهیمه! ایا تا زمونږ له معبودانو سره دا کار کړی دی؟

۶۳:۲۱ - هغه وویل: بلکې دا کار د دوی دې مشر (لوی بت) کړی دی، نو تاسو له دوی نه پوښتنه وکړئ که دوی خبرې کوي

٦٤:٢١ - نو دوی خپلو نفسونو ته رجوع وکړه، بیا یې وویل: بېشکه همـ تاسو ظالمان یئ

٦٥:٢١ - بیا دوی په خپلو سرونو نسکور کړی شول (ویې ویل:) یقینًا یقینًا ته پوه یې چې دا (بتان) خبرې نشي کولی

٦٦:٢١ - هغه وویل: ایا نو تاسو له الله نه پرته د هغه څه عبادت کوئ چې تاسو ته هېڅ نفع نشي رسولی او نه تاسو ته ضرر رسولی شي

٦٧:٢١ - اُف په تاسو او په هغو چې تاسو یې له الله نه پرته عبادت کوئ، ایا نو تاسو عقل نه لرئ

٦٨:٢١ - ویې ویل: دا وسوځوئ او د خپلو معبودانو مرسته وکړئ که چېرې تاسو (څه) کوونکي یئ

٦٩:٢١ - مونږ وویل: ای اوره! یخ او سلامتیا والا شه په ابراهیمـ باندې

٧٠:٢١ - او دوی له هغه سره د ضررناك مکر کولو اراده کړې وه، نو مونږه همـ دوی بې حده تاوانیان وګرځول

٧١:٢١ - او مونږ هغه ته او لوط ته نجات ورکړ د هغې ځمکې په طرف چې مونږ په هغې کې د عالَمونو لپاره برکت اچولی دی

٧٢:٢١ - او مونږ هغه ته اسحق عطا کړ او یعقوب، زیاتي، او مونږه (دغه) هر یو نېکان ګرځولي دي

٧٣:٢١ - او مونږه هغوی داسې امامان ګرځولي وو چې زمونږ په حکمـ سره به یې لار ښوونه کوله۔ او مونږ دوی ته د نېکۍ کولو او د لمونځ قایمولو او د زکات ورکولو وحي کړې وه او دوی خاص زمونږ عبادت کوونکي وو

٧٤:٢١ - او لوط ته۔، مونږ هغه ته د فیصلې کولو قوت او پوهه ورکړې وه او مونږ هغه ته له هغه کلي نه نجات ورکړی و چې ناپاکه خبیث عملونه یې کول، بېشکه هغوی د بدۍ خلق (او) نافرمانه وو

٧٥:٢١ - او مونږ هغه (لوط) په خپل رحمت کې داخل کړ، یقینًا هغه له نېکانو څخه دی

٧٦:٢١ - او (یاد کړه) نوح، کله چې هغه له دې نه مخکې اواز وکړ، نو مونږ د هغه سوال قبول کړ، نو مونږ هغه ته او د هغه کورنۍ ته له ډېر لوی غمـ نه نجات ورکړ

٧٧:٢١ - او مونږ د ده لپاره له هغه قومـ نه انتقامـ واخیست چې زمونږ د ایتونو تکذیب یې کړی و، بېشکه هغوی بد خلق وو، نو مونږ دوی ټول غرق کړل

٧٨:٢١ - او (یاد کړه) داود او سلیمان، کله چې هغوی د فصل په باره کې فیصله کوله، کله چې په هغه کې د شپې د خلقو بې شپانه ګډې بیزې څرېدلې وې او مونږ له هغوی فیصلې ته کتونکي

وو

۷۹:۲۱ - نو مونږه سليمان ته هغه (فيصله) وښودله او مونږ (دوی) هر يو ته حکم او علم ورکړی و، او مونږ د داود سره غرونه تابع کړي وو چې تسبيح به يې ويله او مرغان (هم) او مونږ (د داسې کارونو) کوونکي وو

۸۰:۲۱ - او مونږ هغه ته تاسو لپاره د زغرې جوړول وښودل، د دې لپاره چې هغه (زغره) ستاسو د (دښمنانو له) جنګ نه ستاسو حفاظت وکړي، نو ايا تاسو شکر کوونکي يئ؟

۸۱:۲۱ - او (مونږ) د سليمان لپاره هوا (تابع کړې ده)، چې ډېره تېزه وه، د هغه په حکم سره به هغې ځمکې (سيمې) ته روانېده چې مونږ په هغې کې برکت اچولی دی او مونږ له ازله په هر شي باندې پوه يو

۸۲:۲۱ - او (مونږ تابع کړي وو) ځيني له شيطانانو څخه هغه چې د ده لپاره به يې غوپې وهلې او له دې نه غير نور کارونه به يې کول، او مونږ دوی لره (له وراني نه) ساتونکي وو

۸۳:۲۱ - او (ياد کړه) ايوب کله چې هغه خپل رب ته اواز وکړ چې يقينًا زه (چې يم) ما ته تکليف رارسېدلی دی او ته تر ټولو زيات رحم کوونکی يې

۸۴:۲۱ - نو مونږ د هغه دعا قبوله کړه، نو مونږ هغه تکليف لرې کړ چې هغه ته و او مونږ هغه ته د هغه کورنۍ او له هغوی سره د هغوی په مثل عطا کړل له خپل طرف نه د رحمت په وجه او د عبادت کوونکو لپاره د نصيحت په خاطر

۸۵:۲۱ - او (ياد کړه) اسمعيل او ادريس او ذوالکفل، دغه هر يو له صبر کوونکو څخه دي

۸۶:۲۱ - او مونږ دوی په خپل رحمت کې داخل کړل، بېشکه دوی له صالحانو څخه دي

۸۷:۲۱ - او (ياد کړه) د کب والا، کله چې هغه د غصې په حال کې لاړ، نو هغه دا خيال وکړ چې مونږ به په ده باندې له سره تنګي ونه کړو، بيا يې په تيارو کې اواز وکړ (داسې) چې نشته هېڅ لايق د عبادت مګر ته يې، ته پاك يې، بېشکه هم زه له ظالمانو څخه يم

۸۸:۲۱ - نو مونږ د هغه دعا قبوله کړه او مونږ هغه له غم نه خلاص کړ او همداسې مونږ مومنانو ته نجات ورکوو

۸۹:۲۱ - او (ياد کړه) زکريا کله چې هغه خپل رب ته اواز وکړ: ای زما ربه! ما يواځې (بې اولاده) مه پرېږده او ته ترټولو غوره وارث يې

۹۰:۲۱ - نو مونږ د هغه دعا قبوله کړه او مونږ هغه ته يحيٰی عطا کړ او د هغه لپاره مو د هغه ښځه روغه کړه، بېشکه دوی (نبيان داسې) وو چې په نېکيو کې به يې تلوار کاوه، په دې حال کې چې رغبت کوونکي او وېرېدونکي وو او دوی خاص زمونږ لپاره تواضع کوونکي وو

۹۱:۲۱ - او (یاده کړه) هغه (جینۍ) چې د خپل شرم ځای حفاظت یې کړی و، نو مونږ په (ګرېوان د) هغې کې خپل ځینې روح پو کړ او مونږ هغه او د هغې زوی د خلقو لپاره لویه نښه وګرځول

۹۲:۲۱ - بېشکه همدا ستاسو دین دی، چې یو دین دی او هم زه ستاسو رب یم، نو تاسو زما عبادت کوئ

۹۳:۲۱ - او دوی خپل (د دین) کار په خپل مینځ کې ټوټې ټوټې کړ، دوی ټول خاص مونږ ته واپس راتلونکي دي

۹۴:۲۱ - نو هغه څوك چې د نېکۍ عملونه کوي، په دې حال کې چې مومن وي، نو د ده د کوشش لپاره هېڅ ناقدري نشته او بېشکه مونږ د دغه (کوشش) لیکونکي یو

۹۵:۲۱ - او حرام (ممتنع) دي په هغه کلي باندې چې مونږ هغه هلاك کړی وي دا چې په رښتیا به دوی بېرته نه راځي

۹٦:۲۱ - تر هغه پورې کله چې یاجوج ماجوج پرانستل شي او دوی به له هرې لوړې نه ګړندي راکوزېږي

۹۷:۲۱ - او حقه وعده به ښه رانژدې شي، نو قصه دا ده چې ناڅاپه د هغو کسانو سترګې به بوټې راوتلې پاتې وي چې کفر یې کړی دی (او وایي به:) ای زمونږ هلاکته! یقینًا مونږ له دې نه په غفلت کې وو، بلکې مونږ ظالمان وو

۹۸:۲۱ - بېشکه تاسو او هغه څه چې تاسو یې له الله نه پرته عبادت کوئ؛ (ټول) د جهنم خشاك یئ، تاسو هغه ته ننوتونکي یئ

۹۹:۲۱ - که چېرې دوی (په رښتیا) معبودان وی (، نو) ده ته به نه وو داخل شوي او (دا) ټول به په هغه کې تل ترتله وي

۱۰۰:۲۱ - په دغه (دوزخ) کې به د دوی چغې سورې وي او دوی په هغه کې (هېڅ) نه اوري

۱۰۱:۲۱ - بېشکه هغه کسان چې هغوی ته زمونږ له جانبه سعادت مخکې فیصله شوی دی، دغه کسان له دغه (دوزخ) نه لرې کړی شوي دي

۱۰۲:۲۱ - دوی به د هغه (دوزخ) اواز (هم) نه اوري او دوی به په هغو (نعمتونو) کې تل ترتله وي چې د دوی نفسونه یې غواړي

۱۰۳:۲۱ - دوی به هغه تر ټولو لویه وېره نه غمجن کوئ او له دوی سره به ملایك ملاقات کوي (او وایي به:) دا ستاسو هغه ورځ ده چې تاسو ته به یې وعده درکولی شوه

۱۰۴:۲۱ - (یاده کړه) هغه ورځ چې مونږ به اسمان راونغاړو په شان د کاغذ د رانغاړلو په لیکنې باندې.، لکه څنګه چې مونږ د اول تخلیق ابتدا کړې ده، مونږ د هغه بیا اعاده کوو، دا زمونږ په ذمه

وعده ده، بېشکه مونږ (دا کار) کوونکي یو

۱۰۵:۲۱ - او یقینًا یقینًا مونږ په زبور کې له نصیحت نه پس دا لیکلي وو چې بېشکه دغه ځمکه، د دي به زما صالح (باصلاحیته) بنده ګان وارثان کېږي

۱۰۶:۲۱ - بېشکه په دې (بیان) کې یقینًا د عبادت کوونکو خلقو لپاره کفایت دی

۱۰۷:۲۱ - او مونږ ته نه يې لېږلې مګر د عالمونو لپاره رحمت

۱۰۸:۲۱ - ووایه: بېشکه همدا خبره ده چې ما ته وحي کولی شي چې یقینًا هم دا خبره ده چې ستاسو حق معبود یو معبود دی، نو ایا تاسو اسلام راوړونکي یئ؟

۱۰۹:۲۱ - نو که دوی وګرځېدل، نو ته (ورته) ووایه: ما تاسو په برابرۍ سره خبر کړي یئ او زه نه پوهېږم چې ایا نژدې دی، یا که لرې دی هغه چې تاسو سره يې وعده کولی شي

۱۱۰:۲۱ - بېشکه هغه (الله) په ښکاره خبره پوهېږي او په هغې هم چې تاسو يې پټوئ

۱۱۱:۲۱ - او زه نه پوهېږم کېدی شي چې دا (تاخیر د عذاب) تاسو لپاره یو ازمېښت وي او فایده اخیستل وي تر یو وخته پورې

۱۱۲:۲۱ - (رسول) وویل: ای زما ربه! په حق سره فیصله وکړه او هم زمونږ رب ډېر مهربان دی، مدد ترې غوښتل شوی په هغو خبرو چې تاسو يې بیانوئ

## (مدني) زیارت - الحج ۲۲

۱:۲۲ - ای خلقو! له خپل رب نه ووېرېږئ، بېشکه د قیامت زلزله ډېر لوی شی دی

۲:۲۲ - په هغې ورځ چې تاسو هغه ووینئ، چې هره تی ورکوونکې به غافله شي له هغه (ورکوي) نه چې هغه ته تی ورکوي او هره حمل والا به خپل حمل وغورځوي او ته به خلقو لره نشه وینې، حال دا چې دوی به نشه نه وي او لېکن د الله عذاب به ډېر سخت وي

۳:۲۲ - او په خلقو کې ځینې هغه دي چې د الله په باره کې بې له علمه جګړه کوي او د هر سرکشه شیطان پیروي کوي

۴:۲۲ - په باره د هغه کې (په ازل کې دا) لیکل شوي دي چې بېشکه شان دا دی چې هر څوک د ده سره دوستي وکړي، نو یقینًا دا (شیطان) دغه (خپل دوست) ګمراه کوي او ده ته د لمبې وهونکي عذاب لاره ښیي

۵:۲۲ - ای خلقو! که تاسو د بیا راژوندي کېدو په باره کې په شك کې یئ، نو یقینًا مونږ تاسو له خاورې نه پیدا کړي یئ، (ستاسو نیکه ادم) بیا (مو د هغه اولاده پیدا کړه) له یو ځاڅکي (مني) نه،

بیا له پرنې وینې نه، بیا له یوې غوښې بوټۍ نه چې تام الخلقت وي او ناقص الخلقت وي، د دې لپاره چې مونږ تاسو ته (خپل حکمت او قدرت) بیان کړو او مونږ په رحمونو کې ثابت پرېږدو هغه چې مونږ یې اراده وکړو تر معلومې نېټې پورې، بیا مونږ تاسو راوباسو (د میندو له خېټو نه) په داسې حال کې چې واړه بچي یئ، بیا (مونږ تاسو پالو) د دې لپاره چې تاسو خپل قوت او کمال ته ورسئ او په تاسو کې ځینې هغه دي چې وفات کولی شي او ځینې په تاسو کې هغه دي چې رد کولی (رسولی) شي تر ټولو ناکاره عمر پورې، د دې لپاره چې هغه له پوهېدلو نه وروسته په هېڅ شي پوه نشي او ته به ځمکه وچه شاړه وینې، نو کله چې مونږ په هغې باندې اوبه نازلې کړو (نو) ځربه او نرمه شي او له هر قسمه ښکلو (نباتاتو) نه زرغون کړي

٦:٢٢ - دا په سبب د دې چې یقینًا هم الله حق دی او دا چې یقینًا هغه مړي ژوندي کوي او دا چې بېشکه هغه په هر شي باندې قادر دی

٧:٢٢ - او دا چې یقینًا قیامت راتلونکی دی، چې په (راتلو د) هغه کې هېڅ شك نشته او دا چې بېشکه الله به بیا ژوندي راپورته کوي هر هغه چې په قبرونو کې دي

٨:٢٢ - او په خلقو کې ځینې هغه دي چې د الله په باره کې بې له علمه او بې له هدایته او بې له روښانه کتابه جګړه کوي

٩:٢٢ - په داسې حال کې چې خپل څنګ اړوي، د دې لپاره چې د الله له لارې نه (خلق) ګمراه کړي، د ده لپاره په دنیا کې رسوایي ده او مونږ به په ده د قیامت په ورځ د سوځوونکي اور عذاب وڅکوو

١٠:٢٢ - دا په سبب د هغو عملونو دي چې ستا دواړو لاسونو مخکې لېږلي دي او دا چې بېشکه الله په خپلو بنده ګانو باندې له سره ظلم کوونکی نه دی

١١:٢٢ - او په خلقو کې ځینې هغه دي چې د الله عبادت کوي په یوې غاړه باندې، نو که ده ته خیر ورسي (نو) په دې (دین) مطمئن (او قایم) پاتې شي او که ده ته څه مصیبت (ازمېښت) ورسي (، نو) بېرته په خپل مخ (کفر ته) وګرځي، ده (خپل) دنیا او اخرت ضایع کړل، همدغه ښکاره تاوان دی

١٢:٢٢ - دی له الله نه پرته هغه څه بلي چې ده ته نه ضرر رسولی شي او نه ده ته نفع رسولی شي، همدغه ډېره لرې ګمراهي ده

١٣:٢٢ - دا هغه (معبود) بلي چې یقینًا د هغه نقصان د هغه له نفع نه زیات نږدې دی، خامخا (هغه) بد دوست دی او خامخا بد ملګری دی

١۴:٢٢ - بېشکه الله هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي؛ داسې جنتونو ته داخلوي چې د هغو له لاندې ولې بهېږي، بېشکه الله کوي هغه چې اراده یې وکړي

۱۵:۲۲ - هر څوك چې دا ګمان كوي چې الله به په دنيا او اخرت كې د دغه (رسول) له سره مدد ونه كړي، نو هغه دې اسمان ته يوه رسۍ اوږده كړي، بيا دې (هغه) غوڅه كړي، نو ودې ګوري چې ايا په رښتيا به د ده چل (او تدبير) هغه شی ختم كړي چې دا يې په غصه كړی دی

۱٦:۲۲ - او همدارنګه مونږ دا (قرآن) د څرګندو ايتونو په شكل كې نازل كړی دی او دا چې بېشكه الله هدايت كوي چا ته چې اراده وكړي

۱۷:۲۲ - بېشكه هغه كسان چې ايمان يې راوړی دی او هغه كسان چې يهوديان شوي او صابيان او نصرانيان او مجوس دي او هغه كسان دي چې شرك يې كړی دی، بېشكه الله به د دوی په مينځ كې د قيامت په ورځ فيصله كوي، بېشكه الله په هر شي باندې ګواه دی

۱۸:۲۲ - ايا ته نه وينې چې بېشكه الله (چې دی) ده ته سجده كوي هر هغه چې په اسمانونو كې دي او هر هغه چې په ځمكه كې دي او لمر او سپوږمۍ او ستوري او غرونه او ونې او څاروي او ډېر له خلقو ځينې او (په دوی كې) ډېر داسې دي چې په هغو باندې عذاب ثابت شوی دی او هغه څوك چې الله يې سپك كړي، نو ده ته هيڅوك عزت وركوونكی نشته، بېشكه الله كوي هغه څه چې اراده يې وكړي

۱۹:۲۲ - دا دوه جګړه كوونكې (ډلې) دي چې د خپل رب په باره كې يې جګړه وكړه، نو هغه كسان چې كافران شوي دي د دوی لپاره به د اور جامې پرې كړی شي، د دوی د سرونو له پاسه به ګرمې ايشېدلې اوبه اچولی شي

۲۰:۲۲) - په دغو (اوبو) سره به هغه څه (كولمې) خوړني كړی شي چې د دوی په ګېډو كې دي او څرمنې (د دوی هم(

۲۱:۲۲ - او د دوی (د وهلو) لپاره د اوسپنو څټكونه دي

۲۲:۲۲ - هر كله چې دوی له هغه (دوزخ) نه، له غم نه د وتلو اراده وكړي (، نو) بېرته به په هغه كې ورګرځولی شي (او ورته ويلی به شي:) د سخت سوځوونكي (اور) عذاب وڅكئ

۲۳:۲۲ - بېشكه الله به هغه كسان چې ايمان يې راوړی دی او نېك عملونه يې كړي دي داسې جنتونه ته داخل كړي چې د هغو له لاندې ولې بهېږي، دوی ته به په هغو كې د سروزور باهوګان واچول شي او ملغلرې او د دوی لباس به په هغو (جنتونو) كې ورېښم وي

۲۴:۲۲ - او دوی ته د پاكيزه خبرې ښوونه وشوه او د ستايل شوي (الله) د لارې هدايت ورته وشو

۲۵:۲۲ - بېشكه هغه كسان چې كافران شوي دي او د الله له لارې نه اړول كوي او له مسجد حرام نه هغه چې مونږ هغه د خلقو لپاره داسې ګرځولی دی چې په ده كې اوسېدونكي او له بهره راتلونكي برابر دي، او څوك چې په ده كې په ظلم سره د الحاد (او بې لار توب) اراده وكړي (، نو)

مونږ به په هغه له ډېر دردوونکي عذاب څخه (عذاب) وڅکوو

۲۶:۲۲ - او (یاد کړه) هغه وخت چې مونږه ابراهیمـ ته د بیت الله ځای ښکاره (معین) کړ چې ته له ما سره هیڅ شی مه شریکوه، او زما کور د طواف کوونکو، او قیامـ کوونکو او رکوع کوونکو (او) سجده کوونکو لپاره پاك کړه

۲۷:۲۲ - او ته په خلقو کې د حج اعلان وکړه دوی به تا ته پیدل راشي او په هر خوار ډنگر اوښ باندې چې دغه (اوښان) به راځي له هرې لرې ژورې لارې نه

۲۸:۲۲ - د دې لپاره چې دوی خپلو فایدو ته حاضر شي او په معلومو ورځو کې د الله نومـ یاد کړي، په هغو بې ژبو څارویو باندې چې هغه (الله) دوی ته ورکړي دي، نو تاسو له هغو نه خورئ او په بد حال فقیر یې خورئ

۲۹:۲۲ - بیا دې دوی خپل خیري لرې کړي او خپل نذرونه دې پوره کړي او د قدیمـ (او عزتمن) کور طوافونه دې وکړي

۳۰:۲۲ - دغه (حکمـ بیان شو) او څوك چې د الله د حرمتونو (احکامو) تعظیمـ کوي، نو دغه (کار) د ده لپاره د خپل رب په نیز ډېر غوره دی. او تاسو لپاره څاروي حلال گرځول شوي دي غیر له هغو نه چې په تاسو (یې حرمت) لوستل کېږي، نو تاسو ځان وساتئ له پلیتۍ نه چې بتان دي او تاسو د دروغو له وینا څخه ځان وساتئ

۳۱:۲۲ - په داسې حال کې چې الله ته په اخلاص سره غاړه ایښودونکي یئ، له ده سره شریك جوړونکي نه یئ، او هر څوك چې له الله سره شریك ونیسي، نو گویاکې هغه له اسمان نه راوغورځېده، نو مرغان یې وتښتوي، یا یې هوا (باد) له اوچت ځای نه لرې په ژور ځای کې وغورځوي

۳۲:۲۲ - دغه (حکمـ بیان شو) او څوك چې د الله د نښو تعظیمـ وکړي، نو بېشکه دا د زړونو له تقویٰ څخه دی

۳۳:۲۲ - تاسو لپاره په دغو (څارویو) کې تر یو مقرر وخته پورې ډېرې فایدې دي، بیا د دوی حلالځای قدیمـ کور (بیت الله) ته دی

۳۴:۲۲ - او د هر امت لپاره مونږ یوه قرباني مقرر کړې ده، د دې لپاره چې دوی د الله نومـ یاد کړي په هغو شیانو چې دوی ته هغه (الله) ورکړي دي، چې څاروي دي، نو ستاسو حق معبود یو معبود دی، نو تاسو خاص هغه ته غاړه کېږدئ او عاجزي کوونکو ته زېری ورکړه

۳۵:۲۲ - هغه کسان چې کله الله یاد کړی شي (نو) د دوی زړونه وویرېږي او (زېری ورکړه) صبر کوونکو ته په هغو (سختیو) چې دوی ته رسېږي او لمونځ قایموونکو ته او هغو ته چې له هغه

مال نه څه انفاق کوي چې مونږ دوی ته ورکړی دی

۳٦:۲۲ - او (د هديې) اوښان (او غوايان) مونږه هغه تاسو لپاره د الله له نښو څخه گرځولي دي، تاسو لپاره په دغو کې خير دی، نو تاسو په دغو باندې د الله نوم يادوئ، په داسې حال کې چې ولاړ وي، نو کله چې د دوی اړخونه پرېوځي، نو له دغو نه خورئ او په صبر کوونکي او په بې صبره (سوالگري فقير) يې خورئ، همداسې تاسو لپاره مونږ دغه تابع کړي دي، د دې لپاره چې تاسو شکر وباسئ

۳۷:۲۲ - الله ته له سره نه رسېږي د دغو غوښې او نه د دغو وينې او لېکن هغه ته ستاسو تقویٰ رسېږي، همداسې يې دغه تاسو لپاره تابع کړي دي، د دې لپاره چې تاسو د الله لويي بيان کړئ په هغې (طريقې) سره چې هغه تاسو ته ښوونه کړې ده او نېکي کوونکو ته زېری ورکړه

۳۸:۲۲ - بېشکه الله له هغو کسانو نه دفاع کوي چې ايمان يې راوړی دی، بېشکه الله هر ډېر خيانت گر، لوی ناشکره نه خوښوي

۳۹:۲۲ - هغو کسانو ته چې ورسره قتال کاوه شي (د قتال) اجازت ورکړی شو، ځکه چې يقينًا په دوی ظلم کړی شوی دی، او بېشکه الله د دوی په مدد کولو خامخا قادر دی

۴۰:۲۲ - هغه کسان چې له خپلو کورونو نه ناحقه اېستل شوي دي (بې له کوم سببه) مگر دا چې دوی به ويل: زمونږ رب الله دی، او که چېرې د الله دفع کول نه وی خلقو لره، ځينو لره په ځينو نورو باندې (، نو) خامخا به نړول شوې وی تکيې او مدرسې او عبادتخانې او هغه جوماتونه چې په هغو کې د الله نوم ډېر يادولی شي او الله به خامخا ضرور د هغه چا مدد وکړي چې د هغه (الله) مدد کوي، بېشکه الله خامخا ډېر زورور، غالب دی

۴۱:۲۲ - هغه کسان دي چې که مونږ دوی ته په ځمکه کې قدرت ورکړو (نو) دوی به لمونځ قايموي او زکات به ادا کوي او د نېکۍ حکم به کوي او له بدۍ نه به منع کوي، او خاص د الله لپاره د کارونو انجام دی

۴۲:۲۲ - او که چېرې دوی ستا تکذيب وکړي، نو يقينًا له دوی نه مخکې د نوح قوم او عاديانو او ثموديانو تکذيب کړی دی

۴۳:۲۲ - او د ابراهيم قوم او د لوط قوم

۴۴:۲۲ - او د مدين والاو، او د موسىٰ تکذيب شوی دی، نو ما کافرانو ته مهلت ورکړ، بيا ما دوی ونيول، نو زما انکار کول څنگه وو؟

۴۵:۲۲ - نو څومره ډېر کلي دي چې مونږ هغه هلاك کړي دي، په داسې حال کې چې هغه ظالمان وو، نو دغه (کلي) په خپلو چتونو پراته دي، او څومره ډېر بېکاره پراته کوهيان دي او

مضبوطې مانۍ دي

۴۶:۲۲ - ایا نو دوی په ځمکه کې ګرځېدلي نه دي، نو چې دوی لپاره داسې زړونه وی چې دوی په هغو سره پوهېدلی یا داسې غوږونه چې دوی په هغو سره اورېدلی، نو بېشکه قصه دا ده چې سترګې نه ړندېږي او لیکن هغه زړونه ړندېږي چې په سینو کې دي

۴۷:۲۲ - او دوی په تا په (راوستلو د) عذاب سره تلوار کوي او الله به له سره د خپلې وعدې خلاف و نه کړي، او بېشکه یوه ورځ ستا د رب په نیز د زرو کلونو په شان ده له هغو چې تاسو يې شمېرئ

۴۸:۲۲ - او ډېر کلي دي چې ما هغو ته مهلت ورکړی و، حال دا چې دوی ظالمان وو، بیا ما هغه ونیول، او خاص ما ته بېرته راتله دي

۴۹:۲۲ - ته ووایه: ای خلقو! بېشکه همدا خبره ده چې زه تاسو ته ښکاره وېروونکی یم

۵۰:۲۲ - نو هغه کسان چې ایمان يې راوړی دی او نېک عملونه يې کړي دي د دوی لپاره مغفرت او ډېر د عزت روزي ده

۵۱:۲۲ - او هغه کسان چې زمونږ په ایتونو کې کوشش کوي، په داسې حال کې چې (په خپل خیال کې) عاجزه کوونکي دي، دغه کسان د دوزخ ملګري دي

۵۲:۲۲ - او مونږ له تا نه مخکې نه دی لېږلی هېڅ یو رسول او نه نبي، مګر کله چې به هغه لوستل کول (، نو) شیطان به د هغه په لوستلو کې غورځول وکړل، نو الله هغه لرې کوي چې شیطان يې غورځوي، بیا الله خپل ایتونه مضبوطوي، او الله ښه عالم، ښه حکمت والا دی

۵۳:۲۲ - د دې لپاره چې هغه (الله) هغه شی چې شیطان يې غورځوي د هغو کسانو لپاره ازمېښت وګرځوي چې د هغوی په زړونو کې مرض دی او د هغوی لپاره چې زړونه يې سخت دي او بېشکه ظالمان خامخا په ډېر لوی مخالفت کې دی

۵۴:۲۲ - او د دې لپاره چې هغه کسان پوه شي چې دوی ته علم ورکړی شوی دی چې بېشکه دا (قرآن) حق دی ستا د رب له جانبه، پس چې دوی په ده ایمان راوړي، بیا د دوی زړونه ده ته نرم شي او بېشکه الله خامخا هغو کسانو ته چې ایمان يې راوړی دی؛ د نېغې لارې هدایت کوونکی دی

۵۵:۲۲ - او هغه کسان چې کافران شوي دي تل به د دغه (قرآن) په هکله به شك کې وي، تر دې چې په دوی قیامت ناڅاپه راشي، یا دوی ته د شنډې ورځې عذاب راشي

۵۶:۲۲ - باچاهي په دغې ورځ کې خاص د الله لپاره ده، هغه به د دوی په مینځ کې فیصله کوي. نو هغه کسان چې ایمان يې راوړی دی او نېک عملونه يې کړي دي د نعمتونو په جنتونو کې دي

۵۷:۲۲ - او هغه کسان چې کفر يې کړی دی او زمونږ د ايتونو تکذيب يې کړی دی، نو دغه کسان چې دي، د دوی لپاره رسوا کوونکی عذاب دی

۵۸:۲۲ - او هغه کسان چې د الله په لاره کې يې هجرت کړی دی، بيا هغوی ووژل شي، يا (په خپل مرگ) مړه شي (نو) خامخا هرومرو به الله دوی ته ډېره ښکلې روزي ورکړي، او بېشکه الله خامخا همغه تر ټولو غوره رزق ورکوونکی دی

۵۹:۲۲ - خامخا ضرور به هغه دوی داسې ځای ته داخل کړي چې دوی به هغه خوښوي او بېشکه الله خامخا ښه عالم، ډېر تحمل والا دی

۶۰:۲۲ - (خبره همدا) دا ده، او هغه کس چې بدل يې واخيست په مثل د هغه (ضرر) چې دی په هغه سره مُعذب شوی و، بيا (په دويم ځل) په ده ظلم وکړی شو (نو) خامخا ضرور به الله د ده مدد کوي، بېشکه الله خامخا ډېر معافي کوونکی، ډېر بخښونکی دی

۶۱:۲۲ - دغه په دې سبب چې بېشکه الله شپه په ورځ کې ننباسي او ورځ په شپه کې ننباسي او دا چې بېشکه الله ښه اورېدونکی، ښه ليدونکی دی

۶۲:۲۲ - دغه په دې سبب چې بېشکه الله، همدی حق دی او دا چې بېشکه هغه چې دوی يې له هغه (الله) نه غير بولي، همغه باطل دی او دا چې بېشکه الله، همدی ډېر اوچت، ډېر لوی دی

۶۳:۲۲ - ايا تا نه دي ليدلي چې بېشکه الله له بره نه اوبه نازلې کړې، بيا (په دغو سره) ځمکه تکه شنه گرځي، بېشکه الله ډېر مهربان (ښه باريك بين)، ډېر خبردار دی

۶۴:۲۲ - خاص همدغه (الله) لره دي هر څه چې په اسمانونو کې دي او هر څه چې په ځمکه کې دي او بېشکه الله خامخا همدی غني (بې پروا) ډېر ستايل شوی دی

۶۵:۲۲ - ايا تا نه دي ليدلي چې بېشکه الله تاسو لپاره تابع کړي دي هر هغه چې په ځمکه کې دي او بېړۍ چې په بحر کې د هغه په امر گرځي او هغه اسمان ساتي له دې نه چې په ځمکه باندې راولوېږي مگر (خو) د هغه په حکم سره.، بېشکه الله په خلقو باندې خامخا ډېر نرمي کوونکی، مهربان دی

۶۶:۲۲ - او دغه (الله) همغه ذات دی چې تاسو يې ژوندي کړي يئ، بيا به هغه تاسو مړه کاندي، بيا به هغه تاسو ژوندي کړي، بېشکه انسان خامخا ډېر ناشکره دی

۶۷:۲۲ - د هر يو امت لپاره مونږ د بندگۍ يوه لاره مقرر کړې ده چې دوی په هغې عمل کوونکي دي، نو دوی دې له تا سره په دې کار (د دين) کې له سره جگړه ونه کړي او ته خپل رب ته (د خلقو) بلنه کوه، بېشکه ته خامخا په نېغ (او برابر) هدايت باندې يې

۶۸:۲۲ - او که دوی له تاسره جگړه کوي، نو ته وايه: الله پوه دی په هغو عملونو چې تاسو يې

کوئ

۶۹:۲۲ - الله به د دوی په مینځ کې د قیامت په ورځ په هغو خبرو کې فیصله کوي چې دوی به په کې اختلاف کاوه

۷۰:۲۲ - ایا ته نه یې پوه شوی چې بېشکه الله پوهېږي په هر هغه څه چې په اسمان او ځمکه کې دي، بېشکه دغه په یو کتاب کې دي، بېشکه دغه الله ته ډېر اسان دي

۷۱:۲۲ - او دوی (کفار) له الله نه غیر د هغه شي عبادت کوي چې الله په (عبادت د) هغه هېڅ دلیل نه دی نازل کړی او د هغه شي چې دوی ته په هغه باندې هېڅ علم نشته، او د ظالمانو لپاره هېڅ مدد کوونکی نشته

۷۲:۲۲ - او کله چې دوی ته زمونږ ایتونه ولوستل شي، چې ډېر واضح دي، (نو) ته د کافران شویو کسانو په مخونو انکار پېژنې، نژدې وي چې دوی په هغو کسانو حمله وکړي چې دوی ته زمونږ ایتونه تلاوت کوي، ته (دوی ته) ووایه: ایا نو زه تاسو ته له دغه نه د ډېر بد شي خبر درکړم (هغه) اور دی.، الله د ده وعده کړې ده له هغو کسانو سره چې کافران شوي دي او هغه د بېرته ورتلو بد ځای دی

۷۳:۲۲ - ای خلقو! یو مثال بیانولی شي، نو تاسو ده ته ښه غوږ کېږدئ، بېشکه هغه شیان چې تاسو یې له الله نه غیر بلئ دوی له سره یو مچ هم نشي پیدا کولی اگر که دوی ده ته ټول راجمع شي او که مچ له دوی نه یو شی وتښتوي، دوی له هغه نه دغه (شی) نشي راخلاصولی، کمزوری دی دا طالب (د غیرالله عبادت کوونکی) او دغه مطلوب (باطل معبود)

۷۴:۲۲ - دوی د الله قدر ونه کړ، څنگه چې د هغه د قدر کولو حق دی، بېشکه الله خامخا ډېر زورور، ښه غالب دی

۷۵:۲۲ - الله له ملایکو څخه استازي غوره کوي او له خلقو څخه، بېشکه الله ښه اورېدونکی، ښه لیدونکی دی

۷۶:۲۲ - هغه پوهېږي په هغه څه چې د دوی په وړاندې دي او په هغه څه چې د دوی وروسته دي، او خاص الله ته ټول کارونه بېرته ورگرځول کېږي

۷۷:۲۲ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو رکوع کوئ او سجده کوئ او د خپل رب عبادت کوئ او نېکي کوئ، د دې لپاره چې تاسو کامیاب شئ

۷۸:۲۲ - او په (لاره د) الله کې کوشش کوئ، څنگه چې د هغه د کوشش حق دی، هغه تاسو غوره کړي یئ او په تاسو باندې یې په دین کې هېڅ حرج (مشقت) نه دی ایښی، تاسو د خپل پلار ابراهیم د ملت تابع شئ، دغه (الله) تاسو مسلمانان نومولي یئ، له دې (قرآن) نه مخکې او په

ده کې، د دې لپاره چې رسول پر تاسو باندې گواه شي او تاسو په خلقو باندې گواهان شئ، نو تاسو لمونځ قايموئ او زکات ادا کوئ او په (دين د) الله باندې منگولې ټينگې کلکې کړئ، هغه ستاسو مالك دی، نو هغه ښه مالك دی او ښه مدد کوونکی دی

## (مکي) مننونکي - المؤمنون ۲۳

۱:۲۳ - يقينًا مومنان کامياب شول

۲:۲۳ - هغه چې هغوی په خپلو لمونځونو کې خشوع کوونکي دي

۳:۲۳ - او هغه کسان چې دوی له لغو (خبرو او کارونو) نه مخ گرځوونکي دي

۴:۲۳ - او هغه چې هغوی د زکات ادا کوونکي دي

۵:۲۳ - او هغه چې هغوی د خپلو فرجونو (د شهوت ځايونو) ساتونکي دي

۶:۲۳ - مگر له خپلو ښځو او وينځو نه، نو بېشکه دوی (هغوی ته په ورتلو سره) ملامت کړی شوي نه دي

۷:۲۳ - پس چا چې ولټولو سوا له دغو نه، نو دغه کسان، دوی له حد نه تېرېدونکي دي

۸:۲۳ - او هغه چې هغوی د خپلو امانتونو او عهد رعايت کوونکي دي

۹:۲۳ - او هغه چې هغوی په خپلو لمونځونو مداومت (او حفاظت) کوي

۱۰:۲۳ - همـ دغه خلق وارثان دي

۱۱:۲۳ - هغه چې د فردوس وارثان کېږي به.، دوی به په هغه کې همېشه وي

۱۲:۲۳ - او يقينًا يقينًا مونږ انسان د خټې له خُلاصې نه پيدا کړی دی

۱۳:۲۳ - بيا مونږ هغه، نطفه (د مني يو څاڅکی) وگرځوله په مضبوط قرار ځای کې

۱۴:۲۳ - بيا مونږ دغه نطفه د ويني ټوټه وگرځوله، وروسې مونږ دغه د ويني ټوټه د غوښې وړه بوټۍ وگرځوله.، وروسې مونږ دغه بوټۍ هډوکي وگرځوله، بيا مو هډوکو ته غوښه واغوستله، بيا مونږ هغه په بل تخليق کې پيدا کړ، نو الله ډېر برکت والا دی چې تر ټولو ښه پيدا کوونکی دی

۱۵:۲۳ - بيا بېشکه تاسو له دې (ژوند) نه بعد خامخا مړه کېدونکي يئ

۱۶:۲۳ - بيا به يقينًا تاسو د قيامت په ورځ ژوندي راپاڅولی شئ

۱۷:۲۳ - او يقينًا يقينًا مونږ ستاسو له پاسه اوه لارې (اسمانونه) پيدا کړي دي او مونږ د مخلوق (له ټولو حالاتو) نه غافله نه يو

۱۸:۲۳ - او مونږ له بره نه په اندازې سره اوبه نازلې کړې، بیا مو هغه په ځمکه کې وساتلې او بېشکه مونږ د هغې په بېولو یقینًا قادر یو

۱۹:۲۳ - نو مونږ په دې (اوبو) سره تاسو لپاره د کجورو او انګورو باغونه پیدا کړي دي، چې تاسو ته په هغو (باغونو) کې ډېرې مېوې دي او له هم دغو (باغونو) نه تاسو خوراك کوئ

۲۰:۲۳ - او هغه ونه (مو پیدا کړه) چې د طور سیناء نه راوځي؟ چې د خوړونکو لپاره د غوړو او انګولي سره زرغونېږي

۲۱:۲۳ - او بېشکه تاسو لپاره په څارویو کې یقینًا لوی عبرت دی، مونږ په تاسو له هغو (پیو) نه درڅښوو چې د هغو (څارویو) په ګېډو کې دي. او تاسو لپاره په دوی کې ډېرې فایدې دي او له دوی نه تاسو خوړل (هم) کوئ

۲۲:۲۳ - دوی ته) ووایه: دا به هغه ذات راژوندي کوي چې دا یې اول ځلې پیدا کړي دي، او هغه په خپل مخلوق باندې ښه عالم دی

۲۳:۲۳ - ږلی و، نو هغه (ورته) وویل: ای زما قومه! تاسو د الله عبادت کوئ، تاسو لپاره له هغه نه غیر بل هېڅ حق معبود نشته، ایا نو تاسو نه وېرېږئ!

۲۴:۲۳ - نو د هغه له قومه کافر شویو مشرانو وویل: نه دی دا (نوح) مګر هم ستاسو په شان بشر، دی غواړي چې پر تاسو باندې مشري (او برتري) حاصله کړي او که الله غوښتلی (نو) خامخا ملایك به یې نازل کړې وو، مونږ خو دا خبره (چې رسول بني ادم وي) زمونږ په هغو پلرونو کې نه ده اورېدلې چې پخوا وو

۲۵:۲۳ - نه دی دا (نوح) مګر داسې سړی چې په ده پورې لېونتوب نښتی دی، نو تاسو ده ته تر یو وخته انتظار کوئ

۲۶:۲۳ - هغه وویل: ای زما ربه! ته زما مدد وکړه، په سبب د دې چې دوی زما تکذیب وکړ

۲۷:۲۳ - نو مونږ هغه ته وحي وکړه داسې چې زمونږ د سترګو په وړاندې او زمونږ له وحي سره سم بېړۍ جوړه کړه، نو کله چې زمونږ حکم راغی او تنور راوخوټېده، بیا نو ته په دې (بېړۍ) کې له هر قسمه نه جوړه جوړه دوه دوه (نر او ښځه) داخل کړه او خپله کورنۍ هم (خو) له هغه چا نه غیر چې په دوی کې په هغه باندې (د عذاب) خبره ړومبۍ شوې ده او ته له ما سره د هغو کسانو په باره کې خبره مه کوه چې ظلم یې کړی دی، بېشکه دوی به غرق کولی شي

۲۸:۲۳ - نو کله چې وختلې ته او هغه څوك چې له تا سره دي په بېړۍ کې، نو ووایه: ټول د کمال صفتونه خاص د هغه الله لپاره دي چې مونږ یې له ظالم قوم نه خلاص کړو

۲۹:۲۳ - او (د کوزېدو په وخت کې) ووایه: ای زما ربه! ته ما په یو مبارك منزل (ځای) کې کوز کړه

او ته تر ټولو کوزوونکو ښه ډېر غوره يې

۳۰:۲۳ - بېشکه په دې کې يقينًا دليلونه (نښې) دي او بېشکه مونږ خامخا ازمېښت کوونکي يو

۳۱:۲۳ - بيا مونږه له دوی نه وروسته نور خلق پيدا کړل

۳۲:۲۳ - نو مونږ په هغو کې له همدوی څنې يو رسول ولېږه چې تاسو د الله عبادت کوئ، تاسو لپاره له هغه نه غير بل هېڅ حق معبود نشته، ايا نو تاسو نه وېرېږئ!

۳۳:۲۳ - او وويل د ده له قومه هغو مشرانو چې کافر شوي وو او د اخرت د ملاقات يې تکذيب کړی و او مونږ هغوی ته په دنيايي ژوند کې خوشحالي ورکړې وه: نه دی دا مگر ستاسو په شان بشر، له هغه څه نه دا خوراك کوي له څه نه چې تاسو خوراك کوئ او له هغه څه نه څښاك کوي چې تاسو ترې څښاك کوئ

۳۴:۲۳ - او (قسم دی) خامخا که تاسو د خپل ځان په شان انسان اطاعت وکړئ، (نو) بېشکه چې تاسو به په دغه وخت کې يقينًا تاوانيان يئ

۳۵:۲۳ - ايا دا تاسو ته وعده درکوي دا چې بېشکه کله چې تاسو مړه شئ او تاسو خاورې او هډوکي شئ (، نو) يقينًا به تاسو ژوندي راوښکل شئ؟

۳۶:۲۳ - (له عقله) ډېر لرې دی، ډېر لرې دی هغه څيز چې له تاسو سره يې وعده کولی شي

۳۷:۲۳ - نه دی دا (ژوندون) مگر همدا زمونږ دنيايي ژوندون، چې مرو او ژوندي کېږو او له سره به مونږ بيا راژوندي نه کړی شو

۳۸:۲۳ - دی نه دی مگر (يو داسې) سړی چې په الله باندې يې دروغ ورتپلي دي او مونږ په ده باندې ىېخي ايمان راوړونکي نه يو

۳۹:۲۳ - هغه (نبي) وويل: ای زما ربه! ته زما مدد وکړه، په سبب د دې چې دوی زه دروغجن وگڼلم

۴۰:۲۳ - (الله) وويل: له ډېر لږ وخت نه پس به دوی خامخا لازمًا پښېمانه شي

۴۱:۲۳ - نو دوی يوې چغې په حقه سره ونيول، بيا نو مونږه دوی د سيلاب خس وخشاك کړل، نو د ظالم قوم لپاره (د الله له رحمت نه) لرې والی دی

۴۲:۲۳ - بيا مونږ له دوی نه بعد نور قومونه (خلق) پيدا کړل

۴۳:۲۳ - هېڅ يو امت د خپلې مقررې نېټې نه نه ړومبی کېدی شي او نه وروسته کېدی شي

۴۴:۲۳ - بيا مونږ خپل (نور) رسولان ولېږل، په دې حال کې چې يو په بل پسې پيوست وو، هر کله چې به کوم امت ته خپل رسول راغی (نو) هغوی به د هغه تکذيب وکړ، نو مونږ به د دوی

ځيني د ځينو نورو پسې (په هلاکت کې) پرله پسې کړل او مونږ دوی تشې قصې وگرځول، نو (د الله له رحمت نه) لرې والی دی د هغه قوم لپاره چې ايمان نه راوړي

۴۵:۲۳ - بيا مونږ موسیٰ او د هغه ورور هارون ولېږل په خپلو ايتونو (معجزو) او ښکاره دليل سره

۴۶:۲۳ - فرعون او د هغه ډلې ته، نو هغوی ډېره لويي وکړه او هغوی يو متکبر قوم وو

۴۷:۲۳ - نو هغوی ويل: ايا مونږ به د خپل ځان په شان په دوه انسانانو باندې ايمان راوړو؟ حال دا چې د دې دواړو قوم زمونږ غلامان دي

۴۸:۲۳ - نو هغوی د دې دواړو تکذيب وکړ، نو شول له هلاك کړی شويو نه

۴۹:۲۳ - او يقينًا يقينًا مونږ موسیٰ ته کتاب ورکړی و، د دې لپاره چې دوی (بني اسرائيل) نېغه لار ومومي

۵۰:۲۳ - او مونږ د مريمې زوی او د هغه مور (د خپل قدرت) لويه نښه گرځولې وه. او مونږه دوی دواړه داسې هسکې (او نرمې ځربې) ځمکې ته راوستل چې د قرار او پاکو صافو بهېدونکو اوبو والا وه

۵۱:۲۳ - ای رسولانو! تاسو له پاکيزه څيزونو ځنې خورئ او نېك عملونه کوئ، بېشکه زه په هغو کارونو چې تاسو يې کوئ، ښه عالم يم

۵۲:۲۳ - او بېشکه دا ستاسو دين دی، په داسې حال کې چې يو دين دی او زه ستاسو رب يم، نو تاسو له ما نه وېرېږئ

۵۳:۲۳ - نو دوی (امتيانو) خپل (د دين) کار په خپل مينځ کې ټوټې ټوټې پرې کړ، هر يو حزب (ډله) په هغه (باطل دين) باندې چې له دوی سره دی، ډېر خوشحال دي

۵۴:۲۳ - نو ته دوی تر يو وخته پورې په خپلې گمراهۍ کې پرېږده

۵۵:۲۳ - ايا دوی گمان کوي چې بېشکه له مال او زامنو ځنې چې په څه سره مونږ د دوی مدد کوو

۵۶:۲۳ - چې مونږ دوی ته په ښېگنيو (او اکرامونو) کې تلوار کوو؟ بلکې دوی نه پوهېږي

۵۷:۲۳ - بېشکه هغه کسان چې دوی د خپل رب (د عذاب) له ډاره وېرېدونکي دي

۵۸:۲۳ - او هغه کسان چې دوی د خپل رب په ايتونو ايمان راوړي

۵۹:۲۳ - او هغه کسان چې دوی له خپل رب سره شرك نه کوي

۶۰:۲۳ - او هغه کسان چې ورکوي، هغه څه چې ورکوي، او زړونه د دوی وېرېدونکي وي (ځکه چې) يقينًا دوی خپل رب ته واپس ورتلونکي دي

۶۱:۲۳ - دغه کسان په نېکيو کې تلوار کوي او دوی دغو (نېکيو) ته ړومبی کېدونکي دي

٦٢:٢٣ - مونږ هېڅ يو نفس نه مکلف کوو مګر د هغه له طاقت سره سم او زمونږ سره کتاب دی چې حق بيانوي او په دوی به هېڅ ظلم ونه کړی شي

٦٣:٢٣ - بلکې د دوی (کفارو) زړونه له دې (قرآن) نه په غفلت کې دي او د دوی لپاره له دې (شرك) نه علاوه نور (ناکاره) عملونه دي، چې دوی هغه کوونکي دي

٦٤:٢٣ - تر هغه پورې چې کله مونږ د دوی متکبره مالداران په عذاب سره ونيسو (، نو) ناڅاپه دوی (بيا) فرياد کوي

٦٥:٢٣ - نن ورځ فرياد مه کوئ، بېشکه تاسو سره به زمونږ له جانبه مدد ونه کړی شي

٦٦:٢٣ - يقينًا زما ايتونه به په تاسو تلاوت کولی شول، نو تاسو به په خپلو پوندو بېرته ګرځېدئ

٦٧:٢٣ - په دې حال کې چې کبر کوونکي به وئ په دې (قرآن، محمد يا کعبې) سره، چې د شپې قصې کوونکي به وئ، تاسو به (قرآن) پرېښوده

٦٨:٢٣ - ايا نو دوی په دې وينا کې (چې قرآن دی) فکر نه کوي، يا دوی ته هغه څه راغلي دي چې د دوی پلرونو ته نه دي راغلي چې له دوی نه پخوا وو

٦٩:٢٣ - يا که دوی خپل رسول نه دی پېژندلی، پس دوی له ده نه منکران دي

٧٠:٢٣ - ايا دوی وايي چې په ده لېونتوب دی، (داسې نه ده) بلکې هغه دوی ته حق (دين) راوړی دی او د دوی زياتره حق لره بدګڼونکي دي

٧١:٢٣ - او که حق (الله) د دوی د خواهشاتو پيروي کړې وی (، نو) خامخا به تباه شوي وو اسمانونه او ځمکه او هغه څوك چې په دغو کې دي، بلکې مونږ دوی ته د دوی ذکر راوړ، نو دوی له خپل ذکر نه مخ اړوونکي دي

٧٢:٢٣ - ايا ته له دوی نه مزدوري غواړې؟ نو د خپل رب مزدوري ډېره غوره ده او هغه ترټولو غوره رزق ورکوونکی دی

٧٣:٢٣ - او بېشکه ته يقينًا دوی نېغې لارې ته بلې

٧٤:٢٣ - او بېشکه هغه کسان چې په اخرت ايمان نه راوړي له سمې لارې نه خامخا کاږه دي

٧٥:٢٣ - او که مونږ په دوی مهرباني کړې وی او هغه تکليف مو لرې کړی وی چې په دوی دی (، نو) خامخا به دوی په خپله سرکشۍ کې راټينګ شوي وو، په دې حال کې چې سرګردان به وو

٧٦:٢٣ - او يقينًا يقينًا مونږ دوی په عذاب سره ونيول، نو (بيا هم) دوی نه خپل رب ته غاړه کېښوده او نه يې تضرع او زاري وکړه

٧٧:٢٣ - تر دې چې کله مونږ په دوی باندې د ډېر سخت عذاب والا دروازه پرانستله ناڅاپه دوی په

هغه کې نا امېده وو

۷۸:۲۳ - او دغه (الله) هماغه ذات دی چې تاسو لپاره یې غوږونه او سترګې او زړونه پیدا کړل، تاسو ډېر لږ شکر وباسئ

۷۹:۲۳ - او دی هماغه ذات دی چې تاسو یې په ځمکه کې خواره کړي یئ او خاص د هغه په طرف به تاسو ورجمع کولی شئ

۸۰:۲۳ - او د غه (الله) هغه ذات دی چې ژوندي کول کوي او مړه کول کوي او خاص د همده په اختیار کې دی د شپې او ورځې اختلاف (بدلېدل رابدلېدل) ایا نو تاسو له عقل نه کار نه اخلئ!

۸۱:۲۳ - بلکې وایي دوی په شان د هغې وینا چې پخوانیو (کافرو) ویلې وه

۸۲:۲۳ - هغوی ویل: ایا کله چې مونږ مړه شو او خاورې او هډوکې شو، ایا مونږ به په رښتیا یقینًا بیا راژوندي کولی شو

۸۳:۲۳ - (بلکې نه کېږو ځکه چې) یقینًا یقینًا مونږ ته او زمونږ پلرونو ته دا وعده له دې نه مخکې (هم) راکړی شوې وه، نه دي دا خبرې مګر د ړومبنو خلقو باطلې قصې دي

۸۴:۲۳ - ته (دوی ته) ووایه: دا ځمکه او څوك چې په دې کې دي، د چا دي؟ که چېرې تاسو پوهېږئ

۸۵:۲۳ - دوی به یقینًا ووایي: خاص د الله لپاره دي، (نو ورته) ووایه: ایا نو تاسو نصیحت نه اخلئ!

۸۶:۲۳ - ته (دوی ته) ووایه: د اوو اسمانونو او د ډېر لوی عرش رب څوك دی؟

۸۷:۲۳ - دوی به ضرور ووایي: د الله لپاره دي، ته (ورته) ووایه: ایا نو تاسو نه وېرېږئ!

۸۸:۲۳ - ته (دوی ته) ووایه: څوك دی هغه ذات چې د هغه په لاس کې د هر شي بادشاهي ده او هغه پناه ورکوي او د هغه په خلاف پناه نشي ورکول کېدی که چېرې تاسو پوهېږئ

۸۹:۲۳ - خامخا به دوی ووایي: خاص د الله لپاره دي. ته (ورته) ووایه: نو څنګه په تاسو جادو کولی شي؟

۹۰:۲۳ - بلکې مونږ دوی ته حق راوړی دی او بېشکه دوی خامخا دروغجنان دي

۹۱:۲۳ - الله (د ځان لپاره) هېڅ اولاد نیولی نه دی او نه له هغه سره بل هېڅ معبود شته (او که ورسره وی نو) په دغه وخت کې به خامخا هر اله بېولي وو هغه څه چې پیدا کړي یې وو، او خامخا د دوی ځینو به په ځینو نورو باندې غلبه کوله، پاك دی الله له هغو خبرو نه چې دوی یې بیانوي

۹۲:۲۳ - چې په غیبو او ښکاره و عالم دی، نو ډېر اوچت دی هغه له هغو څیزونو نه چې دوی یې ورسره شریکوي

۹۳:۲۳ - (ای نبي!) ته ووایه: ای زما ربه! که چېرې خامخا ته ما ته هغه (عذاب) وښیې چې له دوی سره یې وعده کولی شي

۹۴:۲۳ - ای زما ربه! نو ته ما په ظالم قوم کې مه شاملوه

۹۵:۲۳ - او بېشکه مونږ خامخا قادر یو په دې چې تا ته هغه (عذاب) وښیو چې دوی ته یې مونږ وعده ورکوو

۹۶:۲۳ - (ای نبي!) ته بدي دفع (لرې) کوه په هغې طریقې سره چې تر ټولو ښه وي، مونږ ښه پوه یو په هغو خبرو چې دوی یې بیانوي

۹۷:۲۳ - او ته ووایه: ای زما ربه! زه په تا پورې پناه نیسم د شیطانانو له وسوسو نه

۹۸:۲۳ - او زه په تا پورې پناه نیسم ای زما ربه! له دې نه چې دوی ما ته حاضر شي

۹۹:۲۳ - تر هغه پورې چې په دوی کې یو کس ته مرگ راشي (، نو بیا) به وایي: ای زما ربه! ته ما بېرته وگرځوه

۱۰۰:۲۳ - د دې لپاره چې زه نېك عمل وکړم په هغه څیز کې چې ما (هلته په دنیا کې) پرېښی دی، هېڅ کله هم نشي کېدی، بېشکه دا (بېرته تلل) یوه خبره ده چې دا د هغې ویونکی دی او د دوی په مخ کې برزخ دی تر هغې ورځې پورې چې دوی به بیا ژوندي راپورته کولی شي

۱۰۱:۲۳ - نوکله چې په شپېلۍ کې پوکی وکړی شي، نو نه به وي د دوی په مینځ کې هېڅ (فایده مند) نسبونه په دغې ورځ کې او نه به دوی له یو بل نه پوښتنه کوي

۱۰۲:۲۳ - نو هغه څوك چې، د هغه تلې درنې شوې، نو همدغه خلق کامیاب دي

۱۰۳:۲۳ - او هغه څوك چې، د هغه تلې سپکې شوې، نو دغه هغه کسان دي چې خپلو ځانونو ته یې تاوان رسولی دی، په دوزخ کې به تل پراته وي

۱۰۴:۲۳ - اور به د دوی مخونه سوځوي او دوی به په دغه (جهنم) کې بدمخي غونج تندي وي

۱۰۵:۲۳ - ایا زما ایتونه به تاسو ته نه لوستل کېدل، نو تاسو به د هغو تکذیب کاوه

۱۰۶:۲۳ - دوی به ووایي: ای زمونږه ربه! پر مونږ باندې زمونږ بدبختي غالبه شوې وه او مونږ گمراه قوم وو

۱۰۷:۲۳ - ای زمونږ ربه! مونږ له دې (جهنم) نه وباسه، نو که مونږ بیا (کفر ته) راوگرځېدو، نو بیا یقینًا مونږ ظالمان یو

۱۰۸:۲۳ - وبه فرمایي: ذلیله خوار پراته اوسئ په ده کې او زما سره خبرې مه کوئ

۱۰۹:۲۳ - بېشکه شان دا دی چې زما په بنده گانو کې یوه ډله وه چې ویل به یې: ای زمونږ ربه!

مونږ ایمان راوړی دی، نو ته مونږ ته بخښنه وکړه او پر مونږ رحم وکړه او ته تر ټولو ډېر غوره رحم کوونکی یې

۱۱۰:۲۳ - نو تاسو به هغوی مسخره کړی شوي نیول، تر دې چې دوی له تاسو نه زما یاد (هم) هېر کړ او تاسو به پر هغوی پورې خندل

۱۱۱:۲۳ - بېشکه زه چې یم، ما نن ورځ هغوی ته بدله ورکړه، په سبب د هغه چې هغوی صبر کړی و، بېشکه هم هغوی کامیاب دي

۱۱۲:۲۳ - وبه وایي: تاسو په ځمکه کې د کلونو په شمېر څومره وخت تېر کړی دی؟

۱۱۳:۲۳ - هغوی به ووایي: مونږ وخت تېر کړی دی یوه ورځ، یا د ورځې څه حصه، نو له حسابگرو نه تپوس وکړه

۱۱۴:۲۳ - وبه فرمایي: تاسو وخت نه دی تېر کړی مگر (د اخرت د عذاب په مقابله کې) ډېر لږ، که چېرې په رښتیا تاسو یئ چې پوهېږئ

۱۱۵:۲۳ - ایا نو تاسو گمان کوئ چې بېشکه مونږ تاسو بس عبث پیدا کړي یئ او دا چې بېشکه تاسو به مونږ ته نه راوستل کېږئ

۱۱۶:۲۳ - نو ډېر اوچت دی الله چې حق بادشاه دی، نشته دی هېڅ حق معبود مگر هغه دی، د عزتناك عرش رب دی

۱۱۷:۲۳ - او هغه څوك چې له الله سره بل داسې اله بلي چې له هغه سره په دې باندې هېڅ دلیل نشته، نو بېشکه همدا خبره ده چې د ده حساب د ده د رب په نیز دی، بېشکه شان دا دی چې کافران بری نه مومي

۱۱۸:۲۳ - او ته ووایه: ای زما ربه! بخښنه وکړه او رحم وکړه او ته ترټولو ډېر غوره رحم کوونکی یې

## (مدني) رڼا - النور ۲۴

۱:۲۴ - (دا) یو سورت دی چې مونږ دا نازل کړی دی او مونږ دا فرض کړی دی او مونږ په ده کې ښکاره ایتونه نازل کړي دي، د دې لپاره چې تاسو نصیحت واخلئ

۲:۲۴ - هغه ښځه چې زنا یې کړې وي او هغه سړی چې زنا یې کړې وي، نو تاسو (ای قاضیانو او حاکمانو) په دغو دواړو کې هر یو سل دُرې ووهئ او تاسو دې د الله په دین کې (په حکم نافذولو کې) په دغو باندې زړه سوی ونه نیسي، که یئ تاسو چې په الله او په ورځ د اخرت ایمان لرئ او د دې دواړو سزا ته دې د مومنانو یوه ډله حاضره وي

۳:۲۴ - زنا کار سړی نکاح نه کوي مگر له زناکارې، یا مشرکې ښځې سره او زناکاره ښځه، له هغې سره نکاح نه کوي مگر زنا کار، یا مشرك سړی او په مومنانو باندې دغه (زنا او د زنا کارو سره نکاح) حرامه کړی شوي دي

۴:۲۴ - او هغه کسان چې په پاکدامنو ښځو تهمت لگوي، بیا څلور گواهان رانه ولي، نو تاسو دوی اتیا دُرې ووهئ او هیڅکله هم د دوی گواهي مه قبلوئ او همدغه کسان فاسقان دي

۵:۲۴ - مگر هغه کسان چې له دې نه بعد توبه وباسي او (د ځان) اصلاح وکړي، نو بېشکه الله ډېر بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۶:۲۴ - او هغه کسان چې په خپلو ښځو تهمت ولگوي او له خپلو ځانونو نه غیر نور د دوی لپاره څوك گواهان نه وي، نو د دوی د یو گواهي څلور ځلې د الله په نامه شاهدي کول دي چې بېشکه دا خامخا له رښتینو څخه دی

۷:۲۴ - او پنځمه (گواهي) دا چې بېشکه په ده دې د الله لعنت وي که دا له دروغجنو ځنې وي

۸:۲۴ - او له هغې نه سزا دفع کوي دا چې هغه (ښځه) څلور ځلې د الله په نامه شاهدي ورکړي چې بېشکه دغه (سړی) خامخا له دروغجنو ځنې دی

۹:۲۴ - او پنځمه (گواهي) دا چې بېشکه د الله غضب دې په دې وي که دا (سړی په دې تهمت لگولو کې) له رښتیا ویونکو ځنې وي

۱۰:۲۴ - او که پر تاسو باندې د الله فضل او د هغه رحمت نه وی او دا چې بېشکه الله ډېر توبه قبلوونکی، ښه حکمت والا دی (نو تاسو به په دنیا کې معذب شوي وی)

۱۱:۲۴ - بېشکه هغه کسان چې غټ دروغ یې راوړي دي، له همه تاسو نه یوه ډله ده، په دې (دروغو) د ځان لپاره د شر گمان مه کوئ بلکې دا تاسو لپاره خیر دی، په دغو (بهتان ویونکو) کې د هر یو سړي لپاره هغه شی دی چې هغه گټلی دی له گناه نه او هغه کس چې د دغو (دروغو) لوی بار یې پورته کړی دی په دوی کې د ده لپاره ډېر لوی عذاب دی

۱۲:۲۴ - کله چې تاسو دا (دروغ) واورېدل، نو ولې مومنو سړیو او مومنو ښځو په خپلو ځانونو باندې د خیر گمان ونه کړ او دا یې ونه ویل چې دا ښکاره دروغ دي

۱۳:۲۴ - ولې یې په دې (دروغو) باندې څلور گواهان رانه وستل، نو کله چې یې څلور گواهان رانه وستل، نو همدغه کسان د الله په نیز دروغجن دي

۱۴:۲۴ - او که چېرې پر تاسو باندې د الله فضل او د هغه رحمت نه وی په دنیا او اخرت کې (، نو) خامخا به تاسو ته د هغو (دروغو) په سبب چې تاسو په هغه کې غوپه شوي وئ؛ ډېر لوی عذاب دررسېدلی و

۱۵:۲۴ - کله چې تاسو دا (بهتان) په خپلو ژبو سره اخیسته او تاسو به په خپلو خولو سره هغه خبرې کولې چې تاسو ته د هغې هېڅ علم نه و او تاسو به دا خبره اسانه ګڼله، حال دا چې هغه د الله په نیز ډېره لویه وه

۱۶:۲۴ - او کله چې تاسو دا (بهتان) واورېده (، نو) ولې تاسو ونه ویلې: مونږ ته جایز نه دي چې په دې خبره باندې خوله وخوځوو، تا لره پاکي ده (ای ربه!) دا ډېر لوی بهتان دی

۱۷:۲۴ - تاسو ته الله نصیحت کوي چې تاسو د دې په مثل کار ته هیڅکله هم ونه ګرځئ که تاسو مومنان یئ

۱۸:۲۴ - او الله تاسو ته خپل ایتونه بیانوي او الله ښه پوه، ښه حکمت والا دی

۱۹:۲۴ - بېشکه هغه کسان چې خوښوي چې په مومنانو کې فاحشه (بدنامي) خوره شي، د دوی لپاره په دنیا او اخرت کې ډېر دردوونکی عذاب دی، او الله پوهېږي او تاسو نه پوهېږئ

۲۰:۲۴ - او که پر تاسو باندې د الله فضل او د هغه رحمت نه وی او دا چې بېشکه الله ډېر نرمي کوونکی، بې حده رحم کوونکی دی (نو په دنیا کې به ډېر رسوا شوي وی)

۲۱:۲۴ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو د شیطان د قدمونو پیروي مه کوئ او چا چې د شیطان د قدمونو پیروي وکړه، نو بېشکه دا (شیطان) د بې حیایۍ او ناروا کارونو امر کوي او که پر تاسو باندې د الله فضل او د هغه رحمت نه وی (نو) په تاسو کې هیڅوك هیڅکله هم (د بهتان له ګناه نه) پاك شوی نه وی او لیکن الله پاکوي چا لره چې وغواړي او الله ښه اورېدونکی، ښه عالم دی

۲۲:۲۴ - او په تاسو کې دې د فضیلت او فراخۍ خاوندان له دې قسم نه خوري چې نه به ورکوي (نفقه) خپلوانو او مسکینانو او د الله په لار کې هجرت کوونکو ته او دوی دې معافي وکړي او تېر دې شي، ایا تاسو دا نه خوښوئ چې الله تاسو ته بخښنه وکړي او الله ښه بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۲۳:۲۴ - بېشکه هغه کسان چې په پاك لمنو، ناخبره مومنو ښځو باندې تهمت لګوي په دوی باندې په دنیا او اخرت کې لعنت کړی شوی دی او د دوی لپاره لوی عذاب دی

۲۴:۲۴ - په هغې ورځ چې په دوی باندې به خپلې ژبې او خپل لاسونه او خپلې پښې ګواهي کوي (د دوی) په هغو عملونو چې دوی به کول

۲۵:۲۴ - په دغې ورځ کې به الله دوی ته د دوی حقه (لایقه) بدله پوره ورکړي او دوی به پوه شي چې بېشکه الله، هم هغه ښکاره (او ثابت) حق دی

۲۶:۲۴ - ناپاکې ښځې د ناپاکو سړیو لپاره دي او ناپاك سړي د ناپاکو ښځو لپاره دي او پاکې

ښځې د پاکو سړیو لپاره دي او پاك سړي د پاکو ښځو لپاره دي، دغه (پاکان خلق) پاك او بري دي له هغو خبرو نه چې دوی (دروغجن) یې وایي او د دغو (پاکو خلقو) لپاره مغفرت او عزتناکه روزي ده

۲۷:۲۴ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی تاسو له خپلو کورونو نه غیر نورو کورونو ته مه داخلیږئ، تر دې چې تاسو اجازه وغواړئ او د هغو په اوسېدونکو سلام واچوئ، دا تاسو لپاره ډېر غوره دي، د دې لپاره چې تاسو نصیحت ومنئ

۲۸:۲۴ - نو که تاسو په دې (کورونو) کې څوك ونه مومئ، نو تاسو هغو ته مه ننوځئ، تر دې چې تاسو ته اجازت درکړی شي او که تاسو ته وویل شي چې بېرته وګرځئ، نو تاسو بېرته وګرځئ، دا تاسو لپاره ډېر پاکیزه دي او الله په هغو کارونو چې تاسو یې کوئ؛ ښه عالم دی

۲۹:۲۴ - پر تاسو باندې هېڅ ګناه نشته چې تاسو داسې کورونو ته داخل شئ چې د اوسېدنې نه دي (او) په هغو کې ستاسو څه سامان (منفعت) وي او الله پوهېږي په هغه څه چې تاسو یې څرګندوئ او هغه چې تاسو یې پټوئ

۳۰:۲۴ - ته مومنانو ته ووایه چې خپلې سترګې دې (له نامحرمو نه) ټیټې ساتي او د خپلو فرجونو (شرم ځایونو) ساتنه دې کوي، دا د دوی لپاره ډېر پاکیزه دي، بېشکه الله ښه خبردار دی په هغو کارونو چې دوی یې کوي

۳۱:۲۴ - او ته مومنو ښځو ته ووایه چې خپلې سترګې دې ټیټې ساتي او د خپلو شرم ځایونو حفاظت دې کوي او خپل زینت دې نه ښکاره کوي مګر هغه چې له دې (زینت) نه (عادتًا) ظاهرېږي، او په خپلو ګرېوانونو دې پړوني واچوي او دوی دې خپل زینت نه څرګندوي مګر د خپلو خاوندانو لپاره یا د خپلو پلرونو یا د خپلو خاوندانو د پلرونو لپاره یا د خپلو زامنو لپاره یا د خپل خاوند د زامنو لپاره یا د خپلو ورونو لپاره یا د خپلو ورېرونو لپاره یا د خپلو خورینو لپاره یا د خپلو ښځو لپاره یا هغه چا ته چې د دوی ښي لاسونه یې مالکان شوي دي، یا هغو تابعانو ته چې ښځو ته له حاجت والاوو نه وي له سړیو نه، یا هغو وړو هلکانو (ماشومانو) ته چې د ښځو په اسرارو او پټو خبرو واقف شوي نه وي. او دا (ښځې) دې خپلې پښې نه وهي، د دې لپاره چې معلوم کړی شي هغه څه چې دوی یې له خپل زینت ځنې پټوي او تاسو ټول الله ته توبه وباسئ ای مومنانو! د دې لپاره چې تاسو کامیاب شئ

۳۲:۲۴ - او په تاسو کې د بې واده خلقو (ښځې وي او که سړي) نکاح کوئ، او په خپلو مریانو او وینځو کې د نېکانو صالحو (هم نکاح کوئ) که چېرې (دغه ذکر شوي خلق) فقیران وي (نو) الله به دوی له خپله فضله غنیان کړي او الله د فراخۍ والا، ښه عالم دی

۳۳:۲۴ - او هغه کسان دې خپل ځان (او عفت) وساتي چې (اسباب د) نکاح نه مومي تر هغه

پورې چې الله دوی له خپله فضله غنیان کړي او ستاسو په مریانو وینځو کې چې څوك مکاتب والی غواړي، نو تاسو له هغوی سره مکاتبت وکړئ که تاسو په دوی کې څه خیر معلوم کړئ او تاسو دوی ته د الله له هغه مال نه ورکړئ چې تاسو ته یې درکړی دی او تاسو خپلې وینځې په زنا مه مجبوروئ، که دوی د ځان پاك ساتلو اراده لري، د دې لپاره چې تاسو د دنیايي ژوند سامان (او مال) طلب کړئ او څوك چې دوی مجبورې کړي، نو بېشکه الله (چې دی) په دوی باندې د (مالکانو له) زور نه پس ډېر بخښونکی، بې حده مهربان دی

۳۴:۲۴ - او یقینًا یقینًا مونږ تاسو ته څرګندوونکي ایتونه نازل کړي دي او حال د هغو کسانو چې له تاسو نه مخکې تېر شوي دي او نصیحت لپاره د متقیانو

۳۵:۲۴ - الله د اسمانونو او ځمکې نور دی، د هغه د نور صفت داسې دی لکه یوه طاقچه ده چې په هغې کې بله ډیوه ده، بله ډیوه په شیشې (قندیل) کې ده، دغه قندیل (داسې دی) ګویاکې هغه روڼ ځلېدونکی ستوری دی، د زیتون له مبارکې ونې نه بلولی شي چې (دغه ونه) نه مشرق طرف ته وي او نه مغرب طرف ته، نژدې ده چې د هغې تېل (پخپله) رڼا وکړي اګر چې دغو ته اور هم نه وي رسېدلی، رڼا له پاسه رڼا، الله د خپل نور په طرف هغه چا ته لار ښیي چې یې وغواړي او الله د خلقو لپاره مثالونه بیانوي، او الله په هر شي باندې ښه پوه دی

۳۶:۲۴ - په هغو کورونو (جوماتونو) کې چې الله حکم کړی دی چې پورته دې کړل شي او په دغو کې دې د ده نوم یادوه شي او په دغو (جوماتونو) کې د هغه پاکي بیانوي، د ورځې په شروع کې او د ورځې په اخر کې

۳۷:۲۴ - (داسې) سړي چې د الله له ذکر او لمونځ قایمولو او د زکات اداکولو نه یې نه تجارت غافله کوي او نه اخیستل خرڅول، دوی له هغې ورځې نه وېرېږي چې په هغې کې به زړونه او سترګې اوړي راوړي

۳۸:۲۴ - د دې لپاره چې الله دوی ته بدله ورکړي ډېره ښکلې بدله د هغو عملونو چې دوی کړي دي او دوی ته له خپل فضله اضافه وکړي او الله چا ته چې وغواړي، بې له حسابه رزق ورکوي

۳۹:۲۴ - او هغه کسان چې کافران شوي دي، د هغوی عملونه د سراب (شګې ګل) په شان دي چې په هوار ډاګ کې دي، تږی په هغه باندې د اوبو ګمان کوي، تر دې چې کله ده ته راشي، نو دغه هېڅ شی ونه مومي او په خپلې خوا کې الله ومومي، نو هغه به ده ته د ده حساب پوره ورکړي، او الله ډېر ژر حساب والا دی

۴۰:۲۴ - یا (د دوی عملونه) د هغو تیارو په شان دي چې په ژور سمندر کې دي، چې دغه (سمندر) یو موج (چپې) پټ کړی وي، د هغه له پاسه بل موج (چپه) وي (بیا) د هغه له پاسه وریځ وي، تیاري دي چې د دوی ځینې د ځینو نورو له پاسه دي، کله چې دی خپل لاس راوباسي

(، نو) نژدې نه دي چې دغه وويني او هر هغه څوك چې الله ده ته رڼا ورنه كړي، نو د هغه لپاره هېڅ رڼا نشته

۴۱:۲۴ - ايا ته نه وينې چې بېشكه الله چې دى، د هغه لپاره پاكي بيانوي هغه څوك چې په اسمانونو او ځمكه كې دي. او مرغان هم (تسبيح وايي)، په داسې حال كې چې د خپلو وزرو خواره كوونكي وي، هر يو (چې دى) يقينًا هغه (الله) د هغه په لمونځ او د هغه په تسبيح عالم دى، او الله ښه عالم دى په هغو كارونو چې دوى يې كوي

۴۲:۲۴ - او خاص د الله لپاره ده د اسمانونو او ځمكې بادشاهي، او خاص الله ته بېرته ورتله دي

۴۳:۲۴ - ايا تا نه دي كتلي چې بېشكه الله وريځې روانوي، بيا هغه په خپل منځ كې يو ځاى كوي، بيا هغه لاندې باندې قط په قط كوي، بيا ته باران وينې چې د دې له مينځه راوځي او د اسمان له جانبه (د وريځو) غرونه راكوزوي چې په هغو كې ځينې ږلۍ وي، نو هغه رسوي هغه چا ته چې يې وغواړي او اړوي يې له هغه چا نه چې يې وغواړي، نژدې وي چې د هغو د برېښنا پرق (چمك) نظرونه ختم كړي

۴۴:۲۴ - الله شپه او ورځ اړوي را اړوي بېشكه په دغو كې د سترګو خاوندانو ته لوى عبرت دى

۴۵:۲۴ - او په ځمكه ګرځېدونكى هر حيوان الله له اوبو څخه پيدا كړى دى، نو په دوى كې ځينې هغه دي چې په خپلې خېټې تګ كوي او په دوى كې ځېنې هغه دي چې په دوه پښو تګ كوي او په دوى كې ځينې هغه دي چې په څلورو ګرځي، الله چې څه وغواړي پيدا كوي يې، بېشكه الله په هر شي باندې ښه قادر دى

۴۶:۲۴ - يقينًا يقينًا مونږه بيانوونكي ايتونه نازل كړي دي او الله چې چا ته وغواړي، نېغې لارې ته يې هدايت كوي

۴۷:۲۴ - او دوى وايي: مونږ په الله باندې او په رسول باندې ايمان راوړى دى او مونږ اطاعت كړى دى، بيا په دوى كې يوه ډله له دې نه پس مخ ګرځوي. او دغه خلق له سره مومنان نه دي

۴۸:۲۴ - او كله چې دوى الله او د هغه رسول ته راوبلل شي، د دې لپاره چې هغه د دوى په مينځ كې فيصله وكړي، ناڅاپه، په دوى كې يوه ډله مخ ګرځوونكې وي

۴۹:۲۴ - او كه حق د دوى لپاره وي (نو بيا) ده (رسول) ته راځي، چې ګړندي فرمان منونكي دي

۵۰:۲۴ - ايا د دوى په زړونو كې مرض دى، يا دوى شك كوي، يا دوى وېرېږي له دې نه چې الله او د هغه رسول به په دوى ظلم وكړي، بلكې همدغه خلق ظالمان دي

۵۱:۲۴ - بېشكه د مومنانو خبره خو همدا وي، كله چې دوى الله او د هغه رسول ته وبلل شي چې وايي: مونږ (حكم) واورېده او مونږ ومانه او همدغه خلق كامياب (خلاصى موندونكي) دي

۵۲:۲۴ - او هر څوك چې د الله او د هغه د رسول اطاعت وکړي او له الله نه ووېرېږي او د هغه تقویٰ اختیار کړي، نو همدغه خلق بری موندونکي دي

۵۳:۲۴ - او دوی په الله قسمونه وخوړل، سخت پاخه قسمونه: خامخا که ته دوی ته (جهاد ته د وتلو) امر وکړې (نو) دوی به خامخا ضرور وځي، ته (دوی ته) ووایه: تاسو (د دروغو) قسمونه مه خورئ، (له تاسو مطلوب) نېك طاعت دی، بېشکه الله ښه خبردار دی په هغو کارونو چې تاسو یې کوئ

۵۴:۲۴ - ته دوی ته ووایه: تاسو د الله اطاعت وکړئ او د رسول اطاعت وکړئ، نو که دوی مخ واړوي، نو بېشکه همدا خبره ده چې په دغه (رسول) باندې هغه (د تبلیغ) بار دی چې پرې ایښودل شوی دی او پر تاسو باندې هغه بار دی چې په تاسو ایښودل شوی دی او که تاسو د هغه (رسول) اطاعت وکړئ (نو) نېغه لار به ومومئ، او د رسول په ذمه نشته مگر ښکاره پېغام رسول

۵۵:۲۴ - الله وعده کړې د هغو کسانو سره چې ایمان یې راوړی دی، چې تاسو یئ او نېك عملونه یې کړي دي، چې خامخا هرومرو به دوی ته په ځمکه کې خلافت ورکوي لکه چې هغو کسانو ته یې خلافت ورکړی و چې له دوی نه مخکې وو او خامخا ضرور به دوی ته د دوی هغه دین ثابت (او قوي) وگرځوي چې هغه (الله) د دوی لپاره غوره کړی دی او خامخا ضرور به دوی ته د دوی له وېرې نه پس امن په بدل کې ورکړي، چې دوی به زما عبادت کوي او زما سره به هېڅ شی نه شریکوي، او هر څوك چې د دغو (انعامونو) نه بعد کافر شو، نو همدغه کسان فاسقان دي

۵۶:۲۴ - او تاسو لمونځ قایموئ او زکات ادا کوئ او د رسول اطاعت کوئ، د دې لپاره چې په تاسو رحم وکړی شي

۵۷:۲۴ - ته له سره گمان مه کوه په هغو کسانو چې کافران شوي دي چې په ځمکه کې (دوی مونږ لره) عاجزه کوونکي دي. او د دوی استوگنه اور دی، او هغه خامخا د ورتلو بد ځای دی

۵۸:۲۴ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! له تاسو نه دې هغه کسان چې تاسو یې مالکان یئ او هغه کسان چې له تاسو (ازادو) نه بلوغ ته نه دي رسېدلي، درې ځلې دې اجازت غواړي له سبا د لمانځه نه مخکې او کله چې تاسو په غرمه کې جامې وباسئ او د ماسختن له لمانځه نه پس.، تاسو لپاره درې د پردې وختونه دي.، د دغو (وختونو) نه غیر نه په تاسو گناه شته او نه پر هغوی باندې، (دوی) ډېر گرځېدونکي دي پر تاسو باندې، ستاسو ځینې په ځینو نورو باندې.، همداسې الله تاسو ته ایتونه بیانوي، او الله ښه عالم، ښه حکمت والا دی

۵۹:۲۴ - او کله چې ستاسو (ازاد) ماشومان بلوغ ته ورسېږي، نو دوی دې اجازت غواړي، لکه چې هغه کسان اجازت غواړي چې له دوی نه مخکې (بالغ شوي) دي، همداسې الله تاسو ته

خپل ایتونه بیانوي، او الله ښه عالم، ښه حکمت والا دی

٦٠:٢٤ - او ډېرې زړې (له حیض او اولاد نه) ناستې ښځې هغه چې (د بوډاوالي په وجه) د نکاح امید نه لري، نو پر هغوی باندې څه ګناه نشته چې خپلې جامې کېږدي، په داسې حال کې چې د زینت ښکاره کوونکې نه وي، او دا چې دوی (له دې نه هم) ځان وساتي، د دوی لپاره ډېره غوره دي، او الله ښه اورېدونکی، ښه عالم دی

٦١:٢٤ - په ړانده باندې حرج نشته او نه په ګوډ حرج (مشقت) شته او نه په ناروغه حرج شته او نه ستاسو په خپلو ځانونو باندې (حرج شته) چې تاسو له خپلو کورونو نه خوراك وکړئ، یا د خپلو پلرونو له کورونو نه، یا د خپلو میندو له کورونو نه، یا د خپلو ورونو له کورونو نه، یا د خپلو خویندو له کورونو نه، یا د خپلو ترونو له کورونو نه، یا د خپلو پلرنۍ ترورګانو له کورونو نه یا د خپلو ماماګانو له کورونو نه، یا د خپلو مورنۍ ترورګانو له کورونو نه، یا له هغو (کورونو) نه چې تاسو د هغو د چابیو اختیارمن شئ، یا د خپلو دوستانو (له کورونو) نه.، په تاسو هېڅ ګناه نشته چې تاسو یو ځای خوراك وکړئ، یا بېل بېل، نو کله چې تاسو کورونو ته ننوځئ، نو په خپلو ځانونو سلام اچوئ، (دا) د الله له جانبه مبارکه پاکیزه تحفه ده، همداسې الله تاسو ته ایتونه بیانوي، د دې لپاره چې تاسو له عقل نه کار واخلئ

٦٢:٢٤ - بېشکه همدا خبره ده چې مومنان خو هغه کسان دي چې په الله او د هغه په رسول یې ایمان راوړی دی. او کله چې دوی له هغه (رسول) سره په کوم جمع کوونکي کار (لکه، جمعه، جهاد، یا جرګه) وي، (نو پخپل سر) نه ځي، تر هغه پورې چې له هغه نه اجازت وغواړي، بېشکه هغه کسان چې له تا نه اجازت غواړي، دغه کسان دي چې په الله او د هغه په رسول ایمان لري، نو کله چې دوی له تا نه د خپلو ځینو کارونو لپاره اجازت وغواړي، نو په دوی کې چې چا ته وغواړې اجازت ورکړه او د دوی لپاره له الله نه بخښنه وغواړه. بېشکه الله ډېر بخښونکی، بې حده مهربان دی

٦٣:٢٤ - تاسو په خپل مینځ کې د رسول بلنه داسې مه ګرځوئ لکه ستاسو د ځینو بلنه ځینو نورو ته.، یقینًا الله هغه کسان پېژني چې له تاسو نه کشېږي (یو یو، دوه دوه، پټ دباندې وځي)، په داسې حال کې چې یو له بله ځان سره پناه کوي، نو هغه کسان دې ووېرېږي چې د هغه (رسول) له حکم نه مخالفت کوي، له دې نه چې دوی ته څه افت ورسېږي، یا دوی ته ډېر دردوونکی عذاب ورسېږي

٦٤:٢٤ - خبردار شئ! بېشکه خاص د الله لپاره دي هر هغه څه دي چې په اسمانونو او ځمکه کې دي، یقینًا هغه عالم دی په هغه حال چې تاسو په هغه یئ او په هغې ورځ (هم) چې تاسو به هغه ته بېرته بېول کېږئ، نو هغه به دوی په هغو عملونو خبر کړي چې دوی کړي دي، او الله په هر شي باندې ښه عالم دی

۱:۲۵ - ډېر برکتناك دى هغه ذات چې په خپل بنده يې فرقان (قرآن) نازل کړى دى، د دې لپاره چې دى د خلقو لپاره وېروونکى شي

۲:۲۵ - هغه ذات چې خاص د هغه لپاره د اسمانونو او ځمکې بادشاهي ده او هېڅ اولاد يې نه دى نيولى او د ده لپاره په بادشاهۍ کې هېڅ شريك نشته، او هر شى يې پيدا کړى دى، نو هغه يې په اندازه کړى دى، اندازه کول

۳:۲۵ - او دوى (کفارو) له هغه نه غير نور داسې معبودان نيولي دي چې هېڅ شى نشي پيدا کولى، په داسې حال کې چې دوى پيدا کاوه شي او دوى د خپلو ځانونو لپاره نه د ضرر مالکان دي او نه د نفعې او نه د مرګ اختيار لري او نه د ژوند او نه د بيا ژوندي کولو

۴:۲۵ - او کافران شويو خلقو وويل: نه دى دا مګر دروغ چې ده، له ځانه جوړ کړى دى او په ده باندې نورو خلقو د ده مرسته کړې ده.، نو يقينًا دغو (کفارو) وکړ لوى ظلم او دروغ

۵:۲۵ - او دوى وويل: (دا) د ړومبنيو خلقو باطلې قصې دي چې ده په چا ليکلي دي، نو هغه ده ته سبا او بېګاه لوستلى شي

۶:۲۵ - ته (دوى ته) ووايه: دا (قرآن) هغه ذات نازل کړى دى چې عالم دى په هر پټ څيز باندې چې په اسمانونو او ځمکه کې دى، بېشکه هغه ډېر بخښونکى، بې حده رحم کوونکى دى

۷:۲۵ - او دوى وايي: دې رسول ته څه دي چې طعام خوري او په بازارونو کې ګرځي، ده ته ملايك ولې نه نازلاوه شي، بيا چې له ده سره دغه (ملايك) وېروونکي شي

۸:۲۵ - يا ده ته خزانه ولې نه غورځولى کېږي، يا ولې د ده لپاره داسې باغ نه کېږي چې دا له هغه نه خوراك کوي؟ او ظالمانو وويل: تاسو پيروي نه کوئ مګر د داسې سړي چې سحر (جادو) پرې شوى دى

۹:۲۵ - ته وګوره! دوى تا لپاره څنګه مثالونه بيانوي، نو ګمراه شول، نو دوى د (حقې) لارې (د موندلو) هېڅ طاقت نه لري

۱۰:۲۵ - ډېر برکتناك دى هغه ذات چې که وغواړي تا لپاره به د دغو (خزانو) نه غوره وګرځوي (يعنې داسې) باغونه چې د هغو له لاندې ولې بهېږي او تا لپاره به بنګلې جوړې کړي

۱۱:۲۵ - بلکې دوى د قيامت تکذيب وکړ او مونږ د هغه چا لپاره چې د قيامت تکذيب کوي؛ لمبې وهونکى اور تيار کړى دى

۱۲:۲۵ - کله چې هغه (اور) دوى لره له ډېر لرې ځاى نه ووينې، نو دوى به د هغه خوټکېدل او

۱۳:۲۵ - او کله چې دوی په دغه (دوزخ) کې په تنګ ځای کې وغورځول شي، په داسې حال کې چې له یو بل سره به په ځنځیرونو تړل شوي وي (، نو) دوی به په دغه ځای کې مرګ ته چغې وهي

۱۴:۲۵ - نن ورځ تاسو یو هلاکت (مرګ) ته چغې مه وهئ او (بلکې) تاسو ډېرو هلاکتونو ته چغې ووهئ

۱۵:۲۵ - ته (دوی ته) ووایه: دغه (خیر) غوره دی، یا که هغه د همېشه والي جنت چې متقیانو (پرهېزګارو) ته یې وعده ورکړی شوې ده؟ دغه به د دوی لپاره بدله او د ورتلو ځای وي

۱۶:۲۵ - د دوی لپاره به په هغه کې هغه څه وي چې دوی یې غواړي، په داسې حال کې چې دوی به په کې تل وي، دا ستا د رب په ذمه غوښتل شوې وعده ده

۱۷:۲۵ - او (یاده کړه) هغه ورځ چې هغه (الله) به راجمع کړي دوی او هغه څه چې دوی به یې له الله نه غیر عبادت کاوه، نو وبه وایي: ایا تاسو زما دغه بنده ګان ګمراه کړي وو، یا دوی پخپله (حقه) لاره ورکه کړې وه؟

۱۸:۲۵ - دغه (معبودان) به ووایي: تاللره پاکي ده، مونږ ته جایز نه ده چې مونږ له تا نه غیر دوستان ونیسو او لېکن تا دوی ته او د دوی پلرونو ته فایده (او ښه زندګي) ورکړې وه، تر دې چې دوی ذکر (نصیحت) هېر کړ او دوی هلاکېدونکی قوم و

۱۹:۲۵ - نو یقینًا (ای مشرکانو!) دوی تاسو دروغجن کړئ په هغې خبره کې چې تاسو ویله، نو تاسو نه د (عذاب د) ګرځولو طاقت لرئ او نه د مدد کولو، او په تاسو کې هر هغه څوك چې ظلم وکړي! مونږ به هغه ته ډېر لوی عذاب وڅکوو

۲۰:۲۵ - او له تا نه مخکې مونږ رسولان نه دي لېږلي مګر چې یقینًا هغوی به خامخا طعام خوړه، او په بازارونو کې ګرځېدل او مونږه ستاسو ځینې د ځینو نورو لپاره ازمېښت ګرځولي دي (چې) ایا تاسو صبر کوئ (که نه؟) او ستا رب له ازله ښه لیدونکی دی

۲۱:۲۵ - او هغو کسانو چې زمونږ د ملاقات امېد نه لري: پر مونږ باندې ملایك ولې نه نازلولی شي، یا (ولې) مونږ خپل رب نه وینو، یقینًا یقینًا دوی په خپلو نفسونو کې کبر وکړ، او له حده تېر شول، له حد نه ډېر لوی تېرېدل

۲۲:۲۵ - (یاده کړه) هغه ورځ چې دوی به ملایك ویني، په دغې ورځ کې به د مجرمانو لپاره هېڅ زېری (خوشالي) نه وي او وایي به (ملایك چې جنت) بند دی، ممنوع دی

۲۳:۲۵ - او دوی چې څه عمل هم کړی دی هغه ته به مونږ ورسو، نو هغه به خور کړی شوی

گرد وگرځوو

۲۴:۲۵ - جنتیان به په دغې ورځ کې د استوګنې په لحاظ غوره او د ارام ځای په لحاظ ډېر ښه وي

۲۵:۲۵ - او (یاده کړه) هغه ورځ چې په ورېځو سره به اسمان ټوټې ټوټې شي او ملایك به نازل کړی شي (پرله پسې) نازلول

۲۶:۲۵ - حقیقي بادشاهي به په دغې ورځ کې د رحمن لپاره وي، او وي به دغه په کافرانو ډېره سخته ورځ

۲۷:۲۵ - او (یاده کړه) هغه ورځ چې ظالم به په خپلو دواړو لاسونو خوله لګوي، په داسې حال کې چې وایي به: ای کاشکې! ما له رسول سره (نېغه) لار نیولې وی

۲۸:۲۵ - ای زما هلاکته! کاشکې ما فلانکی سړی دوست نه وی جوړ کړی

۲۹:۲۵ - یقینًا یقینًا هغه زه له ذکر (قرآن) نه ګمراه کړم، کله چې هغه (ذکر) ما ته راغی او شیطان انسان لره بې مدده پرېښودونکی دی

۳۰:۲۵ - او رسول وویل: ای زما ربه! بېشکه زما قوم دا قرآن متروك ګرځولی دی

۳۱:۲۵ - او همداسې مونږ د هر نبي لپاره له مجرمانو څخه دښمنان ګرځولي وو او ستا رب ډېر کافي دی، سمه لار ښوونکی، او ښه مدد کوونکی

۳۲:۲۵ - او کافران شویو خلقو وویل: په ده باندې قرآن ټول یو کرت ولې نه نازلاوه شي؟ همداسې (لږ لږ یې نازلوو) د دې لپاره چې په ده سره مونږ ستا زړه مضبوط کړو او مونږ ښه په ارام لوستی دی دا (قرآن په تا باندې) په ارام لوستل

۳۳:۲۵ - او دوی تا ته کوم مثال (عجیب سوال او اعتراض) نه راوړي مګر مونږ تا ته راوړو (د هغه حق (جواب) او تر ټولو ښه تفسیر

۳۴:۲۵ - هغه کسان چې جهنم ته به په خپلو مخونو جمع کولی شي، دغه کسان د ځای په لحاظ تر ټولو بد او د لارې په لحاظ تر ټولو ګمراه دي

۳۵:۲۵ - او یقینًا یقینًا مونږ موسىٰ ته کتاب ورکړی و او مونږ له هغه سره د هغه ورور هارون مددګار ګرځولی و

۳۶:۲۵ - نو مونږ وویل: تاسو دواړه هغه قوم ته لاړ شئ چې زمونږ د ایتونو تکذیب یې کړی دی، بیا مونږ هغوی (فرعونیان) هلاك کړل، سخت هلاکول

۳۷:۲۵ - او (مونږ هلاك کړ) د نوح قوم، کله چې هغوی د رسولانو تکذیب وکړ، مونږ هغوی غرق کړل او مونږه دوی د خلقو لپاره (د عبرت) نشان وګرځول او مونږه د ظالمانو لپاره ډېر دردوونکی عذاب تیار کړی دی

۳۸:۲۵ - او (مونږ هلاك كړي دي) عاديان او ثموديان او د كوهي والا او د دوی په مينځ كې ډېر زيات نور قومونه

۳۹:۲۵ - او (په دوی كې) هر يو ته، مونږ هغه ته مثالونه بيان كړي وو او مونږ ټول هلاك كړل، بېخي هلاكول

۴۰:۲۵ - او يقينًا يقينًا دوی په هغه كلي تېر شوي دي چې په هغه باندې د بدۍ باران ورول شوی و، ايا نو دوی هغه نه ليده؟ بلكې دوی د بيا ژوندي پورته كېدلو امېد نه لاره

۴۱:۲۵ - او كله چې دوی تا ووينې (، نو) دوی تا نه نيسي مگر ځای د مسخرې (او وايي:) ايا دا هغه سړی دی چې الله، (په طور د) رسول رالېږلی دی؟

۴۲:۲۵ - بېشكه چې دی نژدې و چې مونږ خامخا له خپلو معبودانو نه بې لارې كړي كه مونږ په دوی ټينگ ودرېدلي نه وی. (الله فرمايي:) دوی به ژر پوه شي كله چې دوی عذاب ويني چې څوك له (حقې) لارې نه ډېر بې لارې دی

۴۳:۲۵ - ايا ته هغه څوك وينې چې خپل معبود يې خپل خواهش گرځولی دی! ايا نو ته به په ده باندې نگران يې

۴۴:۲۵ - ايا ته گمان كوې چې په رښتيا د دوی زياتره اوري، يا له عقل نه كار اخلي، دوی نه دي مگر په شان د څارويو بلكې دوی د لارې په لحاظ زيات گمراه دي

۴۵:۲۵ - ايا تا (د) خپل رب (قدرت) ته نه دي كتلي چې هغه سيوری څنگه غځولی دی او كه هغه غوښتلی (نو) هغه به يې خامخا ولاړ (ساكن) گرځولی وی، بيا مونږ په هغه باندې لمر دليل وگرځاوه

۴۶:۲۵ - بيا مونږ هغه خپل طرف ته راټول كړ ډېر اسان راټولول

۴۷:۲۵ - او دی هماغه ذات دی چې تاسو لپاره يې شپه لباس او خوب (سبب د) ارام گرځولی دی او ورځ يې د گرځېدو وخت گرځولې ده

۴۸:۲۵ - او همدی هغه ذات دی چې هواگانې يې له رحمت نه مخكې زېری وركوونكې لېږلې دي او مونږ له بره نه پاكوونكي اوبه نازلې كړې دي

۴۹:۲۵ - د دې لپاره چې مونږ په دغو (اوبو) سره مړ ښار راژوندی كړو او چې دا په څارويو او ډېر زياتو انسانانو وڅښوو، چې زمونږ له مخلوق څخه دي

۵۰:۲۵ - او يقينًا يقينًا مونږ دا د دوی په مينځ كې په قسم قسم طريقو خورې كړې دي، لپاره د دې چې دوی نصيحت واخلي، نو زياترو خلقو انكار وكړ مگر له كفر كولو نه

۵۱:۲۵ - او كه مونږ غوښتلی (، نو) مونږ به خامخا هر كلي ته يو وېروونكی لېږلی و

۵۲:۲۵ - نو ته د کافرانو اطاعت مه کوه او ته له دوی سره په دې (قرآن) سره جهاد کوه، ډېر لوی جهاد کول

۵۳:۲۵ - او دی هماغه ذات دی چې دوه دریابونه یې خوشې کړې دي (له یو بل سره جوخت) دا خوږ دی، ډېر خوږ (تنده ماتوونکی) او د ا (بل) تریو دی، ښه تریو او د دواړو په مینځ کې یې یوه پرده او بند پیدا کړی دی چې منع کړی شوی دی

۵۴:۲۵ - او دی همغه ذات دی چې له اوبو نه یې انسان پیدا کړی دی، بیا یې هغه (د) نسب او سخرګنۍ (والا) وګرځاوه او ستا رب ښه قادر دی

۵۵:۲۵ - او دوی له الله نه غیر د هغه څه عبادت کوي چې دوی ته نه نفع رسولی شي اونه دوی ته ضرر رسولی شي او کافر د خپل رب په مخالفت کې (د شیطان) مدد کوونکی دی

۵۶:۲۵ - او ته مونږ نه یې لېږلی مګر زېری ورکوونکی او وېروونکی

۵۷:۲۵ - ته (دوی ته) ووایه: زه له تاسو نه په دې (تبلیغ) باندې هېڅ مزدوري (اجرت) نه غواړم خو (غواړم ایمان راوړل د) هغه کس چې غواړي چې د خپل رب په طرف لار ونیسي

۵۸:۲۵ - او ته توکل وکړه په هغه تل ژوندي ذات چې نه مري او ته د هغه له ستاینې سره تسبیح بیانوه او هم الله د خپلو بنده ګانو په ګناهونو ښه کافي خبردار دی

۵۹:۲۵ - هغه (الله) چې اسمانونه او ځمکه، او هغه څه چې د دواړو په مینځ کې دي، په شپږو ورځو کې پیدا کړي دي، بیا په عرش باندې برقرار شو، (دغه) رحمن دی، نو ته د ده په باره کې له ښه خبردار نه تپوس وکړه

۶۰:۲۵ - او کله چې دوی ته وویل شي: تاسو رحمٰن ته سجده وکړئ، دوی وایي: رحمن څه شی دی؟ ایا مونږ به هغه څه ته سجده کوو چې ته یې مونږ ته حکم راکوې. او دا (رحمٰن ته د سجده کولو حکم) دوی ته منډه تېښته ورزیاته کړي

۶۱:۲۵ - ډېر برکتناك دی هغه ذات چې په اسمان کې یې برجونه پیدا کړي دي او په ده کې یې چراغ (لمر) او رڼا کوونکې سپوږمۍ پیدا کړې ده

۶۲:۲۵ - او دی هماغه ذات دی چې شپه او ورځ یې یو له بل پسې راتلونکې پیدا کړي دي، د هغه چا لپاره چې اراده لري چې نصیحت واخلي یا غواړي چې شکر وباسي

۶۳:۲۵ - او د رحمن بنده ګان هغه دي چې په ځمکه ورو ګرځي او کله چې له دوی سره جاهلان خطاب (خبره) کوي (نو) دوی سالمه (درسته) خبره کوي

۶۴:۲۵ - او هغه کسان دي چې خپل رب ته شپه تېروي، په داسې حال کې چې سجده کوونکي او قیام کوونکي وي

٦٥:٢٥ - او هغه کسان دي چې وايي: ای زمونږ ربه! ته زمونږ نه د جهنم عذاب وګرځوه، بېشکه د هغه عذاب همېشه لازمېدونکی دی

٦٦:٢٥ - بېشکه دا (جهنم) د قرار او استوګنې په لحاظ بد ځای دی

٦٧:٢٥ - او هغه کسان دي چې کله انفاق کوي (مال لګوي نو) اسراف نه کوي او بخل هم نه کوي او د دغو (دواړو حالتونو) په مينځ کې ميانه حاله وي

٦٨:٢٥ - او هغه کسان دي چې له الله سره بل معبود نه بلي او هغه نفس چې الله حرام کړی وي؛ ناحقه نه قتلوي او زنا نه کوي او څوك چې د غه (کارونه) وکړي (نو) هغه به د خپلې ګناه له جزا سره ملاقات وکړي

٦٩:٢٥ - د قيامت په ورځ به ده ته عذاب دوه چنده کولی شي او په هغه (عذاب) کې به تل وي، په داسې حال چې چې خوار او ذليله به وي

٧٠:٢٥ - مګر هغه کس چې توبه وباسي او ايمان راوړي او نېك عمل وکړي، نو دغه کسان دي چې الله به د دوی بدۍ په نېکۍ سره بدلې کړي او الله له ازله ډېر بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

٧١:٢٥ - او هغه څوك چې توبه وباسي او نېك عمل وکړي، نو بېشکه دغه کس الله ته رجوع کوي، رجوع کول

٧٢:٢٥ - او هغه کسان دي چې باطلو ته نه حاضرېږي او کله چې په بېکاره کار تېرېږي (نو) عزت داره تېرېږي

٧٣:٢٥ - او هغه کسان دي چې کله دوی ته د خپل رب په ايتونو سره نصيحت وکړی شي (نو) په دې (ايتونو) باندې کاڼه او ړانده نه غورځېږي

٧٤:٢٥ - او هغه کسان دي چې وايي: ای زمونږه ربه! ته مونږ ته زمونږ له ښځو نه او زمونږ له اولادونو نه د سترګو يخ والی راوبښه او ته مونږ د متقيانو امام وګرځوه

٧٥:٢٥ - دغه کسان دي چې د صبر کولو په سبب به دوی ته د اوچتو ماڼيو بدله ورکولی شي او په دې (جنت) کې به د ژوند په دعا او سلام سره د دوی استقبال کولی شي

٧٦:٢٥ - په داسې حال کې چې همېشه به وي دوی په دغه (جنت) کې، د قرار او استوګنې په لحاظ دا ښه ځای دی

٧٧:٢٥ - ته (دوی ته) ووايه: زما رب ستاسو څه پروا کوي که ستاسو دعا کول نه وی، نو يقينًا تاسو تکذيب کړی دی، نو ژر به دا (د تکذيب سزا تاسو سره) لازمه وي

١:٢٦ - طا، سين، ميم

٢:٢٦ - دا د واضح كتاب ايتونه دي

٣:٢٦ - ښايي چې ته د خپل ځان هلاكوونكى يې، په دې وجه چې دوى مومنان كېږي نه

٤:٢٦ - كه مونږ وغواړو (نو) په دوى به له اسمان نه يو دليل نازل كړو، بيا به د دوى څټونه دغه (دليل) ته غاړه ايښودونكي شي

٥:٢٦ - او دوى ته د رحمن له جانبه څه نوى ذكر (نصيحت) نه راځي مگر دوى له هغه نه مخ گرځوونكي دي

٦:٢٦ - نو تحقيق دوى تكذيب وكړ، پس دوى ته به ژر د هغه څه خبر (انجام) راشي چې دوى به په هغه پورې استهزا كولې

٧:٢٦ - ايا دوى ځمكې ته نه گوري، څومره ډېر مونږ په دې كې له هر قسمه عمده جوړو نه زرغون كړي دي

٨:٢٦ - بېشكه په دې كې خامخا لويه نښه ده او د دوى زياتره ايمان راوړونكي نه دي

٩:٢٦ - او بېشكه ستا رب خامخا هم هغه ښه غالب، بې حده رحم كوونكى دى

١٠:٢٦ - او (ياد كړه) هغه وخت چې ستا رب موسىٰ ته اواز وكړ داسې چې ته هغه قوم ته ورشه چې ظالمان دي

١١:٢٦ - چې د فرعون قوم دى، ايا دوى نه وېرېږي (له الله نه)!

١٢:٢٦ - (موسىٰ) وويل: اى زما ربه! بېشكه زه له دې نه وېرېږم چې دوى به زما تكذيب وكړي

١٣:٢٦ - او (بل) زما سينه تنگېږي او (بل) زما ژبه نه چلېږي، نو ته هارون ته پېغام ولېږه

١٤:٢٦ - او (بل دا چې) د هغوى لپاره زما په خلاف (دعوىٰ د) گناه ده، نو زه له دې نه وېرېږم چې دوى به ما قتل كړي

١٥:٢٦ - (الله) وفرمايل: داسې نشي كېدى، نو تاسو دواړه زما له ښكاره معجزو سره لاړ شئ، بېشكه مونږ له تاسو سره يو، اورېدونكي يو

١٦:٢٦ - نو تاسو دواړه فرعون ته ورشئ، نو (ورته) ووايئ: بېشكه مونږ د رب العلمين استازي يو

١٧:٢٦ - په دې خبره چې ته زمونږ سره بني اسرائيل خوشې كړه

١٨:٢٦ - (فرعون) وويل: ايا مونږه په خپل كاله كې ستا پالنه نه وه كړې، په داسې حال كې چې ته

بچی وې او تا په مونږ کې د خپل عمر څو کاله تېر کړي وو

۱۹:۲٦ - او تا خپل هغه کار کړی و چې تا کړی و، په دې حال کې چې ته له ناشکرو څنې یې

۲۰:۲٦ - (موسیٰ) وویل: ما دغه کار په هغه وخت کې کړی و چې زه له ناپوهانو څنې وم

۲۱:۲٦ - نو کله چې زه له تاسو ووېرېدم (نو) له تاسو نه وتښتېدم، بیا ما ته زما رب حکم (او علم) راکړ او زه یې له رسولانو څخه وګرځولم

۲۲:۲٦ - او دغه داسې احسان دی چې ته یې په ما زباتوې (هغه) دا دی چې تا بني اسرائیل غلامان ګرځولي وو

۲۳:۲٦ - فرعون وویل: او رب العلمین څه شی دی؟

۲۴:۲٦ - هغه وویل: رب دی د اسمانونو او ځمکې او د هغه څه چې د دې دواړو په مینځ کې دي، که تاسو یقین کوونکي یئ

۲۵:۲٦ - هغه (فرعون) خپلو ګېر چاپېره خلقو ته وویل: ایا تاسو نه اورئ؟

۲٦:۲٦ - (موسیٰ) وویل: (چې رب العلمین) ستاسو رب دی او ستاسو د مخکینو پلرونو رب دی

۲۷:۲٦ - (فرعون) وویل: بېشکه ستاسو دغه رسول چې تاسو ته رالېږل شوی دی، یقینًا لېونی دی

۲۸:۲٦ - (موسیٰ) وویل: (هغه) د مشرق او مغرب رب دی او څه چې د دې دواړو په مینځ کې دي، که تاسو له عقل نه کار اخلئ

۲۹:۲٦ - (فرعون موسیٰ ته) وویل: قسم دی که تا له ما نه غیر بل معبود ونیوه (نو) زه به خامخا هرومرو تا وګرځوم له قیدیانو څنې

۳۰:۲٦ - (موسیٰ) وویل: ایا اګر که زه تا ته یو ښرګندوونکی شی (دلیل) راوړم

۳۱:۲٦ - (فرعون) وویل: نو ته هغه راوړه که ته له رښتینو څخه یې

۳۲:۲٦ - نو هغه (موسیٰ) خپله امسا وغورځوله، نو ناڅاپه هغه وه ښکاره ښامار

۳۳:۲٦ - او خپل لاس یې راواېست، نو ناڅاپه هغه د کتونکو لپاره تك سپین و

۳۴:۲٦ - فرعون خپلو چاپېره سردارانو ته وویل: بېشکه دا یقینًا ډېر پوه جادوګر دی

۳۵:۲٦ - دا غواړي چې په خپل جادو سره تاسو له خپلې ځمکې نه وباسي، نو تاسو د څه مشوره راکوئ؟

۳٦:۲٦ - هغوی وویل: ته دا او د ده ورور وروسته کړه او په ښارونو کې راټولوونکي ولېږه

۳۷:۲۶ - چې تا ته هر ښه پوه، غښ جادوګر راولي

۳۸:۲۶ - نو جادوګر د معلومې ورځې میعاد ته راجمع کړی شول

۳۹:۲۶ - او خلقو ته وویل شول چې ایا تاسو راجمع کېدونکي یئ؟

۴۰:۲۶ - کېدی شي چې مونږ د جادوګرو پیروي وکړو که هم دوی غالب راتلونکي شي

۴۱:۲۶ - نو کله چې جادوګر راغلل، (نو) فرعون ته یې وویل: ایا یقینًا به زمونږ لپاره واقعي اجر وي که همدا مونږ غالبه شو؟

۴۲:۲۶ - ویې ویل: هو، او بېشکه تاسو به په دغه وخت کې خامخا له مقربانو څخه یئ!

۴۳:۲۶ - دوی ته موسیٰ وویل: تاسو هغه څه وغورځوئ چې تاسو یې غورځوونکي یئ

۴۴:۲۶ - نو هغوی خپلې رسۍ او امساګانې وغورځولې او ویې ویل: د فرعون په عزت سره، بېشکه مونږ، خامخا همدا مونږ غالب یو

۴۵:۲۶ - نو موسیٰ خپله امسا وغورځوله، نو ناڅاپه هغې هغه څه ښوی تېرول چې دوی په دروغه جوړ کړي وو

۴۶:۲۶ - نو جادوګر وغورځول شول (پرمخې)، چې سجده کوونکي وو

۴۷:۲۶ - ویې ویل: مونږ په رب العلمین ایمان راوړ

۴۸:۲۶ - چې د موسیٰ او هارون رب دی

۴۹:۲۶ - (فرعون) وویل: تاسو په ده ایمان راوړ مخکې له دې نه چې زه تاسو ته اجازت درکړم، بېشکه دا یقینًا ستاسو هغه مشر دی چې تاسو ته یې جادو ښودلی دی، نو یقینًا تاسو به ژر پوه شئ، خامخا هرومرو به زه ستاسو لاسونه او ستاسو پښې، ادل بدل پرې کړم، او زه به خامخا هرومرو تاسو ټول په دار کړم

۵۰:۲۶ - هغوی وویل: هېڅ ضرر نشته، بېشکه مونږ خپل رب ته بېرته ورتلونکي یو

۵۱:۲۶ - بېشکه مونږ دا طمع لرو چې زمونږ رب به مونږ ته زمونږ ګناهونه وبخښي، په دې چې مونږ (په دې حاضرینو کې) اول د ایمان راوړونکو یو

۵۲:۲۶ - او مونږ موسیٰ ته وحي وکړه داسې چې ته زما بنده ګان د شپې بوځه، بېشکه تاسو پسې به درتلل کېدی شي

۵۳:۲۶ - نو فرعون په ښارونو کې راټولوونکي ولېږل

۵۴:۲۶ - (او ویې ویل) بېشکه دغه (بني اسرائیل) ډېره لږه وړه ډله ده

۵۵:۲۶ - او بېشکه دوی مونږ لره یقینًا غصه کوونکي دي

۵٦:٢٦ - او بېشکه مونږ خامخا بيداره ډله يو

۵۷:٢٦ - نو مونږه دوی (فرعونيان) له باغونو او چينو نه راوښکل

۵۸:٢٦ - او له خزانو او ښو ځايونو نه

۵۹:٢٦ - همداسې (مونږ وکړل) او مونږ د دغو (څيزونو) وارثان بني اسرائيل وګرځول

٦۰:٢٦ - نو (فرعونيان) د دوی پسې شول، چې د لمر ختو په وخت کې داخلېدونکي وو

٦١:٢٦ - نو کله چې دواړو ډلو يو بل سره وليدل، د موسیٰ ملګرو وويل: بېشکه مونږ خامخا نيول کېدونکي يو

٦٢:٢٦ - (موسیٰ) وويل: هيڅکله داسې نشي کېدی، بېشکه زما سره زما رب دی، هغه به ضرور زما لار ښوونه کوي

٦٣:٢٦ - نو مونږ موسیٰ ته وحي وکړه چې ته په خپلې امسا سره سمندر ووهه، نو هغه څيرې شو، نو هره برخه د ډېر اوچت غر په شان شوله

٦۴:٢٦ - او دغه ځای ته مونږ هغه نور ښه رانژدې کړل

٦۵:٢٦ - اومونږ موسیٰ او هغو کسانو ته چې له هغه سره وو؛ ټولو ته نجات ورکړ

٦٦:٢٦ - بيا مونږ هغه نور غرق (ډوب) کړل

٦۷:٢٦ - بېشکه په دې کې خامخا لويه نښه ده، او د دوی زياتره ايمان راوړونکي نه وو

٦۸:٢٦ - او بېشکه رب ستا خامخا هم هغه ښه غالب، بې حده رحم کوونکی دی

٦۹:٢٦ - او ته دوی ته د ابراهيم خبر (قصه) ولوله

۷۰:٢٦ - کله چې هغه خپل پلار او خپل قوم ته وويل: تاسو د څه څيز عبادت کوئ

۷١:٢٦ - هغوی وويل: مونږ د بتانو عبادت کوو، پس همېشه به دوی ته په عبادت قايم اوسو

۷٢:٢٦ - هغه وويل: ايا دوی ستاسو اوري کله چې تاسو (دوی) بلئ؟

۷٣:٢٦ - يا تاسو ته نفع دررسوي، يا ضرر دررسوي؟

۷۴:٢٦ - هغوی وويل: بلکې مونږ خپل پلرونه موندلي دي چې همداسې به يې کول

۷۵:٢٦ - هغه وويل: ايا تاسو کتلي دي (او پوه شوي يئ په) هغه چې تاسو يې عبادت کوئ

۷٦:٢٦ - تاسو او ستاسو پخوا تېر شوي پلرونه

۷۷:٢٦ - پس بېشکه دوی (ستاسو معبودان) زما دښمنان دي غير له رب العلمين نه

۷۸:٢٦ - هغه چې زه يې پيدا کړی يم، نو هغه زما لار ښوونه کوي

۲۶:۷۹ - او هغه چې همغه په ما خوراك كوي او په ما څښاك كوي

۲۶:۸۰ - او كله چې زه ناروغه شم، نو هغه ما ته شفا راكوي

۲۶:۸۱ - او هغه چې ما ته به مرگ راكوي، بيا به ما ژوندى كوي

۲۶:۸۲ - او هغه چې زه طمع لرم دا چې د قيامت په ورځ به هغه ما ته زما گناه وبخښي

۲۶:۸۳ - اى زما ربه! ما ته حكم (علم وحكمت) راكړه او ما له نېكانو سره پيوست كړه

۲۶:۸۴ - او زما لپاره په وروستنو خلقو كې د صدق ژبه (نېكنامي) وگرځوه

۲۶:۸۵ - او ما د نعمتونو د جنت له وارثانو څنې وگرځوه

۲۶:۸۶ - او زما پلار ته بخښنه وكړه، يقينًا هغه له گمراهانو څنې و

۲۶:۸۷ - او ته ما مه شرموه په هغې ورځ كې چې خلق به بيا ژوندي كولى شي

۲۶:۸۸ - په هغې ورځ چې نه به مال نفع رسوي او نه زامن

۲۶:۸۹ - مگر هغه چا ته چې الله ته په ډېر سلامت زړه راغى

۲۶:۹۰ - او جنت به (په هغې ورځ كې) پرهېزگارانو ته ورنژدې كړى شي

۲۶:۹۱ - او جهنم به گمراهانو ته ښه ښكاره كړى شي

۲۶:۹۲ - او دوى ته به وويل شي: چېرته دي هغه (معبودان) چې تاسو به يې عبادت كاوه

۲۶:۹۳ - له الله نه غير، ايا دوى ستاسو مدد كوي، يا دوى بدله اخيستى شي؟

۲۶:۹۴ - نو دا (بتان) به په دغه (جهنم) كې نسكور وغورځول شي دوى او گمراهان هم

۲۶:۹۵ - او د ابليس لښكرې، دوى ټول

۲۶:۹۶ - دوى به ووايي، په داسې حال كې چې دوى به سره جگړې كوي:

۲۶:۹۷ - قسم په الله، يقينًا مونږه خامخا په ښكاره گمراهۍ كې وو

۲۶:۹۸ - كله چې مونږ تاسو له رب العلمين سره برابرولئ

۲۶:۹۹ - او مونږ نه وو گمراه كړي مگر مجرمانو (بدو مشرانو)

۲۶:۱۰۰ - نو زمونږ لپاره هيڅوك شفاعت كوونكي نشته

۲۶:۱۰۱ - او نه كوم مخلص دوست

۲۶:۱۰۲ - نو ارمان كه په رښتيا زمونږ لپاره يو ځل دنيا ته واپسي وى، نو چې شوي وى مونږ له مومنانو نه

۱۰۳:۲٦ - بېشکه په دې کې خامخا لویه نښه ده او د دوی زیاتره مومنان نه وو

۱۰۴:۲٦ - او بېشکه ستا رب، خامخا همغه ډېر غالب، بې حده رحم کوونکی دی

۱۰۵:۲٦ - د نوح قوم د رسولانو تکذیب وکړ

۱۰٦:۲٦ - کله چې دوی ته د دوی ورور نوح وویل: ایا تاسو نه وېرېږئ!

۱۰۷:۲٦ - بېشکه زه تاسو ته امانتګر رسول یم

۱۰۸:۲٦ - نو تاسو له الله نه ووېرېږئ او زما اطاعت وکړئ

۱۰۹:۲٦ - او زه له تاسو نه په دې (تبلیغ) باندې هېڅ اجر (عوض) نه غواړم، نه دی اجر زما مګر په رب العلمین باندې

۱۱۰:۲٦ - نو تاسو له الله نه ووېرېږئ او زما اطاعت وکړئ

۱۱۱:۲٦ - هغوی وویل: ایا مونږ په تا ایمان راوړو!، حال دا چې ستا پیروي تر ټولو رذیلو خوارو خلقو کړې ده

۱۱۲:۲٦ - (نوح) وویل: او ما ته څه علم دی په هغه څه چې دوی یې کوي

۱۱۳:۲٦ - نه دی د دوی حساب مګر زما په رب باندې، که تاسو پوهېږئ

۱۱۴:۲٦ - او زه له سره دې مومنانو لره شړونکی نه یم

۱۱۵:۲٦ - زه نه یم مګر ښکاره وېروونکی

۱۱٦:۲٦ - دوی وویل: ای نوحه! قسم دی که ته وانه وښتې (نو) خامخا هرومرو به ته له سنګسار کړی شویو څخه شې

۱۱۷:۲٦ - هغه وویل: ای زما ربه! بېشکه زما قوم زما تکذیب وکړ

۱۱۸:۲٦ - نو ته زما په مینځ کې او د دوی په مینځ کې فیصله وکړه واضحه فیصله او ته ما ته نجات راکړه او هغه چا ته چې له ما سره کوم مومنان دي

۱۱۹:۲٦ - نو مونږ نجات ورکړ هغه ته او هغه چا ته چې له ده سره په ډکه کشتۍ کې وو

۱۲۰:۲٦ - بیا مونږ له دې نه پس باقي خلق غرق (ډوب) کړل

۱۲۱:۲٦ - بېشکه په دې کې خامخا لویه نښه ده۔ او د دوی زیاتره مومنان نه وو

۱۲۲:۲٦ - او بېشکه ستا رب خامخا همغه ډېر غالب، بې حده رحم کوونکی دی

۱۲۳:۲٦ - عادیانو د رسولانو تکذیب وکړ

۱۲۴:۲٦ - کله چې دوی ته د دوی ورور هود وویل: ایا تاسو نه وېرېږئ!

۱۲۵:۲۶ - بېشکه زه تاسو ته امانتګر رسول یم

۱۲۶:۲۶ - نو تاسو له الله نه ووېرېږئ او زما اطاعت وکړئ

۱۲۷:۲۶ - او زه له تاسو نه په دې (تبلیغ) باندې هېڅ اجر (عوض) نه غواړم، زمااجر نه دی مګر په رب العلمین باندې

۱۲۸:۲۶ - ایا تاسو په هر اوچت ځای یوه نښه (لوړه ودانۍ) جوړوئ، په داسې حال کې چې عبثیات کوئ!

۱۲۹:۲۶ - او تاسو پاخه عمارتونه جوړوئ، ښایي چې تاسو به (په دنیا کې) تل اوسېږئ

۱۳۰:۲۶ - او کله چې تاسو نیول کوئ (، نو) نیول کوئ، په داسې حال کې چې ظلم کوونکي یئ

۱۳۱:۲۶ - نو تاسو له الله نه ووېرېږئ او زما اطاعت وکړئ

۱۳۲:۲۶ - او تاسو له هغه ذات نه ووېرېږئ چې ستاسو مدد یې کړی دی په هغه څه سره چې تاسو پرې پوه یئ

۱۳۳:۲۶ - هغه ستاسو مدد کړی دی په څارویو او زامنو سره

۱۳۴:۲۶ - او باغونو او چینو سره

۱۳۵:۲۶ - بېشکه زه پر تاسو باندې د ډېرې لویې ورځې د عذاب وېره کوم

۱۳۶:۲۶ - هغوی وویل: مونږ ته یو شان ده، ایا که ته نصیحت (وعظ) کوې، یا ته نه کېږې له وعظ کوونکو نه

۱۳۷:۲۶ - نه دی دا ستا (وعظ کول) مګر عادت د پخوانیو خلقو

۱۳۸:۲۶ - او مونږ له سره په عذاب کې مبتلا کېدونکي نه یو

۱۳۹:۲۶ - نو دوی د هغه تکذیب وکړ، نو مونږه دوی هلاك کړل، بېشکه په دې کې خامخا لویه نښه ده او د دوی اکثره مومنان نه وو

۱۴۰:۲۶ - او بېشکه ستا رب خامخا همغه ښه غالب، بې حده رحم کوونکی دی

۱۴۱:۲۶ - ثمودیانو د رسولانو تکذیب وکړ

۱۴۲:۲۶ - کله چې دوی ته د دوی ورور صالح وویل: ایا تاسو نه وېرېږئ!

۱۴۳:۲۶ - بېشکه زه تاسو ته امانتګر رسول یم

۱۴۴:۲۶ - نو تاسو له الله نه ووېرېږئ او زما اطاعت وکړئ

۱۴۵:۲۶ - او زه له تاسو نه په دې (تبلیغ) باندې هېڅ اجر نه غواړم، زما اجر نه دی مګر په رب

العلمين باندې

۱۴۶:۲۶ - ايا تاسو به په پرېښودل شئ په هغو ځيزونو کې چې دلته دي، په امن (او بې غمۍ) سره

۱۴۷:۲۶ - په باغونو او چينو کې

۱۴۸:۲۶ - او په فصلونو او داسې کجورو کې چې د هغو وږي (شگوفې) ډېر نرمې پستې وي

۱۴۹:۲۶ - او تاسو په غرونو کې کورونه توږئ (کنئ)، په داسې حال کې چې ښه ماهران يئ

۱۵۰:۲۶ - نو تاسو له الله نه ووېرېږئ، او زما اطاعت وکړئ

۱۵۱:۲۶ - او تاسو د اسراف کوونکو (له حد نه تېرېدونکو کافرانو) حکم مه منئ

۱۵۲:۲۶ - هغه چې په ځمکه کې فساد کوي او اصلاح نه کوي

۱۵۳:۲۶ - هغوی وويل: بېشکه همدا خبره ده چې ته له جادو کړی شويو کسانو څنې يې

۱۵۴:۲۶ - ته نه يې مگر زمونږ په مثل بشر، نو ته کومه معجزه راوړه! که ته له رښتينو څنې يې

۱۵۵:۲۶ - او هغه وويل: دا اوښه ده، د دې لپاره د اوبو وار دی او تاسو لپاره د مقررې ورځې د اوبو وار دی

۱۵۶:۲۶ - او تاسو دې ته هېڅ تکليف مه رسوئ، (گنې) نو تاسو به د ډېرې لويې ورځې عذاب ونيسي

۱۵۷:۲۶ - نو دوی د هغې پښې پرې کړل، بيا دوی پښېمانه شول

۱۵۸:۲۶ - نو دوی عذاب ونيول، بېشکه په دې کې خامخا لويه نښه ده او د دوی اکثره مومنان نه وو

۱۵۹:۲۶ - او بېشکه ستا رب خامخا همغه ډېر غالب، بې حده رحم کوونکی دی

۱۶۰:۲۶ - د لوط قوم د رسولانو تکذيب وکړ

۱۶۱:۲۶ - کله چې دوی ته د دوی ورور لوط وويل: ايا تاسو نه وېرېږئ!

۱۶۲:۲۶ - بېشکه زه تاسو ته امانتگر رسول يم

۱۶۳:۲۶ - نو تاسو له الله نه ووېرېږئ او زما اطاعت وکړئ

۱۶۴:۲۶ - او زه له تاسو نه په دې (تبليغ) باندې هېڅ اجر (عوض) نه غواړم، زما اجر نه دی مگر په رب العلمين باندې

۱۶۵:۲۶ - ايا په مخلوقاتو کې تاسو له سړيو سره بدکاري کوئ

۱٦٦:۲٦ - او تاسو پرېږدئ هغه څه چې تاسو لپاره ستاسو رب پیدا کړي دي، یعنې ستاسو ښځې، بلکې تاسو له حده تېرېدونکي خلق یئ

۱٦۷:۲٦ - دوی وویل: قسم دی که ته منع نه شوې ای لوطه! (نو) خامخا هرومرو به ته له اېستل شویو څنې شې

۱٦۸:۲٦ - هغه وویل: بېشکه زه ستاسو له عمل سره له سخت بغض لرونکو څنې یم

۱٦۹:۲٦ - ای زما ربه! ته ما ته او زما اهل ته نجات راکړې له هغو کارونو نه چې دوی یې کوي

۱۷۰:۲٦ - نو مونږ هغه ته او د هغه اهل ټولو ته نجات ورکړ

۱۷۱:۲٦ - غیر له یوې بوډۍ نه چې په باقي پاتې کېدونکو کې وه

۱۷۲:۲٦ - بیا مونږ هغه نور هلاك کړل

۱۷۳:۲٦ - او په دوی باندې مونږ باران ووراوه، عجیب (د کاڼو) باران، نو بد باران و د وېرول شویو (خلقو)

۱۷۴:۲٦ - بېشکه په دې کې خامخا لویه نښه ده، او د دوی زیاتره مومنان نه وو

۱۷۵:۲٦ - او بېشکه ستا رب خامخا همغه ډېر غالب، بې حده رحم کوونکی دی

۱۷٦:۲٦ - د ونو ځنګل والاو د رسولانو تکذیب وکړ

۱۷۷:۲٦ - کله چې دوی ته شعیب وویل: ایا تاسو نه وېرېږئ!

۱۷۸:۲٦ - بېشکه زه تاسو ته امانتګر رسول یم

۱۷۹:۲٦ - نو تاسو له الله نه ووېرېږئ او زما اطاعت وکړئ

۱۸۰:۲٦ - او زه له تاسو نه په دې (تبلیغ) باندې هېڅ اجر نه غواړم، زما اجر نه دی مګر په رب العلمین باندې

۱۸۱:۲٦ - تاسو پېمانه پوره ورکوئ او تاسو له کم ورکونکو څخه مه کېږئ

۱۸۲:۲٦ - او تاسو په برابرې تلې سره تول کوئ

۱۸۳:۲٦ - او تاسو خلقو ته د هغوی څیزونه مه کموئ، او مه ګرځئ په وراني سره په ځمکه کې، په دې حال چې فساد کوونکي یئ

۱۸۴:۲٦ - او تاسو له هغه ذات نه ووېرېږئ چې تاسو او ړومبني خلق یې پیدا کړي دي

۱۸۵:۲٦ - هغوی وویل: بېشکه همدا خبره ده چې ته له جادو کړی شویو څنې یې

۱۸٦:۲٦ - او ته نه یې مګر زمونږ په شان بشر، او یقینًا مونږ خامخا تا له دروغ ویونکو څخه ګڼو

۱۸۷:۲٦ - نو ته پر مونږ باندې له اسمانه ټوټې راوغورځوه، که ته له رښتینو څنې يې

۱۸۸:۲٦ - هغه وویل: زما رب ښه عالم دی په هغو کارونو چې تاسو يې کوئ

۱۸۹:۲٦ - نو دوی د هغه تکذیب وکړ، پس دوی د سیوري د ورځې عذاب ونیول، بېشکه دغه (عذاب) د ډېرې لویې ورځې عذاب و

۱۹۰:۲٦ - بېشکه په دې کې خامخا لویه نښه ده، او د دوی زیاتره مومنان نه وو

۱۹۱:۲٦ - او بېشکه ستا رب خامخا همغه ډېر غالب، بې حده رحم کوونکی دی

۱۹۲:۲٦ - او بېشکه دا (قرآن) د رب العلمین (له جانبه) نازل کړی شوی دی

۱۹۳:۲٦ - دا جبریل امین راکوز کړی دی

۱۹۴:۲٦ - ستا په زړه باندې، د دې لپاره چې ته له وېروونکو څخه شې

۱۹۵:۲٦ - په ښکاره عربي ژبه کې

۱۹٦:۲٦ - او بېشکه دا (قرآن، یعنې د ده ذکر) د ړومبنیو خلقو په کتابونو کې دی

۱۹۷:۲٦ - ایا دغه (کفارو) ته (د قرآن د حقانیت) دا لویه نښه نه ده چې د بني اسرائیلو عالمان په ده پوهېږي؟

۱۹۸:۲٦ - او که مونږ دا (قرآن) په عجمیانو کې په چا نازل کړی وی

۱۹۹:۲٦ - بیا هغه دا (قرآن) دوی ته لوستلی وی، دوی په ده باندې ایمان راوړونکي نه وو

۲۰۰:۲٦ - همداسې مونږ دا (د قرآن تکذیب) د مجرمانو په زړونو کې ننه ایستلی دی

۲۰۱:۲٦ - دوی په ده ایمان نه راوړي تر هغه پورې چې دوی ډېر دردوونکی عذاب ووینې

۲۰۲:۲٦ - نو هغه (عذاب) به په دوی ناڅاپه راشي، په داسې حال کې چې دوی نه پوهېږي

۲۰۳:۲٦ - بیا به دوی وایي: ایا مونږ ته به مهلت راکولی شي؟

۲۰۴:۲٦ - ایا نو دوی زمونږ همدا عذاب ژر غواړي

۲۰۵:۲٦ - نو ته ما ته خبر راکړه که مونږ دوی ته څو کاله نفع ورکړو

۲۰٦:۲٦ - بیا په دوی هغه (عذاب) راشي چې دوی سره به يې وعده کولی شوه

۲۰۷:۲٦ - (نو) د دوی به هېڅ په کار رانشي هغه څه چې دوی ته به (په هغو سره) نفع ورکولی شوه

۲۰۸:۲٦ - او مونږ هېڅ یو کلی نه دی هلاك کړی مګر د هغه لپاره وېروونکي وو

۲۰۹:۲٦ - د نصیحت کولو لپاره، اومونږ ظالمان نه وو

۲۱۰:۲۶ - او دا (قرآن) شیطانانو نه دی راکوز کړی

۲۱۱:۲۶ - او نه دا (کار) د هغوی لپاره صحیح دی او نه دوی (د دې کار) طاقت لري

۲۱۲:۲۶ - بېشکه دوی (شیطانان) له اورېدلو نه خامخا منع کړی شوي (لرې کړی شوي) دي

۲۱۳:۲۶ - نو ته له الله سره بل هېڅ معبود مه بله، (ګنې) نو شې به ته له عذاب ورکړی شویو نه

۲۱۴:۲۶ - او ته خپل ډېر نژدې خپلوان ووېروه

۲۱۵:۲۶ - او ته خپل وزر ښکته کړه د هغه چا لپاره چې ستا پیروي یې کړې ده، چې مومنان دي

۲۱۶:۲۶ - نو که دغو (خپلوانو) ستا نافرماني وکړه، نو ته (ورته) ووایه: بېشکه زه د هغو کارونو نه بېزاره یم چې تاسو یې کوئ

۲۱۷:۲۶ - او ته توکل وکړه په ډېر غالب، بې حده رحم کوونکي ذات باندې

۲۱۸:۲۶ - هغه چې تاویني کله چې ته پاڅېږې (لمانځه ته)

۲۱۹:۲۶ - او په سجده کوونکو کې ستا اوښتل (ویني)

۲۲۰:۲۶ - بېشکه هغه، هم هغه ښه اورېدونکی، ښه عالم دی

۲۲۱:۲۶ - ایا زه تاسو ته خبر درکړم چې په چا باندې شیطانان راکوزېږي؟

۲۲۲:۲۶ - دوی په هر ډېر دروغجن، سخت مجرم باندې راکوزېږي

۲۲۳:۲۶ - دوی غوږ ږدي (د ملایکو خبرو ته) او د دوی زیاتره دروغجنان دي

۲۲۴:۲۶ - او شاعران (چې دي) د دوی پیروي ګمراه خلق کوي

۲۲۵:۲۶ - ایا ته نه وینې چې بېشکه دوی په هره وادۍ (ناو) کې سرګردانه ګرځي

۲۲۶:۲۶ - او بېشکه دوی وایي هغه څه چې دوی یې (پخپله) نه کوي

۲۲۷:۲۶ - غیر له هغو کسانو نه چې ایمان راوړي او نېك عملونه کوي او الله ډېر زیات یادوي او بدله اخلي کله چې پر دوی ظلم وکړی شي، او هغه کسان چې ظلم یې کړی دی ژر به پوه شي چې د بېرته ورتلو کوم ځای ته به دوی بېرته ورځي

## (مکي) مېږی - النمل ۲۷

۱:۲۷ - طا، سین، دا د قرآن او څرګند (ښکاره بیانوونکي) کتاب ایتونه دي

۲:۲۷ - هدایت او زېری دی، د مومنانو لپاره

۳:۲۷ - هغه چې لمونځ قایموي او زکات ورکوي او هم دوی په اخرت یقین کوي

۴:۲۷ - بېشکه هغه کسان چې په اخرت ایمان نه راوړي، دوی ته مونږ د دوی عملونه ښایسته کړي دي، نو دوی سرگردانه دي

۵:۲۷ - دغه کسان دي چې د دوی لپاره بد عذاب دی، او دوی به په اخرت کې هم دوی تر ټولو تاوانیان وي

۶:۲۷ - او بېشکه ته (چې یې) خامخا تا ته د ډېر حکمت والا، ښه علم والا (الله) له جانبه قرآن ښوولی (او عطا کولی) شي

۷:۲۷ - (یاد کړه) هغه وخت چې موسیٰ خپلې ښځې ته وویل: بېشکه ما اور ولیده، زه به تاسو ته له دغه (ځای) نه څه خبر راوړم، یا به تاسو ته بله کړی شوې لمبه راوړم، د دې لپاره چې تاسو تاوده شئ

۸:۲۷ - نو کله چې دی هغه (اور) ته راغی، اواز وکړی شو۔، داسې چې برکتي کړی شوی دی هغه چې په اور کې دی او هغه چې د ده (اور) چاپېره دی او پاکي ده الله ته چې رب العلمین دی

۹:۲۷ - ای موسیٰ! بېشکه شان دا دی چې هم زه الله یم، ښه غالب، ښه حکمت والا

۱۰:۲۷ - او ته خپله امسا وغورځوه، نو کله چې هغه دا ولیدله چې خوځېږي، گویا کې دغه (همسا) نری سپین تېز مار دی، نو وتېښتېده چې شاکوونکی و او بېرته راونه گرځېده۔، ای موسیٰ، مه وېرېږه، بېشکه زه چې یم، له ما سره رسولان نه وېرېږي

۱۱:۲۷ - خو هغه څوك چې ظلم یې کړی وي، بیا له بدۍ نه پس نېکي په بدل کې راوړي، نو بېشکه زه ډېر بخښونکی، بې حده رحم کوونکی یم

۱۲:۲۷ - او ته خپل لاس په خپل گرېوان کې ننباسه، (نو) له بیمارۍ (او عیب) نه بغیر به تك سپین راووځي، (دا حساب دي) په نهو معجزو کې (چې ته ورسره لېږل شوی یې) فرعون او د هغه قوم ته، بېشکه دوی یو فاسق (نافرمانه) قوم دی

۱۳:۲۷ - نو کله چې دوی ته زمونږ نښې (معجزې) راغلې، چې روښانه وې، (نو) دوی وویل: دا ښکاره جادو دی

۱۴:۲۷ - او دوی له دغو (معجزو) نه انکار وکړ، د ظلم او سرکشۍ په وجه، حال دا چې د دوی نفسونو په دغو یقین کړی و، نو ته وگوره د فساد کوونکو انجام څنگه و؟

۱۵:۲۷ - او یقینًا یقینًا مونږ داود او سلیمان ته (خاص) علم ورکړی و او هغو دواړو وویل: ټوله ستاینه خاص د هغه الله لپاره ده چې مونږ ته یې په خپلو مومنو بنده گانو کې په ډېرو زیاتو باندې فضیلت راکړی دی

۱۶:۲۷ - او سلیمان د داود (په علم، نبوت او سلطنت کې) وارث شو او هغه وویل: ای خلقو!

مونږ ته د الوتونکو (مرغانو) خبرې ښوول شوې دي او مونږ ته له هر څيز نه راکړه شوې ده، بېشکه دا، خامخا هم دغه ښکاره فضل دی

۱۷:۲۷ - او د سليمان لپاره د هغه لښکرې راجمع کړی شوې، چې له پېريانو او انسانانو او مرغانو څخه وې، بيا به د دوی (په ترتيب سره) ډلې جوړولی شوې

۱۸:۲۷ - تر هغه پورې چې کله دوی د مېږانو په دره راغلل، (نو) يوې مېږۍ ووېل: ای مېږانو تاسو خپلو استوګنو ته ننوځۍ، چې تاسو سليمان او د هغه لښکرې مات او چيت پيت نه کړي، په داسې حال کې چې دوی به نه پوهېږي

۱۹:۲۷ - نو دی د دې په خبره (اول) مسکی شو، چې خندا کوونکی و (ورپسې د خوشحالۍ په وجه) ويې ويل: ای زما ربه! ته ما ته الهام او توفيق راکړه چې زه ستا د هغو نعمتونو شکر وباسم چې تا په ما او زما په مور و پلار انعام (او پېرزو) کړي دي او دا چې زه داسې نېك عمل وکړم چې ته يې خوښوې، او ته ما په خپل رحمت سره په خپلو نېکو بنده ګانو کې داخل کړه

۲۰:۲۷ - او د مرغانو لټونه يې وکړه، نو ويې ويل: ما له څه دي چې زه هدهد (ملاچرګك) نه وينم، بلکې که هغه له غايب شويو څنې دی؟

۲۱:۲۷ - خامخا هرومرو به زه ده ته سزا ورکړم، ډېره سخته سزا، يا به خامخا ضرور دی حلال کړم، يا به ضرور هرومرو ما ته ښکاره دليل راوړي

۲۲:۲۷ - نو هغه (هدهد) ايسار شو، خو ډېر نه، (او ژر راغی) نو ويې ويل: ما هغه خبره (په علم کې) ګېره کړې ده چې تا هغه ګېره کړې نه ده او زه تا ته له سبا (ښار) نه په يقيني خبر سره راغلی يم

۲۳:۲۷ - بېشکه ما يوه داسې ښځه ومونده چې په دغو (د سبا ښار په اوسېدونکو) بادشاهي کوي او هغې ته له هر څيز څخه ورکړه شوې ده او د هغې يو ډېر لوی تخت دی

۲۴:۲۷ - ما هغه او د هغې قوم ومونده چې له الله نه غير لمر ته سجده کوي او دوی ته شيطان خپل عملونه ښايسته کړي دي، نو دوی يې له (حقې) لارې نه منع کړي دي، نو دوی هدايت نه مومي

۲۵:۲۷ - چې دوی الله ته سجده ونه کړي، هغه چې په اسمانونو او ځمکه کې پټ څيزونه راوباسي او پوهېږي په هغه څه چې تاسو يې پټوئ او په هغه څه چې تاسو يې ښکاره کوئ

۲۶:۲۷ - الله چې دی، نشته هېڅ لايق د عبادت مګر هم دی دی، د ډېر ستر عرش رب دی

۲۷:۲۷ - (سليمان) ووېل: ضرور به مونږ ګورو چې ايا تا رښتيا ويلي دي، يا ته له دروغ ويونکو څنې وې؟

۲۸:۲۷ - ته زما دا لیك یوسه، نو ته دا دوی ته وروغورځوه، بیا ته له دوی نه مخ وګرځوه، نو وګوره چې دوی څه واپس کوي؟

۲۹:۲۷ - هغې وویل: ای سردارانو! بېشکه زه چې یم، ما ته یو ډېر عزتناك لیك راغورځول شوی دی

۳۰:۲۷ - بېشکه دا د سلیمان له جانبه (راغلی) دی او بېشکه هغه (داسې) دی: د الله په نامه سره (شروع کوم) چې ډېر زیات مهربان، بې حده رحم کوونکی دی

۳۱:۲۷ - دا چې تاسو زما په خلاف سرکشي مه کوئ او تاسو ما ته راشئ مسلمانان (غاړه ایښودونکي)

۳۲:۲۷ - هغې وویل: ای سردارانو! تاسو ما ته زما په (دغه) کار کې مشوره راکړئ، زه د کوم کار فیصله کوونکې نه یم تر هغه پورې چې تاسو ما ته حاضر شئ

۳۳:۲۷ - هغوی وویل: مونږه د قوت والا او د ډېر سخت جنګ والا یو، او (نور) اختیار تا ته دی، نو ته وګوره چې ته څه حکم کوې؟

۳۴:۲۷ - هغې وویل: بېشکه بادشاهان (د هغوی لښکرې) چایان چې دي، کله چې دوی کوم کلي (ښار) ته داخل شي (نو) هغه خرابوي، او د هغه عزتمن اوسېدونکي ذلیله ګرځوي او دوی به هم همداسې کوي

۳۵:۲۷ - او بېشکه زه دوی ته یوه ډالۍ لېږونکې یم، نو کتونکې یم چې په څه خبرې سره لېږل شوي استازي بېرته راځي

۳۶:۲۷ - نو کله چې هغه (استازی) سلیمان ته راغی، (نو سلیمان ورته) وویل: ایا تاسو په مال سره زما مدد کوئ، نو هغه چې ما ته الله راکړی دی (هغه) ډېر غوره دی له هغه نه چې تاسو ته یې درکړی دی، بلکې تاسو په خپلې ډالۍ سره خوشالېږئ

۳۷:۲۷ - ته هغوی ته بېرته لاړ شه، نو مونږ به خامخا هرومرو په دوی پسې داسې لښکرې بوځو، چې په دوی کې به له هغو سره د مقابلې هېڅ طاقت نه وي او مونږ به خامخا هرومرو دوی له هغه (ښاره) وباسو، په دې حال چې چې ذلیل به وي، خوار او سپك به وي

۳۸:۲۷ - (سلیمان) وویل: ای (د دربار) مخورو! په تاسو کې به څوك ما ته د هغې تخت راوړي، مخکې له دې چې دوی ما ته راشي مسلمانان (غاړه ایښودونکي)؟

۳۹:۲۷ - په پېریانو کې ډېر سخت زورور وویل: زه به هغه تا ته راوړم مخکې له دې چې ته له خپل ځای نه پاڅېږې، او بېشکه زه په دغه (تخت) باندې خامخا قوي (او) امانتګر یم

۴۰:۲۷ - وویل هغه کس چې له هغه سره د کتاب علم و: زه به هغه تا ته راوړم مخکې له دې چې

تا ته خپل نظر بيا راگرځي، نو كله چې يې هغه خپلې مخې ته برقرار (حاضر) وليد، ويې ويل: دا زما د رب له فضله ځني دى، د دې لپاره چې هغه ما وازمايي چې زه شكر وباسم، يا ناشكري كوم او څوك چې شكر وباسي، نو هغه يواځې د ځان لپاره شكر وباسي او څوك چې ناشكري كوي، نو بېشكه زما رب ډېر بې پروا، ډېر كرم كوونكى دى

۴۱:۲۷ - ويې ويل: هغې ته خپل تخت نا اشنا كړئ چې وگورو ايا پېژني يې، يا كېږي له هغو كسانو نه چې نه يې پېژني

۴۲:۲۷ - نو كله چې هغه راغله، (ورته) وويل شول: ايا ستا تخت همداسې دى؟ هغې وويل: گويا كې دا همغه دى. او مونږ ته له دې (معجزې) نه مخكې (د توحيد او نبوت) علم راكړى شوى و او مونږ غاړه ايښودونكي (مسلمانان) وو

۴۳:۲۷ - او دا (د الله له عبادت نه) منع كړې وه هغه څيز چې دې يې له الله نه غير عبادت كاوه، يقينًا هغه له كافر قوم ځني وه

۴۴:۲۷ - هغې ته وويل شول: ته دې صحن ته ننوځه، نو كله چې يې هغه وليده، نو په هغه يې د ژورو اوبو گمان وكړ او له خپلو دواړو پنډيو نه يې كپړه پورته كړه. هغه (سليمان) وويل: بېشكه دا هوار ښويه صحن دى چې له شيشو نه (جوړ) دى، هغې وويل: بېشكه ما (مخكې) په خپل ځان ظلم كړى دى او ما له سليمان سره خاص د الله رب العلمين لپاره اسلام راوړى دى

۴۵:۲۷ - او يقينًا يقينًا مونږ ثموديانو ته د هغوى ورور صالح لېږلى و، په دې سره چې تاسو د الله عبادت كوئ، نو ناڅاپه هغوى داسې دوه ډلې وې چې په خپل مينځ كې جنگېدلې

۴۶:۲۷ - هغه وويل: اى زما قومه! ولې تاسو په بدۍ (عذاب) سره تادي كوئ، مخكې له نېكۍ (توبې) نه، ولې تاسو له الله نه مغفرت نه غواړئ؟ د دې لپاره چې په تاسو رحم وكړى شي

۴۷:۲۷ - هغوى وويل: مونږ په تا او په هغه چا چې له تاسره دي؛ بدفالي نيولې ده.، هغه وويل: ستاسو بدفالي د الله په نېز ده، بلكې تاسو داسې قوم يئ چې ازمايل كېږئ

۴۸:۲۷ - او په ښار كې نهه (غټ شرير) سړي وو، چې په ځمكه كې به يې فساد كاوه او اصلاح به يې نه كوله

۴۹:۲۷ - هغوى وويل: تاسو په الله قسم وخورئ چې خامخا هرومرو به په ده او د ده په ټبر د شپې حمله كوو، بيا به مونږ د ده ولي (وارث) ته خامخا ضرور (داسې) وواېو چې مونږ د ده هلاكت ته حاضر شوي نه يو او بېشكه مونږ يقينًا رښتيني يو

۵۰:۲۷ - او دوى مكر وكړ، خاص مكر كول او مونږ هم تدبير وكړ خاص تدبير كول، په دې حال كې چې دوى نه پوهېدل

۵۱:۲۷ - نو ته وګوره چې د دوی د مکر انجام څنګه و چې بېشکه مونږه دوی او د دوی قوم ټول هلاك كړل

۵۲:۲۷ - نو دغه د دوی کورونه دي، چې وران شوي پراته دي، په سبب د دې چې ظلم (شرك) يې كاوه، بېشكه په دې كې خامخا لويه نښه ده د هغه قوم لپاره چې پوهېږي

۵۳:۲۷ - او مونږ نجات ورکړ هغو کسانو ته چې ایمان یې راوړی و او پرهېزګاري یې کوله

۵۴:۲۷ - او (یاد کړه) لوط کله چې ده خپل قوم ته وویل: ایا تاسو فاحشه (د لواطت قبیح کار) کوئ، حال دا چې تاسو وینئ

۵۵:۲۷ - ایا بېشکه تاسو خامخا د خپل شهوت لپاره له خپلو ښځو نه غیر له سړیو سره بدکاري کوئ! بلکې تاسو داسې قوم یئ چې جهالت کوئ

۵۶:۲۷ - نو د ده د قوم جواب نه و غیر له دې نه چې دوی وویل: تاسو د لوط خپلخانه له خپل كلي نه وباسئ، بېشكه دوی داسې خلق دي چې ځانونه ډېر پاك ساتي

۵۷:۲۷ - نو مونږ نجات ورکړ ده ته، او د ده کورنۍ ته د ده له ښځې نه غیر، مونږ هغه په باقي پاتې کېدونکو کې مقرر کړې وه

۵۸:۲۷ - او مونږ په دوی باندې (د کاڼو) باران ووراوه، نو د وېرول شویو باران بد و

۵۹:۲۷ - ته ووایه: ټوله ستاینه خاص د الله لپاره ده، او سلام دې وي د هغه په هغو بنده ګانو باندې چې غوره كړي يې دي، ايا الله غوره دی، يا كه هغه چې دوی يې (له الله سره) شريكوي

۶۰:۲۷ - بلکې هغه ذات (بهتر دی) چې اسمانونه او ځمکه یې پیدا کړي دي او تاسو لپاره یې له بره نه اوبه نازلې كړې دي، نو هم مونږ په هغو سره د رونق (او ښايست) والا باغونه زرغون كړل،، تاسو لپاره دا طاقت نشته چې تاسو د هغو (باغونو) ونې زرغونې كړئ۔، ايا له الله سره بل معبود شته؟ بلكې دوی يو داسې قوم دی چې (له الله سره د نورو) برابري كوي

۶۱:۲۷ - بلکې هغه ذات (غوره دی) چې ځمکه یې د قرار (او ارام) ځای جوړه کړې ده او د هغې په مینځ کې یې نهرونه جوړ کړي دي او د دې لپاره یې پاخه لوړ غرونه پیدا کړي دي، او د دوو سمندرونو په مینځ کې یې پرده پیدا کړې ده۔، ایا له الله سره بل معبود شته؟ بلکې د دوی اکثره نه پوهېږي

۶۲:۲۷ - بلکې هغه ذات (غوره دی) چې د مجبور (او عاجز) سوال قبلوي، كله چې دغه (الله) وبلي او هغه تکلیف (او سختي) لرې کوي او تاسو د ځمکې خلیفه ګان جوړوي، ایا له الله سره بل معبود شته؟ تاسو ډېر لږ شانته نصیحت قبلوئ

۶۳:۲۷ - بلکې هغه ذات (غوره دی) چې تاسو ته د وچې او سمندر په تیارو کې لاره ښیي او هغه

ذات چې له خپل رحمت نه مخکې هواگانې لېږي، چې زېرې ورکوونکې وي، ايا له الله سره بل معبود شته؟ الله ډېر اوچت دی له هغو شيانو نه چې دوی يې (له الله سره) شريکوي

٦٤:٢٧ - بلکې هغه ذات چې اول ځلې مخلوق پيدا کوي، بيا به دغه (مخلوق) بېرته ژوندي کوي او هغه ذات چې تاسو ته له اسمان او ځمکې نه روزي درکوي، ايا له الله سره بل معبود شته؟ ته (دوی ته) ووايه: تاسو خپل دليل راوړئ، که تاسو رښتيني يئ

٦٥:٢٧ - ته (دوی ته) ووايه: هر هغه څوك چې په اسمانونو او ځمکه کې دي په غيبو نه پوهېږي غير له الله نه۔ او دوی نه پوهېږي چې کله به دوی بيا ژوندي کولی شي

٦٦:٢٧ - بلکې د اخرت په باره کې د دوی علم بېخي ختم شوی دی۔، بلکې دوی د دغه (قيامت) په باره کې په شك کې دي، بلکې دوی له دغه (قيامت) نه ړانده دي

٦٧:٢٧ - او کافران شويو کسانو وويل: ايا کله چې مونږه او زمونږ پلرونه خاورې شو، ايا په رښتيا به مونږ خامخا (ژوندي) راوښکلی شو؟

٦٨:٢٧ - يقينًا يقينًا له دې نه مخکې هم دا وعده مونږ ته او زمونږ پلرونه ته راکړی شوې ده۔، نه دي دغه (خبرې) مگر د ړومبنو خلقو باطلې قصې

٦٩:٢٧ - ته (دوی ته) ووايه: تاسو په ځمکه کې وگرځئ، بيا وگورئ چې د مجرمانو (کافرانو) انجام څنگه و؟

٧٠:٢٧ - او ته په دوی غم مه کوه او په تنگۍ کې مه کېږه، د هغو مکرونو (فريبونو) په سبب چې دوی يې کوي

٧١:٢٧ - او دوی وايي: دا (د عذاب د نازلېدو) وعده به کله وي، که تاسو رښتيني يئ

٧٢:٢٧ - ته (دوی ته) ووايه چې امېد دی چې په تاسو پسې به پيوست شي ځينې له هغه (عذاب) نه چې تاسو يې په جلتۍ غواړئ

٧٣:٢٧ - او بېشکه ستا رب په خلقو باندې خامخا د فضل کولو والا دی او لېکن د دوی اکثره شکر نه وباسي

٧٤:٢٧ - او بېشکه ستا رب خامخا پوهېږي په هغه څه چې د دوی سينې يې پټوي او څه چې دوی (خلق) ظاهروي

٧٥:٢٧ - او په اسمان او ځمکه کې هيڅ پټ پناه شی نشته مگر په واضح کتاب کې (ليك) دي

٧٦:٢٧ - بېشکه دا قرآن بني اسرائيلو ته د هغو خبرو زياتره حصه بيانوي چې دوی په هغو کې اختلاف کوي

٧٧:٢٧ - او بېشکه دا (قرآن) يقينًا هدايت او رحمت دی، لپاره د مومنانو

۷۸:۲۷ - بېشکه ستا رب به د دوی په مینځ کې په خپل انصاف سره فیصله کوي، او همغه ډېر غالب، ښه علم والا دی

۷۹:۲۷ - نو ته خاص په الله باندې توکل وکړه، بېشکه ته په ښکاره حق باندې یې

۸۰:۲۷ - بېشکه ته مړو ته نشې اورولی او ته کڼو ته (هم) اواز نشې رسولی، کله چې دوی مخ واړوي، په دې حال کې چې شا کوونکي وي

۸۱:۲۷ - او ته ړندو ته د هغوی له گمراهۍ نه هدایت کوونکی نه یې، ته نشې اورولی مگر هغه چا ته چې زمونږ په ایتونو ایمان راوړي، نو هم دوی مسلمانان دي

۸۲:۲۷ - او کله چې په دوی (د عذاب) خبره ثابته شي (او قیامت رانژدې شي، نو) مونږ به دوی ته له ځمکې نه یوه دابّه (ژوندی خوځنده) راوباسو، چې له دوی سره به خبرې کوي، چې بېشکه خلقو به زمونږ په ایتونو یقین نه کاوه

۸۳:۲۷ - او (یاده کړه) هغه ورځ چې مونږ به له هر امت نه (د مشرانو) یوه ډله راجمع کړو، له هغو نه چې زمونږ د ایتونو تکذیب کوي، نو دوی به منع کولی (یوځای کولی) شي

۸۴:۲۷ - تر دې چې کله دوی (محشر ته) راشي، وبه وایي (الله): ایا تاسو زما د ایتونو تکذیب کړی و، حال دا چې د علم په لحاظ سره تاسو د هغو احاطه نه وه کړې، ایا څه دي هغه چې تاسو عمل کاوه؟

۸۵:۲۷ - او په دوی باندې به (د عذاب) خبره ثابته شي، په سبب د هغه ظلم چې دوی کړی و، نو دوی به خبرې نشي کولی

۸۶:۲۷ - ایا دوی نه دي کتلي چې بېشکه مونږ شپه پیدا کړې ده، د دې لپاره چې دوی په دې کې سکون (او ارام) وکړي او ورځ مو روښانه (گرځولې ده) بېشکه په دغو کې خامخا ډېر دلیلونه (نښې) دی د هغه قوم لپاره چې ایمان راوړي

۸۷:۲۷ - او (یاده کړه) هغه ورځ چې په شپېلۍ کې به پوکی وکړی شي، نو سخت به ووېرېږي هغه څوك چې په اسمانونو کې دي او هغه څوك چې په ځمکه کې دي غیر له هغه چا نه چې الله یې وغواړي او دوی ټول به دغه (الله) ته عاجزه (او ذلیله) راشي

۸۸:۲۷ - او ته به غرونه وینې، ته به په دوی د کلکو ولاړو گمان کوې، حال دا چې دوی به د وریځې د تېرېدلو په شان تېرېږي، (وگورئ) کاریگري د الله هغه چې هر شی یې محکم کړی دی، بېشکه هغه ښه خبردار دی په هغو کارونو چې تاسو یې کوئ

۸۹:۲۷ - هغه څوك چې یوه نېکي (د توحید کلمه) راوړي، نو د هغه لپاره له هغې نه غوره (بدله) ده او دوی به د دغې ورځې د سختې وېرې نه په امان (امن والا) وي

۹۰:۲۷ - او څوك چې يوه بدي (شرك) راوړي، نو د دوی مخونه به په اور كې نسكور وغورځولی شي، (او ورته ويلی به شي) تاسو ته جزا نه دركولی كېږي مگر (جزا د) هغو عملونو چې تاسو به كول

۹۱:۲۷ - بېشكه ما ته حكم شوی دی چې يواځې د دې ښار د رب عبادت وكړم، هغه (الله) چې ده ته يې حرمت (عزت) وركړی دی او هر شی خاص د هغه لپاره دی او ما ته حكم راكړی شوی دی چې زه له مسلمانانو څخه شم

۹۲:۲۷ - او داچې د قرآن تلاوت وكړم، نو څوك چې په نېغه لار روان شو، نو بېشكه هغه يواځې د خپل ځان د فايدې لپاره په نېغه لار ځي او څوك چې گمراه شو، نو ته ووايه: زه خو يواځې له وېرووونكو څخه يم

۹۳:۲۷ - او ته ووايه: ټول د كمال صفتونه خاص د الله لپاره دي، هغه به عنقريب په تاسو خپل دليلونه (نښې) ووينې، نو تاسو به هغه وپېژنئ او ستا رب له سره غافل نه دی له هغو كارونو نه چې تاسو يې كوئ

## (مكي) كيسې - القصص ۲۸

۱:۲۸ - طا، سين، ميم

۲:۲۸ - دا د څرگند كتاب ايتونه دي

۳:۲۸ - مونږ تا ته لولو د موسیٰ او فرعون له خبرونو ځنې په حقه سره د هغه قوم لپاره چې ايمان راوړي

۴:۲۸ - بېشكه فرعون په ځمكه كې لويي راخيستې وه او د دې اوسېدونكې يې ډلې ډلې كړي وو، په دوی كې يې يوه ډله ډېره ضعيفه كوله، د دوی زامن به يې حلالول او د دوی ښځې به يې ژوندۍ پرېښودلې، بېشكه هغه له فساد كوونكو ځنې و

۵:۲۸ - او مونږ اراده وكړه چې په هغو كسانو احسان وكړو چې په ځمكه كې ډېر ضعيف كړی شوي دي او چې دوی امامان وگرځوو او چې مونږ دوی (د فرعون د ملك) وارثان وگرځوو

۶:۲۸ - او چې مونږ دوی ته په ځمكه كې قدرت وركړو او چې فرعون او هامان او د دواړو لښكرو ته له دغو (بني اسرائيلو) نه هغه شی وښيو چې دوی به ترې وېرېدل

۷:۲۸ - او مونږ د موسیٰ مور ته وحي وكړه چې ته ده ته تی وركوه، نو كله چې په ده ووېرېدلې، نو دا په سيند كې وغورځوه او مه وېرېږه او غم مه كوه، بېشكه دا مونږ تا ته بېرته راوستونكي يو او مونږ دا له رسولانو له نه گرځوونكي يو

۸:۲۸ - نو دی ال فرعون وموندہ (او اوچت يې کړ) د دې لپاره چې (عاقبتًا) د دوی لپاره دښمن او غم شي، بېشکه فرعون او هامان او د دواړو لښکرې (دوی ټول) خطا کوونکي وو

۹:۲۸ - او د فرعون ښځې وویل: (دا هلك) زما او ستا د سترګو یخوالی دی، تاسو دا مه وژنئ، امېد دی چې دا به مونږ ته نفع راورسوي، یا به دا مونږ زوی ونیسو، په دې حال کې چې دوی نه پوهېدل

۱۰:۲۸ - او د موسیٰ د مور زړه (له صبره) بېخي خالي شو، بېشکه هغه قریب وه چې خامخا د ده اظهار وکړي که چېرې مونږ د هغې زړه مضبوط کړی نه وی، د دې لپاره چې له باور کوونکو څخه شي

۱۱:۲۸ - او هغې د هغه خور ته وویل: د ده (موسیٰ) پسې برابره ځه، نو هغې به ده ته له لرې نه کتل، په دې حال کې چې دوی به نه پوهېدل

۱۲:۲۸ - او مونږ په ده باندې دایيګانې بندې کړې وې، له مخکې نه، نو هغې (د موسیٰ خور) وویل: ایا زه تاسو ته داسې کورنۍ وښیم چې ستاسو لپاره د ده کفالت (او ساتنه) وکړي، په داسې حال کې چې هغوی به له ده سره ښېګڼه کوونکي وي

۱۳:۲۸ - نو مونږ هغه خپلې مور ته بېرته راوسته، د دې لپاره چې د هغې سترګې یخې شي او غم ونه کړي او د دې لپاره چې پوه شي چې بېشکه د الله وعده حقه ده۔ او لېکن د دوی زیاتره خلق نه پوهېږي

۱۴:۲۸ - او کله چې هغه خپل زور (ځوانۍ) ته ورسېده، او ښه برابر شه، مونږ هغه ته حکم (نبوت) او پوهه ورکړه او همداسې مونږ نېکي کوونکو ته بدله ورکوو

۱۵:۲۸ - او هغه (دې) ښار ته د هغه (ښار) د اوسېدونکو د غفلت (خوب) په وخت کې داخل شو، نو ده په هغه کې دوه سړي ومونډل چې له یو بل سره په جنګ وو، دا یو د ده له ډلې (بنی اسرائیلو) نه و او دا بل د ده له دښمنانو ځنې و۔ نو، هغه کس چې د ده له ډلې څخه و، له ده نه یې مرسته وغوښته، د هغه کس په خلاف چې د ده له دښمنانو څخه و۔، نو موسیٰ هغه په سوك وواهه، نو هغه یې قتل کړ، ده وویل: دا د شیطان له کاره څخه دی، بېشکه هغه ښکاره ګمراه کوونکی دښمن دی

۱۶:۲۸ - ده وویل: ای زما ربه! بېشکه ما په خپل ځان ظلم کړی دی، نو ته ما ته بخښنه وکړې، نو هغه ورته بخښنه وکړه، بېشکه هغه، هم هغه ډېر بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۱۷:۲۸ - ویې ویل: ای زما ربه! په سبب د هغه انعام چې تا په ما وکړ، نو زه به هېچېرې د مجرمانو مددګار نشم

۱۸:۲۸ - نو سبا یې کړ په ښار کې، په داسې حال کې چې وېرېدونکی و، (او) انتظار یې کاوه، نو ناڅاپه هغه کس چې پرون یې له ده نه مدد غوښتی و، ده ته نارې وهي، موسیٰ ده ته وویل: بېشکه ته خامخا ښکاره ګمراه یې

۱۹:۲۸ - نو کله چې ده اراده وکړه چې هغه کس ونیسي چې هغه د دوی دواړو دښمن دی، هغه وویل: ای موسیٰ! ایا ته غواړې چې ما (هم) قتل کړې، لکه پرون چې دې یو نفس وژلی و، ته نه غواړې مګر دا چې په ځمکه کې زورور شې او ته نه غواړې چې ته له اصلاح کوونکو څخه شې

۲۰:۲۸ - او د ښار تر ټولو لرې غاړې نه یو سړی راغی چې منډې یې راوهلې، ویې ویل: ای موسیٰ بېشکه چې مشران ستا په باره کې مشورې کوي، د دې لپاره چې تا قتل کړي، نو ته وځه! بېشکه زه ستا له خیر غوښتونکو څنې یم

۲۱:۲۸ - نو موسیٰ له دغه (ښار) نه ووت، په دې حال کې چې وېرېدونکی و (او) انتظار یې کاوه، ویې ویل: ای زما ربه! ته ما ته له ظالم قوم نه نجات راکړې

۲۲:۲۸ - او کله چې یې د مدین په طرف مخه کړه، ویې ویل: امېد دی چې زما رب به ما ته نېغه لار راوښیي

۲۳:۲۸ - او کله چې د مدین اوبو ته ورسېده، نو د هغه (کوهي) په خوا کې یې د خلقو یوه ډله وموندله چې اوبه یې ورکولې او له هغوی نه یې رابېرته دوه ښځې وموندلې چې خپل څاروي یې رامنع کول، ویې ویل: ستاسو څه معامله ده؟ هغوی وویل: مونږ (څارویو ته) اوبه نه ورکوو تر هغه پورې چې شپانه بېرته (سره له ماله) لاړ شي او زمونږ پلار عمر خوړلی بوډا دی

۲۴:۲۸ - نو (د) هغو (کنډك) ته یې اوبه ورکړې، بیا سیورې ته وګرځېده، نو ویې ویل: ای زما ربه! بېشکه زه هر هغه څیز ته چې ته یې ما ته نازلوې له خیره څنې؛ محتاج یم

۲۵:۲۸ - نو په دغو دواړو کې یوه ده ته راغله چې په ډېرې حیا سره یې تګ کاوه، ویې ویل: بېشکه زما پلار تا غواړي، د دې لپاره چې تا ته اجر (حق) درکړي د هغه عمل چې تا مونږ ته (زمونږ څاروي) اوبه کړي وو، نو کله چې هغه ده ته راغی او ده ته یې (خپله) قصه بیان کړه، ویې ویل: ته مه وېرېږه (اوس) ته له ظالم قوم نه خلاص شوی یې

۲۶:۲۸ - په دواړو کې یوې وویل: ای زما پلار جانه! ته دا مزدور ونیسه، بېشکه ترټولو غوره په هغه چا کې چې ته یې مزدور نیسې، هغه دی چې ښه قوتناك او امانتګر وي

۲۷:۲۸ - ویې ویل: بېشکه زه غواړم په خپلو دغو دوه لوڼو کې یوه تا ته په نکاح درکړم، په دې شرط چې ته به اته کاله زما مزدوري کوې، نو که تا لس کاله پوره کړل، نو ستا له اړخه به (احسان) وي، او زه په تا باندې مشقت اچول نه غواړم، ژر ده چې ته به ما له نېکانو څخه ومومې، که الله وغواړي (ان شاء الله)

۲۸:۲۸ - ويې ويل: دا دی (عهد مقرر) زما په مینځ کې او ستا په مینځ کې، په دغو دواړو نېټو کې چې کومه ما پوره کړه، نو په ما به (نور) هېڅ زیاتی نه وي، او څه چې مونږ وایو، الله پرې ګواه دی

۲۹:۲۸ - نو کله چې موسیٰ نېټه پوره کړه او له خپل اهل سره روان شو (، نو) د طور له جانبه یې اور ولیده، خپل اهل ته یې وویل: تاسو ایسار شئ، بېشکه ما اور ولیده، کېدی شي چې زه تاسو ته له هغه نه څه خبر، یا د اور سکروټه (شغله) راوړم، د دې لپاره چې تاسو (پرې) تاوده شئ

۳۰:۲۸ - نو کله چې دغه (اور) ته راغی (، نو) په مبارکه ټوټه (قطعه) کې د ناو په ښي اړخ کې له ونې نه ورته اواز وکړی شو داسې چې ای موسیٰ! بېشکه همدا زه الله رب العلمین یم

۳۱:۲۸ - او داسې چې خپله امسا وغورځوه، نو کله چې یې هغه ولیدله چې حرکت کوي، ګویاکې نری منګری مار دی، (نو) مخ یې واړوه، په دې حال کې چې شاکوونکی (تښتېدونکی) و، او بېرته را ونه ګرځېده، ای موسیٰ! مخ راواړوه او مه وېرېږه: بېشکه ته له امان موندونکو څخه یې

۳۲:۲۸ - ته خپل لاس په خپل ګرېوان کې ننباسه، را وبه وځي، په داسې حال کې چې بې له کوم عیبه به تك سپین وي او ته خپل ځانګ خپل ځان ته راپېوست کړه، د وېرې له وجې نه، نو دغه دواړه ستا د رب له جانبه دلیلونه دي فرعون او د هغه سردارانو ته، بېشکه چې دوی فاسقان خلق دي

۳۳:۲۸ - ويې ویل: ای زما ربه! بېشکه ما له دوی نه یو نفس وژلی دی، نو زه وېرېږم چې دوی به ما ووژني

۳۴:۲۸ - او زما ورور هارون چې دی، هغه له ما نه په ژبه کې ډېر فصیح دی، نو ته هغه زما سره مددګار ولېږه چې زما تصدیق کوي، بېشکه زه وېرېږم له دې نه چې دوی به زما تکذیب وکړي

۳۵:۲۸ - ويې ویل: ژر به مونږ ستا مټ په خپل ورور سره مضبوط کړو او تاسو لپاره به غلبه وګرځوو، نو دوی به تاسو ته نشي دررسېدلی، زمونږ د نښو په وجه. تاسو دواړه او څوك چې ستاسو پیروي کوي همم تاسو (ټول) به غالب وئ

۳۶:۲۸ - نو کله چې دوی ته موسیٰ زمونږ په څرګندو معجزو سره راغی، دوی وویل: نه دی دا مګر جادو (سحر)، چې په دروغو سره جوړ کړی شوی دی او مونږ دا خبره په خپلو پلرونو کې نه ده اورېدلې چې پخوا وو

۳۷:۲۸ - او موسیٰ وویل: زما رب ښه عالم دی په هغه چا چې د هغه له جانبه په هدایت سره راغلی دی او په هغه چا چې د هغه لپاره به د اخرت ښه انجام وي، بېشکه شان دا دی چې ظالمان به بری نه مومي

۳۸:۲۸ - او فرعون وویل: ای سردارانو! زه تاسو لپاره له خپل ځان نه غیر بل هېڅ معبود نه پېژنم،

نو ای هامانه! ته زما لپاره په خټې باندې اور بل کړه، پس زما لپاره یوه اوچته ماڼۍ جوړه کړه، کېدی شي چې زه د موسیٰ معبود ته وخېژم او بېشکه زه دا له دروغجنانو څنې ګڼم

۳۹:۲۸ - او ده او د ده لښکرو په ځمکه کې ناحقه (تکبر او) اولویي وکړه او دا یې وګڼله چې یقیناً دوی به مونږ ته نه راګرځول کېږي

۴۰:۲۸ - نو مونږ دا او د ده لښکرې راونیولې، نو مونږ دوی په دریاب کې وغورځول، نو ته وګوره چې د ظالمانو (کافرانو) انجام څنګه و؟

۴۱:۲۸ - او مونږه دوی داسې پېشوایان وګرځول چې اور ته بلنه کوي او د قیامت په ورځ به له دوی سره مرسته نه کولی شي

۴۲:۲۸ - او په دې دنیا کې مونږ د دوی پسې لعنت ولګاوه، او د قیامت په ورځ به همدوی له خراب کړی شویو (بدمخي شویو) څخه وي

۴۳:۲۸ - او یقیناً یقیناً مونږ موسیٰ ته کتاب ورکړی و، وروسته له هغه نه چې مونږ ړومبني امتونه هلاك كړل، په دې حال کې چې هغه د خلقو لپاره د بصیرتونو والا، او هدایت او رحمت دی، د دې لپاره چې دوی نصیحت ومني

۴۴:۲۸ - او (ای نبي!) ته (د موسیٰ) سره د مغربي (غره) خوا ته نه وې کله چې مونږ موسیٰ ته د (نبوت د) کار وحي وکړه او ته له حاضرینو څخه نه وې

۴۵:۲۸ - او لېکن مونږ ډېر امتونه پیدا کړل، نو په دوی خپل عمرونه اوږده شول. او ته په مدین والاو کې اوسېدونکی نه وې، چې تا هغوی ته زمونږ ایتونه لوستلی، او لېکن همدا مونږ (تا لره) لېږونکي یو

۴۶:۲۸ - او ته د طور خوا ته نه وې کله چې مونږ اواز وکړ او لېکن (ته لېږلی یې مونږ) رحمت، د خپل رب له جانبه، د دې لپاره چې ته هغه قوم ووېروې چې له تا نه مخکې دوی ته کوم وېروونکی نه دی راغلی، د دې لپاره چې دوی نصیحت قبول کړي

۴۷:۲۸ - او که دا نه وی چې دوی ته به څه مصیبت ورسېږي په سبب د هغو عملونو چې د دوی لاسونو مخکې لېږلي دي، بیا به دوی وایي: ای زمونږ ربه! ته مونږ ته کوم رسول ولې نه رالېږې، پس چې مونږ ستا د ایتونو تابع شو او شو له مومنانو څخه

۴۸:۲۸ - نو کله چې دوی ته زمونږ له جانبه حق راغی، وېې ویل: ده ته په مثل د هغو (معجزو) ولې نه دي ورکړی شوي چې موسیٰ ته ورکړی شوې دي؟ ایا دوی کافران شوي نه وو په هغو (معجزو) چې له دې نه مخکې موسیٰ ته ورکړی شوې وې؟ دوی وویل: دوه سحره دي، چې د یو بل مدد کوي، او دوی وویل: مونږ په هر یو سره کفر کوونکي یو

۴۹:۲۸ - ته ووايه: تاسو د الله له خوا نه داسې كتاب راوړئ چې هغه د دې دواړو كتابونو نه زيات لار ښوونكى وي، چې زه د هغه پيروي وكړم، كه تاسو رښتيني يئ

۵۰:۲۸ - نو كه دوى ستا خبره ونه منله، نو ته پوه شه چې دوى يقينًا يواځې د خپلو خواهشاتو پيروي كوي او له هغه چا نه لوى گمراه څوك دى، چې د خپل خواهش پيروي كوي، بې له هدايته د الله له جانبه، بېشكه الله ظالم قوم ته نېغه لار نه ښيي

۵۱:۲۸ - او يقينًا يقينًا مونږ دوى ته كلام پرله پسې لېږلى دى، د دې لپاره چې دوى نصيحت واخلي

۵۲:۲۸ - هغه كسان چې مونږ هغوى ته له ده نه مخكې كتاب وركړى و، هغوى په ده باندې ايمان راوړي

۵۳:۲۸ - او كله چې دوى ته ولوستى شي، دوى وايي: مونږ په ده باندې ايمان راوړى دى، بېشكه همدا زمونږ د رب له جانبه حق دى، بېشكه مونږ له ده نه مخكې هم مسلمانان وو

۵۴:۲۸ - دغه كسان دي چې دوى ته به د دوى اجر دوه كرته وركاوه شي، په سبب د دې چې دوى صبر وكړ۔ او دوى په نېكۍ سره بدي لرې كوي، او ځينې له هغه مال نه چې مونږ دوى ته وركړى دى لگوي يې

۵۵:۲۸ - او كله چې دوى بېكاره خبره واوري (، نو) له هغې نه مخ واړوي او وايي: زمونږ لپاره زمونږ عملونه دي او ستاسو لپاره ستاسو عملونه دي، په تاسو دې سلام وي، مونږ جاهلان نه غواړو

۵۶:۲۸ - بېشكه ته هدايت نشې كولى هغه چا ته چې ته يې خوښوې، او لېكن الله هدايت وركوي چا ته چې وغواړي او هغه ښه عالم دى په هدايت موندونكو باندې

۵۷:۲۸ - او دوى وايي: كه مونږ له تا سره د هدايت پيروي وكړو (نو) له خپلې ځمكې نه به وتښتول (ووېستل) شو، ايا مونږ دوى ته د داسې حرم تمكين نه دى وركړى چې د امن والا دى، ده ته د هر شي مېوې راوړلى (او وركولى) شي ښه رزق وركول، زمونږ له خوا نه، او لېكن د دوى زياتره نه پوهېږي

۵۸:۲۸ - او مونږ څومره ډېر كلي هلاك كړي دي چې په خپل معيشت كې يې سركشي كړې وه، نو دغه د دوى كورونه دي چې له دوى نه پس په كې سكونت نه دى شوى مگر ډېر لږ او هم دا مونږ وارثان يو

۵۹:۲۸ - او ستا رب له سره د كليو هلاكوونكى نه دى، تر هغه پورې چې د هغو (كليو) په اصل (مركزي ښار) كې يو رسول ولېږي چې دوى ته زمونږ ايتونه لولي، اومونږ د كليو هلاكوونكي نه يو مگر په داسې حال كې چې د هغو اوسېدونكي ظالمان وي

٦٠:٢٨ - او تاسو ته چې څه شی هم درکړی شوی دی، نو د دنیایي ژوند فایده او د هغه زینت دی، او هغه څه چې له الله سره دي، ډېر غوره او ښه باقي پاتې کېدونکي دي، ایا نو تاسو له عقل نه کار نه اخلئ؟

٦١:٢٨ - ایا نو هغه څوك چې له هغه سره مونږ وعده کړې ده، ښه وعده، پس دی له هغې سره ملاقات کوونکی دی، د هغه چا په شان دی، چې مونږ هغه ته فایده ورکړه د دنیایي ژوند فایده، بیا به هغه د قیامت په ورځ له حاضر کړی شویو څخه وي؟

٦٢:٢٨ - او (یاده کړه) هغه ورځ چې دوی ته به هغه (الله) اواز وکړي، نو وبه وایي: زما هغه شریکان چېرته دي چې تاسو به ګڼل؟

٦٣:٢٨ - هغه کسان به ووایي چې پر هغوی باندې خبره ثابته شوې ده: ای زمونږه ربه! دا هغه کسان دي چې مونږ ګمراه کړي وو، مونږ دوی ګمراه کړل، لکه چې مونږ ګمراه شوي وو. مونږ (له دوی نه) ستا په طرف بېزاره کېږو، دوی زمونږ عبادت نه کاوه

٦٤:٢٨ - او وبه ویل شي: تاسو خپل شریکان وبلئ، نو دوی به هغوی وبلي: نو هغوی به دوی ته هېڅ جواب ورنه کړي او دوی به عذاب وویني (او تمنا به وکړي چې) کاشکې واقعتًا دوی (په دنیا کې) هدایت موندلی وی

٦٥:٢٨ - او (یاده کړه) هغه ورځ چې دوی ته به (الله) اواز وکړي، نو وبه وایي: تاسو رسولانو ته څه جواب ورکړی و؟

٦٦:٢٨ - نو په دغې ورځ به په دوی باندې خبرونه پټ شي، نو دوی به یو تربله پوښتنه نه کوي

٦٧:٢٨ - نو پاتې شو هغه کس چې توبه وباسي او ایمان راوړي او نېك عمل وکړي، نو امېد دی چې دغه به له نجات موندونکو څخه وي

٦٨:٢٨ - او ستا رب پیدا کوي هغه چې وغواړي او هغه انتخاب کوي، دوی ته هېڅ اختیار نشته، الله لره پاکي ده، او هغه اوچت دی له هغه څه نه چې دوی یې (ورسره) شریکوي

٦٩:٢٨ - او ستا رب پوهېږي په هغه څه چې د دوی سینې یې پټوي او څه چې دوی څرګندوي

٧٠:٢٨ - او همدغه الله دی، نشته هېڅ لایق د عبادت مګر هم دی دی، خاص هم ده لره ثنا ده په دنیا او اخرت کې، او خاص هم ده لره حکم دی، او خاص ده ته به تاسو بېرته بیولی شئ

٧١:٢٨ - ته (دوی ته) ووایه: تاسو ما ته خبر راکړئ که چېرې الله پر تاسو باندې د قیامت د ورځې پورې همېشه شپه کړي (نو) له الله نه غیر بل څوك الٰه (معبود) دی چې تاسو ته رڼا راوړي؟ ایا نو تاسو نه اورئ؟

٧٢:٢٨ - ته (دوی ته) ووایه: ما ته خبر راکړئ، که چېرې الله پر تاسو باندې د قیامت د ورځې پورې

همېشه ورځ کړي، نو له الله نه غير بل څوك معبود دی چې تاسو ته هغه شپه راوړي چې تاسو په هغې کې ارامر کوئ؟ ايا نو تاسو نه وينئ؟

۷۳:۲۸ - او خاص د خپل رحمت له وجې يې تاسو لپاره شپه او ورځ پيدا کړې ده، د دې لپاره چې تاسو په دغې (شپه) کې ارامر وکړئ او د دې لپاره چې تاسو (په دغې ورځ کې) د هغه له فضله (څه) ولټوئ او د دې لپاره چې تاسو شکر وباسئ

۷۴:۲۸ - او (ياده کړه) هغه ورځ چې دوی ته (الله) اواز وکړي، نو وبه وايي: چېرته دي زما هغه شريکان چې تاسو به ګڼل؟

۷۵:۲۸ - او مونږ به له هر امت نه يو ګواه راوباسو، نو مونږ به (دوی ته) ووايو: تاسو خپل دليل راوړئ، نو دوی به پوه شي چې بېشکه حق خاص د الله لپاره دی، او له دوی نه به هغه څه ورك شي چې دوی به دروغ تړل

۷۶:۲۸ - بېشکه قارون د موسیٰ له قومه څخه و، نو ده په دغو (بني اسرائيلو) باندې سرکشي (او لويي) وکړه او مونږه ده ته له خزانو ځنې دومره مقدار ورکړی و چې بېشکه د هغو چابيانې (کليګانې) به خامخا په طاقتورې ډلې درنېدلې، (ياد کړه) هغه وخت چې ده ته د ده قومر وويل: ته (په مال خوشحالي او) تکبر مه کوه بېشکه الله (په مال خوشالېدونکي) تکبر کوونکي نه خوښوي

۷۷:۲۸ - او ته په هغه (مال) کې چې تا ته الله درکړی دی؛ د اخرت کور (جنت) لټوه، او له دنيا نه خپله برخه مه هېروه، او احسان کوه، لکه چې تا سره الله احسان کړی دی، او په ځمکه کې فساد مه غواړه، بېشکه الله فساد کوونکي نه خوښوي

۷۸:۲۸ - هغه وويل: يقينًا دا خو ما ته راکړی شوی دی په هغه علمر سره چې زما سره دی، ايا دی نه و پوه، چې بېشکه الله يقينًا له ده نه مخکې له امتونو څخه هغه څوك هلاك کړي دي چې هغه له ده نه په قوت کې زيات سخت وو، او په جمع (ډله) کې له ده نه ډېر وو، او له مجرمانو (کافرانو) نه به د خپلو ګناهونو په باره کې، تپوس نه کاوه شي

۷۹:۲۸ - نو دی په خپل قومر باندې په زينت کې راووت، (نو) هغو کسانو وويل چې دنيايي ژوند يې غوښته: ای کاشکې چې مونږ له همر وی په شان د هغو (مالونو) چې قارون ته ورکړی شوي دي، بېشکه دا خامخا د ډېرې لويې برخې خاوند دی

۸۰:۲۸ - او هغو کسانو وويل چې علمر ورته ورکړی شوی و: په تاسو افسوس! د الله ثواب ډېر غوره دی د هغه چا لپاره چې ايمان يې راوړی دی او نېك عمل يې کړی دی، او دغه خبره نښوولی نشي مګر صبر کوونکو ته

۸۱:۲۸ - نو مونږ هغه او د هغه کور په ځمکه کې ننه ايست، نو بيا د ده لپاره له الله نه غير هېڅ ډله نه وه چې د ده مدد يې کړی وی اونه و دی (پخپله) له بدل اخيستونکو څخه

۸۲:۲۸ - او شول هغه کسان چې پرون يې د ده د مرتبې تمنا کوله، چې ويل يې: تعجب دی! ځکه چې يقينًا الله رزق فراخوي چا لپاره چې وغواړي په خپلو بنده ګانو کې او تنګوي يې.، که چېرې نه وی دا چې الله پر مونږ احسان وکړ، خامخا مونږ به يې هم (په ځمکه کې) ننه ايستي (ډوب کړي) وو، تعجب دی! ځکه چې يقينًا، کافران خلاصی نه مومي

۸۳:۲۸ - دغه د اخرت کور (جنت) دا مونږ د هغو کسانو لپاره مقرروو چې په ځمکه کې نه د لويي اراده لري او نه د فساد (وراني) کولو او ښه انجام د پرهېزګارانو لپاره دی

۸۴:۲۸ - چا چې يوه نېکي راوړه، نو د هغه لپاره له هغې نه غوره (بدله) ده او چا چې يوه بدي راوړه، نو جزا نشي ورکولی هغو کسانو ته چې بدۍ يې کړي دي، مګر هغه چې دوی به څه عمل کاوه

۸۵:۲۸ - بېشکه هغه (الله) چې په تا يې قرآن فرض (نازل) کړی دی يقينًا هغه تالره د وعدې ځای ته بېرته بېونکی دی.، ته ووايه: زما رب ښه عالم دی په هغه چا چې نېکي يې راوړې ده او په هغه چا چې هغه په ښکاره ګمراهۍ کې دی

۸٦:۲۸ - او تا امېد نه لاره چې تا ته به کتاب نازل کړی شي لېکن ستا د رب له جانبه د رحمت په وجه (نازل کړی شو)، نو ته له سره مه کېږه مددګار د کافرانو

۸۷:۲۸ - او دوی (کافران) دې تا د الله له ايتونو نه هيچېرې وانه ړوي، وروسته له دې چې کله تا ته نازل کړی شول، او ته خپل رب طرف ته (خلق) بله، او هيچېرې مه کېږه له مشرکانو څخه

۸۸:۲۸ - او ته له الله سره بل هېڅ معبود مه بله. (ځکه چې) د عبادت هېڅ لايق نشته مګر هغه دی، د هغه له مخ (ذات) نه غير هر څيز فناکېدونکی دی. حکم خاص د هغه لپاره دی او خاص هغه ته به تاسو بېرته بوتلی شئ

## (مکي) تارکښه - العنکبوت ۲۹

۱:۲۹ - الف، لام، ميم

۲:۲۹ - ايا خلقو دا ګمان کړی دی چې دوی به په خپلې دې وينا پرېښودل شي چې: مونږ ايمان راوړی دی، حال دا چې دوی به نه ازمايل کېږي

۳:۲۹ - او يقينًا يقينًا مونږ هغه کسان ازمايلي وو چې له دوی نه مخکې وو، نو خامخا ضرور به الله هغه کسان معلوموي (ظاهروي) چې رښتيني دي او خامخا ضرور به دروغجن معلوموي

۴:۲۹ - بلکې ايا هغو کسانو ګمان کړی دی چې بد عملونه کوي چې دوی به زمونږ نه ړومبی (او خلاص) شي؟ بد دی هغه حکم (فيصله) چې دوی يې کوي

۵:۲۹ - هر څوك چې د الله د ملاقات امېد لري، نو بېشکه د الله (د ملاقات) نېټه خامخا راتلونکې

ده او هم هغه ښه اورېدونکی، ښه عالم دی

۶:۲۹ - او هغه څوك چې جهاد کوي، نو یقینًا هم د خپل ځان لپاره جهاد کوي۔، بېشکه الله خامخا غني (ډېر بې پروا) دی، له عالمونو نه

۷:۲۹ - او هغه کسان چې ایمان يې راوړی دی او نېك عملونه يې کړي دي، خامخا ضرور به مونږ له هغوی نه د هغوی ګناهونه ورژوو او خامخا ضرور به مونږ دوی ته د ترټولو غوره عملونو چې دوی به کول؛ بدله ورکړو

۸:۲۹ - اومونږ انسان ته د خپل مور و پلار په باره کې د نېکۍ کولو کلك حکم کړی دی، او که دوی دواړه په تا ډېر کوښښ وکړي، د دې لپاره چې ته زما سره هغه شی شریك کړې چې تا ته د هغه هېڅ علم نشته، نو ته د دوی خبره مه منه، خاص ما ته ستاسو بېرته راتلل دي، نو زه به تاسو په هغو عملونو خبر کړم چې تاسو به کول

۹:۲۹ - او هغه کسان چې ایمان يې راوړی دی او نېك عملونه يې کړي دي، خامخا ضرور به مونږ دوی په (ډله د) صالحانو کې داخل کړو

۱۰:۲۹ - او په خلقو کې ځینې هغه څوك دي چې وايي: مونږ په الله ایمان راوړی دی، نو کله چې ده ته په (لاره د) الله کې تکلیف (سختي) ورسولی شي (، نو) د خلقو (له اړخه) سختي (او فتنه) د الله له جانبه عذاب وګڼي او قسم دی خامخا که ستا د رب له جانبه امداد راشي (، نو) خامخا ضرور به وايي چې بېشکه مونږ هم له تاسو سره وو۔، ایا الله ښه عالم نه دی په هغه (اخلاص او نفاق) چې د عالمونو (خلقو) په سینو کې دی

۱۱:۲۹ - او خامخا ضرور به الله هغه کسان معلوموي (څرګندوي) چې ایمان يې راوړی دی او خامخا ضرور به منافقین معلوموي

۱۲:۲۹ - او کافران شویو کسانو هغو خلقو ته وویل چې ایمان يې راوړی دی: تاسو زمونږ د لارې متابعت وکړئ او لازم ده چې مونږ ستاسو ګناهونه اوچت کړو۔، حال دا چې دوی د هغوی له ګناهونو نه هېڅ شی (ګناه) نه دي پورته کوونکي، بېشکه دوی دروغجنان دي

۱۳:۲۹ - او خامخا ضرور به دوی خپل بوجونه پورته کوي او له خپلو بوجونو سره نور بوجونه (هم) او د قیامت په ورځ به خامخا ضرور له دوی نه د هغو (دروغو) تپوس کولی شي چې دوی به ځانه جوړول

۱۴:۲۹ - او یقینًا یقینًا مونږه نوح خپل قوم ته (رسول) لېږلی و، نو هغه په دوی کې پنځوس کاله کم زر کاله تېر کړل، بیا دوی طوفان ونیول، په داسې حال کې چې دوی ظالمان وو

۱۵:۲۹ - نو مونږ هغه ته او د کشتۍ والاو ته نجات ورکړ او مونږ د عالمونو لپاره دغه (کشتۍ، یا

قصه) لویه نښه وګرځوله

۱۶:۲۹ - او (یاده کړه قصه د) ابراهیم، کله چې هغه خپل قوم ته وویل: تاسو د الله عبادت کوئ او له هغه نه ویرېږئ، دا تاسو لپاره ډېر غوره دي، که تاسو پوهېږئ

۱۷:۲۹ - یقینًا تاسو له الله نه غیر د بتانو عبادت کوئ او تاسو دروغ جوړوئ، بېشکه هغه (معبودان) چې تاسو يې له الله نه غیر عبادت کوئ، دوی تاسو لپاره د رزق مالکان نه دي، نو تاسو له الله سره رزق ولټوئ او د هغه عبادت کوئ او د هغه شکر وباسئ، تاسو به خاص هغه ته بېرته بیولی کېږئ

۱۸:۲۹ - او (ای کافرانو!) که تاسو تکذیب کوئ، نو یقینًا له تاسو نه مخکې امتونو هم تکذیب کړی دی، او د رسول په غاړه یواځې ښکاره پېغام رسونه ده

۱۹:۲۹ - ایا دوی نه ویني چې الله څنګه اول کرت مخلوق پیدا کوي، بیا د هغو اعاده کوي، بېشکه دا (کار) الله ته ډېر اسان دی

۲۰:۲۹ - ته ووایه: تاسو په ځمکه کې وګرځئ، بیا وګورئ چې هغه (الله) د مخلوق ابتدا څنګه کړې ده، بیا به الله پیدا کړي، وروستني پیدا کول، بېشکه الله په هر شي باندې ښه قادر دی

۲۱:۲۹ - هغه عذاب ورکوي هغه چا ته چې وغواړي او رحم کوي په هغه چا چې وغواړي او خاص هغه ته به تاسو بېرته بېولی کېږئ

۲۲:۲۹ - او (ای خلقو!) نه يئ تاسو عاجزه کوونکي (د الله) په ځمکه او نه په اسمان کې او تاسو لپاره له الله نه غیر نه هېڅ دوست شته او نه مددګار

۲۳:۲۹ - او هغه کسان چې د الله په ایتونو او د هغه په ملاقات سره کافر شوي دي، دغه کسان زما له رحمت نه نا امېده شوي دي او دغه کسان دي چې د دوی لپاره ډېر دردوونکی عذاب دی

۲۴:۲۹ - نو د هغه (ابراهیم) د قوم (بل) هېڅ جواب نه و مګر دا چې دوی وویل: تاسو دا ووژنئ یا دا وسوځوئ، نو الله ده ته له اور نه نجات ورکړ، بېشکه په دې کې خامخا ډېرې نښې دي د هغه قوم لپاره چې ایمان راوړي

۲۵:۲۹ - او ده وویل: یقینًا تاسو له الله نه غیر (دا) بتان یواځې د خپل مینځې دوستۍ لپاره نیولي دي، په دنیايي ژوند کې، بیا به د قیامت په ورځ ستاسو ځینې په ځینو نورو سره منکرېږي او ستاسو ځینې به په ځینو نورو لعنت وایي او ستاسو استوګنه اور دی او تاسو لپاره به هیڅوك مدد کوونکي نه وي

۲۶:۲۹ - نو په ده باندې لوط ایمان راوړ او ده وویل: بېشکه زه خپل رب ته هجرت کوونکی یم، بېشکه هم هغه ښه غالب، ښه حکمت والا دی

۲۷:۲۹ - او مونږ هغه ته اسحق او یعقوب وبخښل او مونږ د هغه په اولاده کې نبوت او کتاب کېښوده او مونږ هغه ته د هغه اجر په دنیا کې ورکړ او بېشکه هغه په اخرت کې خامخا له صالحانو څخه دی

۲۸:۲۹ - او (یاده کړه قصه د) لوط کله چې هغه خپل قوم ته وویل: بېشکه تاسو یقینًا غټه بدکاري کوئ، چې په عالمونو کې هیڅوك دې ته له تاسو نه ړومبی شوي نه دي

۲۹:۲۹ - ایا خامخا تاسو یقینًا له سړیو سره بدکاري کوئ او لارې شکوئ او تاسو په خپل مجلس کې ناکاره کارونه کوئ، نو د ده د قوم (بل) هېڅ جواب نه و مګردا چې دوی وویل: ته په مونږه د الله عذاب راوله که ته له رښتینو څخه یې

۳۰:۲۹ - ده وویل: ای زما ربه! د فسادي قوم په مقابله کې ته زما مدد وکړه

۳۱:۲۹ - او کله چې زمونږ استازیو ابراهیم ته زېری راوړ (بیا یې ورته وویل:) بېشکه مونږ د دې کلي اوسېدونکو لره هلاك كوونكي يو، بېشکه د دغه (کلي) اوسېدونکي ظالمان دي

۳۲:۲۹ - ده وویل: بېشکه په دغه (کلي) کې خو لوط دی، هغوی وویل: مونږ په هغه چا ښه عالمان یو چې په دغه کې دي، مونږ به خامخا ضرور هغه ته او د هغه اهل ته نجات ورکوو. د هغه له ښځې نه غیر، هغه په باقي پاتې کېدونکو کې ده

۳۳:۲۹ - او کله چې څنګه لوط ته زمونږ استازي راغلل (، نو) هغه د دوی په وجه غمګین شو او د دوی په وجه یې زړه ډېر تنګ شو او هغوی وویل: ته مه وېرېږه او مه غمګین کېږه، بېشکه مونږ تا لره او ستا اهل لره نجات ورکوونکي یو، خو ستا له ښځې نه غیر، هغه په باقي پاتې کېدونکو کې ده

۳۴:۲۹ - بېشکه مونږ د دې کلي په اوسېدونکو باندې له اسمانه عذاب نازلوونکي یو، په سبب د هغې نافرمانۍ (او بدکارۍ) چې دوی به کوله

۳۵:۲۹ - او یقینًا یقینًا مونږ له دغه کلي نه یوه ډېره څرګنده نښه پرېښوده، د هغه قوم لپاره چې له عقل نه کار اخلي

۳۶:۲۹ - او (مونږ لېږلی و) مدین ته د هغوی ورور شعیب، نو ده وویل: ای زما قومه! تاسو د الله عبادت کوئ او د اخري ورځې امېد ساتئ او په ځمکه کې ورانکاري مه ګرځئ، په داسې حال کې چې فساد کوونکي یئ

۳۷:۲۹ - نو دوی د هغه تکذیب وکړ، نو دوی سختې زلزلې ونیول، نو شول په خپلو کورونو کې پړمخې مړه پراته

۳۸:۲۹ - او (هلاك كړي مو وو قوم د) عاد او ثمود او په تحقیق تاسو ته (د دوی هلاکول) د دوی

له کورونو نه ښکاره شوي دياو دوی ته شيطان خپل عملونه ښايسته کړل، نو دوی يې له (حقې) لارې نه منع کړل (واړول)، حال دا چې دوی ښه بينا (او هوښيار) وو

۳۹:۲۹ - او (مونږ هلاك كړ) قارون او فرعون او هامان او يقينًا يقينًا دوی ته موسیٰ ښکاره معجزې راوړې وې، نو دوی په ځمکه کې لويي وکړه او دوی (زمونږ نه) ړومبی کېدونکی نه وو

۴۰:۲۹ - نو (په دوی کې) هر يو مونږ په خپلې گناه سره ونيوه، نو په دوی کې ځينې هغه دي چې مونږ پرې کاڼي وېشتونکی باد راخوشې کړ او ځينې په دوی کې هغه دي چې دوی سختې چغې ونيول او ځينې په دوی کې هغه دي چې مونږ هغوی په ځمکه کې ننه ابستل او ځينې په دوی کې هغه دي چې مونږ (په اوبو کې) غرق کړل او الله له سره داسې نه و چې په دوی يې ظلم کړی وی او لېکن دوی په خپلو ځانونو (پخپله) ظلم کاوه

۴۱:۲۹ - د هغو کسانو حال چې له الله نه غير يې دوستان (او کارسازي) نيولي دي د غڼې (جولاگې) د حال په شان دی، چې يو کور جوړ کړي، او بېشکه په کورونو کې تر ټولو کمزوری کور خامخا د جولاگې کور دی۔ که چېرې دوی پوهېدلی (نو د غير الله عبادت به يې نه کاوه)

۴۲:۲۹ - بېشکه الله په هر هغه شي عالم دی چې دوی يې له هغه نه غير بلي او همغه ښه غالب، ښه حکمت والا دی

۴۳:۲۹ - او دغه مثالونه، مونږ دغه د خلقو لپاره بيانوو او په دوی نه پوهېږي مگر پوه خلق

۴۴:۲۹ - الله اسمانونه او ځمکه په حق سره پيدا کړي دي، بېشکه په دې کې د مومنانو لپاره خامخا لويه نښه ده

۴۵:۲۹ - ته هغه لوله چې تا ته وحي کړی شوی دی، چې کتاب (او قرآن) دی او لمونځ قايموه، بېشکه لمونځ (لمونځ کوونکي لره) له بې حيايۍ او بدکار نه منع کوي۔ او خامخا د الله يادول ډېر لوی دي او الله پوهېږي په هغو کارونو چې تاسو يې کوئ

۴۶:۲۹ - او تاسو له اهل کتابو سره جگړه مه کوئ مگر په هغې (طريقې) سره چې هغه تر ټولو ښه وي، غير له هغو کسانو نه چې ظلم وکړي له دوی ځنې۔ او تاسو وايئ: مونږ په هغه (کتاب) ايمان راوړی دی چې مونږ ته نازل کړی شوی دی او (په هغه کتاب) چې تاسو ته نازل کړی شوی دی او زمونږ معبود او ستاسو معبود يو دی او مونږ خاص هغه ته غاړه اېښودونکي يو

۴۷:۲۹ - او همداسې مونږ تا ته کتاب نازل کړ، نو هغه کسان چې مونږ هغوی ته کتاب ورکړی دی هغوی په ده (قرآن) ايمان راوړي او له دغو (عربو) نه ځينې هغه دي چې په ده ايمان راوړي او زمونږ له ايتونو نه انکار نه کوي مگر کافران

۴۸:۲۹ - او له دې (قرآن) نه مخکې نه تا کوم کتاب لوسته او نه تا د غه په خپل ښي لاس سره

ليکه، (که ته داسې وی نو) په دغه وخت کې به باطل پرستو شك کاوه

۴۹:۲۹ - بلکې دغه (قرآن) ښکاره ایتونه دي د هغو خلقو په سینو کې چې هغوی ته علم ورکړی شوی دی. او زمونږ له ایتونو نه انکار نه کوي مگر ظالمان

۵۰:۲۹ - او دوی وايي: په ده باندې د خپل رب له جانبه نښې (معجزې) ولې نه نازلولی شي؟ ته (دوی ته) ووایه: بېشکه معجزې خو يواځې له الله سره دي، بېشکه زه خو بس ښکاره وېروونکی يم

۵۱:۲۹ - ايا دوی ته دا کافي نه دي چې بېشکه مونږ په تاکتاب نازل کړی دی، په دې حال کې چې دوی ته لوستل کېږي، بېشکه چې په دغه (کتاب) کې خامخا رحمت او نصيحت دی د هغه قوم لپاره چې ايمان راوړي

۵۲:۲۹ - ته (دوی ته) ووایه: زما په مينځ کې او ستا په مېنځ کې الله ښه کافي گواه دی، هغه عالم دی په هر هغه شي چې په اسمانونو او ځمکه کې دي او هغه کسان چې په باطل يې ايمان راوړی دی او په الله سره کافران شوي دي همدغه کسان تاوانيان دي

۵۳:۲۹ - او دوی دعذاب په راتلو سره په تا تلوار کوي، او که چېرې ټاکل شوي نېټه نه وی (نو) خامخا به په دوی عذاب راغلی و، او خامخا ضرور به دا په دوی ناڅاپه راځي، په دې حال کې چې دوی به شعور (خبر) نه لري

۵۴:۲۹ - او دوی د عذاب په راتلو سره په تا تلوار کوي، حال دا چې جهنّم خو کافرانو لره خامخا راگېروونکی دی

۵۵:۲۹ - په هغې ورځ کې چې دوی لره به عذاب پټ کاندې د دوی له پاسه نه او د دوی د پښو له لاندې، نه او دوی ته به ووايي: تاسو (د) هغه عمل (سزا) وڅکئ چې تاسو به کاوه

۵۶:۲۹ - ای زما هغو بنده گانو چې ايمان يې راوړی دی! بېشکه زما ځمکه فراخه ده، نو تاسو خاص زما عبادت کوئ

۵۷:۲۹ - هر نفس د مرگ (مزه) څکونکی دی، بيا به خاص مونږ ته راگرځولی شئ

۵۸:۲۹ - او هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی او نېك عملونه يې کړي خامخا ضرور به مونږ دوی ته د جنت په داسې لوړو بالاخانو کې ځای ورکړو چې د هغو له لاندې ولې بهېږي، په دې حال کې چې تل به وي په دغو (بالاخانو) کې، دغه (جنت) د عمل کوونکو ښه اجر دی

۵۹:۲۹ - هغه کسان چې صبر يې کړی دی او دوی خاص په خپل رب باندې توکل کوي

۶۰:۲۹ - او په ځمکه ډېر خوځنده (زنده سر) دي چې خپل رزق نه پورته کوي، الله دوی ته او تاسو ته روزي درکوي او هغه ښه اورېدونکی، ښه عالم دی

۶۱:۲۹ - او قسم دی که ته له دوی نه پوښتنه وکړې چې اسمانونه او ځمکه چا پیدا کړي دي او (چا) لمر او سپوږمۍ مسخر کړي دي؟ دوی به خامخا ضرور ووایي چې الله (پیدا کړي او مسخر کړي دي)، نو څرنګه دوی ګرځولی شي؟

۶۲:۲۹ - الله چې په خپلو بنده ګانو کې چا لره وغواړي؛ رزق فراخوي او په هغه یې تنګوي، بېشکه الله په هر شي ښه عالم دی

۶۳:۲۹ - او قسم دی که ته له دوی نه پوښتنه وکړې چې چا له اسمان نه اوبه نازلې کړې دي، بیا یې په هغو سره ځمکه د هغې له مرګ نه پس ژوندۍ کړې ده؟ (نو) خامخا ضرور به دوی ووایي چې الله (دا کار کړی دی) ته ووایه: ټول د کمال صفتونه خاص د الله لپاره دي بلکې د دوی اکثره عقل نه لري

۶۴:۲۹ - او دا دنیايي ژوند نه دی مګر عبث او لوبې او بېشکه دار اخرت (جنت) خامخا همغه واقعي ژوندون دی، که چېرې دوی پوهېدلی

۶۵:۲۹ - نو کله چې دوی په کشتۍ کې سواره شي (، نو) دوی الله بولي، په داسې حال کې چې خاص هغه لره دین خالص کوونکي وي، نوکله چې هغه (الله) دوی ته وچې ته نجات ورکړي (نو) ناڅاپه دوی (له الله سره) شریکان نیسي

۶۶:۲۹ - د دې لپاره چې دوی په هغو (نعمتونو سره) کفر (ناشکري) وکړي چې مونږ دوی ته ورکړي دي او د دې لپاره چې دوی فایده واخلي، نو ژر به دوی پوه شي

۶۷:۲۹ - ایا دوی نه دي لیدلي چې بېشکه مونږ حرم امن والا ګرځولی دی، حال دا چې د دوی ګېر چاپېره خلق تښتولی شي، ایا نو دوی په باطل ایمان راوړي او د الله په نعمت سره کافران کېږي؟

۶۸:۲۹ - او له هغه کس نه لوی ظالم څوك دی چې په الله باندې دروغ تړي، یا د حق تکذیب کوي، کله چې ده ته دغه (حق) راشي، .ایا په جهنّم کې د کافرانو لپاره د اوسېدوځای نشته؟

۶۹:۲۹ - او هغه کسان چې په (دین ز) مونږ کې کوشش کوي (، نو) مونږ به دوی ته خامخا ضرور خپلې لارې وښیو او بېشکه الله خامخا د نېکي کوونکو ملګری دی

## (مکي) رومیان - الروم ۳۰

۱:۳۰ - الف، لام، میم

۲:۳۰ - رومیان مغلوب کړی شول

۳:۳۰ - په ډېرې نزدې ځمکه کې، او دوی به د خپل مغلوب کېدو نه وروسته ژر غالب شي

۴:۳۰ - په څو کلونو کې. خاص الله ته حکم دی له دې نه مخکې او له دې نه وروسته او په دغې ورځ به مومنان خوشاله شي

۵:۳۰ - د الله په مدد، هغه مدد کوي چا ته چې وغواړي او همغه ښه غالب، ښه مهربان دی

۶:۳۰ - وعده کول د الله، ـالله د خپلې وعدې مخالفت نه کوي او لیکن د خلقو زیاتره نه پوهیږي

۷:۳۰ - دوی د دنیایي ژوند په ظاهري (او سرسري شیانو) پوهیږي، په داسې حال کې چې دوی له اخرته هم دوی غافلان دي

۸:۳۰ - ایا دوی په خپلو نفسونو کې فکر نه دی کړی، چې الله اسمانونه او ځمکه او هر هغه څه چې د دې دواړو په مینځ کې دي؛ نه دي پیدا کړي مگر په حقه سره او په ټاکلې نیټې سره. او بېشکه ډېر له خلقو ځنې د خپل رب په ملاقات خامخا منکران (او کافران) دي

۹:۳۰ - ایا دوی په ځمکه کې نه گرځي، نو چې وگوري چې د هغو کسانو انجام څنگه و چې له دوی نه مخکې وو. هغوی له دوی نه په قوت کې زیات سخت وو او هغوی ځمکه څیروله او دا یې اباده کړې وه ډېره له هغې نه چې دوی دغه اباده کړې ده او دوی ته خپلو رسولانو ښکاره دلیلونه راوړي وو، نو الله کله هم داسې نه و چې په دوی ظلم وکړي او لیکن دوی (پخپله) په خپلو ځانونو ظلم کاوه

۱۰:۳۰ - بیا د هغو کسانو انجام، چې بد یې کړي وو، ډېر بد و، په دې سبب چې دوی د الله د ایتونو تکذیب کړی و او په دغو (ایتونو) پورې به یې استهزا کولې

۱۱:۳۰ - الله اول ځلې مخلوق پیدا کوي، بیا به یې اعاده کوي، بیا به خاص هغه ته ورگرځولی شي

۱۲:۳۰ - او په هغې ورځ چې قیامت قایم شي، مجرمان به ناامېده شي

۱۳:۳۰ - او د دوی لپاره به د دوی په شریکانو کې هېڅ شفاعت کوونکي نه وي او دوی به له خپلو شریکانو نه منکران (کافران) شي

۱۴:۳۰ - او په کومه ورځ چې قیامت قایم شي، په دغې ورځ به دوی بېل بېل شي

۱۵:۳۰ - نو هر چې هغه کسان دي چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي، نو دوی به په باغ (جنت) کې خوشالولی شي

۱۶:۳۰ - او پاتې شو هغه کسان چې کفر یې کړی دی او زمونږ د ایتونو او د اخرت د ملاقات تکذیب یې کړی دی، نو دغه کسان به په عذاب کې حاضر کړی شوي وي

۱۷:۳۰ - نو (وایئ) د الله تسبیح کله چې تاسو ماښام کوئ او کله چې تاسو سبا کوئ

۱۸:۳۰ - او خاص هغه لره ستاینئ دي په اسمانونو اوپه ځمکه کې او (تسبیح وایئ) د ورځې په

اخره برخه کې او کله چې تاسو ماسپښین کوئ

۱۹:۳۰ - هغه (الله) له مړي نه ژوندی راوباسي او له ژوندي نه مړی راوباسي او ځمکه د هغې له مرګ نه پس راژوندۍ کوي او همداسې به تاسو راویستل کیږئ

۲۰:۳۰ - او یوه د هغه له نښو ځنې دا ده چې تاسو یې له خاورې پیدا کړئ، بیا ناڅاپه تاسو بشر وئ چې خورېدلئ

۲۱:۳۰ - او د هغه له نښو ځنې دا دي چې تاسو لپاره یې ستاسو له نفسونو څخه جوړې پیدا کړې، د دې لپاره چې تاسو هغو ته (په مایله کېدو سره) سکون حاصل کړئ او هغه ستاسو په مینځ کې مینه او مهرباني پیدا کړه، بېشکه په دغو کې خامخا نښې دي د هغه قوم لپاره چې ښه فکر کوي

۲۲:۳۰ - او د هغه له نښو ځنې د اسمانونو او ځمکې پیدا کول دي او ستاسو د ژبو او ستاسو د رنګونو اختلاف (بېل والی) دی، بېشکه په دغو کې خامخا نښې دي د عالمانو (پوهانو) لپاره

۲۳:۳۰ - او د هغه له نښو نه ستاسو خوب دی، په شپه او ورځ کې او ستاسو لټول دي د هغه له فضله، بېشکه په دغو کې خامخا نښې دي د هغه قوم لپاره چې اوري

۲۴:۳۰ - او د هغه له نښو ځنې (دا) دي چې هغه تاسو ته برېښنا د وېرې او طمعې لپاره ښیي او له بره نه اوبه نازلوي، بیا په دغو (اوبو) سره ځمکه راژوندۍ کوي، د هغې له مرګ نه وروسته، بېشکه په دغو کې خامخا نښې دي د هغه قوم لپاره چې له عقل نه کار اخلي

۲۵:۳۰ - او د هغه له نښو څخه (دا) دي چې اسمان او ځمکه د هغه په حکم سره ولاړ دي، بیا چې کله هغه تاسو راوبلي، یوځل بلل، له ځمکې نه، (نو) ناڅاپه به تاسو (ژوندي) راوځئ

۲۶:۳۰ - او خاص د هغه لپاره دي هغه څوك چې په اسمانونو او ځمکه کې دي، (دغه) ټول د همده اطاعت کوونکي دي

۲۷:۳۰ - او دی همغه ذات دی چې مخلوق اول ځلې پیدا کوي، بیا به دغه دوباره راژوندي کوي او دغه (بیا راژوندي کول) هغه (الله) ته ډېر اسان دي. او خاص هغه لره تر ټولو لوړ شان (او صفت) دی په اسمانونو اوځمکه کې او هغه ښه غالب، ښه حکمت والا دی

۲۸:۳۰ - هغه (الله) تاسو ته ستاسو له ځانونو نه یو مثال بیانوي (هغه دا چې) ایا تاسو لپاره ستاسو له مریانو څخه په هغه (مال) کې چې مونږ تاسو ته درکړی دی، څوك شریکان شته؟ نو چې تاسو (ټول) په هغه (مال) کې سره برابر یئ چې تاسو له دوی نه داسې وېرېږئ لکه ستاسو وېره کول له خپلو ځانونو (ازادو شریکانو) نه.، همداسې مونږ ایتونه په تفصیل سره بیانوو، د هغه قوم لپاره چې له عقل نه کار اخلئ

۲۹:۳۰ - بلکې هغو کسانو چې ظلم یې کړی دی، بې له علمه د خپلو خواهشاتو پیروي وکړه، نو هغه چا ته به څوك هدایت وکړي چې الله گمراه کړی دی او د دوی لپاره هېڅ مدد کوونکي نشته

۳۰:۳۰ - نو ته خپل مخ دین ته نېغ (او برابر) وساته، په داسې حال کې چې حق ته مایل اوسې، - (تاسو لازم ونیسئ) د الله هغه فطرت لره چې په هغه یې خلق پیدا کړي دي، د الله تخلیق لره هېڅ بدلون نشته همدغه سم (نېغ) دین دی، او لېکن د خلقو اکثریت نه پوهېږي

۳۱:۳۰ - په داسې حال کې چې هغه ته رجوع کوونکي یئ او له هغه نهووېرېږئ او لمونځ قایم کړئ او له مشرکانو څخه مه کېږئ

۳۲:۳۰ - له هغو کسانو څخه چې خپل دین یې تار په تار کړی دی او ډلې ډلې (پارټۍ پارټۍ) شوي دي، هره یوه ډله په هغه څه سره چې له دوی سره دي؛ ډېره خوشحاله ده

۳۳:۳۰ - او کله چې خلقو ته ضرر ورسېږي (نو) دوی خپل رب بولي، په داسې حال کې چې هغه ته رجوع کوونکي وي، بیا چې کله هغه (الله) له خپل جانبه په دوی رحمت وڅکوي، ناڅاپه په دوی کې یوه ډله له خپل رب سره شریکان نیسي

۳۴:۳۰ - د دې لپاره چې دوی د هغه څه ناشکري وکړي چې مونږ دوی ته ورکړي دي، نوتاسو فایده واخلئ، پس ژر به تاسو پوه شئ

۳۵:۳۰ - ایا مونږ په دوی باندې کوم د لیل نازل کړی دی، نو دغه (دلیل دوی ته) د هغه شي خبرې کوي چې دوی به د دغه (الله) سره شریکاوه

۳۶:۳۰ - او کله چې مونږ په خلقو خپل رحمت وڅکوو (نو) دوی په هغه خوشحال شي او که دوی ته څه سختي ورسېږي د هغو عملونو په سبب چې د دوی لاسونو مخکې لېږلي دي (نو) ناڅاپه دوی نااُمېده شي

۳۷:۳۰ - ایا دوی نه دي لیدلي چې بېشکه الله رزق فراخوي، چا ته چې وغواړي او تنگوي یې، بېشکه په دغه کې خامخا د هغه قوم لپاره نښې دي چې ایمان راوړي

۳۸:۳۰ - نو ته رشته دار ته د هغه حق ورکړه او مسکین او مسافر ته، دغه د هغو کسانو لپاره ډېر غوره دي چې د الله مخ غواړي، اوهمدغه خلق پوره کامیاب دي

۳۹:۳۰ - او هغه څه چې تاسو یې ورکوئ، چې له سوده څخه وي، د دې لپاره چې د خلقو په مالونو کې زیات شي، نو د الله په نېز دغه نه زیاتېږي او هغه څه چې تاسو یې ورکوئ چې له زکاته وي، په داسې حال کې چې تاسو د الله مخ غواړئ، نو همدغه کسان ډېر زیاتوونکي دي

۴۰:۳۰ - الله هغه ذات دی چې تاسو یې پیدا کړئ، بیا هغه تاسو ته روزي درکړه، بیا به هغه تاسو مړه کوي، بیا به تاسو ژوندي کوي، ایا ستاسو په شریکانو کې کوم یو شته چې په دغو

(کارونو) کې څه شی کولی شي؟ هغه (الله) ته پاکي ده او هغه ډېر اوچت دی له دې نه چې دوی ورسره شريك نيسي

۴۱:۳۰ - په وچه او لونده (بر او بحر) کې فساد خور شو، په سبب د هغو (عملونو) چې د خلقو لاسونو کړي دي، د دې لپاره چې هغه (الله) په دوی ځینې برخه (د سزا) د هغو عملونو وڅکوي چې دوی کړي دي، د دې لپاره چې دوی راواپس شي

۴۲:۳۰ - ته (دوی ته) ووايه: تاسو په ځمکه کې وګرځئ، نو وګورئ چې د هغو کسانو انجام څنګه و چې له دوی نه مخکې وو، د هغوی اکثره مشرکان وو

۴۳:۳۰ - نو ته خپل مخ ډېر نېغ (سم) دين ته برابر او قايم وساته له دې نه مخکې چې هغه ورځ راشي چې د الله له جانبه هغې ته بېرته ګرځېدل (ګرځول) نشته، په دغې ورځ کې به خلق تار په تار (بېل بېل) شي

۴۴:۳۰ - هر څوك چې کافر شو، نو په همده باندې (عذاب د) کفر د ده دی. او چا چې نېك عمل وکړ، نو دوی خاص د خپلو ځانونو لپاره فرشونه غوړوي (او ځایونه تیاروي)

۴۵:۳۰ - د دې لپاره چې هغه (الله) هغو کسانو ته چې ايمان يې راوړی دی او نېك عملونه يې کړي دي؛ له خپله فضله بدله ورکړي، بېشکه هغه (الله) له کافرانو سره مینه نه کوي

۴۶:۳۰ - او د هغه (الله) له نښو څخه دا دي چې هغه هواګانې رالېږي، چې زېری ورکوونکي دي، او د دې لپاره چې په تاسو له خپل رحمته ځینې (مزې)! وڅکوي او د دې لپاره چې کشتۍ د هغه په حکم سره روانې شي، او د دې لپاره چې تاسو د هغه له فضله ولټوئ، او د دې لپاره چې تاسو شکر وباسئ

۴۷:۳۰ - اويقينًا يقينًا مونږ له تا نه مخکې خپلو قومونو رسولان ته لېږلي وو، نوهغوی دوی ته په ښکاره معجزو سره راغلل، نو مونږه له هغو کسانو نه چې جرم (کفر) يې کړی و، انتقام (او بدل) واخيست او په مونږه باندې د مومنانو مدد کول حق دی

۴۸:۳۰ - الله هغه ذات دی چې هواګانې لېږي، نو هغه ورېځې پورته کوي، نو هغه (الله) دغه په بره کې څنګه چې وغواړي خوروي او دغه (ورېځې) ټوټه ټوټه لاندې باندې وګرځوي، بيا ته باران وينې چې د هغې (ورېځې) له مينځ نه راوځي، نو کله چې دغه (باران) هغه چا ته ورسوي چې هغه يې په خپلو بنده ګانو کې اراده کړې وي، ناڅاپه دوی ښه خوشحالي کوي

۴۹:۳۰ - او يقينًا دوی مخکې له دې چې په دوی دغه (باران) نازل کړی شي، له دې نه مخکې خامخا نا اميده وو

۵۰:۳۰ - نو ته د الله د رحمت نښو (او اشارو) ته وګوره، الله ځمکه د هغې له مرګ (وچ والي) نه

وروسته څنګه ژوندۍ کوي، بېشکه دغه (الله) خامخا مړو لره ژوندي کوونکی دی او هغه په هر شي باندې قادر دی

۵۱:۳۰ - او قسم دی که مونږ (د دوی په فصلونو داسې ضرري) هوا را اولېږو، بیا دوی دغه (فصل) تك زېړ ووینې، (نو) خامخا دوی به له دې نه بعد شي چې کفر به کوي

۵۲:۳۰ - نو بېشکه ته مړو ته نشې اورولی او نه ته کڼو ته بلنه اورولی شې، کله چې هغوی مخ واړوي، په داسې حال کې چې شا کوونکي وي

۵۳:۳۰ - او ته ړندو ته د هغوی له ګمراهۍ نه هدایت کوونکی نه یې، ته نشې اورولی مګر هغه چا ته چې زمونږ په ایتونو ایمان راوړي، نو دوی مسلمانان دي

۵۴:۳۰ - الله هغه ذات دی چې تاسو یې له ضعف نه پیدا کړئ، بیا یې له کمزورۍ نه بعد قوت پیدا کړ، بیا یې له قوت نه پس کمزوري او بوډاوالی (دوېښتو سپین والی) پیدا کړ، څه چې هغه وغواړي پیدا کوي، او همغه ښه عالم، ښه قدرت والا دی

۵۵:۳۰ - او په هغې ورځ کې چې قیامت به قایم شي، مجرمان (کافران) به (په دې) قسم خوري چې دوی (په دنیا کې) له یو ساعت نه غیر نه دي پاتې شوي، همدارنګې به دوی ګرځولی شول

۵۶:۳۰ - او هغه کسان به چې هغوی ته علم او ایمان ورکړی شوی و، ووایي: یقینًا یقینًا تاسو د الله په کتاب کې د بعث (بیا راژوندي کولو) د ورځې پورې پاتې شوي یئ، نو دا د بعث، ورځ ده، او لېکن تاسو وئ چې نه پوهېدئ

۵۷:۳۰ - نو په دغې ورځ به هغو کسانو ته چې ظلم (شرك) یې کړی دی، د هغوی عذر فایده نه رسوي او نه به له دوی نه د معذرت کولو (او توبه اېستلو) غوښتنه کېږي

۵۸:۳۰ - او یقینًا یقینًا مونږه خلقو ته په دې قرآن کې هر قسمه مثال بیان کړی دی، او قسم دی که ته دوی ته کومه نښه (معجزه) راوړې (نو) هغه کسان به چې کافران شوي دي؛ خامخا ضرور وایي: تاسو نه یئ مګر باطل (او ناحق) ویونکي

۵۹:۳۰ - همداسې الله د هغو کسانو په زړونو مهر لګوي چې نه پوهېږي

۶۰:۳۰ - نو (ای نبي) ته صبر کوه، بېشکه د الله وعده حقه ده او تا دې له سره سپك نه کړي هغه کسان چې (په اخرت) یقین نه لري

## (مکي) لقمان - لقمان ۳۱

۱:۳۱ - الف، لام، میم

۲:۳۱ - دغه د حکمت لرونکي کتاب ایتونه دي

۳:۳۱ - په داسې حال کې چې نېکي کوونکو لپاره هدایت او رحمت دی

۴:۳۱ - هغه کسان چې لمونځ قایموي او زکات ادا کوي او په اخرت باندې همہ دوی یقین کوي

۵:۳۱ - دغه کسان په هدایت باندې دي د خپل رب له جانبه او همدغه کسان پوره کامیاب دي

۶:۳۱ - او په خلقو کې ځینې هغه څوك دي چې عبثې خبرې اخلي، د دې لپاره چې بې له علمه د الله له لارې نه (خلق) گمراه کړي او دغه (لاره) مَسخره جوړه کړي، دغه کسان چې دي، د دوی لپاره سپکوونکی عذاب دی

۷:۳۱ - او کله چې ده ته زمونږ ایتونه ولوستل شي (نو) مخ وگرځوي، په داسې حال کې چې ډېر تکبر کوونکی وي، گویاکې ده دا له سره اورېدلي نه دي، گویاکې د ده په دواړو غوږونو کې دروندوالی (کوڼوالی) دی، نو ته ده ته د ډېر دردوونکي عذاب زېری ورکړه

۸:۳۱ - بېشکه هغه کسان چې ایمان یې راوړی اونېك عملونه یې کړي دي، د دوی لپاره د نعمتونو جنتونه دي

۹:۳۱ - چې دوی به په هغو کې تل ترتله وي (دغه وعده کړې ده) وعده د الله حقه او همغه ښه غالب، ښه حکمت والا دی

۱۰:۳۱ - هغه، اسمانونه بې له ستنو پیدا کړي دي چې تاسو هغه وینئ او په ځمکه کې یې پاخه غرونه غورځولي (پیدا کړي) دي چې دغه (ځمکه) تاسو ونه خوځوي. او په دغې (ځمکه) کې هر قسمه خوځنده (زنده سر) خواره کړي دي او مونږ له بره نه اوبه نازلې کړې دي، بیا مونږ په دغې (ځمکه) کې هر قسمه ښې عمده (غلې، گیاگانې) رازرغونې کړې

۱۱:۳۱ - دغه د الله مخلوق دی، نو تاسو (ای مشرکانو!) ما ته وښیئ څه شی دی هغه چې دغو (بتانو) پیدا کړی دی، چې غیر له هغه (الله) نه دي، بلکې ظالمان په ښکاره گمراهۍ کې دي

۱۲:۳۱ - او یقینًا یقینًا مونږ لقمان ته حکمت ورکړی و چې د الله شکر وباسه او هر چا چې شکر وکړ، نو بېشکه همدا خبره ده چې هغه د ځان لپاره شکر کوي، او هر چا چې ناشکري وکړه، نو بېشکه الله ډېر بې پروا، ښه ستایل شوی دی

۱۳:۳۱ - او (یاد کړه) هغه وخت چې لقمان خپل زوی ته وویل، په دې حال کې چې ده ته یې نصیحت کاوه: ای زما خوږه زویه! له الله سره شریك مه نیسه، بېشکه شرك یقینًا ډېر لوی ظلم دی

۱۴:۳۱ - اومونږ انسان ته د خپل مور او پلار (سره د نېکي کولو) په باره کې کلك حکم کړی دی، دی خپلې مور اوچت کړی و، په داسې حال کې چې سخته کمزورې وه، له پاسه د بلې کمزورۍ

نه او د ده بېلول (د تي نه) په دوه کلونو کې وو، دا چې ته زما او د خپل مور او پلار شکر کوه، خاص ما ته بېرته راتله دي

۱۵:۳۱ - او که دوی (دواړه) په تا ډېر کوشش وکړي د دې چې ته زما سره هغه شی شریك کړه، چې تا ته د هغه هېڅ علم نشته، نو ته د دوی خبره مه منه، او په دنیا کې له دوی سره نېکه ملګرتیا کوه او ته د هغه چا د لارې پیروي کوه چې ما ته رجوع کوي، بیا خاص ما ته ستاسو بېرته راتله دي، نو زه به تاسو په هغو کارونو خبر کړم چې تاسو به کول

۱٦:۳۱ - ای زما خوږه زویه! بېشکه دغه (د بدۍ او نېکۍ خصلت) چې دی، که دغه د اوري د دانې په قدر وي، بیا دغه په یو کاڼي کې وي، یا په اسمانونو کې وي، یا په ځمکه کې وي، الله به هغه راوړي، بېشکه الله ډېر باریك بین، ښه خبردار دی

۱۷:۳۱ - ای زما خوږه زویه! ته لمونځ قایموه او د نېکۍ حکم کوه او له بدۍ نه (ځان او خلق) منع کوه او صبر کوه په هغه (تکلیف) چې تا ته رسېږي. بېشکه دغه (کارونه) له اهمو کارونو څخه دي

۱۸:۳۱ - او له خلقو نه خپل مخ مه ګرځوه، او په ځمکه کې په تکبر سره مه ګرځه، بېشکه الله نه خوښوي هر کبرجن (او) فخر کوونکی

۱۹:۳۱ - او ته په خپل تګ کې میانه رو اوسه او خپل اواز څه ورو کړه، بېشکه چې په اوازونو کې تر ټولو بد (اواز) خامخا د خره اواز دی

۲۰:۳۱ - ایا تاسو نه دي کتلي چې بېشکه الله تاسو لپاره په کار اچولي دي هر هغه څه چې په اسمانونو کې دي او هر هغه څه چې په ځمکه کې دي او پر تاسو باندې یې خپل نعمتونه، چې ظاهري دي او باطني دي؛ پوره کړي دي او په خلقو کې ځینې هغه دي چې د الله په باره کې جګړه کوي، بې له علمه او بې له هدایته او بې له روښانه کتابه

۲۱:۳۱ - او کله چې دوی ته وویل شي چې تاسو د هغه (قرآن) پیروي وکړئ چې الله نازل کړی دی دوی وایي: (نه!) بلکې مونږ د هغې (لارې) پیروي کوو چې په هغې باندې مونږ خپل پلرونه موندلي دي، ایا اګر که شیطان دوی د دوزخ عذاب ته رابلل

۲۲:۳۱ - او هغه څوك چې خپل مخ الله ته وسپاري، په دې حال کې چې نېکي کوونکی وي، نو یقینًا ده په ډېرې مضبوطې کړۍ باندې منګولې ښخې کړي دي، او خاص الله ته د ټولو کارونو انجام دی

۲۳:۳۱ - او هر څوك چې کافر شو، نو تا دې د هغه کافر کېدل غمګین نه کړي، خاص مونږ ته د دوی بېرته راتله دي، نو مونږ به دوی خبر کړو په هغو کارونو چې دوی به کول، بېشکه الله ښه عالم دی په هغو خبرو چې په سینو کې دي

۲۴:۳۱ - مونږ به دوی ته لږه شان نفع ورکړو، بیا به مونږ په زور سره دوی ډېر سخت عذاب ته راکاږو

۲۵:۳۱ - او قسم دی که ته له دوی نه پوښتنه وکړې چې اسمانونه او ځمکه چا پیدا کړې دي (، نو) دوی به خامخا ضرور ووایي چې الله.، ته ووایه: ټول د کمال صفتونه خاص الله لره دي ۔بلکې د دوی زیاتره نه پوهېږي

۲۶:۳۱ - خاص د الله لپاره دي هر هغه څه چې په اسمانونو او ځمکه کې دي.، بېشکه الله، همغه ډېر بې پروا، ښه ستایل شوی دی

۲۷:۳۱ - او که په رښتیا سره هره هغه ونه چې په ځمکه کې ده، قلمونه شي، په داسې حال کې چې (سیاهي شي) دغه (محیط) بحر، (بیا) د ده مدد نور اوه بحرونه وکړي (نو) د الله کلمات به خلاص نشي، بېشکه الله ښه غالب، ښه حکمت والا دی

۲۸:۳۱ - نه دي ستاسو پیدا کول او نه بیا ژوندي راپاڅول مګر لکه د یوه نفس، بېشکه الله ښه اورېدونکی، ښه لیدونکی دی

۲۹:۳۱ - ایا تا نه دي لیدلي چې بېشکه الله شپه په ورځ کې ننباسي او ورځ په شپه کې ننباسي او هغه لمر او سپوږمۍ مسخر کړي (په کار اچولي) دي، هر یو یې تر مقررې نېټې پورې روان دی او دا چې بېشکه هغه الله په هغو کارونو چې تاسو یې کوئ؛ ښه خبردار دی

۳۰:۳۱ - دغه په دې سبب چې بېشکه الله، هم دی حق دی، او دا چې بېشکه هغه (معبودان) چې دوی یې له هغه (الله) نه غیر بولي، باطل دي او دا چې بېشکه الله، هم دی ډېر اوچت، ډېر لوی دی

۳۱:۳۱ - ایا تا نه دي لیدلي چې بېشکه کشتۍ په سمندر کې د الله په نعمت سره تګ کوي، د دې لپاره چې تاسو ته له خپلو نښو ځنې وښیي، بېشکه په دغو کې خامخا نښې دي د هر ډېر صبر کوونکي، ډېر شکر کوونکي لپاره

۳۲:۳۱ - او کله چې دوی لره د وریځو په شان موج را لاندې (پټ) کړي (نو) دوی الله بولي، په داسې حال کې چې دین خاص الله ته خالص کوونکي وي، نو کله چې هغه دوی ته وچې ته نجات ورکړي، بیا نو په دوی کې ځینې په نېغه لاره ولاړ وي۔ او زمونږ له ایتونو (دلیلونو) نه انکار نه کوي مګر هر هغه چې ډېر عهد ماتوونکی، ډېر ناشکره دي

۳۳:۳۱ - ای خلقو! تاسو د خپل رب تقوٰی غوره کړئ او له هغې ورځې نه ووېرېږئ چې هېڅ پلار به د خپل اولاد په کار نشي راتلی او نه کوم اولاد شته چې هغه له خپل پلار نه څه شی (عذاب) دفع کوونکی دی.، بېشکه د الله وعده حقه ده، نو دنیایي ژوند دې تاسو له سره غره (دوکه) نه کړي اوتاسو دې د الله په باره کې لوی غره کوونکی (شیطان) له سره غره نه کړي

۳۴:۳۱ - بېشکه الله چې دی، خاص له هغه سره د قیامت علم دی او هغه باران نازلوي او هغه (په یقیني طریقه، بې له وسایلو) پوهېږي په هر هغه څه چې په رحمونو کې دي او هېڅ یونفس نه پوهېږي چې هغه به سبا ته څه کار کوي او هېڅ یو نفس نه پوهېږي چې په کومه ځمکه (سیمه) کې به مري، بېشکه الله ښه عالم، ښه خبردار دی

## (مکي) تسلیمېدنه - السجدة ۳۲

۱:۳۲ - الف، لام، میم

۲:۳۲ - د دغه کتاب نازلول، چې په ده کې هېڅ شك نشته، د رب العالمین له جانبه دي

۳:۳۲ - (بلکې) ایا دوی وایي چې ده (محمدﷺ) دا له خپله ځانه جوړ کړی دی، بلکې همدغه ستا د رب له جانبه حق دی، د دې لپاره چې ته هغه قوم ووېروې چې دوی ته له تا نه مخکې هېڅ وېروونکی نه دی راغلی، د دې لپاره چې دوی سمه لاره ومومي

۴:۳۲ - الله هغه ذات دی چې اسمانونه او ځمکه او هر هغه څه چې د دې دواړو په مینځ کې دي، په شپږو ورځو کې پیدا کړي دي، بیا یې په عرش باندې استوا وکړه.، ستاسو لپاره له هغه نه غیر نه هېڅ کارساز شته او نه شفاعت کوونکی، ایا نو تاسو پند نه اخلئ!

۵:۳۲ - هغه د کار تدبیر کوي له اسمان نه ځمکې ته (د قیامت د ورځې پورې)، بیا به ده ته دغه (کار) په هغې ورځ کې خېژي چې د هغې مقدار زر کاله دی، له هغو (کلونو) نه چې تاسو یې شمېرئ

۶:۳۲ - دغه (الله) د پټو او ښکاره و عالم دی، چې ښه غالب، بې حده مهربان دی

۷:۳۲ - هغه (الله) چې ښایسته کړی یې دی هر شی چې ده هغه پیدا کړی دی، او د انسان تخلیق یې له خټې نه شروع کړی دی

۸:۳۲ - بیا یې د هغه نسل د ضعیفو حقیرو اوبو له خلاصې نه پیدا کړ

۹:۳۲ - بیا یې هغه برابر کړ او په هغه کې یې له خپله روحه ځنې پو کړل او د هغه لپاره یې غوږونه او سترګې او زړونه پیدا کړل (خو) تاسو ډېر لږ شکر وباسئ

۱۰:۳۲ - او دوی وایي: ایا کله چې مونږ په ځمکه کې ورك (او خاورې) شو، ایا مونږ به خامخا په رښتیا سره په نوي تخلیق کې یو.! بلکې دوی د خپل رب له ملاقات نه انکار کوونکي دي

۱۱:۳۲ - ته (دوی ته) ووایه: ستاسو روحونه هغه د مرګ مَلَك قبض کوي چې په تاسو مقرر کړی شوی دی، بیا به تاسو خپل رب ته بېرته ورګرځولی شئ

۱۲:۳۲ - او که ته ووينې کله چې مجرمان د خپل رب په وړاندې سرکوزي وي (د خپلو سرونو ټيټوونکي وي او وايي به) ای زمونږه ربه! مونږ وليده او مونږ واورېده، نو ته مونږ بېرته بوځه، چې مونږ نېك عمل وکړو، بېشکه مونږ (اوس) يقين کوونکي يو

۱۳:۳۲ - او که مونږ غوښتلی (نو) مونږ به خامخا هر نفس ته د هغه هدايت ورکړی و او لېکن زما له جانبه دغه خبره ثابته (او لازمه) شوې ده چې زه به جهنّم خامخا ضرور له پېريانو او انسانانو، ټولو نه ډکوم

۱۴:۳۲ - نو تاسو (دا عذاب) وڅکئ په سبب د دې چې تاسو د خپلې دغې ورځې ملاقات هېر کړی و، بېشکه مونږ (هم) تاسو هېر کړئ، نو تاسو (اوس) دغه دايمي عذاب وڅکئ، په سبب د هغو عملونو چې تاسو به کول

۱۵:۳۲ - بېشکه زمونږ په ايتونو خو يواځې هغه کسان ايمان راوړي چې کله دوی ته په دغو (ايتونو) سره پند ورکړی شي، نو پرېوځي، په داسې حال کې چې سجده کوونکي وي او د خپل رب د ستاينې سره تسبيح وايي او دوی تکبر نه کوي

۱۶:۳۲ - د دوی ډډې له خپلو خوب ځايونو نه لرې کېږي، دوی خپل رب بولي په وېرې او طمعې سره او له هغه (مال) نه، چې مونږ دوی ته ورکړی دی؛ څه لګوي

۱۷:۳۲ - نو هېڅ يو نفس ته معلوم نه دي هغه څه چې د دوی لپاره پټ کړی شوي دي، د سترګو له يخوالي نه، لپاره د بدلې د هغو عملونو چې دوی به کول

۱۸:۳۲ - ايا هغه څوك چې مومن وي، د هغه چا په شان دی چې فاسق وي؟ دوی سره نه برابرېږي

۱۹:۳۲ - هر چې هغه کسان دي چې ايمان يې راوړی دی او نېك عملونه يې کړي دي، نو د دوی لپاره د استوګنې باغونه دي، د مېلمستيا په طريقه، په سبب د هغو عملونو چې دوی به کول

۲۰:۳۲ - او پاتې شو هغه کسان چې فاسقان شوي دي، نو د دوی استوګنه اور دی، هر کله چې دوی اراده وکړي چې له دغه (اور) نه ووځي (نو) بېرته به په هغه کې واپس کړی شي او دوی ته به وويل شي چې تاسو د اور هغه عذاب وڅکئ چې تاسو به د ده تکذيب کاوه

۲۱:۳۲ - او مونږ به خامخا هرومرو په دوی د نږدې (لږ) عذاب نه وڅکوو، له ډېر لوی عذاب نه مخکې، د دې لپاره چې دوی (له کفر نه اسلام ته) راوګرځي

۲۲:۳۲ - او څوك دی لوی ظالم له هغه چا نه چې هغه ته د خپل رب په ايتونو سره پند ورکړی شي، بيا هغه له دغو (ايتونو) نه مخ وګرځوي، بېشکه مونږ له مجرمانو نه انتقام اخيستونکي يو

۲۳:۳۲ - او يقينًا يقينًا مونږ موسٰی ته کتاب ورکړی و، نو ته د هغه (موسٰی) له ملاقات نه مه په

شك کي کېږه او مونږ هغه د بني اسرائيلو لپاره هدايت گرځولی و

۲۴:۳۲ - او مونږ په دوی کي ځيني امامان گرځولي وو چي زمونږ په حکم سره به يي (خلقو ته) لار ښودنه کوله کله چي دوی صبر وکړ، او دوی زمونږ په ايتونو يقين کاوه

۲۵:۳۲ - بېشکه همدغه ستا رب به د قيامت په ورځ د دوی په مينځ کي فيصله کوي، په هغو خبرو کي چي دوی به په هغو کي اختلاف کاوه

۲۶:۳۲ - ايا دوی ته ښکاره شوي نه ده چي مونږ له دوی نه مخکي څومره ډېري پېړۍ هلاکي کړي دي، چي دوی د هغو په (ورانو) استوگنو کي (تل) تېرېږي، بېشکه په دغو کي خامخا نښې دي، ايا نو دوی نه اوري!

۲۷:۳۲ - او ايا دوی نه دي ليدلي چي بېشکه مونږ وچي (گياه ختمي شوي) ځمکي ته اوبه لېږو، نو په دغو (اوبو) سره هغه فصل راوباسو چي له هغه نه د دوی څاروي او د دوی نفسونه خوراك کوي، ايا نو دوی نه ويني

۲۸:۳۲ - او دوی وايي: دغه فيصله به کله وي، که تاسو رښتيني يئ؟

۲۹:۳۲ - ته (دوی ته) ووايه: د فيصلې په ورځ به کافران شويو کسانو ته د هغوی ايمان راوړل فايده ورنکړي او نه به دوی ته مهلت ورکولی شي

۳۰:۳۲ - نو ته له دوی نه مخ واړوه او انتظار کوه، بېشکه دوی (هم) انتظار کوونکي دي

## (مدني) ډلي - الأحزاب ۳۳

۱:۳۳ - ای نبي! ته له الله نه ووېرېږه او د کافرانو او منافقانو خبره مه منه.، بېشکه چي الله له ازله ښه عالم، ښه حکمت والا دی

۲:۳۳ - او ته د هغه (حکم) پيروي کوه چي تا ته د خپل رب له جانبه وحي کولی شي، بېشکه الله په هغو کارونو چي تاسو يي کوئ (ای خلقوا) ښه خبردار دی

۳:۳۳ - او ته په الله توکل وکړه او الله ښه کافي دی کار جوړوونکی

۴:۳۳ - الله د هېڅ يو سړي لپاره د هغه په دننه کي دوه زړونه نه دي پيدا کړي او هغه (الله) ستاسو هغه ښځې چي تاسو له هغو نه ظهار کوئ ستاسو ميندې نه دي گرځولي او هغه (الله) ستاسو په زامنو بلل شوي ستاسو (واقعي) زامن نه دي گرځولي، دغه (درې خبرې) ستاسو (بېکاره) خبرې دي، په خپلو خولو سره، او الله حق وايي او هغه نېغه لار ښيي

۵:۳۳ - تاسو دغه (په زامنو بلل شوي) د هغوی پلرونو ته منسوب کړئ.، دغه (کار) د الله په نېز

د انصاف والا دی، نو که تاسو د هغوی پلرونه نه پېژنئ، نو دوی ستاسو ورونه دي په دین کې او ستاسو دوستان دي، او په تاسو هېڅ گناه نشته په هغه شي کې چې تاسو په کې خطا شئ. او لېکن (گناه شته د) هغه (کار) چې ستاسو زړونه د هغه قصد (اراده) وکړي او الله له ازله ډېر بخښونکی، بې حده مهربان دی

۶:۳۳ - نبي (محمدﷺ) په مومنانو باندې د دوی له ځانونو نه زیات حقدار دی. او د ده ښځې د دوی میندې دي او د خپلوۍ خاوندان (رشته داران) د الله په کتاب کې د دوی ځینې په ځینو نورو باندې له مومنانو او مهاجرینو نه زیات حق لرونکي دي، مگر دا چې تاسو له خپلو دوستانو سره څه نېکي وکړئ.، دغه په کتاب کې لیکل شوي دي

۷:۳۳ - او کله چې مونږ له نبیانو نه د دوی پخه وعده واخیسته او له تا نه او له نوح او ابراهیم او موسىٰ او د مریمې له زوی عیسىٰ نه، او مونږ له دوی نه ډېره پخه مضبوطه وعده واخیسته

۸:۳۳ - د دې لپاره چې هغه (الله) له صادقانو نه د هغوی د صدق (رښتیاوو) په باره کې تپوس وکړي او هغه د کافرانو لپاره ډېر دردوونکی عذاب تیار کړی دی

۹:۳۳ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو د الله هغه نعمت رایاد کړئ چې پر تاسو شوی دی، کله چې په تاسو لښکرې راغلې، نو مونږ پر هغوی باندې باد او داسې لښکرې راخوشې کړې چې تاسو نه لیدلې او الله هغو کارونو لره چې تاسو یې کوئ ښه لیدونکی دی

۱۰:۳۳ - کله چې دوی په تاسو راغلل، ستاسو له بره اړخ نه او ستاسو نه له لاندې اړخ نه او کله چې سترگې کږې او زړونه چنغړکو ته ورسېدل او تاسو په الله گمانونه کول، قسم قسم گمانونه

۱۱:۳۳ - په دغه ځای (او وخت) کې مومنان وازمایلی شول او وخوځولی شول، ډېر سخت خوځول

۱۲:۳۳ - او (یاد کړه) هغه وخت چې منافقانو او هغو کسانو چې د هغوی په زړونو کې مرض و، وویل: مونږ سره الله او د هغه رسول وعده نه ده کړې مگر د دوکې (وعده)

۱۳:۳۳ - او کله چې په دوی کې یوې ډلې وویل: ای د یثرب (مدینې) اوسېدونکو! تاسو لپاره (د استوگنې) هېڅ ځای نشته، نو بېرته وگرځئ او په دوی کې یوه ډله له نبي نه د بېرته تللو اجازت غواړي، دوی وایي: بېشکه زمونږ کورونه تش پراته دي، حال دا چې هغه تش نه دي پراته، دوی اراده نه لري مگر د تېښتې

۱۴:۳۳ - او که په دوی (دغه لښکرې) په دې (مدینه) کې راننه ایستی شي د دې له (ټولو) اړخونو نه، بیا له دوی نه د فتنې (د شرك او له مسلمانانو سره د جنگ) غوښتنه وکړی شي (، نو) دوی به خامخا دغه (کار) وکړي او دوی به په دې کې ځنډ ونه کړي مگر ډېر لږ

۱۵:۳۳ - او یقینًا یقینًا دوی له دې نه مخکې له الله سره عهد کړی و، چې دوی به شاګانې وانه ړوي او د الله عهد دی چې (د ده باره کې) پوښتنه کېږي

۱۶:۳۳ - ته (دوی ته) ووایه: تاسو ته به تېښته له سره نفع در ونه رسوي که تاسو له مرګ، یا قتل نه وتښتئ او په دغه وخت کې به تاسو ته فایده درنه کړی شي مګر ډېره لږه

۱۷:۳۳ - ته (دوی ته) ووایه: څوك دی هغه ذات چې تاسو به له الله نه بچ کړي که هغه (الله) تاسو ته د تکلیف رسولو اراده وکړي، یا هغه په تاسو د مهربانۍ کولو اراده وکړي؟ او دوی به د خپل ځان لپاره له الله نه غیر نه هېڅ کارساز ومومي او نه مدد ګار

۱۸:۳۳ - یقینًا الله ته په تاسو کې (له جهاد نه) منع کوونکي معلوم دي او خپلو ورونړو ته دا ویونکي چې مونږ ته راشئ! او دوی جنګ ته نه راځي مګر ډېر لږ

۱۹:۳۳ - په داسې حال کې چې پر تاسو باندې بخل کوونکي دي، نو کله چې وېره راشي (، نو) ته به دوی وینې چې تا ته به ګوري، په داسې حال کې چې د دوی سترګې به (داسې) چورلي، لکه هغه کس چې په هغه د مرګ په وجه بې هوشي راوستلی شوې وي، نو کله چې وېره لاړه شي (نو) دوی تاسو ته ضرر دررسوي په خپلو تېرو ژبو سره، په داسې حال کې چې د خیر (مالِ غنیمت) ډېر حریصان وي، دغو کسانو ایمان نه دی راوړی، نو الله د دوی عملونه برباد کړل او دغه (کار) الله ته ډېر اسان دی

۲۰:۳۳ - دوی په لښکرو ګمان کوي چې دوی نه دي تللي، او که دغه لښکرې (بیا) راشي (نو) دوی خوښوي چې کاشکې په رښتیا دوی بانډېسیان وی په اعرابو (صحرایي خلقو) کې، چې ستاسو د خبرونو په باره کې یې پوښتنې کولی، او که دوی په تاسو کې وی نو دوی به جنګ نه و کړی مګر ډېر لږ

۲۱:۳۳ - یقینًا یقینًا تاسو لپاره په (کار د) رسول الله کې ډېره ښه اقتدا ده، د هغه چا لپاره چې د الله او د وروستنۍ ورځې امېد لري او الله ډېر زیات یادوي

۲۲:۳۳ - او کله چې مومنانو ډلې ولیدې، ویې ویل: دا هغه دي چې مونږ سره یې الله او د هغه رسول وعده کړې وه، او الله او د هغه رسول رښتیا ویلي وو، اودوی ته دغو زیات نه کړ مګر ایمان او (د الله حکمونو ته) تسلیمېدل

۲۳:۳۳ - په مومنانو کې ځینې داسې سړي دي چې هغه خبره یې رښتیا کړله چې په هغې یې له الله سره عهد کړی و نو ځینې په دوی کې هغه دي چې پوره یې کړ خپل نذر (عهد) او ځینې په دوی کې هغه دي چې انتظار کوي او دوی (په خپله خبره کې) تبدیلي نه ده کړې، هېڅ تبدیلي

۲۴:۳۳ - د دې لپاره چې الله رښتینو ته د هغوی د رښتیاوو په سبب بدله ورکړي او منافقانو ته عذاب ورکړي که یې وغواړي، یا په دوی رجوع وکړي، بېشکه چې الله ډېر بخښونکی، بې حده

مهربان دی

۲۵:۳۳ - او الله کافران سره له خپلې غصې نه بېرته وشړل، په داسې حال کې چې هېڅ خیر یې ونه موند۔ او الله مومنان له جنګ نه وساتل۔او الله ډېر زورور، ښه غالب دی

۲۶:۳۳ - او هغه (الله) هغه کسان چې د دوی مرسته یې کړې وه، چې له اهل کتابو څنې وو، له خپلو قلاګانو نه راکوز کړل۔ او د دوی په زړونو کې یې وېره وغورځوله، (نو) یوه ډله تاسو وژله او بله ډله تاسو بندي کوله

۲۷:۳۳ - او هغه، تاسو وارثان کړئ د هغوی د ځمکو او د هغوی د کورونو او د هغوی د مالونو او د هغې ځمکې چې تاسو هغه نه وه پایمال کړې، او الله په هر شي باندې له ازله ښه قادر دی

۲۸:۳۳ - ای نبي! ته خپلو ښځو ته ووایه! که تاسو یئ چې دنیایي ژوند او د ده زینت غواړئ، نو راشئ چې زه تاسو ته څه فایده دوررسوم او تاسو خوشې (ازادې) کړم، ډېر ښه ازادول

۲۹:۳۳ - اوکه تاسو یئ چې الله او د هغه رسول او د اخرت کور (جنت) غواړئ، نو بېشکه الله د نېکي کوونکو ښځو لپاره، چې تاسو یئ، ډېر لوی اجر تیار کړی دی

۳۰:۳۳ - ای د نبي ښځو! په تاسو کې چې هر چا ښکاره بدکاري وکړه (نو) هغې ته به عذاب یو په دوه، دوچند کړی شي او دغه (کار) الله ته ډېر اسان دی

۳۱:۳۳ - او په تاسو کې چې څوك د الله او د هغه د رسول اطاعت وکړي او نېك عمل وکړي (، نو) مونږ به هغې ته د هغې اجر دوه ځله ورکړو او مونږ د هغې لپاره ډېر د عزت رزق تیار کړی دی

۳۲:۳۳ - ای د نبي ښځو! تاسو په (ډلو د) ښځو کې د هېڅ یوې (ډلې) په شان نه یئ که تاسو پرهېزګاري وکړئ، نو تاسو په وینا کې نرمي مه کوئ، (ګنې) نو هغه کس به په طمع کې پرېوځي چې د هغه په زړه کې (د نفاق، یا بدکارۍ) مرض وي او تاسو هغه خبره کوئ چې مناسبه وي

۳۳:۳۳ - او تاسو په خپلو کورونو کې قرار ونیسئ او تاسو د ړومبني جاهلیت د زینت څرګندونې په شان زینت مه څرګندوئ۔ او تاسو لمونځ قایموئ او زکات ادا کوئ او د الله او د هغه د رسول اطاعت کوئ۔، بېشکه همدا خبره ده چې الله غواړي چې له تاسو نه، ای اهل بیتو! ګناه لرې کړي او تاسو پاك کړي، پاکول

۳۴:۳۳ - او تاسو یادوئ هغه د الله ایتونه او حکمت چې ستاسو په کورونو کې لوستل کېږي، بېشکه الله دی، ډېر باریك بین، ښه خبردار

۳۵:۳۳ - بېشکه مسلمانان او مسلماناني او مومنان او مومناني، او اطاعت کوونکي او اطاعت کوونکې او صادقان (رښتیني) او صادقاني او صبر کوونکي او صبر کوونکې اوعاجزي کوونکي او

عاجزي کوونکې او خيرات کوونکي او خيرات کوونکې او روژه نيونکي او روژه نيوونکې او د خپلو شرم ځايونو حفاظت کوونکي او حفاظت کوونکې او الله لره ډېر يادوونکي او يادوونکې، الله د دوی لپاره مغفرت او ډېر لوی اجر تيار کړی دی

۳۶:۳۳ - او نه دي روا د هيڅ مومن لپاره او نه د مومنې لپاره، کله چې الله او د هغه رسول د يو کار فيصله وکړي دا چې د دوی لپاره دې په خپل کار کې اختيار وي او څوك چې د الله او د هغه د رسول نافرماني کوي، نو يقيناً دغه (کس) گمراه شو، ښکاره گمراه کېدل

۳۷:۳۳ - او (ياد کړه ای نبي!) کله چې تا هغه کس ته چې الله په هغه انعام کړی و او تا (هم) په هغه (په ازادولو سره) انعام کړی و؛ ويل: ته خپله ښځه له ځان سره وساته او له الله نه وويرېږه او تا هغه خبره په خپل زړه کې پټوله چې الله د هغې ښکاره کوونکی و او ته له خلقو نه وېرېدلې او الله زيات حق دار دی چې ته له هغه نه وويرېږې، نوکله چې زيد له هغې نه غرض (حاجت) پوره کړ (نو) مونږ هغه تا ته په نکاح کړه، د دې لپاره چې په مومنانو باندې د خپلو په زامنو بلل شويو، په ښځو کې څه سختي نه وي، کله چې دغه (په زامنو بلل شوي) له دغو (ښځو) نه حاجت پوره کړي او دی د الله کار ادا کړی شوی

۳۸:۳۳ - په نبي باندې هيڅ قدر حرج (او سختي) نشته په هغه کار (د نکاح) کې چې الله د ده لپاره مقرر کړی و، د الله (مقرر کړې) طريقه ده په هغو (نبيانو) کې چې له ده نه مخکې تېر شوي دي او دی د الله امر قطعي ټاکل شوې فيصله

۳۹:۳۳ - هغه (نبيان) چې د الله پيغامونه رسوي او له هغه نه وېرېږي او له الله نه غير له هيچا نه نه وېرېږي او الله ښه کافي دی حساب کوونکی

۴۰:۳۳ - محمد (ﷺ) ستاسو په سړيو کې د هيچا پلار نه دی او لېکن د الله رسول دی او د نبيانو (د لړۍ) ختموونکی دی او الله په هر شي ښه عالم دی

۴۱:۳۳ - ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی! تاسو الله يادوئ، ډېر زيات يادول

۴۲:۳۳ - او تاسو د هغه پاکي بيانوئ د ورځې په اوله برخه او اخري برخه کې

۴۳:۳۳ - دی همغه ذات دی چې په تاسو ''صلاۃ'' (شفقت) رالېږي او د هغه ملايك (هم)، د دې لپاره چې هغه تاسو له تيارو نه رڼا ته راوباسي، هغه په مومنانو ډېر رحم کوونکی دی

۴۴:۳۳ - (د الله له جانبه) دوی ته پېشکشي به، په هغې ورځ کې چې دوی به له هغه (الله) سره ملاقات کوي، سلام وي، او هغه د دوی لپاره ډېر د عزت اجر تيار کړی دی

۴۵:۳۳ - ای نبي! بېشکه مونږ ته گواه، او زېری ورکوونکی، او وېروونکی لېږلی يې

۴۶:۳۳ - او الله ته د هغه په حکم سره، بلونکی او رڼا کوونکې ډيوه موليږلی يې

۴۷:۳۳ - او ته مومنانو ته زېرى وركړه په دې سره چې بېشكه د دوى لپاره د الله له جانبه ډېر لوى فضل دى

۴۸:۳۳ - او ته د كافرانو او منافقانو خبره مه منه او د دوى ضرر پرېږده او په الله توكل وكړه او الله ښه كافي دى كارساز

۴۹:۳۳ - اى هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى! كله چې تاسو له مومنو ښځو سره نكاح وكړئ، بيا دوى طلاقې كړئ، مخكې له دې چې تاسو هغو ته لاس وروړئ، نو تاسو لپاره په دوى باندې هېڅ عدت نشته، چې تاسو به هغه شمېرئ، نوتاسو دوى ته څه فايده وركړئ او دوى خوشې كړئ، ډېر ښه خوشې كول

۵۰:۳۳ - اى نبي! بېشكه مونږ تا لپاره ستا هغه ښځې حلالې كړې دي چې تا (هغو ته) خپل مهرونه وركړي دي او هغه ښځې (هم) چې ته يې مالك شوى يې له هغو (وينځو) نه چې الله تا ته (له كفارو نه) راګرځولي دي او (مونږ حلالې كړې دي) ستا د تره لوڼه او ستا د عمو (پلرنۍ تروريانو) لوڼه او ستا د ماما لوڼه او ستا د خاله ګانو (مورنۍ تروريانو) لوڼه، هغه چې له تا سره يې هجرت كړى دى، او (هغه) مومنه ښځه (هم)، كه چېرې هغه خپل ځان نبي ته وبخښي، كه نبي اراده وكړي چې دغه په نكاح واخلي، په داسې حال كې چې (دغه ښځه) له مومنانو نه غير يواځې تا ته خاص (جايزه) ده، يقينًا مونږ ته هغه (حكم) معلوم دى چې مونږ په دوى باندې د خپلو ښځو او خپلو وينځو په باره كې فرض كړى دى، د دې لپاره چې په تا هېڅ حرج (او سختي) نه وي او الله له ازله ډېر بخښونكى، بې حده مهربان دى

۵۱:۳۳ - ته چې په دغو (ښځو) كې كومه غواړې ېېرته (وروسته) كوې يې اوكومه چې غواړې ځان ته يې رانژدې كوې او هغه چې ته يې بيا غواړې له هغو نه چې تالرې كړې وي، نوپه تا هېڅ ګناه نشته دغه (حكم) ډېر نژدې دى چې د دوى سترګې به يخې شي او نه به غمجنې كېږي او دوى ټولې به په هغه راضي كېږي چې ته يې دوى ته وركوې او الله په هغو خبرو پوهېږي چې ستاسو په زړونو كې دي۔ او الله دى ښه عالم، ښه تحمل والا

۵۲:۳۳ - د دغو (نهو ښځو) نه پس تا ته (نورې) ښځې حلالې نه دي او نه دا (حلال دي) چې ته د دوى په بدل كې نورې ښځې واخلې (راولې) اګر كه د هغوى حسن تا په تعجب كې اچوي، مګر (خو روا دي درته) هغه وينځې چې ته يې مالك شې۔ او الله دى په هر شي باندې ښه نګران

۵۳:۳۳ - اى هغو كسانو چې ايمان يې راوړى دى! تاسو د نبي كورونو ته مه ننوځئ مګر دا چې تاسو ته طعام (خوړلو) ته اجازت دركړى شي، په داسې حال كې چې د هغه (طعام) پخلي ته انتظار كوونكي نه يئ او لېكن كله چې تاسو وبلل شئ، نو ننوځئ، بيا چې كله طعام وخورئ، نو خوراه شئ۔ او نه دا چې په خبرو سره زړه خوشالوونكي يئ: بېشكه دغه (كار) داسې دى چې نبي

ته تکلیف رسوي، نوهغه له تاسو نه حیا کوي او الله د حقې خبرې (له ویلو) نه حیا نه کوي. او کله چې تاسو له دغو (پاکو ښېیانو) نه څه سامان غواړئ، نو له دوی نه یې په داسې حال کې غواړئ، چې تاسو له پردې نه د باندې یئ.، دا (کار) ډېر پاك ساتونکی دی ستاسو زړونو لره او د هغوی زړونو لره. او تاسو ته روا نه دي چې تاسو د الله رسول ته تکلیف ورسوئ او نه دا چې تاسو د هغه له ښځو سره له هغه نه پس نکاح وکړئ، هیڅکله.، بېشکه دغه (کار) د الله په نېز ډېر لوی (جرم) دی

۵۴:۳۳ - که چېرې تاسو کوم شی څرګند کړئ، یا هغه پټ کړئ، نو بېشکه الله په هر شي باندې ښه عالم دی

۵۵:۳۳ - په دغو (ښځو) هېڅ ګناه نشته په (مخامخ کېدو او راتلو د) خپلو پلرونو کې او نه په خپلو زامنو کې او نه په خپلو ورونړو کې او نه په خپلو ورېرونو کې او نه په خپلو خورینو کې او نه په خپلو ښځو کې او نه (ګناه شته) په (مخامخ کېدو او راتلو د) هغو (وینځو مریانو) کې چې د دغو (ښځو) ښي لاسونه یې مالکان شوي دي. او (ای ښځو!) تاسو له الله نه ووېرېږئ، بېشکه الله په هر شي باندې ښه ګواه دی

۵۶:۳۳ - بېشکه الله او د هغه ملایك په نبي درود وايي.، ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو په دغه (نبي) باندې درود وایئ او سلام وایئ، سلام ویل

۵۷:۳۳ - بېشکه هغه کسان چې الله او د هغه رسول ته ایذا (او تکلیف) رسوي، الله په دوی لعنت کړی دی په دنیا او اخرت (دواړو) کې او د دوی لپاره یې سپکوونکی عذاب تیار کړی دی

۵۸:۳۳ - او هغه کسان چې مومنو سړیو او مومنو ښځو ته په ناکړي کار (او ناکرده ګناه) تکلیف رسوي، نویقینًا دوی په خپل ځان غټ دروغ او ښکاره ګناه باروي

۵۹:۳۳ - ای نبي! ته خپلو ښځو او خپلو لوڼو او د مومنانو ښځو ته ووایه چې په خپلو ځانونو دې له خپلو څادرو څنې راخواره (او راځوړند) کاندي، دغه (د بدن پټول) ډېر نژدې دي دې ته چې دوی به وپېژندل شي (چې پرده دارې دي) نو دوی ته به تکلیف نه رسولی شي او الله دی ډېر بخښونکی، بې حده رحم کوونکی

٦۰:۳۳ - قسم دی که دغه منافقان او هغه کسان چې د هغوی په زړونو کې (د بدکارۍ) مرض دی او په مدینه کې بدې (تشویشناکې) اوازې ګډوونکي، منع نشي (نو) مونږ به خامخا ضرور تا په دوی مسلط کړو، بیا به دوی په دې کې له تا سره هَم جواره (په ګاونډ کې) پاتې نشي مګر ډېر لږ (وخت)

٦۱:۳۳ - په داسې حال کې چې رټلي ترټل شوي به وي، هر چېرې چې وموندل شي (نو) وبه نیول شي او وبه وژلی شي ډېر بد وژل کېدل

٦٢:٣٣ - دغه لاره د الله (اېښودل شوې) ده د هغو (منافقو) کسانو په باره کې چې له دوی نه مخکې تېر شوي دي او ته به د الله لارې لره هېڅ تبديلي ونه مومې

٦٣:٣٣ - (ای نبي) خلق له تا نه د قيامت په باره کې تپوس کوي، ته (دوی ته) ووايه چې بېشکه د هغه (قيامت) علم یواځې الله سره دی، او ته څه شي پوه کړی یې؟ کېدی شي چې قيامت ډېر نژدې وي

٦٤:٣٣ - بېشکه الله په کافرانو لعنت کړی دی او د دوی لپاره يې سخت لمبې وهونکی اور تيار کړی دی

٦٥:٣٣ - په داسې حال کې چې په ده کې به همېشه وي، تل ترتله، دوی به نه کوم دوست (کارسازی) مومي او نه مددګار

٦٦:٣٣ - په هغې ورځ کې چې د دوی مخونه به په اور کې اړولی راړولی شي.، دوی به وايي: ای کاشکي مونږ! د الله اطاعت کړی وی او د رسول اطاعت مو کړی وی

٦٧:٣٣ - او دوی به وايي: ای زمونږه ربه! بېشکه مونږ د خپلو مشرانو او د خپلو غټانو اطاعت کړی و، نو دوی زمونږ نه حقه لار ورکه کړه

٦٨:٣٣ - ای زمونږ ربه! ته دوی ته له عذابه دوه چنده ورکړه او ته په دوی لعنت وکړه، ډېر لوی لعنت کول

٦٩:٣٣ - ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی! تاسو د هغو کسانو په شان مه کېږئ چې موسیٰ ته يې تکليف رسولی و، نو الله هغه (موسیٰ) پاك (او بري) کړ د هغه (الزام او دروغو) نه چې دوی ويل او هغه د الله په نيز ډېر مخور و

٧٠:٣٣ - ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی! تاسو له الله نه ووېرېږئ او خبره کوئ ډېره سمه (درسته) خبره

٧١:٣٣ - هغه به تاسو ته ستاسو عملونه درست (او صالح) کړي او تاسو ته به ستاسو ګناهونه وبخښي. او هر څوك چې د الله او د هغه د رسول اطاعت وکړي، نو يقينًا دغه کامياب شو، ډېر لوی کامیابېدل

٧٢:٣٣ - بېشکه مونږ اسمانونو او ځمکې او غرونو ته امانت وړاندې کړ، نو دوی د ده له پورته کولو نه انکار وکړ او له ده ووېرېدل او انسان دغه (امانت) پورته کړ، بېشکه دغه (انسان) دی، ډېر ظالم، ډېر نادان

٧٣:٣٣ - (دغه وړاندې کول وو) د دې لپاره چې الله منافقانو سړيو او منافقو ښځو او مشرکانو سړيو او مشرکو ښځو ته عذاب ورکړي. او چې الله په مومنانو سړيو اومومنو ښځو باندې په

رحمت سره رجوع وکړي او الله له ازله ډېر بخښونکی، بې حده مهربان دی

# (مکي) د سبا ښار - سبأ ۳۴

۱:۳۴ - ټول د کمال صفتونه يواځې هغه الله لره دي چې خاص د هغه لپاره دي هر هغه څه چې په اسمانونو کې دي او هر هغه څه چې په ځمکه کې دي. او خاص همده ته دي ټولې ستاينې په اخرت کې. او همدغه (الله) ښه حکمت والا، ښه خبردار دی

۲:۳۴ - هغه پوهېږي په هر هغه څه چې په ځمکه کې ننوځي او په هر هغه څه چې له دې نه راوځي او په په هر هغه څه چې له اسمان نه راکوزېږي او په هر هغه څه چې په ده کې پورته خېژي. او همدغه (الله) بې حده مهربان، ډېر بخښونکی دی

۳:۳۴ - او کافران شويو کسانو وويل چې مونږ ته به قيامت رانشي. ته (دوی ته) ووايه: ولې نه! زما دې په خپل رب قسم وي چې خامخا لازمًا به هغه (قيامت) تاسو ته راشي. (هغه رب) چې د غيبو عالم دی.، له هغه نه نه پټېږي په اندازه د يوې ذرې په اسمانونو کې او نه په ځمکه کې او نه د دغې (ذرې) نه وړوکی (شی) او نه (ترې) غټ. مګر (دغه هر څه) په ښکاره کتاب کې دي

۴:۳۴ - د دې لپاره چې هغه (الله) بدله ورکړي هغو کسانو ته چې ايمان يې راوړی دی اونېك عملونه يې کړي دي، دغه کسان (چې دي) د دوی لپاره مغفرت او ډېر د عزت رزق دی

۵:۳۴ - او هغه کسان چې زمونږ په ايتونو کې (د باطلولو) کوشش کوي، په دې حال کې چې (په خپل ګمان الله لره) عاجزه کوونکي وي.، دغه کسان (چې دي) د دوی لپاره له بد عذاب نه ډېره دردونکې سزا ده

۶:۳۴ - او هغه کسان چې هغوی ته علم ورکړی شوی دی، (دوی) هغه (قرآن) چې تا ته د خپل رب له جانبه نازل کړی شوی، همدغه حق ويني او دغه (قرآن) د ډېر غالب، ښه ستايل شوي (الله) لارې ته ښودنه کوي

۷:۳۴ - او کافران شويو کسانو وويل: ايا مونږ تاسو ته داسې سړی وښيو چې تاسو ته خبر درکوي چې کله تاسو ذرې ذرې کړی شئ، پوره ذره ذره کېدل، (نو) بېشکه تاسو به خامخا په نوي تخليق کې يئ (له نوي سره به پيدا کولی شئ)

۸:۳۴ - ايا ده له ځانه په الله دروغ تړلي دي، يا په ده پورې لېونتوب دی. (داسې نه ده ای مشرکانو!) بلکې هغه کسان چې په اخرت ايمان نه لري په عذاب او ډېرې لرې ګمراهۍ کې دي

۹:۳۴ - ايا دوی نه دي کتلي هغه څه ته چې د دوی په مخ کې دي او هغه څه ته چې له دوی نه وروسته دي. له اسمانه او ځمکې نه.، که چېرې مونږ وغواړو (نو) دوی به په ځمکه کې ورډوب

کړو، یا به په دوی له اسمانه ټوټې راوغورځوو.، بېشکه په دغو (کارونو) کې خامخا لویه نښه ده د هر رجوع کوونکي بنده لپاره

۱۰:۳۴ - او یقینًا یقینًا مونږ داود ته له خپله جانبه لوی فضیلت ورکړی و.، ای غرونو! او مرغانو له ده سره تسبیح راوګرځوئ. او مونږ د ده لپاره اوسپنه پسته کړې وه

۱۱:۳۴ - چې ته پوره ارتې زغرې جوړوه او د (کړیو) په اوبدلو (بوډلو) کې اندازه کوه .او تاسو نېك عمل کوئ، بېشکه زه هغه کارونو لره چې تاسو يې کوئ؛ ښه لیدونکی یم.

۱۲:۳۴ - او د سلیمان لپاره مو هوا (مسخر کړې وه) چې د هغې د ورځې د اولې حصې مزل یوه میاشت (لاره) وه او د هغې د ورځې د اخري حصې مزل (هم) یوه میاشت (لاره) وه او د ده لپاره مونږ د ویلې کړی شوې تانبې چینه وبهوله او (مسخر کړي مو وو) له پېرانو نه هغه څوك چې د ده په مخ کې به یې د ده د رب په حکم سره کار کاوه. (ورته ویل شوي وو چې) په دوی کې چې هر چا زمونږ له حکم نه سرکشي وکړه (، نو) مونږ به په هغه د لمبې وهونکي اور د عذاب نه وڅکوو

۱۳:۳۴ - دوی (پېریانو) به د ده لپاره هغه څه جوړول چې ده به غوښتل، یعنې اوچتې قلاګانې، او تمثالونه او لګنونه، لکه تالابونه او په نغریو کلك پراته دېګونه.، ای آل داوده! تاسو (نېك) عمل کوئ د شکر لپاره. او زما په بنده ګانو کې شکر کوونکي ډېر لږ دي

۱۴:۳۴ - نو کله چې مونږ په ده د مرګ حکم وکړ، نو دوی (پېریان هیڅا) خبر نه کړل مګر د ځمکې چینجو چې د ده امسا يې خوړله، نو کله چې هغه (سلیمان په ځمکه) ولوېده (نو) پېریانو ته معلومه شوه چې بېشکه که دوی په غیبو پوهېدلی (نو) په دغه سپکوونکي عذاب کې به نه و پاتې شوي

۱۵:۳۴ - یقینًا یقینًا د سبا (خلقو) لپاره په خپلې استوګنې کې یوه لویه نښه وه (هغه دا چې د دوی) ښي او چپ اړخ ته دوه باغونه دي.، تاسو د خپل رب له رزقه خورئ او د هغه شکر وباسئ . (دا ښار) پاکیزه ښار دی او (ستاسو) رب دی ډېر بخښونکی

۱۶:۳۴ - بیا دوی مخ واړلو (د نبیانو له دعوت نه) نو مونږ په دوی د بند زورور سېلاب راخلاص کړ او د دوی د دوه باغونو په ځای مو دوی ته دوه داسې باغونه په بدل کې ورکړل چې دواړه خاوندان د بې خونده مېوو او غزانو او څه لږ شی د بېرو وو

۱۷:۳۴ - دغه، مونږ دوی ته سزا ورکړه، په سبب د دوی د کفر کولو. او مونږ جزا نه ورکوو مګر سخت ناشکري ته

۱۸:۳۴ - او مونږه د دوی په مینځ کې او د هغو کلیو په مینځ کې چې مونږ په هغو کې برکت اچولی و. ښکاره (لارې ته نژدې) کلي جوړ کړل او د دغو (کلیو) په مینځ کې مونږ تګ راتګ په

اندازه کړی و.، تاسو گرځئ په دغو (کلیو) کې، په شپو او ورځو، په داسې حال کې چې په امان به یئ

۱۹:۳۴ - نو دوی وویل: ای زمونږ ربه! ته زمونږ د منزلونو په مینځ کې لرې والی پیدا کړه. او دوی په خپلو ځانونو ظلم وکړ، نو مونږه دوی قصې (افسانې) وگرځول او مونږ دوی تار په تار کړل، پوره تار په تار کول، بېشکه په دغو کې خامخا نښې دي دهر ډېر صبر کوونکي، ډېر شکر کوونکي لپاره

۲۰:۳۴ - او یقینًا یقینًا ابلیس د دوی په باره کې خپل خیال رښتیا ومونده، نو دوی ټولو د هغه پیروي وکړه، مگر یوې ډلې، چې هغه مومنان دي

۲۱:۳۴ - او د دغه (شیطان) لپاره په دغو (اهل سباوو) باندې هېڅ تسلط (او غلبه) نه وه مگر د دې لپاره چې مونږ معلوم (او بېل) کړو هغه څوك چې په اخرت ایمان لري له هغه چا نه چې هغه د دغه (اخرت) په باره کې په شك کې دی او ستا رب د هر شي ښه نگران دی

۲۲:۳۴ - ته (دې مشرکانو ته) ووایه: تاسو هغه (معبودان) وبولئ چې تاسو (هغه) له الله نه غیر (معبودان) گڼلي دي، دوی د یوې ذرې اندازه اختیار (او مِلك) نه لري په اسمانونو کې او نه په ځمکه کې او د دوی لپاره په دغو دواړو کې هېڅ برخه (شرکت) نشته، او نشته دغه (الله) ته له دوی نه هېڅ مددگار

۲۳:۳۴ - او د هغه (الله) په نیز شفاعت نفع نه رسوي مگر د هغه چا لپاره چې هغه (الله) د هغه لپاره اجازت ورکړي. تر هغه پورې چې کله د دوی د زړونو نه وېره (هیبت) لرې کړی شي (نو) دوی وايي: ستاسو رب څه وفرمایل؟ هغوی به وايي چې حق (یې وفرمایه) او هم دی ډېر اوچت، ډېر لوی دی

۲۴:۳۴ - (ای نبي!) ته (دوی ته) ووایه چې تاسو ته له اسمانونو اوځمکې نه څوك رزق درکوي؟ ته ووایه چې ''الله'' او بېشکه مونږ، یا تاسو خامخا په هدایت باندې یو، یا په ښکاره گمراهۍ کې یو

۲۵:۳۴ - ته (دوی ته) ووایه: له تاسو نه د هغو جرمونو په باره کې تپوس نه کېږي چې مونږ کړي دي او زمونږ نه پوښتنه نه کېږي د هغو عملونو په باره کې چې تاسو یې کوئ

۲۶:۳۴ - ته ووایه: زمونږ رب به زمونږ په مینځ کې جمع وکړي، بیا به زمونږ په مینځ کې په حقه سره فیصله وکړي او هم دی ښه فیصله کوونکی، ښه عالم دی

۲۷:۳۴ - ته (دوی ته) ووایه: تاسو ما ته هغه (معبودان) راوښیئ چې تاسو له هغه (الله) سره پیوست کړي دي، چې شریکان دي. (کله هم داسې نشي کېدی) بلکې همدغه الله ښه غالب، ښه حکمت والا دی

۲۸:۳۴ - او ته نه یې لېږلی مونږ مگر د ټولو خلقو (انسانانو) لپاره زېری ورکوونکی او وېروونکی او

لېکن اکثره خلق نه پوهېږي

۲۹:۳۴ - او دوی وایي: دغه وعده به کله وي که تاسو رښتیني یئ؟

۳۰:۳۴ - ته (دوی ته) ووایه: تاسو لپاره د داسې ورځې وعده ده چې تاسو به له هغې نه نه یوه گړۍ وروسته کېږي او نه به تاسو ړومبی کېږئ

۳۱:۳۴ - او کافران شویو کسانو وویل: مونږ به له سره په دې قرآن ایمان رانه وړو او نه په هغو کتابونو چې له ده نه مخکې دي. او که ته ووینې کله چې ظالمان د خپل رب په وړاندې ودرول شوي وي، په داسې حال کې چې د دوی ځینې به ځینو نورو ته خبره اړوي (داسې) چې (په دنیا کې) ښه ضعیف کړی شوي کسان به هغو کسانو ته ووایي چې تکبر به یې کاوه: که تاسو (مونږ لره د ایمان نه منع کوونکي) نه وی (، نو) یقینًا مونږ به مومنان وو

۳۲:۳۴ - هغه کسان به ووایي چې تکبر یې کړی و، هغو کسانو ته چې ښه کمزور کړی شوي وو.: ایا مونږه تاسو د هدایت نه بند کړي وئ، وروسته له دې چې کله هغه تاسو ته راغی! (داسې نه ده) بلکې تاسو (پخپله) مجرمان وئ

۳۳:۳۴ - او کمزور کړی شوي کسان به هغو کسانو ته ووایي چې تکبر به یې کاوه: (داسې نه وه) بلکې (دا ستاسو) د شپې او ورځې مکر (او فریب) و، کله چې به تاسو مونږ ته حکم کاوه چې مونږ په الله سره کافران شو او د هغه لپاره مونږ شریکان پیدا کړو او دوی (ټول) به پښېماني پټه کړي. کله چې دوی عذاب ووینې او مونږ به ځنځیرونه د کافران شویو کسانو په غاړو (څټونو) کې واچوو، .دوی ته بدله نه ورکول کېږي مگر د هغو عملونو چې دوی به کول

۳۴:۳۴ - او مونږ نه و لېږلی په کوم ښار کې هېڅ یو وېروونکی مگر هغه متکبره مړو (مالدارو) خلقو به ویل: بېشکه مونږ په هغه څه چې تاسو په هغه سره رالېږل شوي یئ، کافران یو

۳۵:۳۴ - او دوی به ویل: مونږ د مال او اولاد په لحاظ ډېر زیات یو او مونږ به په عذاب کولی نشو

۳۶:۳۴ - ته (دوی ته) ووایه: بېشکه زما رب رزق فراخوي چا ته چې وغواړي او تنگوي یې او لېکن د خلقو اکثریت نه پوهېږي

۳۷:۳۴ - او نه دي ستاسو مالونه او نه اولاد هغه شی چې هغه تاسو مونږ ته رانژدې کړي، ښه رانژدې کول. مگر هغه څوک چې ایمان یې راوړ او نېك عمل یې وکړ، نو دغه کسان دي چې د دوی لپاره دوه چنده بدله ده، په سبب د هغو عملونو چې دوی کړي دي او دوی به (د جنت) په بالاخانو کې په امن وي

۳۸:۳۴ - او هغه کسان چې زمونږ په ایتونو کې کوشش کوي، چې (په خپل خیال مونږ ه لره) عاجزه کوونکي وي.، دغه کسان په عذاب کې حاضر کړی شوي دي

۳۹:۳۴ - ته (دوی ته) ووایه: بېشکه زما رب رزق فراخوي چا ته چې وغواړي په خپلو بنده گانو کې او د هغه لپاره یې تنگوي او تاسو چې څه شی هم لگوئ، نو هغه د دغه (څیز) عوض درکوي۔ او هغه تر ټولو غوره رزق ورکوونکی دی

۴۰:۳۴ - او (یاد کړئ) هغه ورځ چې هغه (الله) به دوی ټول راجمع کړي، بیا به ملایکو ته ووایي: ایا دغو کسانو به خاص ستاسو عبادت کاوه؟

۴۱:۳۴ - هغوی (ملایك) به ووایي: تا لره پاکي ده، ته له دوی نه غیر زمونږ مولیٰ (او کارساز) یې۔ بلکې دوی به د پېریانو عبادت کاوه، د دوی اکثره پر هغوی ایمان راوړونکي وو

۴۲:۳۴ - نو نن ورځ ستاسو ځینې د ځینو نورو لپاره نه د هېڅ نفعې اختیار لري اونه د ضرر۔ اومونږ به هغو کسانو ته چې ظلم (شرك) یې کړی دی، ووایو: تاسو د هغه اور عذاب وڅکئ چې تاسو به د هغه تکذیب کاوه

۴۳:۳۴ - او کله چې دوی ته زمونږ ایتونه تلاوت کولی شي، چې ښه واضح دي (نو) دوی وایي: نه دی دا مگر یو داسې سړی دی چې غواړي چې تاسو د هغو (معبودانو له عبادت) نه منع کړي چې ستاسو پلرونو به یې عبادت کاوه۔ او دوی وایي: دا (قرآن) نه دی مگر خالص دروغ دي چې له ځانه جوړ کړی شوي دي او کافران شوي خلق د حق (قرآن) په باره کې وایي کله چې دوی ته راغی: نه دی دا مگر ښکاره جادو

۴۴:۳۴ - حال دا چې مونږ دوی ته هېڅ کتابونه نه دي ورکړي چې دوی یې لولي او نه له تا نه مخکې مونږ دوی ته هېڅ وېروونکی لېږلی دی

۴۵:۳۴ - او هغو کسانو تکذیب کړی و، چې له دوی نه مخکې وو، حال دا چې دوی (د مکې کافران) نه دي رسېدلي لسمې برخې ته د هغه (قوت او قدرت) چې ما هغوی (مخکینو کافرانو) ته ورکړی و، نو هغوی زمونږ د رسولانو تکذیب وکړ، بیا نو زما انکار څنگه و

۴۶:۳۴ - ته (دوی ته) وایه: بېشکه زه تاسو ته یواځې دیوې خبرې وعظ کوم، دا چې تاسو خاص الله ته ودرېږئ، دوه دوه او یو یو، بیا ښه فکر وکړئ چې ستاسو په ملگري کې هېڅ لېونتوب نشته۔، نه دی دا مگر تاسو لره وېروونکی، د ډېر سخت عذاب نه مخکې

۴۷:۳۴ - ته (دوی ته) ووایه: هغه چې ما له تاسو نه څه اجرت غوښتی وي، نو هغه دې تاسو لپاره وي، زما اجر نشته مگر په الله باندې دی او هغه په هر شي باندې ښه گواه (او ښه خبردار) دی

۴۸:۳۴ - ته ووایه: بېشکه زما رب حق رالېږي۔ (هغه) د پټو خبرو ښه عالم دی

۴۹:۳۴ - ته ووایه: حق راغی او باطل نه اول ځلې پیدا کول کولی شي او نه دوباره ژوندي کول کولی شي

۵۰:۳۴ - ته (دوی ته) ووایه: که چېرې زه ګمراه شم، نو یقینًا یواځې د خپل ځان په ضرر ګمراه کېږم او که ما هدایت موندلی، نو په سبب د هغه کلام چې زما رب یې ما ته وحي کوي، بېشکه هغه ښه اورېدونکی، ډېر نژدې دی

۵۱:۳۴ - او که ته ووینې کله چې دوی ووېرېږي، نو هېڅ خلاصی به نه وي او دوی به له ډېر نژدې ځایه ونیول شي

۵۲:۳۴ - او دوی به ووایي: مونږ په دغه (الله) ایمان راوړی دی، او د دوی لپاره به د ډېر لرې ځای نه نیول له کومه وي!

۵۳:۳۴ - حال دا چې یقینًا دوی په ده سره له دې نه مخکې کافران شوي وو او دوی به بې له لیدلو ویشتل کول، له ډېر لرې ځایه

۵۴:۳۴ - او پرده به واچول شي د دوی په مینځ کې او په مینځ د هغه شي کې چې دوی یې غواړي (او ارمان یې کوي) لکه چې د دوی له ملګرو (هم جنسو) سره (دا کار) کړی شوی و له دوی نه مخکې، بېشکه دوی په اضطراب اچوونکي شك کې وو

## (مکي) پیداکونکی - فاطر ۳۵

۱:۳۵ - ټولې ستاینې خاص د الله لپاره دي چې د اسمانونو او ځمکې پیدا کوونکی دی، ملایکو لره رسولان ګرځوونکی دی، (داسې ملایك) چې د وزرو والا دي، دوه دوه او درې درې او څلور څلور، هغه په تخلیق کې زیاتوي چې څه وغواړي، بېشکه الله په هر شي باندې ښه قادر دی

۲:۳۵ - هر هغه شی چې الله یې د خلقو لپاره له رحمته پرانیزي، نو د هغه (رحمت) هیڅوك بندوونکی نشته. او هر شی چې هغه یې بند کړي، نو د هغه راخلاصوونکی نشته د هغه (الله) نه بعد.، همغه ښه غالب، ښه حکمت والا دی

۳:۳۵ - ای خلقو! تاسو د الله هغه نعمتونه یاد کړئ چې په تاسو شوي دي.، ایا له الله نه غیر (بل) خالق شته، چې تاسو ته له اسمان او ځمکې نه رزق درکوي؟ نشته هېڅ حق معبود مګر هم دی دی، نو کوم اړخ ته تاسو ګرځولی کېږئ

۴:۳۵ - او که چېرې دوی ستا تکذیب وکړي، نو یقینًا له تا نه د مخکینو رسولانو هم تکذیب شوی دی، او خاص الله ته ټول کارونه بېرته ګرځولی شي

۵:۳۵ - ای خلقو! بېشکه د الله وعده حقه ده، نو تاسو دې دنیایي ژوند له سره غره (دوکه) نه کړي او تاسو دې ډېر غره (دوکه) کوونکی د الله په باره کې له سره غره نه کړي

۶:۳۵ - بېشکه شیطان هم ستاسو دښمن دی، نو تاسو هغه دښمن وګڼئ، یقینًا همدا خبره ده

چې هغه خپله ډله رابلي، د دې لپاره چې دوی له دوزخیانو څنې شي

۷:۳۵ - هغه کسان چې کافران شوي دي، د دوی لپاره ډېر سخت عذاب دی او هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي، د دوی لپاره مغفرت او ډېر لوی اجر دی

۸:۳۵ - ایا نو هغه کس چې هغه ته خپل بد عمل ښایسته کړی شي، پس هغه، دغه (بد عمل) ښه ویني،، (ګنې) نو بېشکه الله ګمراه کوي چا له چې وغواړي او هدایت ورکوي چا له چې وغواړي، نو ستا نفس دې په (ګمراهۍ د) دوی د افسوس له وجې نه نه هلاکېږي،، بېشکه چې الله ښه عالم دی په هغو کارونو چې دوی یې کوي

۹:۳۵ - او الله هغه ذات دی چې بادونه رالېږي، پس هغه (بادونه) وریځې راپورته کوي، بیا مونږ هغه (وریځ) مړ ښار ته بوځو، بیا په هغې سره ځمکه راژوندۍ کړو، د هغې له مرګ نه پس، - همداسې به وي بیا ژوندي پورته کول

۱۰:۳۵ - هر هغه څوك چې هغه عزت غواړي، نو خاص الله ته دی ټول عزت، همدغه (الله) ته پاکیزه خبرې پورته خېژي او نېك عمل دغه (کلمات) پورته کوي او هغه کسان چې ناکاره (بد) مکرونه جوړوي، د دوی لپاره ډېر سخت عذاب دی او د دغو کسانو مکر، هم هغه باطل (او هلاك) دی

۱۱:۳۵ - او الله تاسو له خاورې نه پیدا کړي یئ، بیا یې له نطفې نه، بیا یې تاسو جوړې جوړې (ښځه او خاوند) وګرځولئ. او نه حامله کېږي هېڅ یوه ښځه او نه زېږوي (بچې لره) مګر د هغه (الله) په علم سره او د هېڅ عمر اوږد کړی شوي عمر نه اوږدول کېږي او نه د هغه له عمر نه کمی کولی شي مګر (دا هر څه) په کتاب کې (ثابت) دي، بېشکه دغه (د عمر لنډول او اوږدول) الله ته ډېر اسان دي

۱۲:۳۵ - او هغه دواړه بحرونه (سیندونه) سره نه برابرېږي. دا یو خوږ دی، ډېر خوږ، (تنده ماتوونکی) دی، د ده اوبه په اسانۍ سره تېرېدونکې دي او دا (بل) تریو (او) سخت تریخ دی، او تاسو له هر یو څنې تازه غوښې خورئ اوتاسو هغه زیوارت راوباسئ چې تاسو یې اغوندئ او ته په دغه (سمندر) کې کشتۍ وینې، په داسې حال کې چې (اوبو لره) څیرونکې روانې وي، د دې لپاره چې تاسو د هغه (الله) له فضله ولټوئ او د دې لپاره چې تاسو شکر وباسئ

۱۳:۳۵ - دغه (الله) شپه په ورځ کې ننباسي او ورځ په شپه کې ننباسي او هغه په کار اچولي دي لمر اوسپوږمۍ، هر یو تر مقررې نېټې پورې روان دی، دغه الله ستاسو رب دی، خاص د ده لپاره بادشاهي ده. او هغه (معبودان) چې تاسو یې له دغه (الله) نه غیر بولئ، دوی د کجورې د زړي د پردې هم مالکان نه دي

۱۴:۳۵ - که تاسو دوی وبولئ، دوی ستاسو بلنه نه اوري او که چېرې وایې وري، نو دوی ستاسو

بلنه قبلولی نه شي او د قیامت په ورځ به دوی ستاسو په شریك جوړولو منکر شي او تا ته (بل ځوك) خبر نشي درکولی د ښه خبرداره (الله) په شان

۱۵:۳۵ - ای خلقو! هم تاسو الله ته محتاجان یئ، او الله، هم دی ښه بې پروا، ښه ستایل شوی دی

۱۶:۳۵ - كه هغه اراده وكړي (نو) تاسو به ختم كړي او نور نوی مخلوق به راولي

۱۷:۳۵ - او دغه الله ته هېڅ گران (او مشكل نه دي

۱۸:۳۵ - او هېڅ پورته کوونکی د بل د گناه بار نه پورته كوي او كه دروند باری خپل بار ته (بل ځوك) راوبولي (، نو) له هغه نه به هېڅ شی وانه خستی شي اگر كه د خپلوۍ والا هم وي، بېشكه همدا خبره ده چې ته يواځې هغه كسان وېروې چې له خپل رب نه په غيبو سره خشيت (او وېره) كوي او لمونځ قايموي. او هغه ځوك چې پاكي حاصلوي، نو همدا خبره ده چې هغه د ځان (د فايدې) لپاره پاكي حاصلوي اوخاص الله ته بېرته ورتله دي

۱۹:۳۵ - او ړوند اوليدونكی (بينا) سره برابرېدی نشي

۲۰:۳۵ - او نه هم تيارې او رڼا(

۲۱:۳۵ - او نه هم سېوری او گرم باد (يا تېز لمر)

۲۲:۳۵ - او نه هم ژوندي او مړي، بېشكه الله اوروي هغه چا ته چې يې وغواړي او ته نشې اورولی هغه چا ته چې په قبرونو كې دي

۲۳:۳۵ - نه يې ته مگر وېروونكی

۲۴:۳۵ - بېشكه مونږ ته په حق (دين) سره لېږلی يې چې زېری وركوونكی او وېروونكی يې او نه و هېڅ يو امت مگر په هغه كې يو وېروونكی تېر شوی دی

۲۵:۳۵ - او كه چېرې دوی تا دروغجن وبولي، نو يقينًا (خپل انبياء) دروغجن بللي وو هغو كسانو چې له دوی نه مخكې وو، دوی ته د دوی رسولان په ښكاره دليلونو سره، او په صحيفو سره او په روښانه رڼا كوونكي كتاب سره راغلي وو

۲۶:۳۵ - بيا ما هغه كسان ونيول چې كافران شول، نو زما انكار څرنگه و؟

۲۷:۳۵ - ايا تا نه دي ليدلي چې بېشكه الله له بره نه اوبه نازلې كړې دي، بيا مونږ په دغو سره داسې مېوې راوېستلې دي چې د هغو رنگونه مختلف دي. او په غرونو كې ځينې سپينې او سرې لارې دي، چې د دغو (لارو) رنگونه سره مختلف دي او (ځينې په دوی كې) ډېرې تكې تورې دي

۲۸:۳۵ - او له خلقو او زنده سرو او څارويو څخه (داسې قسم دی چې) د دغو رنگونه سره

مختلف دي همم داسې، بېشکه همم دا خبره ده چې له الله نه د هغه په بنده ګانو کې يواځې عالمان وېرېږي.، بېشکه الله ښه غالب، ډېر بخښونکی دی

۳۵:۲۹ - بېشکه هغه کسان چې د الله کتاب لولي او لمونځ قايموي او انفاق کوي له هغه (مال) نه چې دوی ته مونږ ورکړی دی، په پټه او په ښکاره.، دوی د داسې تجارت امېد لري چې له سره به هلاك نشي

۳۵:۳۰ - د دې لپاره چې (الله) دوی ته د دوی اجرونه پوره ورکړي او دوی ته له خپله فضله زيات ورکړي، بېشکه چې دغه (الله) ډېر بخښونکی، ښه قدردان دی

۳۵:۳۱ - او هغه څه چې مونږ تا ته له کتابه وحي کړي دي همم دغه حق دي، په داسې حال کې چې تصديق کوونکی دی د هغو (کتابونو) چې له ده نه مخکې وو، بېشکه الله په خپلو بنده ګانو باندې خامخا ښه خبردار، ښه ليدونکی دی

۳۵:۳۲ - بيا مونږ د دغه کتاب (قرآن) وارثان کړل هغه کسان چې مونږ په خپلو بنده ګانو کې غوره (او انتخاب) کړي وو، بيا په دوی کې ځينې په خپل ځان ظلمم کوونکي دي او ځينې په دوی کې مينځ لاري دي او ځينې په دوی کې نېکيو ته ړومبی کېدونکي دي، د الله په حکمم سره، يقينًا همدغه ډېر لوی فضل دی

۳۵:۳۳ - د تل استوګنې جنتونه دي، دوی به دغو ته ننوځي، دوی به په دغو (جنتونو) کې د سرو زرو په بنګړو سره او په ملغلرو سره زيور دار (اراسته) کولی شي او د دوی جامې به په دغو (جنتونو) کې ورېښمم وي

۳۵:۳۴ - او دوی به ووايي: ټول د کمال صفتونه خاص هغه الله لره دي چې زمونږ نه يې غمم (خفګان) ختمم کړ، بېشکه زمونږ رب خامخا ډېر بخښونکی، بې حده قدردان دی

۳۵:۳۵ - هغه (الله) چې مونږ ته يې له خپله فضله د اوسېدنې کور ته راوستو، چې مونږ ته په دغو کې نه څه تکليف رارسېږي او نه مونږ ته په دغو کې ستوماني رارسېږي

۳۵:۳۶ - او هغه کسان چې کافران شوي دي، د دوی لپاره د جهنّمم اور دی، په دوی به نه (د بل مرګ) فيصله کېږي، پس چې دوی مړه شي او نه به له دوی نه د دغه (جهنّمم) له عذاب نه کمی کولی شي، همداسې مونږ هر ډېر ناشکره (بې ايمانه) ته بدله ورکوو

۳۵:۳۷ - او دوی به په دغه (دوزخ) کې چغې سورې وهي، (وايي به:) ای زمونږه ربه! ته مونږ راوباسه، مونږ به نېك عمل وکړو غير له هغه عمل نه چې مونږ به کاوه.، او ايا مونږ تاسو ته دومره عمر نه و درکړی چې په هغه کې پند اخلي هر هغه څوك چې پند اخيستل غواړي، او تاسو ته وېرووونکی همم راغلی و.، نو تاسو (اوس عذاب) وڅکئ، پس د ظالمانو لپاره هېڅ مدد کوونکی نشته

۳۸:۳۵ - بېشکه چې الله د اسمانونو او ځمکې د غیبو عالم دی.، بېشکه هغه د سینو په خبرو ښه پوهېدونکی دی

۳۹:۳۵ - دغه (الله) همغه ذات دی چې تاسو یې په ځمکه کې (د تېرو خلقو) خلیفګان جوړ کړئ، نو هغه څوك چې کافر شو، نو خاص په همده باندې د ده (د) کفر (ضرر) دی. او کافرانو ته د دوی کفر د خپل رب په نیز نه ورزیاتوي مګر غضب، او کافرانو ته د دوی کفر نه وزریاتوي مګر تاوان

۴۰:۳۵ - (ای نبي!) ته (دوی ته) ووایه: ایا تاسو خپل شریکان لیدلي دي هغه چې تاسو یې له الله نه غیر بلئ، تاسو ما ته وښیئ چې دوی له ځمکې څخه څه پیدا کړي دي.، یا د دوی لپاره په اسمانونو کې څه شراکت (او برخه) شته؟ یا مونږ دوی ته څه کتاب ورکړی دی، نو دوی له هغه نه په پاخه دلیل باندې (ولاړ) دي؟ ـ بلکې ظالمان (چې دي) د دوی ځینې د ځینو نورو سره وعده نه کوي مګر د دوکې

۴۱:۳۵ - بېشکه چې الله اسمانونه او ځمکه ساتي او (نیسي یې) چې زایل نشي او قسم د ی که دواړه په زوال شي (نو) له هغه (الله) نه غیر به یې هیڅوك ونه ساتلی شي) (ونه نیولی) شي.، بېشکه هغه (الله) دی، ښه تحمل والا، ډېر بخښونکی

۴۲:۳۵ - او دوی په الله قسمونه وخوړل، خپل پاخه قسمونه، خامخا که دوی ته کوم وېروونکی راغی (نو) دوی په خامخا ضرور په امتونو کې له هر یو نه ډېر هدایت موندونکي وي، نوکله چې دوی ته وېروونکی راغی، نو دوی ته یې زیاته نه کړه مګر تېښته

۴۳:۳۵ - په ځمکه کې د لویي کولو لپاره او د ډېر بد مکر کولو لپاره، او ډېر بد مکر یواځې په خپل اهل (مکر کوونکي) چاپېره کېږي.، نو دوی انتظار نه کوي مګر د ړومبنو خلقو د طریقې، نو ته به د الله طریقې لره له سره هېڅ تبدیلي ونه مومې او ته به د الله طریقې لره له سره څه ګرځول ونه مومې

۴۴:۳۵ - ایا دوی په ځمکه کې نه دي ګرځېدلي، پس چې ووینې چې د هغو کسانو انجام څنګه و چې له دوی نه مخکې وو، او هغوی له دوی نه په قوت کې زیات سخت و. او الله کله هم داسې نه دی چې هغه لره دې عاجزه کړي هېڅ کوم شی په اسمانونوکې او په ځمکه کې، بېشکه هغه (الله) له ازله ښه پوه، ښه قادر دی

۴۵:۳۵ - او که چېرې الله خلق نیولي وی په سبب د هغو (بدو عملونو) چې دوی کړي دي، نو د دې (ځمکې) په شا به یې هېڅ زنده سر (خوځنده) نه و پرېښی او لېکن دوی تر ټاکل شوې نېټې پورې وروسته کوي، نو کله چې د دوی نېټه راشي، نو بېشکه الله خپلو بنده ګانو لره ښه لیدونکی دی

# (مكي) ى س - يس ٣٦

١:٣٦ - يا، سين

٢:٣٦ - قسم دى په قرآن، چې ډېر د حکمت والا دى

٣:٣٦ - بېشکه ته، يقينًا له رسولانو څنې يې

٤:٣٦ - په نېغه لار يې

٥:٣٦ - (دغه قرآن) د ډېر غالب، بې حده مهربان نازلول دي

٦:٣٦ - د دې لپاره چې ته هغه قومـ وويروې چې د دوى پلرونه نه دي ويرول شوي، نو (ځکه) دوى غافلان دي

٧:٣٦ - يقينًا يقينًا د دوى په زياترو باندې (د عذاب) خبره ثابته شوې ده، نو (په دې وجه) دوى ايمان نه راوړي

٨:٣٦ - بېشکه مونږ د دوى په غاړو (څټونو) کې طوقونه اچولي دي، نو دغه (طوقونه) تر زنو پورې دي، نو (په دې سره) دوى جگ سري کړى شوي دي

٩:٣٦ - او مونږ د دوى په مخه کې يو دېوال کړى دى او يو دېوال د دوى شا ته، پس مونږ دوى پټ کړي دي، لهذا دوى هېڅ ويني

١٠:٣٦ - او دوى ته يو شان ده که ته دوى وويروې، يا ته دوى ونه ويروې، دوى ايمان نه راوړي

١١:٣٦ - بېشکه همدا خبره ده چې ته يواځې هغه څوك ويروې چې د ذکر (قرآن) پيروي کوي او له رحمٰن نه په ناليدلو ويرېږي، نو ته دغه کس ته د مغفرت او د ډېر عزت والا اجر زېرى ورکړه

١٢:٣٦ - بېشکه مونږ، همدا مونږ مړي ژوندي کوو او مونږ هغه څه ليکو چې دوى يې مخکې لېږلي او د دوى پاتې نښې (همـ) او هر شى، مونږ هغه په ښکاره اصل (لوح محفوظ) کې درج کړى دى

١٣:٣٦ - او ته دوى ته د دغه کلي اوسېدونکي مثال وگرځوه، کله چې دوى ته رسولان راغلل

١٤:٣٦ - کله چې مونږ دوى ته دوه پېغمبران ولېږل، نو دوى هغو دواړو ته دروغجن وويل، نو مونږ (دغه) په دريمـ سره مضبوط کړل، نو دغو (رسولانو) وويل: بېشکه مونږ تاسو ته رسولان (رالېږل شوي) يو

١٥:٣٦ - دوى وويل، تاسو نه يئ مگر زمونږ په شان انسانان. او رحمٰن هېڅ شى همـ نه دى نازل کړى، نه يئ تاسو مگر دروغ وايئ

۱۶:۳۶ - دغو (رسولانو) وویل: زمونږ رب پوهېږي، بېشکه مونږ تاسو ته یقینًا (پېغمبران) راستول شوي یو

۱۷:۳۶ - او زمونږ په ذمه نشته مگر ښکاره پېغام رسونه

۱۸:۳۶ - دغو خلقو وویل: بېشکه مونږ په تاسو سره بدفالي نیولې ده، قسم دی که تاسو منع نشوئ (، نو) مونږ به خامخا ضرور تاسو سنگسار کړو او زمونږ له جانبه به تاسو ته خامخا ضرور ډېر دردوونکی عذاب درورسېږي

۱۹:۳۶ - دغو (پېغمبرانو) وویل: ستاسو بدفالي له هم تاسو سره ده، ایا نو که تاسو ته پند درکړی شي (نو تاسو دغه ته بدفالي وایئ؟) بلکې تاسو له حده تېرېدونکی قوم یئ

۲۰:۳۶ - او د ښار تر ټولو لرې جانب نه یو سړی راغی، چې منډې یې وهلې، ویې ویل: ای زما قومه! تاسو د رسولانو پیروي وکړئ

۲۱:۳۶ - تاسو د هغه چا پیروي وکړئ چې له تاسو نه څه اجر (او مزدوري) نه غواړي، په داسې حال کې چې دوی (پخپله) هدایت موندونکي دي

۲۲:۳۶ - او په ما څه شوي دي (څه مانع دی) چې زه به د هغه ذات عبادت نه کوم چې زه یې پیدا کړی یم او خاص هغه ته به تاسو بېرته بېول کېږئ

۲۳:۳۶ - ایا زه له هغه (الله) نه غیر نور داسې معبوان ونیسم چې که رحمٰن ما ته د ضرر رسولو اراده وکړي، (نو) له ما نه به د دوی سفارش هېڅ شی (ضرر) دفع (لرې) نه کړی شي او نه به ما دوی خلاص کړی شي

۲۴:۳۶ - بېشکه زه به په دغه وخت کې خامخا په ښکاره گمراهۍ کې یم

۲۵:۳۶ - بېشکه زه چې یم، ما ستاسو په رب ایمان راوړی دی، نو تاسو (ټول) زما (دا خبره) واورئ

۲۶:۳۶ - ده ته وویل شو: ته جنت ته ننوځه! ده وویل: ای کاشکې چې زما قوم پوه شي!

۲۷:۳۶ - په هغه شي چې زما رب ما ته په هغه سره بخښنه وکړه او زه یې له عزتمنو څخه کړمه

۲۸:۳۶ - او مونږ له هغه نه وروسته د ده په قوم باندې له اسمان نه هېڅ لښکر راکوز نه کړ او نه مونږ نازلوونکي وو

۲۹:۳۶ - هغه (سزا) نه وه مگر یوه چغه، نو ناڅاپه دوی مړه یخ پخ پراته وو

۳۰:۳۶ - ای افسوسه په بنده گانو! دوی ته به نه راته کوم رسول مگر دوی به په هغه پورې استهزا کولې

۳۶:۳۱ - ایا دوی نه ویني چې له دوی نه مخکې مونږ څومره امتونه هلاك کړي دي، چې یقینًا هغوی دوی ته بېرته نه راګرځي

۳۶:۳۲ - او نه دي دا هر یو مګر ټول به زمونږ په وړاندې حاضر کړی شوي وي

۳۶:۳۳ - او د دوی لپاره یوه لویه نښه مړه (وچه کلکه) ځمکه ده، چې مونږ هغه ژوندۍ کړه او له هغې نه مونږ داني راووېستې، نو د دغو (دانو) څنې دوی خوراك کوي

۳۶:۳۴ - او مونږ په دغه (ځمکه) کې د کجورو او انګورو باغونه پیدا کړي دي او مونږه په دغه (ځمکه) کې چینې جاري کړي دي

۳۶:۳۵ - د دې لپاره چې دوی د دغو (څیزونو) له مېوو نه خوراك وکړي، حال دا چې دغه (مېوې) د دوی لاسونو نه دي پیدا کړي، ایا نو دوی شکر نه وباسي

۳۶:۳۶ - پاکي ده هغه ذات لره چې دغه ټولې جوړې یې پیدا کړي دي، له هغو څیزونو نه چې ځمکه یې زرغونوي او د دوی له نفسونو نه او له هغو څیزونو نه چې دوی یې نه پېژني

۳۶:۳۷ - او د دوی لپاره لویه نښه شپه (هم) ده، مونږ له هغې نه ورځ راوباسو، نو ناڅاپه دوی په تیارو کې ننوتونکي وي

۳۶:۳۸ - او لمر (دی چې) په خپلې ټاکلې لارې باندې روان دی، دغه د ډېر غالب، ښه پوه ذات مُقَدر (اندازه) کول دي

۳۶:۳۹ - او سپوږمۍ لره، مونږ د هغې لپاره منزلونه مقرر کړي دي، تر هغه پورې چې دا شي لکه د کجورې وچ ډنډورکی

۳۶:۴۰ - لمر لره ممکن نه دي چې سپوږمۍ رالاندې کړي او نه شپه په ورځ ړومبۍ کېدونکې ده او هر یو په (خپل) مدار کې لامبو وهي

۳۶:۴۱ - او د دوی لپاره لویه نښه داده چې بېشکه مونږ د دوی اولاد په ډکه بېړۍ کې سواره کړي دي

۳۶:۴۲ - او د دوی لپاره مو د دغې (بېړۍ) په شان هغه څیزونه پیدا کړي دي چې دوی پرې سوریږي

۳۶:۴۳ - او که مونږ وغواړو (نو) دوی به غرق کړو، بیا به دوی لپاره نه هېڅ فریادرس وي او نه به دوی له غرقېدونه خلاصول کېږي

۳۶:۴۴ - مګر (نه یې غرقوو) له خپل جانب نه د رحمت په سبب او تر یو وخته پورې د فایدې اخیستلو لپاره

۳۶:۴۵ - او کله چې دوی ته وویل شي: تاسو ځان وساتئ له هغه (عذاب) نه چې ستاسو په

مخکې دی او له هغه نه چې ستاسو شا ته (په اخرت کې) دی، د دې لپاره چې په تاسو رحم وکړی شي

۴۶:۳۶ - او دوی ته د خپل رب له دلیلونو نه هېڅ دلیل نه راځي، مگر دوی له هغو نه مخ گرځوونکي دي

۴۷:۳۶ - او کله چې دوی ته وویل شي چې تاسو له هغه (مال) نه ځینې ولگوئ چې الله تاسو ته درکړی دی، نو کافران شوي (د الله منکر) کسان هغو خلقو ته چې ایمان یې راوړی دی؛ وایي: ایا مونږ هغه چا ته طعام ورکړو چې که الله غوښتلی (نو) هغه ته به یې طعام ورکړی وی. نه یئ تاسو مگر په ښکاره گمراهی کې

۴۸:۳۶ - او دوی (کفار) وایي: (د قیامت) دغه وعده به کله وي که تاسو رښتیني یئ

۴۹:۳۶ - دوی انتظار نه کوي مگر د یوې داسې چغې چې دوی به ونیسي، په داسې حال کې چې دوی به یو له بله سره جگړې کوي

۵۰:۳۶ - نو نه به د وصیت کولو توان ولري او نه به خپل اهل ته بېرته ورشي

۵۱:۳۶ - او په شپېلۍ کې به پوکی وکړی شي، نو ناڅاپه به دوی له قبرونو نه د خپل رب په طرف منډې وهي

۵۲:۳۶ - دوی به وایي: ای زمونږ هلاکته! مونږ له خپل خوب ځای نه چا راپاڅولو؟ (جواب به ورکړی شي) دا هغه (ژوندون) دی چې رحمٰن یې وعده کړې وه او رسولانو رښتیا ویلي وو

۵۳:۳۶ - دغه (پوکی) به نه وي مگر یوه چغه، نو ناڅاپه به دوی ټول زمونږ په وړاندې حاضر کړی شوي وي

۵۴:۳۶ - نو نن ورځ به په هېڅ یو نفس باندې هېڅ شی ظلم ونه کړی شي او تاسو ته به بدله نه درکولی کېږي مگر هغه چې تاسو څه عمل کاوه

۵۵:۳۶ - بېشکه د جنت والا نن ورځ په مشغولتیا کې دي، خوند اخیستونکي دي

۵۶:۳۶ - دوی او د دوی ښځې په سیورو کې (ناست) دي، په تختونو باندې تکیه وهونکي دي

۵۷:۳۶ - د دوی لپاره په دغو (جنتونو) ښې مېوې دي او د دوی لپاره هغه څه دي چې دوی یې غواړي

۵۸:۳۶ - سلام دی (چې دوی ته به ویلی شي) ښکاره ویل د رب له جانبه، چې ډېر مهربان دی

۵۹:۳۶ - او (وبه ویل شي:) ای مجرمانو! تاسو نن ورځ بېل بېل شئ

۶۰:۳۶ - ای بني ادمو! ایا ما تاسو ته کلك حکم نه و کړی، داسې چې تاسو د شیطان عبادت مه

کوئ. یقینًا هغه ستاسو ښکاره دښمن دی

٦١:٣٦ - او داسې چې تاسو زما عبادت کوئ، دا نېغه لار ده؟

٦٢:٣٦ - او یقینًا یقینًا ده (شیطان) په تاسو کې ډېر خلق گمراه کړي دي، ایا نو تاسو داسې نه یئ چې عقل وچلوئ؟

٦٣:٣٦ - (منکرانو ته به په اخرت کې وویل شي:) دا هغه جهنم دی چې تاسو ته به یې وعده درکول کېده

٦٤:٣٦ - تاسو ده ته په نن ورځ ننوځئ، په سبب د هغه کفر چې تاسو به کاوه

٦٥:٣٦ - نن ورځ به مونږ د دوی په خولو مهر ولگوو، او زمونږ سره به د دوی لاسونه خبرې کوي او د دوی پښې به گواهي کوي په هغو کارونو چې دوی به کول

٦٦:٣٦ - او که مونږ غوښتلی (نو) د دوی سترگې به مو محوه (هوارې) کړې وی، نو دوی به (خپلې معلومې) لارې ته وړاندې شوي وی، بیا به دوی څنگه لېدله

٦٧:٣٦ - او که مونږ غوښتلی (نو) خامخا مونږ به دوی په خپلو ځایونو کې مسخ کړي وو، نو (بیا به) دوی نه د وړاندې تللو طاقت لاره او نه به بېرته گرځېدلی وی

٦٨:٣٦ - او هر هغه څوك چې مونږ هغه ته اوږد عمر ورکړو (نو) هغه په تخلیق (ساخت) کې نسکور کړو، ایا نو دوی عقل مندي نه کوي

٦٩:٣٦ - او مونږ ده ته شعر نه دی ښودلی او نه دا له ده سره ښایېږي، نه دی دا کتاب مگر نصیحت دی او بیانوونکی قرآن دی

٧٠:٣٦ - د دې لپاره چې دغه (قرآن، یا نبي) هغه څوك ووېروي چې ژوندی وي او د دې لپاره چې په کافرانو خبره ثابته شي

٧١:٣٦ - ایا دوی نه دي کتلي چې بېشکه مونږ له هغو څیزونو نه چې زمونږ لاسونو جوړ کړي دي، دوی لپاره څاروي پیدا کړي دي، بیا دوی د هغو مالکان دي

٧٢:٣٦ - او مونږ دغه (څاروي) د دوی لپاره تابع کړي دي، نو په دغو کې ځینې د دوی سورلۍ دي او په دغو کې ځیني دوی خوري

٧٣:٣٦ - او د دوی لپاره په دغو (څارویو) کې فایدې او مشروبونه دي، ایا نو دوی شکر نه وباسي؟

٧٤:٣٦ - او دوی له الله نه غیر نور معبودان ونیول، د دې لپاره چې دوی سره مدد وکړی شي

٧٥:٣٦ - دغه (معبودان) د دوی د مدد کولو طاقت نه لري، په داسې حال کې چې دوی (مشرکان) به دغو (معبودانو) ته حاضر کړی شوی لښکر وي

۷٦:۳٦ - نو تا دې د دوی وینا غمژن نه کړي، بېشکه مونږ پوهېږو په هغه (حسد، کینه) چې دوی یې پټوي او په هغه (کفر، عناد) چې دوی یې ښکاره کوي

۷۷:۳٦ - ایا انسان نه دي کتلي چې بېشکه مونږ دغه (انسان) له نطفې (یو ځاڅکې اوبو) نه پیدا کړی دی، نو ناڅاپه دی ښکاره سخت جګړه کوونکی دی

۷۸:۳٦ - او دی زمونږ لپاره مثال بیانوي او خپل پیدایښت یې هېر کړی دی، وایي: دغه هډوکي به څوك راژوندي کوي، په داسې حال کې چې هغه وراسته وي

۷۹:۳٦ - ته (دوی ته) ووایه: دا به هغه ذات راژوندي کوي چې دا یې اول ځلې پیدا کړي دي، او هغه په خپل مخلوق باندې ښه عالم دی

۸۰:۳٦ - هغه ذات چې تاسو لپاره یې له شنې ونې نه اور پیدا کړی دی، نو ناڅاپه تاسو له دغې (شنې ونې) نه اور بلوئ

۸۱:۳٦ - ایا هغه ذات چې اسمانونه او ځمکه یې پیدا کړي دي، په دې نه دی قادر چې هغه د دوی په شان (نور مخلوق) پیدا کړي؟ ولې نه! او همم دی ښه پیدا کوونکی، ښه پوه دی

۸۲:۳٦ - بېشکه د هغه امر (حکم) همم دا وي چې کله د یو شي اراده وکړي، دا چې هغه ته ووایي چې پیدا شه، نو هغه پیدا شي

۸۳:۳٦ - نو پاکي ده هغه (الله) لره چې خاص د هغه په لاس کې د هر شي باچاهي ده او خاص هغه ته به بېرته بېولی کېږئ

## (مکي) قطارونه - الصافات ۳۷

۱:۳۷ - قسمم دی (د ملایکو) په صف جوړونکو ډلو باندې، صف جوړول

۲:۳۷ - بیا (شیطانانو لره) په شړونکو (ملایکو دی) سخت شړل

۳:۳۷ - بیا د ذکر په لوستونکو باندې

۴:۳۷ - چې بېشکه ستاسو معبود یقینًا یو دی

۵:۳۷ - چې د اسمانونو او ځمکې رب دی او د هغه څه چې د دواړو په مینځ کې دي او د مشرقونو رب دی

٦:۳۷ - بېشکه مونږ (ځمکې ته) زیات نژدې اسمان په زینت سره ښایسته کړی دی، چې ستوري دي

۷:۳۷ - او له هر سرکښه شیطان نه مو ښه ساتلی دی

۸:۳۷ - دغه (شیطانان) تر ټولو لوړ مجلس ته غوږ نشي نیولی او دوی له هره جانبه ویشتل شي

۹:۳۷ - د شړلو لپاره او د دوی لپاره همېشنی عذاب دی

۱۰:۳۷ - غیر له هغه (شیطان) نه چې وتښتوي یو کرت تښتونه، نو په ده پسې شي لمبه رڼا کوونکې

۱۱:۳۷ - نو ته له دوی نه پوښتنه وکړه چې ایا دوی د تخلیق په لحاظ ډېر سخت دي، یا هغه چې مونږ پیدا کړي دي؟، بېشکه مونږ دوی له سرېښناکې خټې نه پیدا کړي دي

۱۲:۳۷ - بلکې ته (د دوی په انکار) تعجب کوې، په داسې حال کې چې دوی (په تا پورې) مسخرې کوي

۱۳:۳۷ - او کله چې دوی ته نصیحت وکړی شي، دوی پند (نصیحت) نه اخلي

۱۴:۳۷ - او کله چې دوی کومه (ښښه دلیل) ووینې، (نو ورپورې) ډېرې مسخرې کوي

۱۵:۳۷ - او وایي چې نه دی دا (چې مونږ ولید) مگر ښکاره جادو

۱۶:۳۷ - ایا کله چې مونږ مړه شو او خاورې او هډوکي شو، ایا په رښتیا به مونږ خامخا بیا ژوندي راپاڅول کېږو؟

۱۷:۳۷ - او ایا زمونږ ړومبني پلرونه هم؟

۱۸:۳۷ - ته (دوی ته) ووایه: هو! په داسې حال کې چې تاسو به ذلیل هم یئ

۱۹:۳۷ - پس همدا خبره ده چې هغه (قیامت) خو یوه چغه ده، نو ناڅاپه به دوی گوري

۲۰:۳۷ - او دوی به وایي: ای زمونږ هلاکته! دا د بدلې ورځ ده

۲۱:۳۷ - دا د فیصلې ورځ ده، هغه ورځ چې تاسو به د دې تکذیب کاوه

۲۲:۳۷ - (الله به ملایکو تهووایي:) تاسو راټول کړئ هغه کسان چې ظلم (شرك) یې کړی دی او د دوی جوړې (د عقیدې ملگري) او هغه څه چې دوی به یې عبادت کاوه

۲۳:۳۷ - له الله نه غیر، نو تاسو دوی د دوزخ په لاره روان (او برابر) کړئ

۲۴:۳۷ - او دوی ودروئ، بېشکه له دوی نه پوښتنې کول شي

۲۵:۳۷ - په تاسو څه دي چې یو له بله سره مرسته نه کوئ؟

۲۶:۳۷ - بلکې دوی نن ورځ (پخپله) تسلیمېدونکي دي

۲۷:۳۷ - او د دوی ځینې به ځینو نورو ته مخ ورواړوي، یو تربله به پوښتنې کوي

۲۸:۳۷ - وبه وایي (کشران مشرانو ته) بېشکه هم تاسو وئ چې مونږ ته به په زور سره راتللئ

۲۹:۳۷ - وبه وايي (مشران په جواب کې) بلکې تاسو پخپله ايمان راوړونکي نه وئ

۳۰:۳۷ - او زمونږ لپاره پر تاسو باندې هېڅ زور (تسلط) نه و، بلکې تاسو پخپله سرکښه قوم وئ

۳۱:۳۷ - نو په مونږه باندې زمونږ د رب خبره ثابته شوه، يقيناً مونږ خامخا (عذاب لره) څکونکي يو

۳۲:۳۷ - نو مونږ تاسو گمراه کړئ، بېشکه مونږ (پخپله هم) گمراهان وو

۳۳:۳۷ - پس بېشکه دوی په دغه ورځ په عذاب کې سره شريکان دي

۳۴:۳۷ - بېشکه مونږ له مجرمانو سره همداسې کوو

۳۵:۳۷ - بېشکه دوی (داسې) وو چې کله به دوی ته وويل شول چې له الله نه غير هېڅ لايق د عبادت نشته (، نو) دوی به تکبر کاوه

۳۶:۳۷ - او دوی وايي چې ايا يقيناً مونږ په رښتيا سره د يو لېوني شاعر له وجې نه خپل معبودان (خدايان) پرېښودونکي يو

۳۷:۳۷ - (داسې نه ده) بلکې دغه (نبي) حق (دين) راوړی دی، او د رسولانو تصديق يې کړی دی

۳۸:۳۷ - بېشکه تاسو خامخا ډېر دردوونکي عذاب لره څکونکي يئ

۳۹:۳۷ - او تاسو ته بدله نه درکولی کېږي مگر د هغو عملونو چې تاسو به کول

۴۰:۳۷ - لېکن د الله غوره کړی شوي بنده گان

۴۱:۳۷ - دغه کسان چې دي، د دوی لپاره معلومه روزي ده

۴۲:۳۷ - چې (رنگارنگ) مېوې دي، په داسې حال کې چې دوی به عزتمن کړی شوي وي

۴۳:۳۷ - د نعمتونو په باغونو کې

۴۴:۳۷ - (چې ناست به وي) په تختونو يو بل ته مخامخ

۴۵:۳۷ - په دوی به د روانو صافو شرابو جامونه گرځولی شي

۴۶:۳۷ - چې تك سپين به وي، د څښونکو لپاره به خوندور وي

۴۷:۳۷ - نه به په هغو کې سر خوږی وي او نه به دوی د دغو (شرابو) په وجه نشه کولی شي

۴۸:۳۷ - او له دوی سره به د (خپل) نظر رامنع کوونکې غټو سترگو والا حورې وي

۴۹:۳۷ - گوياکې دوی پټې ساتل شوې هگۍ دي

۵۰:۳۷ - نو د دغو (جنتيانو) ځينې به ځينو نورو ته مخ راوگرځوي، چې سره تپوس به کوي

۵۱:۳۷ - په دوی کې يو ويونکی به ووايي: بېشکه زما يو دوست و

۵۲:۳۷ - ویل به یې: ایا یقینًا ته خامخا له تصدیق کوونکو څنې یې؟

۵۳:۳۷ - ایا کله چې مونږ مړه شو او خاورې او هډوکي شو، ایا بېشکه مونږ ته به خامخا جزا راکولی شي

۵۴:۳۷ - وبه وایي: ایا تاسو کتونکي یئ؟

۵۵:۳۷ - نو وبه گوري، نو هغه به (د دوزخ) په مینځ کې ووینی

۵۶:۳۷ - وبه وایي (کتونکی): قسم په الله! بېشکه شان دا و چې ته نژدې وې چې ما هلاك کړې

۵۷:۳۷ - او که زما د رب نعمت نه وی (نو) خامخا زه به له حاضر کړی شویو څخه وم

۵۸:۳۷ - ایا نو مونږ مړه کېدونکي نه یو

۵۹:۳۷ - زمونږ له ړومبي مرگ نه غیر، او مونږ په عذاب کړی شوي نه یو

۶۰:۳۷ - بېشکه دا، یقینًا همدغه ډېر لوی بری دی

۶۱:۳۷ - د دغو (نعمتونو) مثل لپاره دې عمل کوونکي عمل وکړي

۶۲:۳۷ - ایا دغه د مېلمستیا په لحاظ غوره دي، یا د زقوم ونه

۶۳:۳۷ - بېشکه مونږ دغه (ونه) د ظالمانو (مشرکانو) لپاره فتنه (او عذاب) گرځولې ده

۶۴:۳۷ - بېشکه دغه داسې ونه ده چې د دوزخ په بېخ کې راوځي

۶۵:۳۷ - د دغې وږي، گویاکې هغه د شیطانانو سرونه دي

۶۶:۳۷ - پس بېشکه دوی به خامخا له هغې نه خوړونکي وي، نو له هغې نه به د خپلو خېټو ډکوونکي وي

۶۷:۳۷ - بیا بېشکه دوی ته به د هغې له پاسه د ایشول شویو اوبو گډون وي

۶۸:۳۷ - بیا بېشکه د دوی ورتله خامخا لمبې وهونکي اور ته دي

۶۹:۳۷ - بېشکه دوی خپل پلرونه گمراه موندلي دي

۷۰:۳۷ - نو دوی د هغوی په قدمونو پسې په ډېرې تېزۍ سره منډې وهي

۷۱:۳۷ - او یقینًا یقینًا له دوی نه مخکې د ړومبنو خلقو اکثره گمراه شوي دي

۷۲:۳۷ - او یقینًا یقینًا مونږ په دوی کې وېروونکي پېغمبران لېږلي وو

۷۳:۳۷ - نو ته وگوره چې د وېرول شویو انجام څنگه و؟

۷۴:۳۷ - لېکن د الله غوره کړي بندگان (له عذاب نه خلاص دي)

۷۵:۳۷ - او يقينًا يقينًا مونږ ته نوح اواز وکړ، نو (مونږ) ښه جواب ورکوونکي يو

۷٦:۳۷ - او مونږ هغه ته او د هغه کورنۍ ته له ډېر لوی غم نه نجات ورکړ

۷۷:۳۷ - او مونږ د هغه اولاده، بس هم هغه باقي پاتې کېدونکې وګرځوله

۷۸:۳۷ - او مونږ په ده باندې په وروستنيو خلقو کې (مدح او ثنا) پرېښودله

۷۹:۳۷ - په عالمونو کې دې په نوح سلام وي

۸۰:۳۷ - بېشکه مونږ نېکانو ته همداسې بدله ورکوو

۸۱:۳۷ - بېشکه هغه زمونږ د مومنو بنده ګانو څخه و

۸۲:۳۷ - بيا مونږ هغه نور (کافر) خلق غرق کړل

۸۳:۳۷ - او بېشکه د هغه له ملګرو ځنې خامخا ابراهيم دی

۸۴:۳۷ - (ياد کړه) کله چې هغه خپل رب ته په ډېر روغ زړه سره راغی

۸۵:۳۷ - کله چې هغه خپل پلار او خپل قوم ته وويل: څه شی دی چې تاسو يې عبادت کوئ؟

۸٦:۳۷ - ايا تاسو د دروغو (او باطلو) لپاره له الله پرته معبودان غواړئ؟

۸۷:۳۷ - نو په رب العالمين مو ستاسو څه ګمان دی

۸۸:۳۷ - نو په ستوريو کې نظر يې واچوه، يو نظر

۸۹:۳۷ - نو ويې ويل: بېشکه زه ناجوړه يم

۹۰:۳۷ - نو دوی له هغه نه وګرځېدل، په داسې حال کې چې شاکوونکي وو

۹۱:۳۷ - نو د دوی معبودانو (بتانو) ته پټ راغی، نو ويې ويل: ايا تاسو (دا خوراکونه) نه خورئ؟

۹۲:۳۷ - په تاسو څه شوي دي چې تاسو خبرې نه کوئ؟

۹۳:۳۷ - نو په مهارت سره يې په دوی باندې راباندې کړل، په داسې حال کې چې په ښي لاس سره وهونکی و

۹۴:۳۷ - نو هغوی (مشرکانو) ده ته متوجه شول، چې ورپسې منډې يې وهلې

۹۵:۳۷ - ده وويل: ايا تاسو د هغه څه عبادت کوئ چې تاسو يې (پخپله) تراشئ

۹٦:۳۷ , - حال دا چې الله تاسو او هغه عملونه چې تاسو يې کوئ، پيدا کړي دي

۹۷:۳۷ - دوی وويل: د ده لپاره يوه ودانۍ جوړه کړئ، بيا تاسو دا په لمبې وهونکي اور کې واچوئ

۹۸:۳۷ - نو دوی له ده سره د فريب اراده وکړه، نو مونږ همدوی تر ټولو زيات ذليله کړل

۹۹:۳۷ - او ده (ابراهیم) وویل: بېشکه زه خپل رب ته تلونکی یم، ژر به هغه ما ته لاره وښیي

۱۰۰:۳۷ - ای زما ربه! ته ما ته (زوی) راکړې، چې له صالحانو څخه وي

۱۰۱:۳۷ - نو مونږ ده ته د ډېر حلم والا هلك زېری ورکړ

۱۰۲:۳۷ - نو کله چې هغه (هلك) له ده (خپل پلار) سره منډې وهلو ته ورسېده، ویې ویل: ای زما خوږه زویه! بېشکه زه په خوب کې وینم داسې چې بېشکه زه تا ذبحه کوم، نو ته وگوره چې ستا څه رایه ده؟ هغه وویل: ای زما پلار جانه! ته هغه کار وکړه چې تا ته یې امر کول شي، ژر ده چې که الله وغواړي، ته به ما له صبر کوونکو څخه ومومې

۱۰۳:۳۷ - نو کله چې دواړو غاړه کېښوده او هغه یې په اړخ څملاوه

۱۰۴:۳۷ - او مونږ ده ته اواز وکړ، داسې چې ای ابراهیمه

۱۰۵:۳۷ - یقینًا تا خوب رښتیا کړ، بېشکه مونږ نېکي کوونکو ته همداسې بدله ورکوو

۱۰۶:۳۷ - بېشکه دا، یقینًا همدغه ښکاره ازمېښت و

۱۰۷:۳۷ - او مونږ ده (اسماعیل) ته په ډېرې لویې ذبیحې سره خلاصی ورکړو

۱۰۸:۳۷ - او مونږ باقي پرېښود په ده باندې وروستنیو خلقو کې

۱۰۹:۳۷ - دا چې سلام دې وي په ابراهیم

۱۱۰:۳۷ - نېکانو ته مونږ همداسې بدله ورکوو

۱۱۱:۳۷ - بېشکه هغه زمونږ له مومنو بنده گانو څخه دی

۱۱۲:۳۷ - او مونږ ده ته د اسحاق زېری ورکړ، په داسې حال کې چې نبي و، له صالحانو نه

۱۱۳:۳۷ - او برکت اچولی و مونږ په ده (اسمٰعیل) باندې او په اسحاق باندې، او د دې دواړو په اولاد کې څوك نېکي کوونکی دی او څوك په خپل ځان باندې ښکاره ظلم کوونکی دی

۱۱۴:۳۷ - او یقینًا یقینًا مونږ په موسیٰ او هارون احسان وکړ

۱۱۵:۳۷ - او مونږ دغو دواړو ته او د دغو دواړو قوم ته له ډېر لوی غم نه نجات ورکړ

۱۱۶:۳۷ - او مونږ د دوی مدد وکړ، نو همدوی غالبه شول

۱۱۷:۳۷ - او مونږ دغو دواړو ته ډېر واضحه کتاب ورکړی و

۱۱۸:۳۷ - او مونږ دغو دواړو ته نېغه لاره ښودلې وه

۱۱۹:۳۷ - او مونږ په دواړو باندې په وروستنیو خلقو کې باقي پرېښوده

۱۲۰:۳۷ - دا چې سلام دې وي په موسي او هارون

۱۲۱:۳۷ - بېشکه مونږ نېکي کوونکو ته همداسې بدله ورکوو

۱۲۲:۳۷ - بېشکه دغه دواړه زمونږ د مومنو بنده گانو څنې دي

۱۲۳:۳۷ - او بېشکه الیاس خامخا له رسولانو څنې دی

۱۲۴:۳۷ - (یاد کړه)، هغه وخت چې ده خپل قوم ته وویل: ولې تاسو نه وېرېږئ!

۱۲۵:۳۷ - ایا تاسو بعل (بت) بولئ او تر ټولو ښه پیدا کوونکی ذات پرېږدئ

۱۲۶:۳۷ - چې الله دی، چې ستاسو رب دی او ستاسو د ړومبنو پلرونو رب دی

۱۲۷:۳۷ - نو هغوی د ده تکذیب وکړ، نو بېشکه هغوی به خامخا حاضرولی شي

۱۲۸:۳۷ - د الله له خالص کړی شویو بنده گانو نه غیر (چې دوی د هغه تکذیب ونه کړ)

۱۲۹:۳۷ - او باقي پرېښود مونږ په ده باندې په وروستنیو خلقو کې

۱۳۰:۳۷ - چې په الیاسین دې سلام وي

۱۳۱:۳۷ - بېشکه مونږ نېکي کوونکو ته همداسي بدله ورکوو

۱۳۲:۳۷ - بېشکه هغه زمونږ له مومنو بنده گانو څنې دی

۱۳۳:۳۷ - او بېشکه لوط له رسولانو څنې دی

۱۳۴:۳۷ - (یاد کړه) هغه وخت چې مونږ ده ته او د ده کورنۍ ته، ټولو ته نجات ورکړ

۱۳۵:۳۷ - غیر له یوې بوډۍ نه چې په باقي پاتې کېدونکو کې وه

۱۳۶:۳۷ - بیا مونږ نور (ټول) خلق هلاك كړل

۱۳۷:۳۷ - او بېشکه تاسو په دوی تېرېږئ، په دې حال کې چې سبا کوونکي یئ

۱۳۸:۳۷ - او په شپه کې هم، ایا نو تاسو عقل نه کاروئ

۱۳۹:۳۷ - او بېشکه یونس خامخا له رسولانو څنې دی

۱۴۰:۳۷ - (یاد کړه) هغه وخت چې هغه ډکې کشتۍ ته وتښتېده

۱۴۱:۳۷ - نو ده قرعه واچوله، نو شو (په قرعه کې) له مغلوب کړی شویو څنې

۱۴۲:۳۷ - نو ښوی تېر کړ هغه لره مهي (کب)، په دې حال کې چې هغه (د خپل ځان) ملامت کوونکی و

۱۴۳:۳۷ - نو که دا خبره نه وی چې بېشکه هغه له تسبیح ویونکو څخه و

۱۴۴:۳۷ - (نو) خامخا دا به د هغه (کب) په خېټه کې تر هغې ورځې پورې پاتې و چې دوی به بیا

۱۴۵:۳۷ - نو مونږ هغه په ډاگه میدان کې وغورځاوه، په دې حال کې چې ناروغ و

۱۴۶:۳۷ - او مونږ په ده باندې یو ځېلی داره ونه را زرغونه کړه

۱۴۷:۳۷ - او مونږ دی لېږلی و سل زرو خلقو ته بلکې دوی زیات وو

۱۴۸:۳۷ - نو دوی ایمان راوړ، نو مونږ دوی ته تر یو وخته پورې نفع ورکړه

۱۴۹:۳۷ - نو ته له دوی نه پوښتنه وکړه، ایا ستا د رب لپاره لوڼه دي او د دوی لپاره زامن دي؟

۱۵۰:۳۷ - یا که مونږ ملایك ښځې پیدا کړي دي، په داسې حال کې چې دوی حاضر وو

۱۵۱:۳۷ - خبردار! بېشکه دوی له خپلو بدترو دروغو څخه خامخا (داسې) وایي

۱۵۲:۳۷ - الله اولاد زېږولی دی. او بېشکه دوی یقینًا دروغجن دي

۱۵۳:۳۷ - ایا هغه (الله د ځان لپاره) لوڼه غوره کړي دي په زامنو باندې

۱۵۴:۳۷ - په تاسو څه شوي دي، څرنگه تاسو (دا) فیصله (او حکم) کوئ؟

۱۵۵:۳۷ - ایا تاسو نصیحت نه اخلئ

۱۵۶:۳۷ - ایا تاسو لپاره څه واضحه دلیل شته؟

۱۵۷:۳۷ - نو تاسو خپل کتاب راوړئ، که چېرې تاسو رښتیني یئ

۱۵۸:۳۷ - او دوی د هغه (الله) په مینځ کې او د پېریانو په مینځ کې نسب (د خپلوۍ نسبت) مقرر کړ، او یقینًا یقینًا پېریان په دې پوه شوي دي چې بېشکه دوی به خامخا حاضر کړی شي

۱۵۹:۳۷ - الله لپاره پاکي ده له هغو (خبرو) نه چې دوی یې وایي

۱۶۰:۳۷ - لېکن د الله خالص (غوره) کړی شوي بنده گان (له دغو خبرو نه بچ دي)

۱۶۱:۳۷ - پس بېشکه تاسو او هغه چې تاسو یې عبادت کوئ

۱۶۲:۳۷ - نه یئ تاسو په دې (بت پرستۍ) سره گمراه کوونکي (په فتنه کې اچوونکي د هیچا)

۱۶۳:۳۷ - غیر له هغه چا نه چې هغه په دوزخ کې ننوتونکی دی

۱۶۴:۳۷ - او په مونږ کې هیڅوك نشته مگر د هغه لپاره معلوم ځای دی

۱۶۵:۳۷ - او بېشکه خامخا مونږ صف تړونکي یو

۱۶۶:۳۷ - او بېشکه مونږ خامخا تسبیح ویونکي یو

۱۶۷:۳۷ - او بېشکه چې خامخا دوی به ویل

۱٦٨:٣٧ - که چېرې مونږ سره د پخوانیو خلقو (له کتابونو) نه کوم ذکر (کتاب) وی

۱٦٩:٣٧ - (نو) خامخا مونږ به د الله خالص (او غوره) کړی شوي بنده گان وو

۱٧۰:٣٧ - نو دوی په دغه (قرآن) سره کافر شول، نو ژر ده چې دوی به پوه شي

۱٧۱:٣٧ - او یقینًا یقینًا زمونږ خبره زمونږ د لېږل شویو (رسولانو) بنده گانو لپاره صادر شوې ده

۱٧٢:٣٧ - چې بېشکه دوی، خامخا هم دوی مدد کړی شوي دي

۱٧٣:٣٧ - او بېشکه زمونږ لښکر، خامخا هم دوی غالب راتلونکي دي

۱٧۴:٣٧ - نو ته له دوی نه مخ وگرځوه، تر یو وخته پورې

۱٧۵:٣٧ - او دوی ته گوره، نو ژر ده چې دوی به (خپل انجام) ووینې

۱٧٦:٣٧ - ایا نو دوی زمونږ د عذاب تلوار کوي

۱٧٧:٣٧ - نو کله چې هغه د دوی په مېدان کې نازل شي، نو د وېرول شویو سبا به بد وي

۱٧٨:٣٧ - او ته له دوی نه مخ وگرځوه تر یو وخته پورې

۱٧٩:٣٧ - او ته گوره، نو ژر ده چې دوی به ووینې

۱٨۰:٣٧ - ستا رب لره پاکي ده چې د عزت (او غلبې) مالك دی، له هغو خبرو نه چې دوی (مشرکان) یې بیانوي

۱٨۱:٣٧ - او سلام دې وي په رسولانو باندې

۱٨٢:٣٧ - او ټول د کمال صفتونه خاص الله لره دي چې د عالمونو ښه پالونکی دی

## (مکي) ص - ص ٣٨

۱:٣٨ - صاد، قسم دی په قرآن چې د نصیحت والا دی

٢:٣٨ - بلکې هغه کسان چې کافران شوي دي، په کبر او مخالفت کې دي

٣:٣٨ - مونږه له دوی نه مخکې څومره ډېرې پېړۍ هلاکې کړې دي، نو هغوی به چغې وهلې، حال دا چې دغه وخت به د خلاصي نه و

۴:٣٨ - او دوی په دې وجه تعجب کوي چې دوی ته له همدوی څنې یو وېروونکی راغی او کافرانو وویل: دا (پیغمبر) جادوگر دی، سخت دروغجن دی

۵:٣٨ - ایا ده دغه معبودان یو اله وگرځول، بېشکه دا خامخا ډېر عجیبه څیز دی

٦:٣٨ - او له دوی څخه (د کفارو) مشران لاړل، چې (ویل یې:) ځئ او په خپلو معبودانو ټینگ

اوسئ، بېشکه دغه (توحيد) خامخا يو داسې شی دی چې غوښتنه يې کولی شي (زمونږ نه)

۷:۳۸ - مونږ دغه (توحيد) په وروستي دين (نصرانيت) کې نه دی اورېدلی. نه دی دا مگر له خپله ځانه نه جوړ کړی شوي دروغ

۸:۳۸ - ايا زمونږ له مينځه په ده باندې ذکر (وحي، قرآن) نازل کړی شو! بلکې دوی زما د ذکر (قرآن) په هکله په شك کې دي بلکې لا تر اوسه دوی زما عذاب نه دی څکلی

۹:۳۸ - ايا له دوی سره ستا د رب د رحمت خزانې دي (هغه رب) چې ډېر غالب، عطا کوونکی دی؟

۱۰:۳۸ - يا د دوی لپاره بادشاهي ده د اسمانونو او ځمکې او د هغه څه چې د دواړو په مينځ کې دي، نو دوی دې په اسبابو کې وخېژي

۱۱:۳۸ - (دغه) داسې لښکر گوټی دی له لښکرو څخه، چې په دغه ځای کې شکست ورکړی شوی دی

۱۲:۳۸ - تکذيب کړی و له دوی نه مخکې د نوح قوم او عاديانو او فرعون چې د مېخونو والا و

۱۳:۳۸ - او ثموديانو او د لوط قوم او د ځنگل والاوو، همدغه ډلې دي

۱۴:۳۸ - نه ده هره يوه (ډله) مگر چې د رسولانو تکذيب يې کړی دی، نو زما عذاب پرې ثابت شو

۱۵:۳۸ - او دوی انتظار نه کوي مگر د يوې داسې چغې چې د هغې لپاره بېرته گرځېدل نشته (وقفه نشته)

۱۶:۳۸ - او دوی ويل: ای زمونږ ربه! ته مونږ ته زمونږ برخه ژر راکړه، د حساب له ورځې نه مخکې

۱۷:۳۸ - ته د دوی په دغو خبرو صبر کوه او ته زمونږ بنده داود ياد کړه چې د قوت والا و، بېشکه هغه ډېر رجوع کوونکی و

۱۸:۳۸ - بېشکه مونږ له هغه سره غرونه تابع کړي وو چې د ورځې په اخره او اوله برخه کې به يې تسبيح ويله

۱۹:۳۸ - او مرغان مو (تابع کړي وو) په دې حال کې چې جمع کړی شوي به وو، هر يو به ده ته ښه رجوع کوونکی و

۲۰:۳۸ - اومونږ د هغه باچاهي مضبوطه کړې وه او مونږ هغه ته حکمت او د غوڅې خبرې قوت ورکړی و

۲۱:۳۸ - او ايا تا ته د جگړه کوونکو خبر راغلی دی، کله چې هغوی په (دېوال د) عبادت خانې راوختل

۲۲:۳۸ - کله چې دوی په داود ورننوتل، نو هغه له دوی نه ووېرېده، دوی وویل: ته مه وېرېږه! (مونږ یو) دوه جګړه کوونکې ډلې، زمونږ ځینو په ځینو نورو ظلم کړی دی، نو ته زمونږ په مینځ کې په حقه سره فیصله وکړه او زیاتی مه کوه او ته نېغې لارې ته زمونږ لار ښوونه وکړه

۲۳:۳۸ - بېشکه دا زما ورور دی، د ده نهه نوي (یو کم سل) ګډې (مېږې) دي او زما یوه ګډه (مېږه) ده، نو ده وویل: ته ما د دې کفیل (مالك) وګرځوه او په خبرو کې یې په ما غلبه کړې ده

۲۴:۳۸ - ده (داود) وویل: یقینًا یقینًا ده په تا ظلم کړی دی، ستا د ګډې په غوښتلو (چې یو ځای یې کړي) له خپلو ګډو سره او بېشکه په شریکانو کې ډېر زیات (داسې وي چې) خامخا ځینې د دوی په ځینو نورو ظلم کوي، غیر له هغو کسانو نه چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي او دوی ډېرخي لږ دي. او داود یقین وکړ چې بېشکه همدا خبره ده چې مونږ هغه وازمایه، نو له خپل رب نه یې بخښنه وغوښته او پرېوته، په داسې حال کې چې رکوع (او) سجده کوونکی و، او رجوع یې وکړه

۲۵:۳۸ - نو مونږ ده ته دغه (خطا) وبخښله، او بېشکه د هغه لپاره زمونږ په نیز خامخا قربت دی او د ورتلو ښه ځای دی

۲۶:۳۸ - ای داوده! بېشکه مونږ ته په ځمکه کې خلیفه ګرځولی یې، نو ته د خلقو په مینځ کې په حقه سره فیصلې کوه او د خواهشاتو پیروي مه کوه، (ګنې) نو تا به د الله له لارې نه ګمراه کړي، بېشکه هغه کسان چې د الله له لارې نه ګمراه کېږي، د هغوی لپاره ډېر سخت عذاب دی، په سبب د دوی د هېرولو ورځې د حساب لره

۲۷:۳۸ - او مونږ اسمان او ځمکه او هغه څه چې د دواړو په مینځ کې دي داسې نه دي پیدا کړي، چې باطل (او عبث) دي دغه (باطل پیدا کول) د کافران شویو خلقو ګمان دی، نو دا کافران شویو خلقو لپاره له اوره هلاکت (او عذاب) دی

۲۸:۳۸ - ایا مونږ به هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي، په ځمکه کې د فساد کوونکو په شان وګرځوو؟ ایا مونږ به متقیان د فاجرانو (بدکارانو) په شان وګرځوو؟

۲۹:۳۸ - (دغه قرآن) کتاب دی چې مونږه تا ته نازل کړی دی، برکتناك دی، د دې لپاره چې دوی د ده په ایتونو کې فکر وکړي او د دې لپاره چې د خالصو عقلونو والا ترې پند واخلي

۳۰:۳۸ - او مونږ داود ته سلیمان عطا کړ، (هغه) ښه بنده و، بېشکه چې هغه ډېر رجوع کوونکی و

۳۱:۳۸ - کله چې ده ته د ورځې په اخر کې هغه ګړندي خاص اسونه وړاندې کړی شول چې په درې پښو ودرېږي

۳۲:۳۸ - نو ده ویل: بېشکه ما د دغه مال محبت محبوب ګڼلی دی د خپل رب د یاد په وجه، تر دې چې (دغه اسونه) په پرده کې پټ شول

۳۳:۳۸ - تاسو دغه ما ته بېرته راولئ، نو شروع شو چې په پنډېو او څټونو یې لاس راښکه

۳۴:۳۸ - او یقینًا یقینًا مونږ سلیمان وازمایه، او د ده په کرسۍ مو یو جسد وغورځاوه، بیا ده رجوع وکړه

۳۵:۳۸ - ده وویل: ای زما ربه! ته ما وبخښه او ما ته داسې باچاهي راکړه چې له ما نه پس د چا لپاره هم مناسب نه وي، بېشکه هم ته ښه عطا کوونکی یې

۳۶:۳۸ - نو مونږ د ده لپاره هوا مسخره کړه چې د ده په امر سره به چلېدله نرمه نرمه، چېرته چې به ده اراده وکړه

۳۷:۳۸ - (مونږ تابع کړي وو د ده لپاره) پېریان هر ښه معمار او ښه غوټه وهونکی

۳۸:۳۸ - او نور (پېریان) چې په ځنځیرونو کې له یو بل سره تړل شوي وو

۳۹:۳۸ - دا زمونږ عطا ده، نو ته احسان کوه، یا یې وساته، بې له حسابه

۴۰:۳۸ - او بېشکه د هغه لپاره زمونږ په نیز خامخا قرب دی، او (په اخرت کې) د ورتلو ښه ځای دی

۴۱:۳۸ - او ته زمونږ بنده ایوب یاد کړه، کله چې هغه خپل رب ته اواز وکړ چې بېشکه ما ته شیطان ایذا او تکلیف رارسولی دی

۴۲:۳۸ - ته (ځمکه) په خپلې پښې سره ووهه، دغه یخ غسلځای دی، او د څښلو اوبه دي

۴۳:۳۸ - او مونږ ده ته د ده اهل ورکړ او له دوی سره د دوی په مثل (نور هم) له خپل جانب نه د رحمت له وجې او عقلمندو ته د نصیحت لپاره

۴۴:۳۸ - او ته په خپل لاس سره جارو ونیسه، نو په هغې سره وهل وکړه او مه حانث کېږه، بېشکه مونږ هغه صابر مونده، (هغه) ښه سړی و، بېشکه هغه ډېر رجوع کوونکی و

۴۵:۳۸ - او ته زمونږ بنده ګان ابراهیم، او اسحٰق او یعقوب یاد کړه چې د (عمل د) قوت او (حق لیدونکو) سترګو خاوندان وو

۴۶:۳۸ - بېشکه مونږ دوی په یو خالص خوی سره خالص کړي دي چې هغه د اخرت یادول دي

۴۷:۳۸ - او بېشکه دوی زمونږ، په نیز خامخا له غوره کړی شویو، بهترو خلقو څخه دي

۴۸:۳۸ - او ته اسماعیل او الیسع او ذوالکفل یاد کړه، دغه هر یو د خیر او بهترۍ والا وو

۴۹:۳۸ - دا پند دی، او بېشکه د متقیانو لپاره خامخا د ورتلو ښه ځای دی

۵۰:۳۸ - چې د همېشه استوګنې جنتونه دي، په داسې حال کې چې د دوی لپاره يې دروازې ښې پرانستې دي

۵۱:۳۸ - په دغو کې به تکيه وهلي وي، په دغو (جنتونو) کې به دوی ډېرې مېوې او مشروب راغواړي

۵۲:۳۸ - او له دوی سره به د نظر رامنع کوونکې همځولې ښځې وي

۵۳:۳۸ - دا (ثواب او نعمتونه) هغه څه دي چې تاسو ته يې د حساب د ورځې لپاره وعده درکولی شي

۵۴:۳۸ - بېشکه دا خامخا زمونږ داسې رزق دی، چې ده لره هېڅ خلاصېدل نشته

۵۵:۳۸ - دغه (د مومنانو حال) دی او بېشکه د سرکشانو لپاره خامخا د ورتلو ډېر بد ځای دی

۵۶:۳۸ - چې جهنم دی، دوی به په هغه کې داخلېږي، نو هغه بده بستره ده

۵۷:۳۸ - دغه اېشېدلې اوبه او زوې دي، نو دوی دې دا وڅکي

۵۸:۳۸ - او بل (عذاب) دی له دغه قسم نه، څو قسمه

۵۹:۳۸ - دغه يوه ډله ده چې له تاسو سره په ډېر تکليف سره ننوتونکې دي، دوی ته دې هېڅ خوشالي نه وي، بېشکه دوی اور ته داخلېدونکي دي

۶۰:۳۸ - هغوی به ووايي: بلکې تاسو چې يئ، تاسو ته دې هېڅ خوشالي نه وي، تاسو دغه (عذاب) مونږ ته راوړاندې کړی دی، نو دا (دوزخ) بد قرار ځای دی

۶۱:۳۸ - دوی به ووايي: ای زمونږ ربه! چا چې مونږ ته دا راوړاندې کړی دی، نو ته هغه ته په اور کې عذاب دوه چنده ورزيات کړه

۶۲:۳۸ - او دوی به ووايي: پر مونږ څه شوي دي چې مونږ هغه سړي نه وينو چې مونږ به هغوی له اشرارو (بدترو خلقو) څنې شمېرل؟

۶۳:۳۸ - ايا مونږ هغوی په مسخرو سره نيولې وو، يا که له هغوی نه زمونږ سترګې کږې شوې دي؟

۶۴:۳۸ - بېشکه دغه خامخا حق دي، يعنې (دا) د دوزخيانو خپل مينځې جګړه کول

۶۵:۳۸ - ته (دوی ته) ووايه: زه خو بس وېرووونکی يم، او نشته دی حق معبود غير له الله نه چې يو او ډېر غلبې والا دی

۶۶:۳۸ - چې رب دی د اسمانونو او ځمکې او د هغه څه چې د دواړو په مينځ کې دي، چې ډېر غالب، ښه بخښونکی دی

۶۷:۳۸ - ته (دوی ته) ووایه: دغه (قرآن) ډېر لوی خبر دی

۶۸:۳۸ - تاسو له ده نه مخ ګرځوونکي یئ

۶۹:۳۸ - ما ته د ملاَِ اعلیٰ (لوړ مجلس) په باره کې هېڅ علم نشته، کله چې دوی په خپل مینځ کې اختلاف کوي

۷۰:۳۸ - ما ته وحي نه کېږي مګر د دې چې بېشکه همدا خبره ده چې زه ښکاره وېروونکی یم

۷۱:۳۸ - کله چې ستا رب ملایکو ته وویل چې بېشکه زه له خَټې نه د یو بشر پیدا کوونکی یم

۷۲:۳۸ - نو کله چې زه هغه برابر کړم او په هغه کې له خپل (پیدا کړي) روح نه پو کړم، نو تاسو هغه ته پرېوځئ، چې سجده کوونکي یئ

۷۳:۳۸ - نو ملایکو ټولو سجده وکړه

۷۴:۳۸ - غیر له ابلیس نه، هغه لویي وکړه او شو له کافرانو څخه

۷۵:۳۸ - (الله) وویل: ای ابلیسه! ته هغه کس ته له سجدې کولو نه څه شي منع کړې، چې ما پخپلو دواړو لاسونو پیدا کړی دی؟ ایا تا لویي وکړه، یا ته (له شروع نه) د لوړو اوچتو خلقو ځنې یې؟

۷۶:۳۸ - هغه وویل: زه له ده نه ډېر غوره یم، تا زه له اوره پیدا کړی یم او هغه دې له خټې نه پیدا کړی دی

۷۷:۳۸ - (الله) وویل: نو ته له دې (جنت) نه ووځه، پس بېشکه ته رټل شوی یې

۷۸:۳۸ - او بېشکه په تا باندې د بدلې تر ورځې پورې زما لعنت دی

۷۹:۳۸ - هغه وویل: ای زما ربه! نو ته ما ته تر هغې ورځې پورې مهلت راکړه چې دوی (خلق) به بیا راژوندي کولی شي

۸۰:۳۸ - الله وویل: پس بېشکه ته له مهلت ورکړی شویو څخه یې

۸۱:۳۸ - د معلوم وخت تر ورځې پورې

۸۲:۳۸ - ده وویل: نو قسم ستا پر عزت! چې خامخا ضرور به زه دوی ټول ګمراه کوم

۸۳:۳۸ - مګر په دوی کې ستا هغه بنده ګان چې خالص کړی شوي دي

۸۴:۳۸ - الله وویل: پس حقه خبره دا ده، او زه حقه خبره کوم

۸۵:۳۸ - چې خامخا ضرور به زه جهنم ډکوم له تا نه او له هغه چا نه چې په دوی کې ستا پیروي وکړي، له ټولو نه

۸٦:۳۸ - ته (دوی ته) ووایه: زه له تاسو نه په دې (تبلیغ) باندې هېڅ اجر نه غواړم او زه له تکلف کوونکو څخه نه یم

۸۷:۳۸ - نه دی دا (قرآن) مگر د عالمونو لپاره نصیحت

۸۸:۳۸ - او خامخا ضرور به تاسو څه وخت وروسته د ده په خبر عالمان شئ

## (مكي) ډله - الزمر ۳۹

۱:۳۹ - د دې كتاب نازلول د الله له جانبه دي، چې ډېر غالب، ښه حكمت والا دی

۲:۳۹ - بېشكه مونږ تا ته كتاب په حقه سره نازل كړی دی، نو ته د الله عبادت كوه، په داسې حال كې چې دين هغه (الله) لره خالص كوونكی يې

۳:۳۹ - خبردار شئ! خاص د الله لپاره خالص دين دی، او هغه كسان چې له هغه نه غير يې دوستان (كارسازي) نيولي دي (وايي:) مونږ د دوی عبادت نه كوو مگر د دې لپاره چې دوی مونږ الله ته نژدې كړي، ښه نژدې كول، بېشكه الله به د دوی په مينځ كې په هغو خبرو كې فيصله كوي چې دوی په هغو كې اختلاف كوي، بېشكه الله هدايت نه كوي هغه چا ته چې هغه دروغجن، ډېر ناشكره وي

۴:۳۹ - كه الله غوښتلی چې (د ځان لپاره) اولاد ونيسي، (نو) خامخا ده به له خپله مخلوقه هغه غوره كړي وی چې دا يې غواړي، هغه لره پاكي ده. هم دی الله دی چې يو (او) ډېر غالب دی

۵:۳۹ - هغه اسمانونه او ځمكه په حقه سره پيدا كړي دي، هغه شپه په ورځ تاووي (نغاړي) او ورځ په شپه تاووي او هغه لمر او سپوږمۍ مسخر كړي دي، هر يو مقرر كړی شوې نېټې ته روان دی، خبردار شئ! همغه ښه غالب، ښه بخښونكی دی

٦:۳۹ - هغه تاسو له يو نفس نه پيدا كړي يئ، بيا يې له هغه نه د هغه ښځه پيدا كړه او تاسو لپاره يې له څارويو نه اته جوړې پيدا كړې، هغه تاسو د خپلو ميندو په خېټو كې پيدا كوي، يو قسم پيدا كول، وروسته له بل قسم پيدا كولو نه، په دريو تيارو كې، دغه الله ستاسو رب دی، بادشاهي خاص د هغه لپاره ده، نشته دی هېڅ حق معبود مگر هغه دی، نو كوم طرف ته تاسو گرځولی شئ

۷:۳۹ - كه تاسو كفر اختيار كړئ، نو بېشكه الله له تاسو نه ښه بې پروا دی، او هغه د خپلو بنده گانو لپاره كفر نه خوښوي، او كه تاسو شكر وباسئ (نو) دی دغه (شكر) تاسو ته خوښوي، او هېڅ بار وړونكی د بل بار نه وړي، بيا خاص خپل رب ته ستاسو بېرته ورتله دي، نو هغه به تاسو په هغو عملونو خبر كړي چې تاسو به كول، بېشكه هغه د سينو په خبرو ښه عالم دی

۸:۳۹ - او کله چې انسان ته سختي ورسېږي (، نو) خپل رب بلي، په داسې حال کې چې هغه ته رجوع کوونکی وي، بیا چې کله هغه (الله) ده ته له خپل جانب نه نعمت ورکړي (، نو) هېر کړي هغه ذات چې ده به له دې (نعمت) نه مخکې دغه (تکلیف لرې کولو) ته باله، او الله لپاره شریکان مقرر کړي، د دې لپاره چې د هغه (الله) له لارې نه (خلق) گمراه کړي، ته ووایه: ته په خپل کفر سره لږه نفعه واخله، بېشکه ته له دوزخیانو څخه یې

۹:۳۹ - ایا هغه څوك چې هغه د شپې په ساعتونو کې اطاعت کوونکی دی، چې سجده کوونکی او قیام کوونکی وي، له اخرت نه وېرېږي او د خپل رب د رحمت امېد لري، ته ووایه: ایا سره برابرېدلی شي هغه کسان چې پوهېږي او هغه کسان چې نه پوهېږي، بېشکه همدغه د خالصو عقلونو والا نصیحت اخلي

۱۰:۳۹ - ته (دوی ته د الله له جانبه) ووایه: ای زما هغو بنده گانو چې ایمان یې راوړی دی: تاسو له خپل رب نه ووېرېږئ، د هغو کسانو لپاره چې په دنیا کې یې نېکي کړې ده؛ لویه نېکي (او بدله) ده او د الله ځمکه فراخه ده، بېشکه یواځې صبر کوونکو ته د هغوی اجر بې حسابه پوره ورکاوه شي

۱۱:۳۹ - ته (دوی ته) ووایه: بېشکه ما ته حکم راکړ شوی دی چې زه د الله عبادت کوم، په داسې حال کې چې هغه (الله) لره دین خالص کوونکی یم

۱۲:۳۹ - او ما ته حکم راکړی شوی دی چې زه تر ټولو اول مسلمان یم

۱۳:۳۹ - ته (دوی ته) ووایه: بېشکه زه که د خپل رب نافرماني وکړم. د ډېرې لویې ورځې له عذاب نه وېرېږم

۱۴:۳۹ - ته (دوی ته) ووایه: زه خاص د الله عبادت کوم، په داسې حال کې چې هغه لره خپل دین خالص کوونکی یم

۱۵:۳۹ - نو تاسو له هغه نه غیر د څه شي چې غواړئ، عبادت وکړئ، ته ووایه: بېشکه نقصان کوونکي هغه کسان دي چې د قیامت په ورځ یې خپلو ځانونو او خپل اهل ته تاوان رسولی دی. خبردار شئ، دغه (تاوان) همدغه ښکاره تاوان دی

۱۶:۳۹ - د دوی لپاره به د دوی له پاسه د اور چوپالونه وي او د دوی له لاندې نه به هم چوپالونه وي. دغه (عذاب) دی چې الله په ده سره خپل بنده گان وېروي، ای زما بنده گانو! نو تاسو زما نه ووېرېږئ

۱۷:۳۹ - او هغه کسان چې له طاغوت نه یې ځان وساته، یعنې د هغو له عبادت کولو نه او الله ته یې رجوع وکړه، خاص د دوی لپاره زېری دی، نو ته زما په بنده گانو زېری وکړه

۱۸:۳۹ - هغه (بنده گان) چې خبره په غور سره اوري، نو د هغې د تر ټولو ښې پیروي کوي، دا

هغه کسان دي چې الله دوی ته هدايت کړی دی او همدغه کسان د خالص عقل والا دي

۱۹:۳۹ - ايا نو هغه څوك چې په هغه باندې د عذاب خبره ثابته شوې ده، ايا نوته هغه څوك خلاصولی شې چې په اور کې وي

۲۰:۳۹ - لېکن هغه کسان چې له خپل رب نه وېرېږي خاص د دوی لپاره داسې بالاخانې دي چې د هغو له پاسه (نورې) ښې جوړې کړی شوي بالاخانې دي، چې د هغو له لاندې ولې بهېږي، (دا) د الله کړې وعده ده، الله د وعدې مخالفت نه کوي

۲۱:۳۹ - ايا تا نه دي کتلي چې بېشکه الله له بره نه اوبه نازلې کړې دي، بيا يې دغه (اوبه) په ځمکه کې په چينو کې ننه ايستي دي، بيا هغه په دغو (اوبو) سره فصل راوباسي، په دې حال کې چې د هغه رنگونه مختلف وي، بيا هغه وچ شي، نو ته هغه (شين رنگی فصل) تك زېړ وينې، بيا دغه (فصل) لره هغه رژېدلی (مات شوی) وگرځوي، بېشکه په دغه کې د خالصو عقلونو والاو لپاره خامخا نصيحت دی

۲۲:۳۹ - ايا نو هغه څوك چې الله د هغه سينه د اسلام لپاره پرانستلې وي، نو دغه کس په رڼا کې وي د خپل رب له جانبه، پس هلاکت دی هغو کسانو ته چې د هغوی زړونه د الله له ذکره سخت دي، دغه کسان په ښکاره گمراهۍ کې دي

۲۳:۳۹ - الله تر ټولو ښکلی کلام نازل کړی دی، چې داسې کتاب دی چې په خپل مينځ کې مشابه دی، مکرر (او غبرگ) دی، چې له ده نه د هغو کسانو پوستکي ځيگ کېږي چې له خپل رب نه وېرېږي، بيا د دوی پوستکي او د دوی زړونه د الله ذکر ته نرم شي، دغه د الله هدايت دی، چې چا ته وغواړي په ده سره هدايت ورکوي او هغه څوك چې الله يې گمراه کړي، نو د هغه لپاره هيڅوك لار ښودونکی نشته

۲۴:۳۹ - ايا نو هغه څوك چې په خپل مخ سره ځان بچ کوي له سخت عذاب نه په ورځ د قيامت کې او ظالمانو ته به وويل شي: تاسو وڅکئ (سزا د) هغو عملونو چې تاسو به کول

۲۵:۳۹ - هغو کسانو تکذيب کړی و چې له دوی نه مخکې وو، نو په دوی عذاب له هغه ځايه راغی چې دوی نه پوهېدل

۲۶:۳۹ - نو الله په دوی په دنيايي ژوند کې رسوايي وڅکوله او خامخا د اخرت عذاب تر ټولو لوی دی، که چېرې دوی پوهېدلی

۲۷:۳۹ - او يقينًا يقينًا مونږ د خلقو لپاره په دې قرآن کې هر قسمه مثال بيان کړی دی، د دې لپاره چې دوی نصيحت واخلي

۲۸:۳۹ - په داسې حال کې چې دغه عربي (واضح) قرآن دی، د کوږوالي والا نه دی، د دې لپاره چې

دوی پرهېزګاره شي

۲۹:۳۹ - الله یو مثال بیانوي، یو (غلام) سړی دی، په ده کې بدخویه په خپل مینځ کې ناسازه کسان شریکان دي او بل (غلام) سړی دی چې سالم (او پوره) د یو سړي دی، ایا دغه دواړه په حال کې سره برابر دي؟ ټول د کمال صفتونه خاص د الله لپاره دي بلکې د دوی اکثره نه پوهېږي

۳۰:۳۹ - بېشکه ته هم مړ کېدونکی یې او بېشکه دوی (هم) مړ کېدونکي دي

۳۱:۳۹ - بیا بېشکه تاسو به د قیامت په ورځ د خپل رب په وړاندې، یو تربله جګړه کوئ

۳۲:۳۹ - نو له هغه چا نه لوی ظالم څوك دی چې په الله دروغ تړي او رښتیا (قرآن) دروغ ګڼي، کله چې دغه (رښتیا) ده ته راشي؟ ایا په دوزخ کې د کافرانو لپاره استوګنځی نشته؟

۳۳:۳۹ - او هغه کس چې صدق (رښتینی دین) یې راوړ او (هغه چې) د دغه (صدق) تصدیق یې وکړ (نو) هم دغه کسان پرهېزګاران دي

۳۴:۳۹ - د دوی لپاره د خپل رب په نېز هغه څه دي چې دوی یې غواړي، دغه د نېکي کوونکو بدله ده

۳۵:۳۹ - د دې لپاره چې الله له دوی نه هغه بدتر ګناهونه لرې (ختم) کړي چې دوی کړي دي او دوی ته د دوی اجر بدله ورکړي، په سبب د هغو تر ټولو ښکلو عملونو چې دوی به کول

۳۶:۳۹ - ایا الله خپل بنده ته ښه کافي کېدونکی نه دی او دوی تا په هغو (معبودانو) وېروي چې له دغه (الله) نه غیر دي او هغه څوك چې الله یې ګمراه کړي، نو د هغه لپاره هیڅوك نېغه لار ښودونکی نشته

۳۷:۳۹ - او هغه څوك چې الله ورته هدایت وکړي، نو د هغه لپاره هیڅوك ګمراه کوونکی نشته. ایا الله ښه غالب او انتقام والا نه دی؟

۳۸:۳۹ - او یقینًا که ته له دوی نه تپوس وکړې چې اسمانونه او ځمکه چا پیدا کړي دي (، نو) دوی به خامخا لازمًا ووایي چې ''الله''، ته (دوی ته) ووایه: تاسو ما ته خبر راکړئ، هغه (معبودان) چې تاسو یې له الله نه غیر بلئ. که چېرې الله ما ته د ضرر رسولو اراده وکړي، ایا دغه (ستاسو معبودان) د هغه د ضرر لرې کوونکي دي؟ یا که هغه (الله) ما سره د رحمت اراده وکړي، ایا دغه (معبودان) د هغه د رحمت منع کوونکي دي؟ ته (دوی ته) ووایه: زما لپاره بس الله کافي دی، خاص په ده باندې توکل کوونکي توکل کوي

۳۹:۳۹ - ته (دوی ته) ووایه: ای زما قومه: تاسو په خپله طریقه (او ځای) عمل کوئ، بېشکه زه هم عمل کوونکی یم، نو ژر به تاسو وپېژنئ

۴۰:۳۹ - هغه څوك چې ده ته به داسې عذاب راشي چې دا به وشرموي او په ده به دایمي عذاب

نازل شي

۴۱:۳۹ - بېشکه مونږ په تا باندې کتاب نازل کړی دی د خلقو لپاره په حقه سره، نوهغه څوك چې په سمه لار روان شي، نو د خپل ځان لپاره يې نفع ده او هغه څوك چې گمراه شي، نو بېشکه همدا خبره ده چې دی د همدغه (ځان) په ضرر گمراه کېږي او ته په دوی باندې له سره نگران نه يې

۴۲:۳۹ - الله نفسونه (ساگانې) قبضوي د هغو د مرگ په وخت کې او هغه (نفس) چې مړ نه وي د (هغه ساه) د خوب په وخت کې (قبضوي)، بيا هغه (ساه) ساتي چې په هغې يې د مرگ فيصله کړې وي او هغه بله تر مقررې نېټې پورې راخوشې کړي، بېشکه په دغو (قبض، ساتلو او پرېښودلو) کې خامخا لويې نښې دي د هغه قوم لپاره چې ښه فکر کوي

۴۳:۳۹ - بلکې ايا دوی له الله نه غير شفاعت کوونکي نيولي دي، ته (دوی ته) ووايه: ايا (دوی به شفاعت کوي!) اگر که دوی په داسې حال کې وي چې نه د څه شي مالکان وي او نه عقل لري

۴۴:۳۹ - ته (دوی ته) ووايه: شفاعت ټول خاص د الله په اختيار کې دی، خاص د هغه لپاره د اسمانونو او ځمکې بادشاهي ده، بيا به تاسو خاص هغه ته بېرته بېول کېږئ

۴۵:۳۹ - او کله چې الله يواځې ياد کړی شي (، نو) د هغو کسانو زړونه سخت تنگ شي چې په اخرت ايمان نه لري او کله چې هغه (معبودان، بتان) ياد کړی شي چې له هغه (الله) نه غير دي (، نو) ناڅاپه دوی ډېر خوشحالېږي

۴۶:۳۹ - ته ووايه: ای الله د اسمانونو اوځمکې پيدا کوونکيه، د غيبو او د ښکاره وو عالِمه، ته به د خپلو بنده گانو په مينځ کې فيصله کوې، په هغو خبرو کې چې دوی به په هغو کې اختلاف کاوه

۴۷:۳۹ - او که په رښتيا سره د ظلم (شرك) کوونکو کسانو لپاره هغه څه چې په ځمکه کې دي، ټول مملوك شي او د دغه په مثل نور ورسره شي، نو دوی به خامخا د قيامت په ورځ کې له بدتر عذاب نه د خلاصي لپاره دغه فديه ورکړي. او دوی ته به د الله له جانبه هغه څه ښکاره شي چې دوی به يې گمان هم نه کاوه

۴۸:۳۹ - او دوی ته به د خپلو کړو عملونو بدۍ ښکاره شي او له دوی نه به هغه (عذاب) چاپېره شي چې دوی به په هغه پورې استهزا کولې

۴۹:۳۹ - نو کله چې انسان ته تکليف ورسي (، نو) مونږ بلي، بيا چې کله ده ته مونږ له خپله جانبه نعمت ورکړو (، نو) دی وايي: دا خو ما ته يواځې (زما) د علم په سبب راکړ شوی دی، بلکې دغه (ورکړه) ازمېښت دی، او لېکن د دوی اکثره نه پوهېږي

۵۰:۳۹ - يقينًا دغه خبره هغو کسانو (هم) کړې وه چې له دوی نه مخکې وو، نو د دغو کسانو

هېڅ په کار رانغلل هغه (مالونه) چې دوی به ګټل

۵۱:۳۹ - نو دغو (پخوانیو خلقو) ته د خپلو کړو عملونو بدۍ ورسېدلې او هغه کسان چې ظلم یې کړی دی له دغو خلقو نه (چې قریش دي) ژر به دوی ته د دوی د کړو عملونو بدۍ ورسېږي او دوی (مونږ لره) عاجزه کوونکي نه دي

۵۲:۳۹ - او ایا دوی نه پوهېږي چې بېشکه الله رزق فراخوي چا لپاره چې وغواړي او تنګوي یې، بېشکه په دغو (فراخولو اوتنګولو) کې خامخا ډېرې نښې دي د هغه قوم لپاره چې ایمان راوړي

۵۳:۳۹ - ته (دوی) ته ووایه: ای زما هغو بنده ګانو چې په خپلو ځانونو یې زیاتی کړی دی! تاسو د الله له رحمت نه مه نااُمېده کېږئ، بېشکه الله ټول ګناهونه بخښي، بېشکه دغه (الله)، همه دی ښه بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۵۴:۳۹ - او تاسو خپل رب ته رجوع وکړئ او هغه ته غاړه کېږدئ، مخکې له دې نه چې په تاسو عذاب راشي، بیا به تاسو سره مدد نه کولی شي

۵۵:۳۹ - او تاسو د تر ټولو ښه حکم (قرآن) پیروي وکړئ هغه چې تاسو ته د خپل رب له جانبه نازل کړی شوی دی مخکې له دې نه چې په تاسو عذاب راشي ناڅاپه، حال دا چې تاسو به نه پوهېږئ

۵۶:۳۹ - (تاسو اوس خپل رب ته رجوع وکړئ) څکه چې نفس به وايي: ای زما حسرته! په هغه چې ما د الله په حق کې تقصیر (او کمی) کړی دی او یقینًا زه خامخا د استهزا کوونکو څنې وم

۵۷:۳۹ - یا به وايي: که حقیقتًا الله ما ته هدایت کړی وی (، نو) زه به خامخا د پرهېزګارانو څنې وی

۵۸:۳۹ - یا به وايي کله چې عذاب ویني: کاشکې په رښتیا سره ما ته بېرته تلل وی، نو زه به له نېکي کوونکو څنې وم

۵۹:۳۹ - ولې نه! یقینًا تا ته زما ایتونه راغلي وو، نو تا د هغو تکذیب کړی و او تکبر دې کړی و او ته وې له کافرانو نه

۶۰:۳۹ - او د قیامت په ورځ به ته هغه کسان ووینې چې په الله یې دروغ تړلي وو، په داسې حال کې چې د دوی مخونه به تك تور کړی شوي وي، ایا په دوزخ کې د تکبر کوونکو لپاره ځای نشته!

۶۱:۳۹ - او الله به هغو کسانو ته چې ځان یې (له شرك نه) بچ ساتلی دی، د خپلې کامیابۍ (او فلاح) په وجه نجات ورکړي، په داسې حال کې چې دوی ته به نه سختي رسېږي او نه به دوی غمجن کېږي

۶۲:۳۹ - الله د هر شي پیدا کوونکی دی او هغه په هر شي باندې نګران دی

۶۳:۳۹ - خاص همم ده لره د اسمانونو او ځمکې چابیانې دي، او هغه کسان چې د الله په ایتونو سره کافران شوي دي، همم دغه کسان تاوانیان دي

۶۴:۳۹ - ته (دوی ته) ووایه: ایا نو تاسو ما ته حکمم کوئ چې زه د غیر الله عبادت وکړمم؟ ای جاهلانو!

۶۵:۳۹ - او یقینًا یقینًا تا ته وحي کړی شوې ده او هغو کسانو ته چې له تا نه مخکې وو (داسې چې) قسمم دی که تا شرك وکړ (نو) ستا عمل به خامخا لازمًا برباد شي او ته به خامخا لازمًا له تاوانیانو څخه شې

۶۶:۳۹ - بلکې ته خاص د الله عبادت کوه او اوسه له شکر کوونکو څخه

۶۷:۳۹ - او دغو (مشرکانو) د الله تعظیمم ونه کړ د هغه حق تعظیمم، حال دا چې ځمکه ټوله د ده په قبضه کې ده د قیامت په ورځ کې او اسمانونه د ده په ښي لاس کې رانغاړل (راټول کړی) شوي دي، ده لره پاکي ده او هغه ډېر اوچت دی له هغو څیزونو نه چې دوی یې (له هغه سره) شریکوي

۶۸:۳۹ - او په شپېلۍ کې به پو کړی شي، نو بې هوشه (بې خوده) به شي هر هغه څوك چې په اسمانونو کې دي او هر هغه څوك چې په ځمکه کې دي، غیر له هغه چا نه چې الله یې وغواړي، بیا به په دې کې بل ځلې پو کړی شي، نو ناڅاپه به دوی ولاړ وي، گوري به (حیران حیران)

۶۹:۳۹ - او ځمکه به د خپل رب په نور سره روښانه شي او کتاب (عمل نامه) به کېښودل شي او نبیان او شاهدان به راوستل شي او د دوی په مینځ کې به په حق (او انصاف) سره فیصله وکړی شي، په داسې حال کې چې په دوی به هېڅ ظلمم ونه کړی شي

۷۰:۳۹ - او هر نفس ته به د ده کړی عمل پوره ورکړی شي او هغه (الله) ښه عالمم دی په هغو عملونو چې دوی یې کوي

۷۱:۳۹ - او کافران شوي کسان به دوزخ ته ډلې ډلې روان کړی شي، تر هغه پورې چې کله دوی دغه (دوزخ) ته راشي، (نو) د ده دروازې به پرانستل شي او دوی ته به د دغه (جهنمم) نگرانان ووایي: ایا تاسو ته رسولان نه وو راغلي، چې له همم ستاسو نه وو، چې تاسو ته به یې ستاسو د رب ایتونه لوستل او تاسو به یې د خپلې دغې ورځې له ملاقات نه وېرولئ؟ دوی به ووایي: ولې نه! (راغلي وو) او لېکن د عذاب خبره په کافرانو باندې ثابته شوې وه

۷۲:۳۹ - وبه ویل شي (دوی ته): تاسو د دوزخ په دروازو کې ننوځئ، په داسې حال کې چې په دغه (دوزخ) کې به تل یئ، نو د تکبر کوونکو استوگنه بده ده

۷۳:۳۹ - او هغه کسان به چې له خپل رب نه وېرېدل، جنت ته ډلې ډلې روان کړی شي، تر هغه

پورې چې کله دوی ده ته راشي، په دې حال کې چې د ده دروازې به (له مخکې نه) پرانستل شوي وي او دوی ته به د دغه (جنت) نگرانان ووايي: په تاسو دې سلام وي، تاسو پاك يئ، نو دغو ته داخل شئ، په داسې حال کې چې تل اوسېدونکي به يئ

۷۴:۳۹ - او دوی به وايي: ټول د کمال صفتونه هغه الله لره خاص دي چې زمونږ سره يې خپله وعده رښتينې کړه او مونږ ته يې دغه ځمکه ميراث راکړه، چې په دغه جنت کې مونږ ځای نيسو، هر ځای چې مونږ وغواړو، نو د (نېك) عمل کوونکو اجر ښه دی

۷۵:۳۹ - او (ای نبي) ته به ملايك ووينې، چې د عرش گېر چاپېره راتاوېدونکي وي، چې د خپل رب له حمد سره تسبيح وايي او د دغو (خلقو) په مينځ کې به په حقه سره فيصله وکړی شي او وبه ويل شي: ټول د کمال صفتونه خاص د الله لپاره دي چې د عالمونو ښه پالونکی دی

## (مکي) ښښونکی - غافر ۴۰

۱:۴۰ - حا، ميم

۲:۴۰ - د کتاب نازلول د الله له جانبه دي چې ډېر غالب، ښه پوه دی

۳:۴۰ - د گناهونو بخښونکی او د توبې قبلوونکی دی، ډېر سخت عذاب والا د لوی فضل والا دی، نشته دی هېڅ حق معبود مگر همم دی دی، خاص همم ده ته بېرته ورتله دي

۴:۴۰ - د الله په ايتونو کې جگړې نه کوي مگر هغه کسان چې کافران شوي دي، نو په ښارونو کې د دوی تگ راتگ دې تا تېر نه باسي

۵:۴۰ - له دغو (قريشو) نه مخکې د نوح قومم تکذيب کړی و او د دوی (قومم نوح) نه وروسته نورو ډلو (همم) او هر يو امت د خپل رسول په باره کې اراده وکړه چې هغه راگېر کړي او دوی په باطله سره جگړې وکړي، د دې لپاره چې په دغه (باطل) سره حق ختمم (او زايله) کړي، نو ما دوی ونيول، بيا نو زما سزا ورکول څنگه وو؟

۶:۴۰ - او همداسې ستا د رب خبره په هغو کسانو لازمه شوې ده چې کافران شوي دي، چې بېشکه دوی د اور ملگري دي

۷:۴۰ - (له ملايکو څخه) هغه کسان چې عرش اوچتوي او هغه (ملايك) چې د دغه (عرش) گېر چاپېره دي، دوی د خپل رب د ستاينې سره تسبيح وايي او په ده ايمان لري او د هغو کسانو لپاره مغفرت غواړي چې ايمان يې راوړی دی (او وايي:) ای زمونږه ربه! ته د رحمت په لحاظ سره هر شي ته رسېدلی يې، نو ته هغو کسانو ته بخښنه وکړې چې توبه يې ايستلې ده او ستا د لارې پيروي يې کړې ده او ته دوی د دوزخ له عذاب نه وساته

۸:۴۰ - ای زمونږه ربه! او ته دوی د تل استوګنې هغو جنتونو ته ننباسه چې تا يې له دوی سره وعده کړې ده، او هغه څوك چې صلاحيت ولري د دوی له پلرونو او د دوی له ښځو او د دوی له اولادونو څخه (هغه هم ننباسه)، بېشکه ته، هم ته ښه غالب، ډېر حکمت والا يې

۹:۴۰ - او ته دوی له سختيو نه بچ وساته او هغه څوك چې ته يې په دغې ورځ کې له سختيو نه بچ وساتې، نو يقينًا تا په هغه رحم وکړ او هم دغه ډېره لويه کاميابي ده

۱۰:۴۰ - بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي، دوی ته به (په دوزخ کې) اواز وکړی شي: يقينًا (تاسو ته) د الله غصه کېدل ډېر لوی وو ستاسو خپلو ځانونو ته له غصه کېدلو نه، کله چې به تاسو ايمان ته بللی شوئ، نو تاسو به کفر کاوه

۱۱:۴۰ - (نو) دوی به ووايي: ای زمونږه ربه! تا مونږ دوه ځلې مړه کړو او دوه ځل دې مونږ ژوندي کړو، نو مونږ (اوس) د خپلو ګناهونو اقرار وکړ، نو ايا (له دوزخ نه زمونږ) وتلو ته کومه لار شته؟

۱۲:۴۰ - دغه (ابدي عذاب) په دې سبب دی چې بېشکه شان دا دی چې کله به الله يواځې وبلل شو (نو) تاسو به کفر کاوه او که له ده سره به شريك ونيول شو (نو) تاسو به ايمان راوړ، نو حکم خاص هغه الله لره دی چې ډېر اوچت، ډېر لوی دی

۱۳:۴۰ - دی همغه ذات دی چې تاسو ته خپلې نښې ښيي او تاسو لپاره له اسمان نه رزق نازلوي او پند نه اخلي مګر هغه څوك چې (حق ته) رجوع کوي

۱۴:۴۰ - نو تاسو الله بلئ، په داسې حال کې چې همده ته د دين خالص کوونکي يئ اګر که کافران يې بد ګڼي

۱۵:۴۰ - (دغه الله) د اوچتو درجو والا (د درجو اوچتونکی) دی، د عرش مالك دی، په خپلو بنده ګانو کې په چا چې وغواړي، په خپل حکم سره وحي نازلوي، د دې لپاره چې دغه (بنده خلقو لره) د ملاقات له ورځې نه ووېروي

۱۶:۴۰ - له هغې ورځې نه چې دوی به ښېخي ښکاره وي، له الله نه به د دوی هېڅ شی پټ نه وي، نن ورځ د چا بادشاهي ده؟ خاص د الله (بادشاهي ده) چې يو دی، ښه غالب دی

۱۷:۴۰ - نن ورځ به هر نفس ته د هغه د کړي عمل بدله ورکړی شي، نن ورځ ظلم ښېخي نشته، بېشکه الله ډېر ژر حساب کوونکی دی

۱۸:۴۰ - او ته دوی له نژدې ورځې نه ووېروه کله چې زړونه به له چنګړکو سره وي، په داسې حال کې چې له غم نه به ډك وي، د ظالمانو لپاره به نه هيڅوك پوخ دوست وي او نه کوم داسې شفاعت کوونکی چې خبره يې ومنله شي

۱۹:۴۰ - هغه د سترګو په خيانت پوهېږي او په هغو خبرو چې سينې يې پټوي (او رازونه وي)

۲۰:۴۰ - او الله په حقه سره فیصله کوي او هغه (معبودان) چې دوی یې له هغه (الله) نه غیر بلي، دغه د هېڅ شي فیصله نشي کولی، بېشکه الله، همه دی ښه اورېدونکی، ښه لیدونکی دی

۲۱:۴۰ - ایا دوی په ځمکه کې نه دي ګرځېدلي، پس چې وګوري چې د هغو کسانو انجام څنګه و، چې له دوی نه مخکې وو، هغوی له دوی نه په قوت کې او په ځمکه کې د نښو (او یادګارونو) په لحاظ ډېر سخت (او مضبوط) وو، نو الله دوی د خپلو ګناهونو په سبب ونیول او د دوی لپاره له الله نه هیڅوك بچ کوونکی نه و

۲۲:۴۰ - دغه په دې سبب چې یقینًا دوی داسې وو چې دوی ته خپلو رسولانو ښکاره دلیلونه راوړل، نو (بیا هم) دوی کافران شول، نو الله دوی ونیول، بېشکه هغه، ډېر زورور، ډېر سخت عذاب والا دی

۲۳:۴۰ - او یقینًا یقینًا مونږ موسىٰ له خپلو معجزو او ښکاره دلیل سره لېږلی و

۲۴:۴۰ - فرعون او هامان او قارون ته، نو دوی وویل: (دا خو) جادوګر دی، سخت دروغجن دی

۲۵:۴۰ - نو کله چې هغه دوی ته زمونږ له جانبه حق راوړ، دوی وویل: تاسو د هغو کسانو زامن ووژنئ چې له ده سره یې ایمان راوړی دی او د دوی ښځې (لوڼه) ژوندۍ پرېږدئ او د کافرانو چل مکر نه دی مګر په تباهۍ کې

۲۶:۴۰ - او فرعون (خپلو درباریانو ته) وویل: تاسو ما پرېږدئ چې زه (دا) موسىٰ ووژنم او دا دې خپل رب ته چغې ووهي، بېشکه زه له دې وېرېږم چې دا به ستاسو دین بدل کړي، یا به په ځمکه کې فساد خور کړي

۲۷:۴۰ - او موسىٰ وویل چې بېشکه ما د خپل رب او ستاسو د رب پناه نیولې ده له هر تکبر کوونکي نه، چې د حساب په ورځې ایمان نه لري

۲۸:۴۰ - او په اٰل فرعون کې یو مومن سړي چې خپل ایمان یې پټ ساتلو، وویل: ایا تاسو یو سړی په دې وجه وژنئ چې هغه وایي: زما رب الله دی، حال دا چې یقینًا هغه تاسو ته د خپل رب له جانبه ښکاره دلیلونه هم راوړي دي او که دی دروغجن وي، نو په همده باندې د خپلو دروغو ضرر دی او که دی رښتینی وي (نو بیا خو به) تاسو ته د هغه (عذاب) ځینې برخه درورسېږي چې دا یې تاسو ته وعده درکوي، بېشکه الله هدایت نه کوي هغه چا ته چې هغه له حده تېرېدونکی، ډېر دروغجن وي

۲۹:۴۰ - ای زما قومه! نن ورځ ستاسو بادشاهي ده، په داسې حال کې چې په ځمکه کې غالب یئ، نو مونږ به د الله له عذاب نه څوك بچ کوي که هغه پر مونږ راشي؟ فرعون وویل: زه تاسو ته نه ښیم مګر هغه خبره چې زه یې وینم او زه تاسو ته ښودنه نه کوم مګر د سمې درستې لارې

۳۰:۴۰ - او هغه کس وویل چې ایمان یې راوړی و: ای زما قومه! بېشکه زه په تاسو د (تېرو) ډلو د ورځې له مثل نه وېرېږم

۳۱:۴۰ - د نوح د قوم او عادیانو او ثمودیانو او د هغو کسانو د حال له مثل نه چې له دوی نه وروسته وو او الله په بنده گانو د هېڅ ظلم اراده نه کوي

۳۲:۴۰ - او ای زما قومه! زه په تاسو یو بل ته د چیغو وهلو له ورځې نه وېرېږم

۳۳:۴۰ - هغه ورځ چې تاسو به وگرځئ شا اړوونکي، په داسې حال کې چې تاسو لپاره به له الله نه هیڅوك بچ کوونکی نه وي. او هغه څوك چې الله یې گمراه کړي، نو د هغه لپاره هیڅوك هدایت ورکوونکی نشته

۳۴:۴۰ - او یقینًا یقینًا تاسو ته له ده نه مخکې یوسف په واضحو دلیلونو سره راغلی و، نو تاسو د هغه څه په باره کې چې تاسو ته هغه راوړی و؛ تل په شك کې وئ، تر هغه پورې چې کله هغه مړ شو، تاسو وویل: له ده نه وروسته به الله له سره هېڅ رسول راونه لېږي، همداسې الله گمراه کوي هغه څا لره چې هغه له حده تېرېدونکی، شك کوونکی دی

۳۵:۴۰ - هغه کسان چې د الله په ایتونو کې جگړې کوي بې له کوم داسې دلیله چې دوی ته راغلی وي، (دغه) د الله په نېز او د هغو کسانو په نېز چې ایمان یې راوړی د غضب په لحاظ غټه خبره ده، همداسې الله د تکبر کوونکي او جبر کوونکي په هر (جز د) زړه باندې مهر لگوي

۳۶:۴۰ - او فرعون وویل: ای هامانه! ته زما لپاره یوه ډېره اوچته ماڼۍ جوړه کړه، ښایي چې زه لارو ته ورسېږم

۳۷:۴۰ - داسمانونو لارو ته، بیا د موسیٰ الله له بره وگورم او بېشکه زه یقینًا دا دروغجن گڼم او همداسې فرعون ته خپل بد عمل ښایسته کړی شوی و، او له (حقې) لارې نه منع کړی شوی و او د فرعون چل (او مکر) نه و مگر په تباهۍ کې

۳۸:۴۰ - او هغه کس چې ایمان یې راوړی و، وویل: ای زما قومه! تاسو زما پیروي وکړئ چې زه تاسو ته د هدایت لاره وښیم

۳۹:۴۰ - ای زما قومه! بېشکه همدا خبره ده چې دغه دنیایي ژوند خو لږه فایده ده او یقینًا اخرت چې دی، هم هغه د قرار کور دی

۴۰:۴۰ - هر څوك چې بد کار وکړي، نو ده ته به بدله نه ورکولی شي مگر په مثل د دغه (بد کار) او هر څوك چې نېك عمل وکړي، سړی وي، یا ښځه، په داسې حال کې چې مومن وي، نو دغه کسان به جنت ته داخلېږي، دوی ته به په دغه (جنت) کې بې حسابه رزق ورکول کېږي

۴۱:۴۰ - او ای زما قومه! په ما څه چل دی چې زه تاسو نجات (او خلاصي) ته راغواړم او تاسو ما

اور ته رابلئ

۴۲:۴۰ - تاسو ما رابلئ د دې لپاره چې زه په الله سره کافر شم او له هغه سره هغه شی شریك کړم چې ما ته د دغه (شي په اله کېدو) هېڅ علم نشته، حال دا چې زه تاسو ډېر غالب، ډېر مغفرت کوونکي (الله) ته رابولم

۴۳:۴۰ - حقه خبره دا ده چې یقینًا هغه (معبود) چې تاسو ما (د) هغه (عبادت) ته بلئ، د هغه لپاره خو نه په دنیا کې څه بلل شته او نه په اخرت کې او دا چې بېشکه زمونږ بېرته ورتلل خاص الله ته دي او دا چې یقینًا له حده تېرېدونکي، همدغه د اور ملګري دي

۴۴:۴۰ - پس ژر ده چې تاسو به دغه خبرې یادوئ چې زه یې تاسو ته (اوس) وایم. او زه خپل کار الله ته سپارم، بېشکه الله (خپلو) بنده ګانو لره ښه لیدونکی دی

۴۵:۴۰ - نو الله هغه د دوی د مکرونو له بدیو نه بچ وساته او (پخپله) اٰل فرعون ډېر سخت عذاب ګېرکړل

۴۶:۴۰ - (د دوزخ) اور (چې دی) دوی هغه ته هر سبا او هر بېګاه وړاندې کاوه شي او په هغې ورځ کې چې قیامت قایم شي (نو ملایکو ته به وویل شي:) تاسو ال فرعون لره تر ټولو سخت عذاب ته ننباسئ

۴۷:۴۰ - او (یاد کړه) هغه وخت چې دوی به په خپل مینځ کې جګړې کوي، نو کمزوري به هغو کسانو ته وایي چې تکبر یې کاوه: بېشکه مونږ خو ستاسو پیروي کوونکي وو، نو ایا تاسو زمونږ نه له اور ځنې څه برخه لرې کوونکي یئ؟

۴۸:۴۰ - هغه کسان به (په جواب کې) ووایي چې تکبر یې کړی و: بېشکه مونږ ټول په دغه (دوزخ) کې یو، بېشکه الله د بنده ګانو په مینځ کې فیصله کړې ده

۴۹:۴۰ - او هغه کسان به چې (د دوزخ) په اور کې دي، د جهنم نګرانانو ته ووایي: تاسو له خپل رب نه دعا وغواړئ چې زمونږ په عذاب کې بس یوه ورځ تخفیف وکړي

۵۰:۴۰ - دوی به (په جواب کې) ووایي: ایا تاسو ته به ستاسو رسولان په واضحو دلیلونو سره نه راتلل؟ دوی (دوزخیان) به ووایي: ولې نه (نو) دوی (د دوزخ نګرانان) به ووایي، پس تاسو (پخپله) دعا وکړئ او د کافرانو دعا نه ده مګر په ضیاع کې

۵۱:۴۰ - بېشکه مونږ خامخا د خپلو رسولانو او د هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی، په دنیایي ژوند کې مدد کوو او په هغې ورځ کې (هم) چې ګواهان به ودرېږي

۵۲:۴۰ - په هغې ورځې کې چې ظالمانو (مشرکانو) ته به د هغوی معذرت هېڅ نفع نه رسوي او د همدوی لپاره لعنت دی او د همدوی لپاره بد کور (دوزخ) دی

۵۳:۴۰ - او يقينًا يقينًا مونږ موسىٰ ته هدايت (تورات) ورکړی و او بني اسرائيلو ته مو کتاب ميراث ورکړ

۵۴:۴۰ - په داسې حال کې چې د خالصو عقلونو والاو ته هدايت او پند و

۵۵:۴۰ - نو (ای نبي) ته صبر وکړه! بېشکه د الله وعده حقه ده او د خپلې گناه لپاره بخښنه وغواړه او د ورځې په اخره او اوله برخه کې د خپل رب له ستاينې سره تسبيح وايه

۵٦:۴۰ - بېشکه هغه کسان چې د الله په ايتونو کې جگړې کوي، بې له داسې دليله چې دوی ته راغلی وي، د دوی په سينو کې نه دی مگر کبر چې دوی دغه (د کبر مقتضا) ته رسېدونکي نه دي، نو ته په الله پورې پناه ونيسه، بېشکه هغه، هم هغه ښه اورېدونکی، ښه ليدونکی دی

۵۷:۴۰ - يقينًا د اسمانونو او ځمکې پيدا کول د خلقو له پيدا کولو نه ډېر لوی دي او لېکن د خلقو اکثريت نه پوهېږي

۵۸:۴۰ - او ړوند او بينا سره نه برابرېږي او نه هم هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی او نېك عملونه يې کړي دي او بدکاره (سره نه برابرېږي) تاسو ډېر لږ نصيحت اخلئ

۵۹:۴۰ - بېشکه قيامت خامخا راتلونکی دی، په ده کې هېڅ شك نشته. او لېکن د خلقو اکثريت ايمان نه راوړي

٦۰:۴۰ - او ستاسو رب فرمايي: تاسو ما وبلئ چې زه ستاسو دعا قبوله کړم. بېشکه هغه کسان چې زما له عبادت نه تکبر کوي، ژر ده چې دوی به دوزخ ته ننوځي، په داسې حال کې چې خوار او ذليله به وي

٦۱:۴۰ - الله هغه ذات دی چې تاسو لپاره يې شپه پيدا کړې ده، د دې لپاره چې تاسو په دې کې ارام حاصل کړئ او ورځ يې روښانه (گرځولې ده)، بېشکه الله په خلقو باندې خامخا ډېر فضل کولو والا دی او لېکن د خلقو اکثريت شکر نه وباسي

٦۲:۴۰ - دغه الله ستاسو رب دی چې د هر شي پيدا کوونکی دی، نشته هېڅ لايق د عبادت مگر همدی دی، نو کوم طرف ته تاسو گرځولی شئ

٦۳:۴۰ - همداسې به (له حق نه) گرځولی کېدل هغه کسان چې د الله له ايتونو نه به يې انکار کاوه

٦۴:۴۰ - الله هغه ذات دی چې تاسو لپاره يې ځمکه قرار ځای او اسمان چت گرځولی دی او ستاسو صورتونه يې جوړ کړي دي، پس ستاسو صورتونه يې ښکلي جوړ کړي دي او تاسو ته يې له پاکيزه څيزونو نه رزق عطا کړی دی، دغه الله ستاسو رب دی، نو الله رب العالمين ډېر برکتي دی

٦٥:٤٠ - همہ دی (تل) ژوندی دی، نشته هېڅ حق معبود مگر همہ دی دی، نو تاسو دا بلئ، په داسې حال کې چې همہ ده لره د دين خالص کوونکي يئ، ټول د کمال صفتونه خاص د الله رب العالمين لپاره دي

٦٦:٤٠ - ته (دوی ته) ووايه: بېشکه زه له دې نه منع کړی شوی يمہ چې د هغو (معبودانو) عبادت وکړمہ چې تاسو يې له الله نه غير بلئ، کله چې ما ته زما د رب له جانبه ښکاره دليلونه راغلل او ما ته حکمہ شوی دی چې زه رب العالمين ته تسليمہ شمہ

٦٧:٤٠ - دی همغه ذات دی چې تاسو يې له خاورې پيدا کړئ، بيا يې له نطفې نه، بيا يې د وينې له ټوټې نه: بيا هغه تاسو راوباسي، په داسې حال کې چې واړه (ماشومان) يئ، بيا (هغه ستاسو تربيت کوي)، د دې لپاره چې تاسو خپل قوت (او ځوانۍ) ته ورسېږئ، بيا (مو ژوندي ساتي) د دې لپاره چې زاړه (بوډاگان) شئ، او ځينې په تاسو کې هغه دي چې له دغه (وخت) نه مخکې وفات کولی شي. او (تاسو ساتي) د دې لپاره چې تاسو مقررې نېټې ته ورسېږئ او د دې لپاره چې تاسو له عقل نه کار واخلئ

٦٨:٤٠ - دی همغه ذات دی چې ژوندي کول کوي او مړه کول کوي، نو کله چې د يو کار (د ايجاد) فيصله وکړي، نو بېشکه همدا خبره ده چې ده ته وايي: موجود شه! نو هغه موجود شي

٦٩:٤٠ - ايا تا هغه کسان نه دي ليدلي چې د الله په ايتونو کې جگړې کوي، کومہ طرف ته دوی گرځولی شي؟

٧٠:٤٠ - هغه کسان چې تکذيب کوي د کتابونو او د هغه څه چې په هغو سره مونږ خپل رسولان لېږلي وو، پس ژر به دوی پوه شي

٧١:٤٠ - کله چې به د دوی په غاړو کې طوقونه او ځنځيرونه وي، چې دوی به راښکلی کېږي

٧٢:٤٠ - په ډېرو گرمو اوبو کې، بيا به دوی (د دوزخ) په اور کې سوځولی شي

٧٣:٤٠ - بيا به دوی ته ويلی شي چې چېرته دي هغه (معبودان) چې تاسو به شريکول

٧٤:٤٠ - له الله نه غير؟ دوی به ووايي: هغه زمونږ نه ورك شول، بلکې مونږ له دې نه مخکې هېڅ شی نه باله، همداسې الله کافرانو لره گمراه کوي

٧٥:٤٠ - دغه په سبب د دې چې تاسو به په ځمکه کې ناحقه خوشحالي (اولويي) کوله او په سبب د هغه چې تاسو به تکبر کاوه

٧٦:٤٠ - تاسو د جهنمہ په دروازو کې ننوځئ، په داسې حال چې په دغه (جهنمہ) کې به همېشه يئ، نو د متکبرينو استوگنځی بد دی

٧٧:٤٠ - نو ته صبر کوه، بېشکه د الله وعده حقه ده، نو که خامخا مونږ تا ته ځينې د هغه (عذاب)

وښیو چې مونږ یې دوی ته وعده ورکوو، یا مونږ تا وفات کړو، نو هم مونږ ته به دوی بېرته راوستلی شي

۷۸:۴۰ - او یقینًا یقینًا مونږ له تا نه مخکې ډېر رسولان رالیږلي وو، په دوی کې ځینې هغه دي چې مونږ تا ته بیان کړي دي او په دوی کې ځینې هغه دي چې مونږ تا ته نه دي بیان کړي. او د هېڅ رسول لپاره دا ممکن نه وه چې هغه پخپله کومه معجزه راوړي مګر د الله په حکم سره، نو کله چې د الله حکم راشي (نو) په حق سره به فیصله وکړی شي او په دغه وخت (او ځای) کې به باطل پرستان تاوانیان شي

۷۹:۴۰ - الله هغه ذات دی چې تاسو لپاره یې څاروي پیدا کړي دي، د دې لپاره چې تاسو په دوی کې په ځینو سورلي کوئ او په دوی کې ځینې تاسو خورئ

۸۰:۴۰ - او تاسو لپاره په دغو (څارویو) کې ډېرې نفعې دي او د دې لپاره چې تاسو په دوی سره هغه حاجت ته ورسېږئ چې ستاسو په سینو کې دی، او په دغو باندې او په کشتیو باندې تاسو سورول کېږئ

۸۱:۴۰ - او هغه (الله) تاسو ته خپلې نښې ښیي، نو تاسو د الله له کومو نښو نه انکار کوئ؟

۸۲:۴۰ - ایا نو دوی په ځمکه کې ګرځېدلي نه دي، پس چې دوی کتلي وی چې د هغو خلقو انجام څنګه و چې له دوی نه مخکې وو، هغوی له دوی نه زیات وو او د قوت او په ځمکه کې د نښو په لحاظ ډېر سخت وو، نو د دوی هېڅ په کار رانغلل هغه څه چې دوی به ګټل

۸۳:۴۰ - نو کله چې دوی ته د دوی پیغمبران په ښکاره دلیلونو سره راغلل، (نو) دوی به په هغه علم خوشالي (او لویي) شروع کړه چې له دوی سره و، او ګېرچاپېره به شو هغه څه چې دوی به په هغه پورې استهزاء کولې

۸۴:۴۰ - نو کله چې به دوی زمونږ عذاب ولیده، دوی به وویل: مونږ په الله ایمان راوړی دی چې ایکې یواځې دی، او مونږ کافران شولو په هغه څیز چې مونږ به د هغه په سبب مشرکان وو

۸۵:۴۰ - نو دغه (کار داسې) نه و چې دوی ته د دوی ایمان راوړل نفع ورکړې وي کله چې دوی زمونږ عذاب ولیده، (دا) ده ایښې طریقه د الله هغه طریقه چې د هغه په بنده ګانو کې تېره شوې ده او په دغه ځای (او وخت) کې کافران تاوانیان شول

## (مکي) څرګند - فصلت ۴۱

۱:۴۱ - حا، میم

۲:۴۱ - (دغه) نازلول د ډېر مهربان، بې حده رحم کوونکي له جانبه دي

۳:۴۱ - داسې کتاب چې د ده ایتونه په تفصیل سره بیان شوي دي، په داسې حال کې چې عربي قرآن دی، د هغه قوم لپاره چې پوهېږي

۴:۴۱ - زېری ورکوونکی او وېروونکی دی، نو د دوی زیاترو مخ وگرځاوه، پس دوی (حق) نه اوري

۵:۴۱ - او دوی وویل: زمونږ زړونه په پرده کې دي له هغه څه نه چې ته مونږ هغه ته بلې او زمونږ په غوږونو کې کوڼوالی دی اوزمونږ له مینځه او ستا له مینځه پرده ده، نو ته (خپل) عمل کوه، بېشکه مونږ هم (خپل) عمل کوونکي یو

۶:۴۱ - ته (دوی ته) ووایه: بېشکه هم دا خبره ده چې زه ستاسو په شان بشر یم، ما ته دا وحي کولی شي چې بېشکه همدا خبره ده چې ستاسو حق معبود یو معبود دی، نو تاسو ده ته مستقیم (او درست) اوسئ او له ده نه مغفرت غواړئ او د مشرکانو لپاره هلاکت دی

۷:۴۱ - هغه کسان چې زکات نه ادا کوي او له اخرت نه هم دوی منکران (کافران) دي

۸:۴۱ - بېشکه هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي، د دوی لپاره نه قطع کېدونکی اجر دی

۹:۴۱ - ته (دوی ته) ووایه: ایا په رښتیا تاسو خامخا کافران کېږئ په هغه ذات چې ځمکه یې په دوه ورځو کې پیدا کړه او تاسو د هغه لپاره شریکان جوړوئ. دغه خو رب العالمین دی

۱۰:۴۱ - او دغه (الله) په دغې (ځمکه) کې د دې له پاسه غرونه کېښودل او په هغې کې یې برکت واچوه او په هغې کې یې د دې (د اوسېدونکو) روزي مقدره (په اندازه) کړه په څلورو ورځو کې، په داسې حال کې چې د تپوس کوونکو لپاره برابر دي

۱۱:۴۱ - بیا یې د اسمان په طرف اراده وکړه، په داسې حال کې چې هغه یو لوگی و، نو هغه (الله) ده ته او ځمکې ته وویل: تاسو دواړه راشئ، په خپلې خوښې سره، یا په زور سره، دواړو وویل: مونږ په خوښې سره (فرمان منونکي) راځو

۱۲:۴۱ - نو دغه یې په دوه ورځو کې اوه اسمانونه جوړ کړل او په هر اسمان کې یې د هغه د (مناسب) کار وحي وکړه او مونږ تر ټولو نژدې اسمان په ډېوو (د ستورو) سره ښکلی کړ او (دغه مو وساته) په ښې ساتنې سره، دغه د ډېر غالب، ښه پوه ذات اندازه کول دي

۱۳:۴۱ - نو که دوی مخ وگرځاوه، نو ته (دوی ته) ووایه: زه تاسو د عادیانو او ثمودیانو د سخت عذاب په مثل نه وېروم

۱۴:۴۱ - کله چې دوی ته خپل رسولان د دوی له مخې او د دوی له شا نه راغلل او (ورته ویې ویل:) چې تاسو له الله نه غیر (د بل هیچا) عبادت مه کوئ. دوی وویل، که زمونږ رب غوښتلی (نو) خامخا ملایك به یې نازل کړي وی، پس بېشکه مونږ په هغه څه سره چې تاسو ورسره رالېږل

شوي يئ، كفر كوونكي يو

۱۵:۴۱ - نو هر چې عاديان وو، نو دوی خو په ځمکه کې ناحقه لويي وکړه او ويې ويل: په قوت کې زمونږ نه څوك زيات سخت (او مضبوط) دي؟! ايا دوی نه ويني چې بېشکه هغه الله چې تاسو يې پيدا کړي يئ؛ هغه له تاسو نه په قوت کې ډېر سخت دی. او دغو به زمونږ له ايتونو نه انکار کاوه

۱۶:۴۱ - نو مونږ په دوی باندې په څو ډېرو سپېرو ورځو کې ډېر زورور يخ باد راخوشې کړ، د دې لپاره چې مونږ په دوی باندې په دنيايي ژوند کې د رسوايي عذاب وڅکوو، او يقينًا د اخرت عذاب ډېر رسواکوونکی دی، په داسې حال کې چې د دوی به مدد نه کولی شي

۱۷:۴۱ - او پاتې شول ثموديان، نو مونږ دوی ته نېغه لار وښودله، نو دوی په هدايت باندې ړوندوالي ته ترجيح ورکړه، نو دوی د سپکوونکي عذاب سختې چغې ونيول، په سبب د هغو عملونو چې دوی به کول

۱۸:۴۱ - او مونږ هغو کسانو ته نجات ورکړ چې ايمان يې راوړی و او پرهېزګاري به يې کوله

۱۹:۴۱ - او (ياده کړه) هغه ورځ چې د الله دښمنان به اور ته راجمع کولی شي، نو دوی به ډلې کولی (او تقسيمولی) شي

۲۰:۴۱ - تر دې چې کله دوی ده ته (څنګه) راشي (، نو) په دوی باندې به د دوی غوږونه او د دوی سترګې او د دوی څرمنې ګواهي ورکړي، د هغو کارونو چې دوی به کول

۲۱:۴۱ - او دوی به خپلو څرمنو ته ووايي: تاسو ولې پر مونږ ګواهي ورکړه؟ نو دغه (څرمنې) به ووايي: مونږ هغه الله ګويا کړو چې هر شی يې ګويا کړی دی. او دغه (الله) تاسو اول ځلې پيدا کړي يئ او خاص همده ته به بېرته ورګرځولی شئ

۲۲:۴۱ - او تاسو به (د ګناه د کولو په وخت کې) ځان له دې نه نه پټولو چې په تاسو به ستاسو غوږونه او ستاسو سترګې او ستاسو څرمنې ګواهي ورکړي او لېکن تاسو به دا خيال کاوه چې بېشکه الله په ډېرو هغو کارونو نه عالم کېږي چې تاسو يې کوئ

۲۳:۴۱ - او دغه ستاسو هغه (خراب) ګمان دی چې تاسو به په خپل رب (دغه) ګمان کاوه، دغه تاسو هلاك کړئ، نو له تاوانيانو څخې شوئ

۲۴:۴۱ - پس که دوی صبر وکړي، نو د دوی ځای اور دی او که دوی (دالله) رضا کول (او دنيا ته تلل) غواړي، نو دوی له قبول کړی شويو څنې نه دي

۲۵:۴۱ - او مونږ د دوی لپاره ملګري مقرر کړي دي، نو دغو (ملګرو) دوی ته هغه څيزونه ښايسته کړي دي چې د دوی مخې ته دي او د دوی وروسته دي او په دوی (د عذاب) خبره ثابته

شوې ده په هغو امتونو کې چې له دوی نه مخکې کوم پېریان او انسانان تېر شوي دي. بېشکه چې دوی تاوانیان وو

۲۶:۴۱ - او کافران شوي کسان وايي: تاسو دغه قرآن ته غوږ مه ږدئ او په (تلاوت د) ده کې شور ماشور اچوئ، ښايي چې تاسو غالبه شئ

۲۷:۴۱ - نو مونږ به په کافرانو شویو کسانو خامخا لازمًا ډېر سخت عذاب وڅکوو او خامخا لازمًا به مونږ دوی ته د هغو ټولو بدو عملونو بدله ورکړو چې دوی به کول

۲۸:۴۱ - دغه د الله د دښمنانو بدله ده، چې اور دی، د دوی لپاره په دغه (اور) کې د همېشه والي کور دی، په داسې حال کې چې (دغه) بدله ده، په سبب د هغه چې دوی زمونږ له ایتونو نه انکار کاوه

۲۹:۴۱ - او کافران شوي کسان به وايي: ای زمونږه ربه! ته مونږ ته هغه دوه تنه وښیه چې د پېریانو او انسانانو څخه وو، چې مونږ دغه دواړه د خپلو قدمونو له لاندې کړو، د دې لپاره چې دغه دواړه د تر ټولو ښکته خلقو څخه شي

۳۰:۴۱ - بېشکه هغه کسان چې (په رښتیا) یې ویلي دي: زمونږ رب الله دی، بیا ټینګ ولاړ وي (، نو) په دوی ملایك نازلېږي چې تاسو مه وېرېږئ او مه غمګین کېږئ او تاسو د هغه جنت زېری واخلئ چې تاسو سره به یې وعده کولی شوه

۳۱:۴۱ - مونږ ستاسو دوستان یو په دنیایي ژوند کې او په اخرت کې (هم) او تاسو لپاره په دغه (جنت) کې هر هغه (نعمتونه) شته چې ستاسو نفسونه یې خوښوي او تاسو لپاره په دغه (جنت) کې هر هغه څه دي چې تاسو یې غواړئ

۳۲:۴۱ - په داسې حال کې چې د ډېر بخښونکي، بې حده رحم کوونکي له جانبه مېلمستیا ده

۳۳:۴۱ - او د خبرې په لحاظ له هغه چا نه څوك ډېر ښه دی چې الله ته بلنه کوي او نېك عمل کوئ او وایي چې بېشکه زه له مسلمانانو څنې یم؟

۳۴:۴۱ - او نېکي او بدي هیڅکله سره نه برابرېږي. ته په هغې طریقې سره جواب ورکوه چې تر ټولو ښه وي، نو ناڅاپه به هغه کس چې ستا په مینځ کې او د هغه په مینځ کې دښمني وي، داسې شي ګویا کې هغه ستا ډېر مهربان دوست دی

۳۵:۴۱ - او دا (خصلت) نه ورکول کېږي مګر هغو کسانو ته چې صبر کوي او دا نه ورکول کېږي مګر د ډېرې لویې برخې والا ته

۳۶:۴۱ - او که خامخا تا ته د شیطان له جانبه څه وسوسه راشي، نو ته په الله پورې پناه ونیسه، بېشکه هم هغه ښه اورېدونکی، ښه پوه دی

۳۷:۴۱ - او د هغه له دلیلونو څخه شپه او ورځ او لمر او سپوږمۍ دي، تاسو مه لمر ته سجده کوئ او مه سپوږمۍ ته او تاسو خاص الله ته سجده کوئ چې دغه (نښې) یې پیدا کړې دي، که چېرې تاسو خاص د هغه عبادت کوئ

۳۸:۴۱ - نو که دوی تکبر وکړ، نو هغه څوك چې له الله سره دي، هغوی شپه او ورځ د ده پاکي بیانوي، په داسې حال کې چې نه ستړي کېږي

۳۹:۴۱ - او د هغه له نښو څخه دا دي چې بېشکه ته ځمکه وچه کلکه وینې، نو کله چې مونږ په دې اوبه نازلې کړو (نو) وخوځېږي او وپړسېږي، بېشکه هغه ذات چې دغه یې ژوندۍ کړې ده، خامخا د مړیو ژوندی کوونکی دی، بېشکه هغه په هر شي باندې ښه قادر دی

۴۰:۴۱ - بېشکه هغه کسان چې زمونږ په ایتونو کې کاږه روان دي (او غلطې معناګانې کوي)، نو دوی پر مونږ پټ نه دي، ایا نو هغه څوك چې په اور کې غورځولی شي، ډېر غوره دی، یا هغه څوك چې د قیامت په ورځ (له عذاب نه) په امن کې راشي، څه چې ستاسو خوښ وي هغه کوئ، بېشکه هغه (الله) په هغو کارونو چې تاسو یې کوئ؛ ښه لیدونکی دی

۴۱:۴۱ - بېشکه هغه کسان چې په ذکر (قرآن) سره کافران شوي دي، کله چې (دا ذکر) دوی ته راغی، په دې حال کې چې یقینًا دغه (ذکر) خامخا ډېر قوي کتاب دی

۴۲:۴۱ - باطل ده ته نه د ده له مخې نه راتلی شي او نه د ده له شا نه، د ډېر حکمت والا، ښه ستایل شوي (الله) له جانبه رالېږل شوی دی

۴۳:۴۱ - تا ته نه ویل کېږي مګر هغه خبرې چې یقینًا له تا نه مخکې رسولانو ته ویل شوي دي، بېشکه ستا رب خامخا د مغفرت والا او د ډېر دردوونکي عذاب والا دی

۴۴:۴۱ - او که مونږ دا (کتاب) عجمي قرآن ګرځولی وی، (نو) دوی به ضرور ویلی چې ولې د ده ایتونه واضح نه دي بیان شوي، ایا (کتاب) عجمي دی او (نبي یې) عربي دی، ته (دوی ته) ووایه: دغه (قرآن) د هغو کسانو لپاره چې ایمان یې راوړی دی؛ هدایت او شفا دی او هغه کسان چې ایمان نه راوړي؛ د هغوی په غوږونو کې دروندوالی دی، په داسې حال کې چې دغه (قرآن) په دوی ړوندوالی دی. دغه خلق (کفار ګویاکې داسې) دي چې دوی ته له ډېر لرې ځایه اواز کولی شي

۴۵:۴۱ - او یقینًا یقینًا مونږ موسىٰ ته کتاب ورکړی و، نو په دغه (کتاب) کې اختلاف وکړی شو او که چېرې هغه کلمه نه وی چې ستا د رب له جانبه ړومبی شوې ده، (نو) خامخا به د دوی په مینځ کې فیصله شوې وی. او بېشکه دوی د ده په هکله خامخا په اضطراب اچوونکي شك کې دي

۴۶:۴۱ - هر څوك چې نېك عمل کوي، نو د خپل ځان لپاره (یې کوي) او څوك چې بدي کوي، نو ضرر یې په همده دی، او ستا رب په (خپلو) بنده ګانو د هېڅ ظلم کوونکی نه دی

۴۷:۴۱ - خاص همده ته د قیامت علمـ ورسپارلی شي. او هېڅ مېوې له خپلو غلافونو څخه نه راوځي او نه هېڅ یو ښځه حامله کېږي او نه (بچی) زېږوي مگر د دغه (الله) په علمـ سره. او (یاده کړه) هغه ورځ چې دوی ته به (رب) اواز وکړي چې (ستاسو په عقیده) زما شریکان چېرته دي.؟ دوی به ووایي: مونږ ته خبر کړي چې (اوس) پر مونږ کې هیڅوك (د دې خبرې) گواهي کوونکی نشته

۴۸:۴۱ - او له دوی نه به هغه (معبودان) ورك شي چې له دې نه مخکې به دوی بلل او دوی به یقین وکړي چې د دوی لپاره د تېښتې هېڅ ځای نشته

۴۹:۴۱ - انسان د خیر له غوښتلو نه نه ستړی کېږي او که ده ته شر (او تکلیف) ورسېږي، نو ډېر ناهیلی، ډېر نا امېده وي

۵۰:۴۱ - او که خامخا مونږ په ده له خپل جانب نه رحمت وڅکوو، له هغه تکلیف نه وروسته چې ده ته رسېدلی وي (، نو) خامخا لازمًا به وایي: دا زما (حق) دی او زه د قیامت په هکله گمان نه کومـ چې قایمـ به شي او خامخا که زه خپل رب ته بېرته وگرځولی شمـ، (نو) بېشکه زما لپاره به د هغه په نېز خامخا تر ټولو ښه حالت (جنت) وي، نو مونږ به خامخا لازمًا کافران شوي کسان په خپلو عملونو خبر کړو او خامخا لازمًا به مونږ دوی ته له ډېر سخت عذاب څنې وڅکوو

۵۱:۴۱ - او کله چې مونږ په انسان باندې انعامـ وکړو (نو) دی (له حقه) مخ واړوي او خپل جانب (ځان) لرې کړي او کله چې ده ته سختي ورسېږي، نو بیا د ډېرې اوږدې دعا والا وي

۵۲:۴۱ - ته (دوی ته) ووایه: تاسو ما خبر کړئ! که چېرې دغه (قرآن) د الله له جانبه وي، بیا تاسو په ده سره کافران شئ، (نو) له هغه چا نه لوی گمراه څوك دی چې په ډېر لرې مخالفت کې وي

۵۳:۴۱ - ژر ده چې مونږ به دوی ته خپلې نښې په افاقو (د عالمـ په اطرافو) کې او د دوی په ځانونو کې وښیو، تر دې چې دوی ته ښه څرگند شي چې یقینًا همـ دغه (قرآن) حق دی او ایا ستا رب ښه کافي نه دی دا چې یقینًا هغه په هر شي باندې خبردار دی

۵۴:۴۱ - خبردار شئ! بېشکه دوی د خپل رب له ملاقات نه په شك کې دي، خبردار شئ! بېشکه هغه په هر شي احاطه کوونکی دی

## (مکي) جرگه - الشوری ۴۲

۱:۴۲ - حٰمٓ

۲:۴۲ - عٓسٓقٓ

۳:۴۲ - (له شروع نه) هغه همداسې وحي کوي تا ته او هغو (پیغمبرانو) ته چې له تا نه مخکې

وو، هغه الله چې ډېر غالب، ښه حکمت والا دی

۴:۴۲ - خاص د هغه لپاره هر هغه څه دي په اسمانونو کې دي او هر هغه څه چې په ځمکه کې دي او هم دغه (الله) ډېر اوچت، ډېر لوی دی

۵:۴۲ - اسمانونه دې ته نژدې دي چې د خپل له پاسه نه وچوي او ملایك د خپل د رب ستاینې سره تسبیح وایي او د هغه چا لپاره مغفرت غواړي چې په ځمکه کې دي. خبردار شئ! بېشکه الله، هم دی ډېر بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۶:۴۲ - او هغه کسان چې له ده نه غیر یې نور کارسازان نیولي دي، الله په دوی ښه نګران دی۔ او ته په دوی باندې هېڅ ذمه وار نه یې

۷:۴۲ - او همداسې مونږ تا ته (دا) عربي قرآن وحي کړو، د دې لپاره چې ته ام القریٰ (مکه) ووېروې او هغه څوك چې د دې ګېر چاپېره دي او ته (دوی) د جمع کېدلو له ورځې نه ووېروې چې هېڅ شك په کې نشته۔، یوه ډله به په جنت کې وي او بله ډله به په دوزخ کې وي

۸:۴۲ - او که الله غوښتلي وی (نو) دوی به یې خامخا یو امت ګرځولي وو او لیکن هغه په خپل رحمت کې چا ته چې وغواړي داخلوي یې۔ او ظالمان چې دي، د دوی لپاره نه هېڅ کارساز شته او نه مددګار

۹:۴۲ - ایا دوی له ده (الله) نه غیر کارسازان (او دوستان) نیولي دي، نو هم دغه الله کارساز دی۔ او هم دی مړي راژوندي کوي او هم دی په هر څیز باندې ښه قادر دی

۱۰:۴۲ - او هر هغه شی چې تاسو په هغه کې اختلاف وکړئ، نو د هغه حکم (فیصله) الله ته ده، دغه الله زما رب دی، خاص په ده باندې ما توکل کړی دی او خاص هم ده ته زه رجوع کوم

۱۱:۴۲ - (دغه الله) د اسمانونو او ځمکې پیدا کوونکی دی، تاسو لپاره یې له هم ستاسو له جنس (او ځانونو) نه جوړې پیدا کړي دي۔ او له څارویو نه یې هم قسمونه (پیدا کړي دي)، هغه تاسو په دې طریقې سره خوروي۔، د هغه په مثل هېڅ شی نشته۔ او هم دغه ښه اورېدونکی، ښه لیدونکی دی

۱۲:۴۲ - خاص هم دغه (الله) لره د اسمانونو او ځمکې چابیانې دي۔، هغه چا لپاره چې وغواړي رزق فراخوي او (چا لپاره چې وغواړي) تنګوي یې۔، بېشکه هغه په هر شي باندې ښه عالم دی

۱۳:۴۲ - هغه تاسو لپاره هغه دین مقرر کړی دی چې د هغه وصیت یې نوح ته کړی و او هغه چې مونږ تا ته وحي کړی دی او هغه چې مونږ د هغه وصیت ابراهیم او موسیٰ او عیسیٰ ته کړی و، چې تاسو دین قایم کړئ او په ده کې مه مختلف کېږئ، په مشرکانو باندې هغه شی ډېر درونډ دی چې ته دوی هغه ته بلې۔، الله غوره کوي دې (دین) ته چا ته چې وغواړي او د ده په طرف

هغه چا ته هدایت کوي چې رجوع کوي

۱۴:۴۲ - او دوی سره مختلف شوي نه وو مگر وروسته له هغه چې دوی ته علم راغی، په خپل مینځ کې د حسد په وجه، او که چېرې هغه خبره نه وی چې ستا د رب له جانبه تر ټاکلې نېټې پورې ږومبی شوې ده۔ (، نو) د دوی په مینځ کې به خامخا فیصله کړی شوې وی۔ اوبېشکه هغه کسان چې له دوی نه وروسته ورته کتاب په میراث کې ورکړی شوی دی، خامخا د دغه (قرآن) په هکله په اضطراب اچوونکي شك کې دي

۱۵:۴۲ - نو ته همدغه (توحید) ته بلنه کوه۔ او په استقامت اوسه، لکه څنگه چې تا ته حکم درکړی شوی دی او د دوی د خواهشاتو پیروي مه کوه او ته وایه: ما په هر هغه کتاب ایمان راوړی دی چې الله نازل کړی دی او ما ته حکم راکړی شوی دی چې ستاسو په مینځ کې انصاف وکړم۔، الله زمونږ رب دی او ستاسو رب دی، زمونږ لپاره زمونږ عملونه دي او تاسو لپاره ستاسو عملونه دي۔ (حق ښه واضح شو، نو زمونږ په مینځ کې او ستاسو په مینځ کې هېڅ جگړه نشته۔، الله به مونږ ټول سره راجمع کړي۔ او خاص همده ته بېرته ورتلل دي

۱۶:۴۲ - او هغه کسان چې د الله په باره کې وروسته له دې جگړې کوي چې د هغه دعوت قبول کړی شو۔، د دغو کسانو جگړه کول د دوی د رب په نېز باطل دي او په دوی غضب دی او د دوی لپاره ډېر سخت عذاب دی

۱۷:۴۲ - الله هغه ذات دی چې کتاب یې په حقه سره نازل کړی دی او تله (میزان) یې هم۔ او تا څه شی خبروي، ښایي چې قیامت ډېر نژدې وي

۱۸:۴۲ - دغه (قیامت) هغه کسان په تلوار سره غواړي چې په ده ایمان نه لري۔ او هغه کسان چې (په ده) یې ایمان راوړی دی، له ده نه وېرېدونکي دي۔ او دوی پوهېږي چې یقینًا دا حق دی۔، خبردار شئ! بېشکه هغه کسان چې د قیامت په باره کې جگړې (او شکونه) کوي، یقینًا په ډېرې لرې گمراهۍ کې دي

۱۹:۴۲ - الله په خپلو بنده گانو ډېر مهربان دی، هغه روزي ورکوي چا ته چې وغواړي، او هم دی ډېر زورور، ښه غالب دی

۲۰:۴۲ - هر هغه څوك چې د اخرت فصل غواړي، نو مونږ به د ده لپاره د ده په فصل کې زیاتوالی وکړو۔ او هر هغه څوك چې د دنیا فصل غواړي (نو) مونږ به ده ته له دغې (دنیا) نه څه ورکړو او د ده لپاره به په اخرت کې هېڅ برخه نه وي

۲۱:۴۲ - ایا د دوی لپاره داسې شریکان شته چې د دوی لپاره یې له دین څخه هغه لاره مقرر کړې ده چې الله د هغې اذن نه دی کړی۔ او که چېرې د فیصلې خبره نه وی (نو) د دوی په مینځ کې به خامخا فیصله شوې وی۔ او بېشکه ظالمان چې دي، د دوی لپاره ډېر دردوونکی عذاب دی

۲۲:۴۲ - ته به ظالمان (مشرکان) وینې چې د خپل کړي عمل (له انجام) نه به وېرېدونکي وي، په دې حال کې چې هغه په دوی پرېوتونکی دی، او هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي، د جنتونو په باغیچو کې به وي. د دوی لپاره د خپل رب په نېز هغه څه دي چې دوی یې غواړي.، همم دغه ډېر لوی فضل دی

۲۳:۴۲ - دغه دی هغه شی چې الله یې خپلو هغو بنده ګانو ته زېری ورکوي چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي.، ته (دوی ته) ووایه: زه له تاسو نه په دغه (تبلیغ) باندې هېڅ اجر (مزدوري) نه غواړم، لېکن په خپلوۍ کې مینه (د خپلولۍ مینه) (غواړم) او هر هغه څوك چې نېکي وکړي مونږ به هغه ته په دغې (نېکۍ) ښایست ورزیات کړو، بېشکه الله ډېر مغفرت کوونکی ډېر قدردان (شکر قبلوونکی) دی

۲۴:۴۲ - ایا دوی وايي چې ده په الله باندې له ځانه دروغ تړلي دي، ـ نو که الله وغواړي ستا په زړه به مهر ولګوي. او الله باطل محوه کوي او په خپلو کلماتو سره حق ثابتوي، بېشکه هغه د سینو په خبرو ښه عالم دی

۲۵:۴۲ - او دی همغه ذات دی چې د خپلو بنده ګانو توبه قبلوي او د بدیو معافي کوي او په هغو کارونو پوهېږي چې تاسو یې کوئ

۲۶:۴۲ - او د هغو کسانو دعاګانې قبلوي چې ایمان یې راوړی دی اونېك عملونه یې کړي دي او له خپل فضله دوی ته زیات ورکوي، او کافران (چې دي) د دوی لپاره ډېر سخت عذاب دی

۲۷:۴۲ - او که چېرې الله د خپلو بنده ګانو لپاره روزي فراخه کړي، نو دوی به په ځمکه کې خامخا سرکشي وکړي. او لېکن هغه په یوې اندازې سره څومره چې وغواړې نازلوي یې، بېشکه هغه په خپلو بنده ګانو ښه خبردار، ښه لیدونکی دی

۲۸:۴۲ - او دی همغه ذات دی چې باران وروي، وروسته له دې چې دوی نا امېده شي. او هغه خپل رحمت خوروي او همم دی ښه کارساز، ښه ستایل شوی دی

۲۹:۴۲ - او د ده له نښو څخه د اسمانونو او ځمکې پیدا کول دي او د هغو زنده سرو (خوځندهوو پیدا کول دي) چې ده په دغو دواړو کې خواره کړي دي. او دغه (الله) چې کله وغواړي د دغو (څیزونو) په راجمع کولو ښه قادر دی

۳۰:۴۲ - او تاسو ته چې څه مصیبت همم رسي، نو په سبب د هغو کارونو چې ستاسو لاسونو کړي دي. او ډېر (ګناهونه) معاف کوي

۳۱:۴۲ - او تاسو په ځمکه کې (الله لره) له سره عاجزه کوونکي نه یئ او د تاسو لپاره له الله نه غیر نه څوك دوست (او کارساز) شته او نه مددګار

۳۲:۴۲ - او د هغه له نښو څخه په سمندر کې رواني بېړۍ دي، چې دغرونو په شان دي

۳۳:۴۲ - که هغه (الله) وغواړي، نو هوا به ودروي، نو دغه (بېړۍ) به د ده په شا ولاړې پاتې شي، بېشکه په دغو کې د هر صبرناك او ډېر شکر ایستونکي لپاره یقینًا ډېرې نښې دي

۳۴:۴۲ - یا به دغه (بېړۍ) هلاکې (ډوبې) کړي، په سبب د هغو (ګناهونو) چې دغو (خلقو) کړي دي او (که وغواړي) ډېر (ګناهونه) معاف کوي

۳۵:۴۲ - او چې هغه کسان پوه شي چې زمونږ په ایتونو کې جګړې کوي، چې د دوی لپاره د خلاصي هېڅ ځای نشته

۳۶:۴۲ - پس تاسو ته چې څه شی هم درکړی شوی دی، نو (دغه) د دنیایي ژوند فایده ده، او هغه (ثواب) چې د الله په نېز دی (هغه) ډېر غوره او ډېر باقي پاتې کېدونکی دی د هغو کسانو لپاره چې ایمان یې راوړی دی او خاص په خپل رب باندې توکل کوي

۳۷:۴۲ - او د هغو کسانو لپاره چې له غټو ګناهونو او د بې حیایۍ له کارونو نه ځان ساتي او چې کله هم په غضب شي (نو) دوی بخښنه کوي

۳۸:۴۲ - او د هغو کسانو لپاره چې د خپل رب حکم مني او لمونځ قایموي او د دوی کار په خپل مینځ کې په مشورې سره وي او ځینې له هغه (مال) نه چې مونږ دوی ته ورکړی دی؛ انفاق کوي

۳۹:۴۲ - او د هغو کسانو لپاره چې دوی ته (د کافرانو له خوا) ظلم ورسېږي (نو) دوی (له هغو نه) انتقام اخلي

۴۰:۴۲ - او د بدۍ بدله د هغې په شان بدي ده، نو هغه څوك چې معافي وکړي او اصلاح وکړي نو د ده اجر په الله دی، بېشکه هغه (الله) ظالمان نه خوښوي

۴۱:۴۲ - او یقینًا هغه څوك چې په خپل ځان له ظلم کېدو نه پس بدل واخلي، نو دغه کسان (دي چې) په دوی (د ملامتیا) هېڅ لار نشته

۴۲:۴۲ - بېشکه همدا خبره ده چې (د ملامتیا) لار خو په هغو کسانو ده چې په خلقو ظلم کوي او په ځمکه کې ناحقه سرکشي کوي، دغه کسان (دي چې) د دوی لپاره ډېر دردوونکی عذاب دی

۴۳:۴۲ - او یقینًا هغه څوك چې صبر یې وکړ او بخښنه یې وکړه، بېشکه دغه (صبر او بخښنه) خامخا له غوره کارونو څخه دي

۴۴:۴۲ - او هر هغه څوك چې الله یې ګمراه کړي، نو د ده لپاره له دغه (الله) نه پس هېڅ دوست (او حمایتي) نشته. او ته به ظالمان وینې، کله چې دوی عذاب وویني، دوی به وایي: ایا بېرته تللو ته څه لار شته؟

۴۵:۴۲ - او ته به دوی وینې چې په دغه (اور) به پیش کولی شي، په داسې حال کې چې د ذلت په

وجه به وېرېدونکي وي، دوی به د سترګو له ګوښونو نه ګوري. او هغه کسان به چې ایمان یې راوړی دی؛ وایي: بېشکه تاوانیان خو هغه کسان وي چې د قیامت په ورځ یې خپل ځان او خپلې کورنۍ ته تاوان ورساوه.، خبردار شئ! بېشکه ظالمان به په دایمي (همېشني) عذاب کې وي

۴۶:۴۲ - او د دغو لپاره به هیڅوك دوستان نه وي چې له الله نه غیر له دوی سره مدد وکړي او هغه څوك چې الله یې ګمراه کړي نو د ده لپاره هېڅ لاره نشته

۴۷:۴۲ - تاسو د خپل رب حکم ومنئ مخکې له دې چې هغه ورځ راشي چې د الله له طرفه هغې لره هېڅ رد (او ګرځول) نشته.، په دغه ورځ کې به تاسو لپاره هېڅ پناه ځای نه وي او نه به څه انکار وي

۴۸:۴۲ - نو که دوی مخ وګرځوي، نو ته مونږ په دوی باندې نګران نه یې لېږلی، په تا خو یواځې تبلیغ کول دي.، بېشکه مونږ کله چې په انسان له خپل جانب نه رحمت وڅکوو (نو) هغه په ده سره خوشحاله شي. او که چېرې دوی ته تکلیف ورسېږي په سبب د هغو (ګناهونو) چې د دوی لاسونو مخکې لېږلي دي. بیا خو دغه انسان یقینًا ډېر ناشکره دی

۴۹:۴۲ - خاص الله لره د اسمانونو او ځمکې بادشاهي ده، څه چې وغواړي هغه پیدا کوي. چا ته چې وغواړي جینکۍ ورکوي او چا ته چې وغواړي هلکان ورکوي

۵۰:۴۲ - یا دوی ته هلکان او جینکۍ جمع کوي (دواړه ورکوي) او چا ته چې وغواړي شنډ (او) شنډه یې وګرځوي، بېشکه هغه، ښه عالم، ښه قادر دی

۵۱:۴۲ - او د هېڅ انسان لپاره ممکن نه و چې الله ورسره خبرې وکړي مګر په وحی سره.، یا له پردې نه شا ته، یا استاځی راولېږي، پس دغه د ده په حکم سره ورسوي هغه چې هغه (الله) یې غواړي، بېشکه دی، ډېر اوچت، ښه حکمت والا دی.

۵۲:۴۲ - او همداسې مونږ په خپل امر سره تا ته د روح (قرآن) وحي راولېږله.، ته نه پوهېدلی چې کتاب څه شی دی او نه (پوهېدی چې) ایمان (څه شی دی) او لېکن مونږ دغه (کتاب) رڼا ګرځولی دی چې په ده سره مونږ په خپلو بنده ګانو کې چې چا ته وغواړو هدایت ورکوو. او بېشکه یقینًا ته نېغې لارې ته ښوونه کوې

۵۳:۴۲ - د هغه الله لارې ته چې خاص هغه لره دي هر هغه څه چې په اسمانونو کې دي او هر هغه څه چې په ځمکه کې دي. اګاه شئ! خاص الله ته ټول کارونه بېرته ګرځي

## (مکي) زینتي - الزخرف ۴۳

۱:۴۳ - حا، میم

۲:۴۳ - قسم دی، په دغه روښانه کتاب

۳:۴۳ - بېشکه مونږ دا عربي قرآن گرځولی دی، د دې لپاره چې تاسو له عقل نه کار واخلئ

۴:۴۳ - او بېشکه دا په ام الکتب (لوح محفوظ) کې زمونږ په نزد خامخا ډېر اوچت، ډېر حکمت والا دی

۵:۴۳ - ایا نو مونږ له تاسو نه دا ذکر (قرآن) واړوو (بند کړو) بېخي اړول (بندول)، په دې سبب چې تاسو له حده تېرېدونکی قوم یئ

۶:۴۳ - او مونږ په ړومبنو خلقو کې څومره ډېر نبیان لېږلي دي

۷:۴۳ - او دوی ته به هېڅ یو نبي نه راته مگر دوی به په هغه پورې مسخرې کولې

۸:۴۳ - نو مونږ هغه هلاك كړل چې له دوی نه په نیولو (او قوت) کې ډېر زیات سخت وو او د ړومبنیو خلقو مثال (او حال) تېر شوی دی

۹:۴۳ - او قسم دی که ته له دوی نه تپوس وکړې چې اسمانونه او ځمکه چا پیدا کړي دي (، نو) دوی به خامخا لازمًا ووايي چې دغه ډېر غالب، ډېر پوه ذات پیدا کړي دي

۱۰:۴۳ - هغه چې تاسو لپاره یې ځمکه فرش گرځولې ده او تاسو لپاره یې په دې کې لارې پیدا کړي دي، د دې لپاره چې نېغه لار ومومئ

۱۱:۴۳ - او هغه ذات چې له بره نه یې اوبه په اندازې سره نازلې کړې دي، پس په دغو سره مونږ مړ ښار راژوندی کړی دی، همداسې به تاسو راوېستلی شئ

۱۲:۴۳ - او هغه ذات چې ټول قسمونه (انواع) یې پیدا کړي دي او تاسو لپاره یې له بېړیو او څارویو نه هغه پیدا کړي دي چې تاسو پرې سورېږئ

۱۳:۴۳ - د دې لپاره چې تاسو د هغو په شاگانو ښه برابر کښېنئ، بیا د خپل رب نعمت رایاد کړئ، کله چې تاسو په دغه برابر کښېنئ او ووایئ: پاکي ده هغه ذات لره چې زمونږ لپاره یې دا مسخر (او تابع) کړی دی۔ او مونږ ده لره په قابو کې راوستونکي نه یو

۱۴:۴۳ - او بېشکه مونږ خاص خپل رب ته خامخا بېرته ورتلونکي یو

۱۵:۴۳ - او دوی د ده په بنده گانو کې ځینو لره د ده برخه (او اولاد) وگرځول، بېشکه انسان خامخا ډېر ښکاره ناشکره دی

۱۶:۴۳ - ایا (تاسو دا وایئ چې) هغه (الله) له هغه چا نه، چې دی یې پیدا کوي، د ځان لپاره لوڼه نیولي دي او تاسو یې په زامنو سره غوره کړي یئ

۱۷:۴۳ - حال دا چې کله دوی ته په هغه (لور) سره زېری ورکړی شي چې دی یې د رحمٰن لپاره

مثال بیانوي (نو) د ده مخ تك تور شي، په دې حال کې چې دی له غمه ډك وي

۱۸:۴۳ - او ایا (دوی د الله لپاره مقرروي) هغه چې په کالیو (زیوراتو) کې لویه ولی شي، حال دا چې په جګړه کې خبره واضحه کوونکي نه وي

۱۹:۴۳ - او دوی (مشرکان) ملایکو لره هغه چې دوی د رحمٰن بنده ګان دي، ښځې ګرځوي، ایا دوی د دغو پیدا کولو ته حاضر وو؟ یقینًا به د دوی ګواهي ولیکل شي او له دوی نه تپوس (هم) کېږي

۲۰:۴۳ - او دوی وایي: که رحمٰن غوښتلي وی، (نو) مونږ به د دغو (باطلو معبودانو) عبادت نه وی کړی.، دوی ته د دې (خبرې) هېڅ علم نشته، دوی یواځې اټکلونه چلوي

۲۱:۴۳ - ایا دوی ته مونږ له دغه (قرآن) نه مخکې کوم کتاب ورکړی دی، پس دوی په هغه منګلولې ښخونکي دي

۲۲:۴۳ - بلکې دوی وایي: بېشکه مونږ خپل پلرونه په یوې لارې (طریقې) باندې موندلي دي، او بېشکه مونږ هم د دوی په قدمونو لاره موندونکي یو

۲۳:۴۳ - او همداسې مونږ له تا نه مخکې په کوم کلي کې هېڅ یو وېروونکی نه دی لېږلی مګر د هغه کلي متکبره مالدارو به وویل: بېشکه مونږ خپل پلرونه په یوه لاره (طریقه) موندلي دي او بېشکه مونږ هم د دوی په قدمونو اقتدا کوونکي یو

۲۴:۴۳ - (دوی ته به د دوی نبي) وویل: او ایا اګر که ما تاسو ته له هغې (لارې) نه زیاته سمه لاره راوړې وي چې تاسو په هغې باندې خپل پلرونه موندلي دي؟ دوی به ویل: بېشکه مونږ په هغه (دین) کفر کوونکي یو چې تاسو په هغه سره رالېږل شوي یئ

۲۵:۴۳ - نو مونږ له دوی نه انتقام واخیست، نو ته وګوره د تکذیب کوونکو انجام څنګه و

۲۶:۴۳ - او (یاد کړه) هغه وخت چې ابراهیم خپل پلار او خپل قوم ته وویل: بېشکه زه له هغو (معبودانو) نه بېزاره یم چې تاسو یې عبادت کوئ

۲۷:۴۳ - غیر له هغه ذات نه چې زه یې پیدا کړی یم، پس یقینًا هغه به ما ته خامخا هدایت وکړي

۲۸:۴۳ - او هغه (ابراهیم) دغه (د توحید کلمه) په خپل اولاد کې باقي پاتې کېدونکې وګرځوله، د دې لپاره چې راوګرځي

۲۹:۴۳ - بلکې ما دوی او د دوی پلرونو ته نفع ورکړه تر هغه پورې چې دوی ته حق (قرآن) او ښکاره بیانوونکی رسول راغی

۳۰:۴۳ - او کله چې دوی ته حق راغی دوی وویل: دا جادو دی، او بېشکه مونږ له ده نه انکار کوونکي یو

۳۱:۴۳ - او دوی وویل: دا قرآن په دوه کليو (ښارونو) کې په يو غټ سړي ولې نه نازلاوه شي؟

۳۲:۴۳ - ايا دوی ستا د رب رحمت تقسيموي؟ مونږ د دوی په مينځ کې په دنيايي ژوند کې د دوی معشيت تقسيم کړی دی او په درجو کې مو د دوی ځينې د ځينو نورو له پاسه پورته کړي دي، د دې لپاره چې د دوی ځينې ځينې نور (تابع او) کار کوونکي ونيسي او ستا د رب رحمت له هغه نه ډېر غوره دی چې دوی يې جمع کوي

۳۳:۴۳ - او که دا (خطره) نه وی چې خلق به ټول يوه ډله (کافران شي) نو مونږ به خامخا د هغه چا لپاره چې په رحمٰن کافران کېږي، د دوی کورونو ته به مو د سپينو زرو چتونه او داسې پوړۍ ګرځولې وی چې دوی به په هغو پاس ختلی

۳۴:۴۳ - او د دوی د کوټو لپاره به مو (د سپينو زرو) دروازې او تختونه جوړ کړي وی چې دوی به په هغو تکيه وهلې

۳۵:۴۳ - او له سرو زرو نه (دغه او نور زينتونه به مو ورکړي وی) او نه دي دغه (ټول څيزونه) مګر د دنيايي ژوند سامان دی. او اخرت ستا د رب په نېز د متقيانو (پرهيزګارانو) لپاره دی

۳۶:۴۳ - او هر هغه څوك چې د رحمٰن له ذکر نه ځان ړوند کړي (، نو) مونږ به په ده باندې يو شيطان مسلط کړو، نو هغه به له ده سره تل ملګری وي

۳۷:۴۳ - او بېشکه دغه (شيطانان) يقينًا دوی (خپل ملګري) له حقې لارې نه منع کوي او دوی ګمان کوي چې بېشکه دوی هدايت موندونکي دي

۳۸:۴۳ - تر هغه پورې چې کله دا مونږ ته راشي (نو) وايي به: ای کاشکې! زما په مينځ کې او ستا په مينځ کې د مشرق او مغرب هومره لرې والی وی، پس (دا) بد ملګری دی

۳۹:۴۳ - او کله چې تاسو ظلم کړی دی (نو) تاسو ته به نن ورځ دا خبره له سره نفع درنکړي چې بېشکه تاسو (او شيطانان ټول) په عذاب کې سره شريك يئ

۴۰:۴۳ - ايا نو ته به کڼو ته اورول وکړې، يا به ړندو ته لار ښوونه وکړې او هغه چا ته چې په ښکاره ګمراهۍ کې دی؟

۴۱:۴۳ - نو که تا مونږ لازمًا بوځو، نو بېشکه مونږ له دوی نه انتقام اخيستونکي يو

۴۲:۴۳ - ايا مونږ تا ته خامخا هغه وښيو چې مونږ يې له دوی سره وعده کړې ده، نو بېشکه مونږ په دوی پوره قدرت لرونکي يو

۴۳:۴۳ - نو ته په هغه (قرآن) منګلې ولګوه چې تا ته وحي کړی شوی دی، بېشکه ته په نېغه لار يې

۴۴:۴۳ - او بېشکه دا (قرآن) تا لپاره او ستا د قوم لپاره ذکر (او نصيحت) دی. او ژر ده چې له

تاسو نه به پوښتنه وکړی شي

۴۵:۴۳ - او ته زمونږ له هغو رسولانو نه تپوس وکړه چې مونږ له تا نه مخکې لېږلي دي.، ایا مونږه له رحمن نه غیر نور معبودان مقرر کړي دي چې د دوی عبادت کولی شي

۴۶:۴۳ - او یقیناً یقیناً مونږ موسی زمونږ له نښو سره فرعون او د هغه سردارانو ته لېږلی و، پس ده ووېل: بېشکه زه د رب العلمین رسول یم

۴۷:۴۳ - نو کله چې هغه دوی ته زمونږ په واضحو نښو سره راغی، ناڅاپه دوی په هغو (نښو) پورې خندل

۴۸:۴۳ - او مونږ به دوی ته هیڅ یوه نښه نه ښووله مگر چې هغه به د هغې له خور (مثل) نه ډېره لویه وه او مونږ دوی په عذاب سره راونیول، د دې لپاره چې دوی رجوع وکړي

۴۹:۴۳ - او دوی (فرعونیانو) ووېل: ای جادوگره! (عالمه!) ته زمونږ لپاره له خپل رب نه دعا وغواړه، د هغې وعدې په سبب چې تا سره یې کړې ده.، بېشکه مونږ خامخا هدایت موندونکي یو

۵۰:۴۳ - نو کله چې به مونږ له دوی نه عذاب لرې کړ، په هماغه وخت کې به دوی (وعده) ماتوله

۵۱:۴۳ - او فرعون په خپل قوم کې اواز وکړ، ویې ویل: ای زما قومه! ایا د مصر باچایي زما نه ده؟ او دغه ولې چې زما له لاندې بهېږي؟ ایا نو تاسو نه وینئ

۵۲:۴۳ - بلکې زه ډېر غوره یم له دغه (موسٰی) نه چې هغه سپك دی او نژدې نه دی چې خبره واضحه وکړي

۵۳:۴۳ - پس په ده باندې د سرو زرو بنگړي (وښې) ولې نه غورځول کېږي، یا له ده سره ملایك صف تړلي (پیوسته) ولې) نه راځي

۵۴:۴۳ - نو خپل قوم یې بې وقوفه وگرځاوه، نو دوی د ده خبره ومنله، بېشکه دوی فاسقان خلق وو

۵۵:۴۳ - نو کله چې دوی مونږ خفه کړو (، نو) مونږ له دوی نه انتقام واخیست، پس مونږه دوی ټول غرق کړل

۵۶:۴۳ - نومونږ دوی پیشوایان او مثال وگرځول د وروستنیو خلقو لپاره

۵۷:۴۳ - او کله چې د مریمې زوی د مثال په طور بیان کړی شو، (نو) ناڅاپه ستا قوم د دغه (مثال) پورې (له خوشالۍ نه) چغې وهلې

۵۸:۴۳ - او ویې ویل: ایا زمونږ معبودان غوره دي، یا که هغه؟ دوی تا ته دا (مثال) بیان نه کړ مگر د جگړې لپاره. بلکې دوی ډېر جگړه کوونکی قوم دی

۵۹:۴۳ - دغه نه دی مګر يو بنده دی چې مونږ په ده انعام کړی دی او د بني اسرائيلو لپاره مو هغه (د قدرت) يو مثال ګرځولی و

۶۰:۴۳ - او که مونږ غوښتلي وی (نو) مونږ به ستاسو په ځای په ځمکه کې ملايك پيدا کړي وی، چې خليفګان شوي به وی

۶۱:۴۳ - او بېشکه دغه (عيسىٰ) د قيامت لپاره يقينًا يوه لويه نښه ده، نو تاسو د دغه (قيامت) په باره کې له سره شك مه کوئ، دا نېغه لار ده

۶۲:۴۳ - او شيطان دې تا (له دې نېغې لارې نه) له سره وا نه ړوي، بېشکه هغه تاسو لپاره ښکاره دښمن دی

۶۳:۴۳ - او کله چې عيسىٰ له ښکاره دليلونو سره راغی، ويې ويل: (ای بني اسرائيلو!) يقينًا ما تاسو ته حکم راوړی دی او د دې لپاره (راغلی يم) چې تاسو ته ځينې هغه (احکام) بيان کړم چې تاسو په هغو کې اختلاف کوئ، نو تاسو له الله نه ووېرېږئ او زما اطاعت وکړئ

۶۴:۴۳ - بېشکه همم دا الله زما رب دی او ستاسو رب دی، لهٰذا تاسو د ده عبادت کوئ، دغه نېغه لاره ده

۶۵:۴۳ - نو (د نصرانيانو) دغه ډلې په خپل منيځ کې سره مختلفې شوې، نو د هغو کسانو لپاره چې ظلم يې کړی دی، د ډېرې دردوونکي ورځې له عذاب نه هلاکت دی

۶۶:۴۳ - دوی انتظار نه کوي مګر د قيامت چې په دوی به ناڅاپه راشي، او دوی به نه پوهېږي

۶۷:۴۳ - په دغې ورځ کې به خواږه ياران، د دوی ځينې به د ځينو نورو دښمنان وي، غير له متقيانو نه

۶۸:۴۳ - ای زما بنده ګانو! نن ورځ په تاسو وېره نشته او نه به تاسو غمژن کېږئ

۶۹:۴۳ - هغه کسان چې زمونږ په ايتونو يې ايمان راوړی دی او دوی مسلمانان وو

۷۰:۴۳ - (دوی ته به ويلی شي:) تاسو جنت ته ننوځئ، تاسو او ستاسو ښځې، تاسو به خوشالولی شئ

۷۱:۴۳ - په دوی به کاسې د سرو زرو او ګلاسونه ګرځول کېږي او په دغو (جنتونو) کې به هغه څه وي چې نفسونه (زړونه) د هغو خواهش کوي او سترګې (پرې) خوند اخلي او تاسو به په دغو کې تل ترتله يئ

۷۲:۴۳ - او دغه هغه جنتونه دي چې تاسو ته د هغو عملونو په سبب په ميراث کې درکړی شول چې تاسو به کول

۷۳:۴۳ - تاسو لپاره په دغو کې ډېرې مېوې دي چې تاسو به له هغو څنې خوراك کوئ

۷۴:۴۳ - بېشکه مجرمان به د جهنم په عذاب کې تل پاتې کېدونکي وي

۷۵:۴۳ - چې دغه (عذاب) به له دوی څخه نه کمولی شي او دوی به په دغه (عذاب) کې نا امېده اوسي

۷۶:۴۳ - او مونږ په دوی ظلم نه دی کړی او لیکن هم دوی پخپله ظالمان وو

۷۷:۴۳ - او دغه (دوزخیان) به اواز وکړي: ای مالکه! ستا رب دې مونږ مړه کړي، هغه (مالك) به ووایي: بېشکه تاسو (تل) ژوندي پاتې کېدونکي یئ

۷۸:۴۳ - یقینًا یقینًا مونږ تاسو ته حق راوړی و او لیکن ستاسو زیاتره حق لره بدګڼونکي دي

۷۹:۴۳ - ایا بلکې دوی د یو کار پخه اراده کړې ده.، نو بېشکه مونږ (هم) خپل (تدبیر) محکم کوونکي یو

۸۰:۴۳ - ایا دوی دا ګمان کوي چې بېشکه مونږ د دوی پټې خبرې او پټې مشورې نه اورو، ولې نه! او زمونږ رسولان لیکل کوي د دوی ترڅنګه

۸۱:۴۳ - ته (دوی ته) ووایه: که چېرې د رحمٰن لپاره اولاد وی، نو زه به (د هغه) ترټولو اول عبادت کوونکی وم

۸۲:۴۳ - پاکي ده د اسمانونو او ځمکې رب لره، د عرش رب لره له هغه څه نه چې دوی یې (د هغه په باره کې) بیانوي

۸۳:۴۳ - نو ته دوی پرېږده چې (په باطلو خبرو کې) غوټې وهي او لوبې کوي تر هغه پورې چې دوی د خپلې هغې ورځې سره ملاقات وکړي چې دوی ته به یې وعده ورکولی شوه

۸۴:۴۳ - او هم دی هغه دی ذات چې په اسمان کې معبود دی او په ځمکه کې (هم) معبود دی، او هم دی ډېر حکمت والا، ښه پوه دی

۸۵:۴۳ - او ډېر برکت ناك دی هغه ذات چې خاص د هغه لپاره د اسمانونو او ځمکې باچایي ده او د هغه څه چې د دغو دواړو په مینځ کې دي او خاص له هغه سره د قیامت د علم دی او خاص هغه ته به تاسو بېرته بېولی شئ

۸۶:۴۳ - او هغه معبودان چې دوی یې له دغه (الله) نه غیر بلي؛ د شفاعت هېڅ اختیار نه لري، مګر هغه څوك چې د حق ګواهي یې ورکړې وي، په دې حال کې چې دوی پوهېږي

۸۷:۴۳ - او قسم دی که ته له دوی نه تپوس وکړې چې دوی چا پیدا کړي دي (نو) دوی به خامخا ضرور ووایي: الله (پیدا کړي دي) نو کوم طرف ته دوی ګرځول کېږي؟

۸۸:۴۳ - او قسم دی د دغه (رسول) په دې وینا چې ای زما ربه! بېشکه زما دا قوم ایمان نه راوړي

۸۹:۴۳ - نو ته له دوی نه مخ وګرځوه او ووایه: سلام۔، پس ژر به دوی پوه شي

## (مکي) دود (دوړه) - الدخان ۴۴

۱:۴۴ - حا، میم

۲:۴۴ - قسم دی په بیانوونکي کتاب

۳:۴۴ - بېشکه مونږ دا (قرآن) په مبارکه شپه کې نازل کړی دی، بېشکه مونږ وېروونکي وو

۴:۴۴ - په دغې (شپه) کې هر له حکمته ډك کار بیانولی (او بېلولی) شي

۵:۴۴ - زمونږ له جانبه د حکم۔ ورکولو په وجه (حکم۔ ورکول دي زمونږ له جانبه) بېشکه مونږ (د رسولانو) لېږونکي وو

۶:۴۴ - ستا د رب د رحمت لپاره، بېشکه هم۔ دی ښه اورېدونکی، ښه پوه دی

۷:۴۴ - چې د اسمانونو او ځمکې رب دی او د هغه څه چې د دواړو په مینځ کې دي۔، که تاسو یقین کوونکي یئ

۸:۴۴ - نشته هېڅ یو حق معبود مګر هم۔ دی دی، دی ژوندي کول کوي او مړه کول کوي۔، ستاسو رب دی او ستاسو د ړومبنیو پلرونو رب دی

۹:۴۴ - بلکې دوی په شك کې دي، چې لوبې کوي

۱۰:۴۴ - پس ته د هغې ورځې انتظار کوه چې اسمان ښکاره لوګی راوړي

۱۱:۴۴ - چې خلق به پټ کړي دا ډېر دردوونکی عذاب دی

۱۲:۴۴ - ای زمونږه ربه! ته زمونږ نه دغه عذاب لرې کړه، بېشکه مونږ ایمان راوړونکي یو

۱۳:۴۴ - دوی ته به نصیحت اخیستل چېرته وي، حال دا چې دوی ته ښکاره بیانوونکی رسول راغلی و

۱۴:۴۴ - بیا دوی له هغه نه مخ وګرځاوه او وېې ویل: (دا) تعلیم۔ ورکړی شوی دی، لېونی دی

۱۵:۴۴ - بېشکه مونږ دغه عذاب لږ (وخت) لرې کوونکي یو۔، بېشکه تاسو بیا (کفر ته) راګرځېدونکي یئ

۱۶:۴۴ - (یاده کړه) هغه ورځ چې مونږ نیول وکړو، تر ټولو غټ نیول، بېشکه مونږ انتقام۔ اخیستونکي یو

۱۷:۴۴ - او یقینًا یقینًا مونږ له دوی نه مخکې د فرعون قوم۔ ازمایلی و۔ او هغو ته ډېر عزتمند

رسول راغلی و

۱۸:۴۴ - چې تاسو ما ته د الله بنده گان (بني اسرائيل) راوسپارئ، بېشکه زه تاسو لپاره امانتگر رسول يم

۱۹:۴۴ - او دا چې تاسو په الله سرکشي مه کوئ، بېشکه زه تاسو ته ښکاره دليل راوړونکی يم

۲۰:۴۴ - او بېشکه ما پناه نيولې ده د خپل رب او ستاسو د رب، له دې نه چې تاسو ما سنگسار کړئ

۲۱:۴۴ - او که تاسو په ما ايمان نه راوړئ، بيا نو له ما نه په ډډه شئ

۲۲:۴۴ - بيا هغه له خپل رب نه دعا وغوښته چې بېشکه دغه مجرمان خلق دي

۲۳:۴۴ - نو (الله ورته وويل: چې) ته زما بنده گان د شپې بوځه، بېشکه ستاسو به تعاقب کولی شي

۲۴:۴۴ - او سمندر ولاړ (ساکن) پرېږده، بېشکه دوی دي ډوب کړی شوی لښکر

۲۵:۴۴ - دوی څومره ډېر باغونه او چينې پرېښودلې

۲۶:۴۴ - او فصلونه او ډېر د عزت ځای

۲۷:۴۴ - او نور نعمتونه چې دوی به په هغو کې خوشاله وو

۲۸:۴۴ - همداسې (مو دوی هلاك کړل) او دغه مو بل قوم ته په ميراث ورکړل

۲۹:۴۴ - نو په دوی اسمان او ځمکې ونه ژړل او نه دوی مهلت ورکړی شوي وو

۳۰:۴۴ - او يقينًا يقينًا مونږ بني اسرائيل له سپکوونکي عذاب نه خلاص کړل

۳۱:۴۴ - له فرعون نه، بېشکه هغه (فرعون) سرکښه (او) له حده تېرېدونکو څخه و

۳۲:۴۴ - او يقينًا يقينًا مونږ دغه (بني اسرائيل) د خپلې زمانې په خلقو باندې غوره کړي وو په علم سره (په دې حال کې چې مونږ پرې عالمان وو)

۳۳:۴۴ - او دوی ته مونږ هغه نښې ورکړې وې، چې په هغو کې ښکاره ازمايش و

۳۴:۴۴ - بېشکه دغه (کفار) خامخا وايي

۳۵:۴۴ - نه دی دغه (عاقبت او د کار خاتمه) مگر زمونږ ړومبنی مرگ دی، او مونږ به له سره بيا راژوندي نه کړی شو

۳۶:۴۴ - نو تاسو زمونږ پلرونو (ژوندي) راولئ! که تاسو رښتيني يئ

۳۷:۴۴ - ايا دوی (قريش) غوره دي، يا که د تبع قوم او هغه کسان چې له دوی نه مخکې وو،

مونږ هغوی هلاك كړل، بېشكه دوی مجرمان خلق وو

۳۸:۴۴ - او مونږ اسمانونه او ځمكه او هر هغه څه چې د دواړو په مینځ كې دي؛ نه دي پیدا كړي، په داسې حال كې چې عبث او لوبې كوونكي یو

۳۹:۴۴ - مونږ دوی دواړه نه دي پیدا كړي مگر په حقه سره۔ او لېكن د دوی اكثره (خلق) نه پوهېږي

۴۰:۴۴ - بېشكه د فیصلې ورځ د دوی د ټولو ټاكلې وعده ده

۴۱:۴۴ - هغه ورځ چې هېڅ یو دوست به د بل دوست هېڅ په كار رانشي او نه به له دوی سره مدد كولی شي

۴۲:۴۴ - لېكن هغه كس چې الله پرې رحم وكړي، بېشكه دا (الله)، هم دی ښه غالب، بې حده رحم كوونكی دی

۴۳:۴۴ - بېشكه د زقوم ونه

۴۴:۴۴ - د غټ گناهگار خوراك دی

۴۵:۴۴ - د ویلې كړی شویو مسو (د تېلو تورې خټې) په شان چې په گېډو كې به اېشیږي

۴۶:۴۴ - د گرمو اوبو د اېشېدلو په شان

۴۷:۴۴ - تاسو دا ونیسئ، پس دی د جهنم بېخي مینځ له په سختۍ سره راكاږئ

۴۸:۴۴ - بیا د ده د سر له پاسه د اېشېدلو اوبو له عذابه ورتوی كړئ

۴۹:۴۴ - (ده ته به وویل شي چې دغه عذاب) وڅكه، بېشكه هم دا ته ډېر زبردست، ډېر عزتمن يې

۵۰:۴۴ - بېشكه دا هغه (عذاب) دی چې تاسو به په ده كې شك كاوه

۵۱:۴۴ - بېشكه متقیان به په امن ناكه ځای كې وي

۵۲:۴۴ - په جنتونو كې

۵۳:۴۴ - دوی به له نریو ورېښمو او پېړو ورېښمو جامې اغوندي، په داسې حال كې چې سره مخامخ به ناست وي

۵۴:۴۴ - همداسې به وي۔ او مونږ به دوی د غټې سترگو سپینو سرو حورو سره ملگري كړو

۵۵:۴۴ - دوی به په دغو جنتونو كې هر قسمه مېوې راغواړي، په داسې حال كې چې په امن به وي

۵٦:۴۴ - دوی به په دغو کې مرګ نه څکي. غیر له ړومبني مرګ نه (چې په دنیا کې تېر شوی دی) او دوی به (الله) د دوزخ له عذاب نه بچ وساتي

۵۷:۴۴ - د خپل رب د فضل په وجه، همدغه ډېره لویه کامیابي ده

۵۸:۴۴ - پس بېشکه همدا خبره ده چې دا (قرآن) مونږ ستا په ژبه اسان کړی دی، د دې لپاره چې دوی نصیحت واخلي

۵۹:۴۴ - نو ته انتظار کوه، بېشکه دوی هم انتظار کوونکي دي

## (مکي) په ګونډو - الجاثية ۴۵

۱:۴۵ - حا، میم

۲:۴۵ - د کتاب نازلول د الله له جانبه دي چې ډېر غالب، ښه حکمت والا دی

۳:۴۵ - بېشکه په اسمانونو او ځمکه کې د مومنانو لپاره یقینًا ډېرې نښې دي

۴:۴۵ - او ستاسو په پیدا کولو کې او په هغه څه کې چې ده هر قسمه خوځنده خواره کړي دي؛ د هغه قوم لپاره نښې دي چې یقین کوي

۵:۴۵ - او د شپې او ورځې په اختلاف کې او په هغه کې چې الله له اسمان (بره) نه رزق (باران) نازل کړی دی، بیا یې په هغه سره ځمکه د هغې له مرګ نه پس راژوندۍ کړې ده او د هواګانو په بدلولو رابدلولو کې د هغو خلقو لپاره نښې دي چې له عقل نه کار اخلي

۶:۴۵ - دغه د الله دلیلونه دي چې مونږ یې په حقه سره په تا لولو، نو دوی به د الله او د هغه له ایتونو نه وروسته په کومې خبرې ایمان راوړي؟

۷:۴۵ - د هر سخت دروغ تړونکي، سخت مجرم لپاره هلاکت دی

۸:۴۵ - د الله ایتونه اوري چې په ده لوستل کېږي، بیا ښه کلکېږي، په داسې حال کې چې تکبر کوونکی وي، ګویاکې ده دا (ایتونه) نه دي اورېدلي.، نو ده ته د ډېر دردوونکي عذاب زېری ورکړه

۹:۴۵ - او کله چې دی زمونږ له ایتونو نه څه معلوم کړي، نو هغه مسخره ونیسي، دغه کسان (چې دي) د دوی لپاره سپکوونکی عذاب دی

۱۰:۴۵ - د دوی مخې ته جهنم دی او د دوی کړي عملونه به د دوی هېڅ په کار رانشي او نه هغه چې دوی له الله نه غیر کارسازان نیولي وو. او د دوی لپاره ډېر لوی عذاب دی

۱۱:۴۵ - دا (قرآن) هدایت دی. او هغه کسان چې د خپل رب په ایتونو کافران شوي دي؛ د هغوی لپاره د ډېر دردوونکي عذاب سزا ده

۱۲:۴۵ - الله هغه ذات دی چې تاسو لپاره یې سمندر تابع کړی دی، د دې لپاره چې په ده کې کشتۍ د ده په حکم سره روانې شي او د دې لپاره چې تاسو د هغه له فضله لټون وکړئ او د دې لپاره چې تاسو شکر وباسئ

۱۳:۴۵ - او تاسو لپاره یې په کار لګولي دي هر هغه څه چې په اسمانونو کې دي او هر هغه څه چې په ځمکه کې دي، په داسې حال کې چې دا ټول د هغه له جانبه (مسخر) دي.، بېشکه په دغو کې د هغه قوم لپاره یقینًا ډېرې نښې دي چې غور فکر کوي

۱۴:۴۵ - (ای نبي!) ته هغو کسانو ته ووایه چې ایمان راوړی دی چې هغو کسانو ته دې بخښنه کوي چې د الله د ورځو (حوادثو) امېد نه لري.، د دې لپاره چې دی (الله پخپله) یوې ډلې ته د هغوی د کړیو کارونو بدله ورکړي

۱۵:۴۵ - هر څوك چې نېك عمل وکړي، نو د خپل ځان لپاره یې دی، او څوك چې بد وکړي، نو په همده یې ضرر دی، بیا به خاص خپل رب ته تاسو بېرته بیول کېږئ

۱۶:۴۵ - او یقینًا یقینًا مونږ بني اسرائیلو ته کتاب او حکم او نبوت ورکړی و او دوی ته مو پاکیزه څیزونه روزي کړي وو او مونږ دوی ته (د خپلې زمانې) په خلقو فضیلت ورکړی و

۱۷:۴۵ - او مونږه دوی ته (د دین) په کار کې ښکاره دلیلونه ورکړي وو، نو دوی اختلاف ونه کړ مګر وروسته له دې چې دوی ته علم راغی، د خپل مینځي ضد (او حسد) په وجه، بېشکه ستا رب به د قیامت په ورځ د دوی په مینځ کې په هغو خبرو کې فیصله کوي چې دوی به په هغو کې اختلاف کاوه

۱۸:۴۵ - بیا مونږ ته (د دین) په معامله کې په واضحه لاره باندې ودرولې، نو ته د دې پیروي کوه او ته د هغو خلقو د خواهشاتو پیروي مه کوه چې نه پوهېږي

۱۹:۴۵ - بېشکه دوی به د الله په مقابله کې ستا هېڅ په کار رانشي او بېشکه ظالمان (چې دي) د دوی ځینې د ځینو نورو دوستان دي او الله د پرهېزګارانو ملګری دی

۲۰:۴۵ - دا (قرآن) د خلقو لپاره ښکاره دلیلونه دي او هدایت او رحمت دی د هغه قوم لپاره چې یقین کوي

۲۱:۴۵ - ایا هغو کسانو چې جرمونه یې کړي دي؛ دا ګمان کړی چې مونږ به دوی د هغو کسانو په شان وګرځوو چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي، په داسې حال کې چې د دوی ژوند او د دوی مرګ به یو برابر وي، بده ده هغه فیصله چې دوی یې کوي

۲۲:۴۵ - او الله اسمانونه او ځمکه په حقه سره پیدا کړي دي او د دې لپاره چې هر نفس ته د هغه عمل بدله ورکړی شي چې ده کړی دی، په داسې حال کې چې په دوی به ظلم نه کولی شي

۲۳:۴۵ - ایا نو تا هغه کس لیدلی دی چې خپل معبود یې خپل خواهش گرځولی دی او الله هغه په علم باندې گمراه کړ او د هغه په غوږونو او د هغه په زړه یې مهر ولگاوه، او د هغه په سترگو یې پرده واچوله، نو ده ته به له الله نه بعد څوك هدایت وکړي.، ایا نو تاسو پند نه اخلئ!

۲۴:۴۵ - او دوی وایي: دغه (ژوندون) نشته مگر زمونږ دنیایي ژوند چې مړه کیږو او ژوندي کیږو او مونږ نه هلاکوي مگر زمانه. او دوی ته په دې خبره هیڅ علم نشته، دوی یواځې گمانونه چلوي

۲۵:۴۵ - او کله چې دوی ته زمونږ ایتونه تلاوت کولی شي، چې ښه واضح دي، (نو) د دوی دلیل نه وي مگر دا چې وایي: تاسو زمونږ (مړه) پلرونه راولئ که تاسو رښتیني یئ

۲۶:۴۵ - ته دوی ته ووایه: الله تاسو ژوندي کوي، بیا هغه تاسو مړه کوي بیا هغه تاسو د قیامت ورځې ته راجمع کوي چې په هغې کې هیڅ شك نشته او لیکن د خلقو اکثریت نه پوهیږي

۲۷:۴۵ - او خاص الله لپاره د اسمانونو او ځمکې باچایي ده او په هغه ورځ کې چې قیامت به قایم شي، په دغه ورځ کې به باطل پرستان تاوانیان شي

۲۸:۴۵ - او ته به هر امت په ځنگنونو پروت وینې.، هر امت به خپل کتاب (اعمالنامې) ته راوبللی شي.، نن ورځ به تاسو ته د هغو عملونو بدله درکولی شي چې تاسو به کول

۲۹:۴۵ - دا زمونږ کتاب دی چې پر تاسو باندې په حقه سره گواهي کوي.، بېشکه مونږ هغه عملونه لیکل چې تاسو به (په دنیا کې) کول

۳۰:۴۵ - نو هر چې هغه کسان دي چې ایمان یې راوړی دی او نیك عملونه یې کړي دي، نو خپل رب به دوی په خپل رحمت کې داخل کړي، همدغه ښکاره کامیابي ده

۳۱:۴۵ - او پاتې شو هغه کسان چې کافران شوي دي (نو دوی ته به وویل شي:) ایا نو تاسو ته زما ایتونه نه لوستل کېدل، بیا تاسو تکبر وکړ او تاسو مجرمان خلق وئ

۳۲:۴۵ - او کله چې به (تاسو ته) وویل شو چې بېشکه د الله وعده حقه ده او قیامت (چې دی) په ده کې هیڅ شك نشته.، تاسو به ویل: مونږ نه پوهیږو قیامت څه شی دی؟ مونږ خو بس یو گمان کوو، گمان کول او مونږ له سره یقین کوونکي نه یو

۳۳:۴۵ - او دوی ته به د خپلو عملونو بدۍ ښکاره شي او دوی به گېر کړي هغه (عذاب) چې دوی به په هغه پورې استهزا کولې

۳۴:۴۵ - او وبه ویل شي نن ورځ مونږ تاسو هېروو، لکه چې تاسو د خپلې دې ورځې ملاقات هېر کړی و او ستاسو استوگنه اور دی او تاسو لپاره هیڅوك مدد کوونکي نشته

۳۵:۴۵ - دا په دې سبب چې یقیناً تاسو د الله ایتونه مسخره گرځولي وو او تاسو دنیایي ژوند غره (دوکه) کړي وئ.، نو نن ورځ به له دغه (دوزخ) نه دوی نه ایستل کېږي او نه به له دوی نه د توبې

کولو مطالبه کېږي

۳۶:۴۵ - نو ټول د کمال صفتونه خاص هغه الله لره دي چې د اسمانونو رب دی او د ځمکې رب دی، د عالمونو رب دی

۳۷:۴۵ - او خاص ده لره په اسمانونو او ځمکه کې لويي ده او هم دی ښه غالب، ښه حکمت والا دی

## (مکي) عمان کی د يو څای نوم وو - الأحقاف ۴۶

۱:۴۶:۴۷ - حا، میم

۲:۴۶:۴۷ - د کتاب نازلول د الله له جانبه دي چې ډېر غالب، ښه حکمت والا دی

۳:۴۶:۴۷ - مونږ اسمانونه او ځمکه او هغه څه چې د دواړو په مینځ کې دي، نه دي پيدا کړي مگر په حقه او په ټاکلې مودې سره۔ او کافران شوي کسان له هغه (قرآن) نه چې دوی پرې وېرولی شي، مخ گرځوونکي دي

۴:۴۶:۴۷ - ته (دوی ته) ووايه: تاسو ما ته د هغو (معبودانو) خبر راکړئ چې تاسو يې له الله نه غير بلئ، تاسو ما ته وښيئ دوی په ځمکه کې څه پيدا کړي دي؟ يا دوی لره په (پيدا کولو د) اسمانونو کې څه شراکت شته؟ تاسو ما ته له دغه (قرآن) نه مخکې کوم کتاب راوړئ، يا له علمه څه باقي علامه۔، که تاسو رښتيني يئ

۵:۴۶:۴۷ - او له هغه کس نه زيات گمراه څوك دی چې له الله نه غير هغه (معبودان) بلي چې د ده دعا (سوال) تر قيامته پورې نشي قبلولی، په داسې حال کې چې دغه (معبودان) به د دوی له بلنې نه غافله (بې خبره) وي

۶:۴۶:۴۷ - او کله چې (ټول) خلق (د حساب لپاره په محشر کې) راجمع کړی شي دغه (معبودان) به د دوی دښمنان وگرځي او د دغو (عبادت کوونکو) له عبادت نه به منکر شي

۷:۴۶:۴۷ - او کله چې دوی ته زمونږ ايتونه لوستلی شي، په داسې حال کې چې ښه واضح دي (، نو) کافران شوي کسان د حق په باره کې وايي، کله چې دوی ته راغی: دا ښکاره جادو دی

۸:۴۶:۴۷ - بلکې ايا دوی وايي: ده دا له ځانه جوړ کړی دی، ته (دوی ته) ووايه: که چېرې دا ما له ځانه جوړ کړی وي، نو تاسو زما لپاره له الله نه (د بچ کولو لپاره) د هېڅ شي اختيار نه لرئ، هغه په هغو خبرو ښه عالم دی چې تاسو په هغو کې لگيا يئ، هغه زما په مينځ کې او ستاسو په مينځ کې ښه کافي گواه دی۔ او همدغه ښه بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۹:۴۶:۴۷ - ته (دوی ته) ووايه: زه په رسولانو کې اول (او نوی رسول) نه يم (بلکې له ما نه مخکې

هم رسولان تېر شوي) او زه نه پوهېږم چې زما سره او تاسو سره به څه کولی شي، زه خو يواځې د هغه څه پيروي کوم چې ما ته وحي کولی شي او زه خو يواځې ښکاره وېرونکی يم

۴۷:۴۶:۱۰ - ته (دوی ته) ووايه: تاسو ما ته خبر راکړئ که چېرې دا (قرآن) د الله له جانبه وي او تاسو په ده سره کافران شوي يئ او د بني اسرائيلو يو ګواه د دې په مثل سره ګواهي کړې ده، پس هغه ايمان راوړ او تاسو لويي وکړه، بېشکه الله ظالم قوم ته هدايت نه کوي

۴۷:۴۶:۱۱ - او کافران شويو کسانو د هغو کسانو په هکله وويل چې ايمان يې راوړی دی: که چېرې دا (ايمان، قرآن) خير (او غوره کار) وی، نو دوی به ده ته زمونږ نه مخکې شوي نه وو. او چونکه دغو (کافرانو) په دغه (قرآن) سره نېغه لاره ونه موندله، نو څکه دوی به ضرور وايي: دا ډېر پخواني دروغ دي

۴۷:۴۶:۱۲ - حال دا چې له ده نه مخکې د موسٰی کتاب و، چې لار ښوونکی او رحمت و او دا (قرآن) يو تصديق کوونکی کتاب دی، په داسې حال کې چې په عربي ژبه دی، د دې لپاره چې هغه کسان ووېروي چې ظلم يې کړی دی او نېکي کوونکو لپاره زېری دی

۴۷:۴۶:۱۳ - بېشکه هغه کسان چې وايي: زمونږ رب الله دی، بيا ټينګ ودرېږي، نو په دوی به نه څه وېره وي او نه به دوی غمګين کېږي

۴۷:۴۶:۱۴ - دغه کسان د جنت ملګري دي، چې په ده کې به تل ترتله وي، (دوی ته به) بدله ورکولی شي د هغو (نېکو) عملونو په سبب چې دوی به کول

۴۷:۴۶:۱۵ - او مونږ انسان ته له خپل مور او پلار سره د نېکۍ کولو کلك حکم کړی دی.، د ده مور دی د سختۍ په حالت کې (په خېټه کې) پورته کړی او دی يې د سختۍ په حالت کې زېږولی دی او د ده حمل او له تي نه د ده، پرېکولو (غوځولو، د دواړو) موده دېرش مياشتې ده، تر هغه پورې چې کله دی خپل قوت ته ورسېده او څلوېښتو کالو ته ورسېده، ده وويل: ای زما ربه! ته ما ته (الهام او) توفيق راکړه چې زه ستا د هغه نعمت شکر ادا کړم چې تا په ما او زما په مور و پلار انعام کړی دی او دا چې زه داسې نېك عمل وکړم چې ته يې خوښوې او ته زما په اولاد کې صلاحيت (او نېکي) کېږده، بېشکه ما تا ته توبه کړې ده او بېشکه زه له مسلمانانو څنې يم

۴۷:۴۶:۱۶ - دغه کسان دي چې مونږ له دوی نه د دوی په عملونو کې تر ټولو ښه قبلوو او د دوی له ګناهونو نه تېرېږو، په داسې حال کې چې د جنت په ملګرو کې به وي (الله کړې ده) هغه رښتينې وعده چې له دوی سره يې وعده کولی شوه

۴۷:۴۶:۱۷ - او هغه سړی چې خپل مور او پلار ته يې وويل: تاسو دواړو ته دې خرابي وي (زه له تاسو دواړو زړه تنګی يم) ايا تاسو ما ته دا وعده راکوئ چې زه به (ژوندی) راوېستلی کېږم، حال دا چې له ما نه مخکې ډېرې پېړۍ تېرې شوې دي او هغو دواړو الله ته فرياد کاوه (او ورته ويل

يې:) تا لره هلاکت دی، ایمان راوړه! بېشکه د الله وعده حقه ده.، نو دی (په جواب کې) وايي: دا نه دي مګر د ړومبنو خلقو باطلې قصې

۱۸:۴۶:۴۷ - دغه هغه کسان دي چې په دوی باندې (د عذاب) خبره ثابته شوې ده، په هغو امتونو کې چې له دوی نه مخکې تېر شوي دي له پېریانو او انسانانو څنې، بېشکه دوی تاوانیان وو

۱۹:۴۶:۴۷ - او د هرې یوې (ډلې) لپاره د دوی د کړو عملونو په سبب (بېلې بېلې) مرتبې دي، او د دې لپاره چې دوی ته د دوی عملونه پوره ورکړي، په داسې حال کې چې په دوی به ظلم ونه کړی شي

۲۰:۴۶:۴۷ - او هغه ورځ (یاده کړه) چې کافران شوي کسان به اور ته پېش کولی شي (او ورته به وویل شي:) تاسو خپل خوندونه (او نعمتونه) په خپل دنیایي ژوند کې ختم کړي دي او تاسو له هغو نه فایده اخیستې ده، نو نن ورځ به تاسو ته د ذلت د عذاب بدله درکولی شي، په سبب د دې چې تاسو به په ځمکه کې ناحقه تکبر کاوه او په سبب د دې چې تاسو به نافرماني کوله

۲۱:۴۶:۴۷ - او ته د عادیانو ورور (هود) یاد کړه، کله چې ده خپل قوم ووېرولو، چې په احقاف (رېګستان) کې وو، او یقینًا له ده نه مخکې او له ده نه وروسته (نور) وېروونکي (پېغمبران) تېر شوي دي (په دې خبرې سره) چې تاسو عبادت مه کوئ غیر له الله نه.، بېشکه زه په تاسو د ډېرې لویې ورځې د عذاب وېره کوم

۲۲:۴۶:۴۷ - دوی وویل: (ای هوده!) ایا ته مونږ ته د دې لپاره راغلی یې چې مونږ له خپلو معبودانو نه واړوې، پس ته پر مونږ هغه (عذاب) راوله چې ته یې مونږ ته وعده راکوې.، که ته له رښتینو څنې یې

۲۳:۴۶:۴۷ - ده وویل: بېشکه همدا خبره ده چې (د عذاب د راتلو) علم خو له الله سره دی او زه تاسو ته هغه څه دررسوم چې په هغو سره زه رالېږل شوی یم او لېکن زه تاسو داسې قوم وینم چې له جهالت نه کار اخلئ

۲۴:۴۶:۴۷ - نو کله چې دوی هغه (عذاب) ولیده، چې د پلنې ورېځې په شکل کې د دوی میدانونو ته مخ کوونکی و، دوی وویل: دا پلنه ورېځ ده، پر مونږ باران وروونکې ده، (نو هود وویل) بلکې دا هغه (عذاب) دی چې تاسو د ده تلوار کاوه، باد دی چې په ده کې دردوونکی عذاب دی

۲۵:۴۶:۴۷ - چې د خپل رب په حکم سره هر شی هلاکوي، نو دوی سبا ته داسې شول چې یواځې د دوی (خالي) کورونه لیدل کېدل، مونږ همداسې مجرم قوم ته بدله ورکوو

۲۶:۴۶:۴۷ - او یقینًا یقینًا مونږ هغوی ته په هغو څیزونو کې دومره قوت (او قدرت) ورکړی و چې تاسو ته مو په هغو کې قدرت نه دی درکړی او د هغوی لپاره مونږ غوږونه او سترګې او زړونه پیدا کړي وو، نو له دوی نه د دوی غوږونو او نه د دوی سترګو او نه د دوی زړونو هېڅ شی (عذاب)

دفع نه کړی شو، ځکه چې دوی د الله له ایتونو نه انکار کاوه او دوی هغه (عذاب) راګېر کړل چې دوی به په هغه پورې استهزا کولې

۲۷:۴۶:۴۷ - او یقینًا یقینًا مونږ هغه کلي چې ستاسو چاپېره دي، هلاك کړل او مونږه ایتونه مکرر بیان کړي دي، د دې لپاره چې دوی (له کفر نه) راوګرځي

۲۸:۴۶:۴۷ - نو د دوی مرسته هغو (معبودانو) ولې ونه کړه چې دغو (خلقو دوی) د تقرب لپاره له الله نه غیر معبودان ګرځولي وو، بلکې دغه (معبودان په دغه وخت کې) له دوی نه ورك شول او دغه د دوی غټ دروغ دي او هغه څه دي چې دوی به له ځانه جوړول

۲۹:۴۶:۴۷ - او هغه وخت (یاد کړه) چې مونږ تا ته د پېریانو یوه ډله راوګرځوله، چې قرآن به اوري، نو کله چې دوی ده (قرآن) ته حاضر شول، نو ویې ویل: چوپ شئ! نو کله چې (د قرآن تلاوت) تمام کړی شو (نو) دوی خپل قوم ته بېرته وګرځېدل، په داسې حال کې چې وېروونکي وو

۳۰:۴۶:۴۷ - دوی وویل: ای زمونږ قومه! بېشکه مونږ داسې کتاب واورېده چې له موسیٰ نه وروسته نازل کړی شوی دی، په داسې حال کې د هغو (کتابونو) تصدیق کوونکی دی چې له ده نه مخکې وو.، حق ته او نېغې (سمې) لارې ته ښوونه کوي

۳۱:۴۶:۴۷ - ای زمونږ قومه! تاسو د الله د بلونکي وینا قبوله کړئ او په ده ایمان راوړئ، چې هغه (الله) تاسو ته ستاسو ځینې ګناهونه وبخښي او تاسو له ډېر دردوونکي عذاب نه خلاص (او بچ) کړي

۳۲:۴۶:۴۷ - او څوك چې د الله د بلونکي خبره قبوله نه کړي، نو دغه کس په ځمکه کې (الله لره) عاجزه کوونکی نه دی او د ده لپاره له دغه (الله) نه غیر هېڅ کارسازي (او مددګاران) نشته او دغه کسان په ښکاره ګمراهۍ کې دي

۳۳:۴۶:۴۷ - او ایا دوی نه دي کتلي چې بېشکه هغه الله چې اسمانونه او ځمکه یې پیدا کړي دي او د دغو په پیدا کولو سره نه دی ستړی شوی، یقینًا په دې قادر دی چې مړي ژوندي کړي؟ ولې نه! بېشکه هغه په هر شي باندې ښه قادر دی

۳۴:۴۶:۴۷ - او هغه ورځ (یاده کړه) چې کافران شوي کسان به اور ته وړاندې کولی شي (او ورته وبه ویل شي:) ایا دا حق (اوربښتیا) نه دی، دوی به وایي: ولې نه! زمونږ دې په خپل رب قسم وي.! الله به وایي: نو تاسو عذاب وڅکئ، په سبب د هغه کفر چې تاسو به کاوه

۳۵:۴۶:۴۷ - نو (ای نبي!) ته صبر کوه، لکه چې د عزیمت والا رسولانو صبر کړی دی او د دوی په هکله (د عذاب) تلور مه کوه، ګویاکې دوی به هغه ورځ (کې) چې هغه (عذاب) ویني چې له دوی سره یې وعده کولی شوه، داسې وي چې دوی وخت نه دی تېر کړی مګر د ورځې یوه ګړی، (دا قرآن) پیغام دی، پس هلاك کولی نه شي مګر فاسقان خلق

# (مدني) محمد - محمد ۴۷

۱:۴۷ - هغه کسان چې کافران شوي دي او (خلق يې) د الله له لارې نه منع کړي دي.؛ هغه (الله) د دوی (نېك) عملونه خراب (او ضايع) کړي دي

۲:۴۷ - او هغه کسان چې ايمان يې راوړ او نېك عملونه وکړل او په هغه (قرآن) يې ايمان راوړ چې په محمد (ﷺ) نازل کړی شوی دی. او همدغه د دوی د رب له جانبه حق دی (نو) هغه (الله) به له دوی نه د دوی ګناهونه لرې کړي او د دوی حال به ښه کړي

۳:۴۷ - دغه په دې سبب چې يقيناً کافران شويو کسانو د باطل پيروي کړې ده او يقيناً هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی د خپل رب له جانبه د حق پيروي کړې ده.، همداسې الله خلقو ته د دوی مثالونه (او احوال) بيانوي

۴:۴۷ - نو کله چې تاسو له کافران شويو خلقو سره (په جنګ کې) مخامخ شئ، نو (اول کار د دوی) د څټونو وهل دي، تر هغه پورې چې کله تاسو دوی ښه ډېر ووژنئ، نو بيا تړل ښه مضبوط کړئ (بيا رسۍ ښې مضبوطې وتړئ) بيا له دې نه بعد يا خو احسان کول دي (په دوی احسان وکړئ) او يا خو فديه کول دي (د عوض په بدل کې يې ازاد کړئ) (له دوی سره جنګ کوئ) تر هغه پورې چې جنګ (والا) خپلې وسلې کېږدي، دغه (د الله حکم) دی او که الله غوښتلي وی (نو) له دوی نه به يې خامخا بدل اخيستی و او لېکن د دې لپاره (يې تاسو ته د جهاد حکم وکړ) چې ستاسو ځينې په ځينو نورو سره وازمايي، او هغه کسان چې د الله په لاره کې ووژل شي، نو هغه (الله) به د دوی عملونه له سره ضايع نه کړي

۵:۴۷ - هغه (الله) به دوی ته خامخا لار ښوونه وکړي او د دوی حال به ښه کړي

٦:۴۷ - او دوی به جنت ته داخل کړي چې هغه يې دوی ته ورښودلی دی

۷:۴۷ - ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی! که چېرې تاسو د الله مدد وکړئ، هغه به ستاسو مدد وکړئ او ستاسو قدمونه به ثابت (او ټينګ) کړي

۸:۴۷ - او هغه کسان چې کافران شوي دي، نو د دوی لپاره هلاکوالی دی او هغه (الله) د دوی عملونه ضايع کړي دي

۹:۴۷ - دا ځکه چې يقيناً دوی هغه (قرآن) بد ګڼلی دی چې الله نازل کړی دی، نو هغه (الله) د دوی عملونه برباد کړل

۱۰:۴۷ - ايا نو دوی په ځمکه کې نه ګرځي، نو چې ووينې چې د هغو کسانو انجام څنګه و چې له دوی نه مخکې وو، الله په دوی تباهي راوسته، او د کافرانو لپاره د دغه (انجام) په مثل مثالونه

شته

۱۱:۴۷ - دغه ځکه چې یقینًا الله د هغو کسانو دوست (او مددگار) دی چې ایمان یې راوړی دی او دا چې یقینًا کافران (چې دي) د دوی لپاره مددگار (او دوست) نشته

۱۲:۴۷ - بېشکه الله به هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي، داسې جنتونه ته داخلوي چې د هغو له لاندې ولې بهېږي او هغه کسان چې کافران شوي دي، دوی فایده اخلي او خوراك کوي لکه څنگه چې څاروي خوراك کوي او اور د دوی استوگنه ده

۱۳:۴۷ - او ډېر داسې کلي چې هغه ستا له هغه کلي نه چې ته یې اېستلی یې؛ په قوت کې زیات سخت وو؛ مونږ هغوی هلاك کړل، نو د هغوی هیڅوك مددگار نه و

۱۴:۴۷ - ایا نو هغه کس چې د خپل رب له جانبه په ښکاره دلیل (روان) وي د هغه کس په شان دی چې هغه ته خپل بد عمل ښایسته کړی شوی وي او دوی د خپلو خواهشاتو پیروي کړې وي

۱۵:۴۷ - د هغه جنت حال (او صفت) چې پرهېزگارانو ته یې وعده ورکړی شوې ده، په هغو کې د داسې اوبو ولې دي چې خرابېدونکې نه دي او د داسې شیدو (پیو) ولې دي چې خوند (او مزه) به یې تغیر نه مومي (نه خرابېږي) او د داسې شرابو ولې دي چې څښونکو ته مزه ورکوونکي وي او د صفا کړی شویو شاتو ولې دي او د دوی لپاره په دغو (جنتونو) کې هر قسمه مېوې دي او د خپل رب له جانبه مغفرت دی (ایا دغه کس) د هغه چا په شان دی چې هغه په اور کې تل ترتله وي او په دوی ډېري گرمې اوبه ورڅښولی شي، نو د دوی کولمې به ټوټې ټوټې کړي

۱۶:۴۷ - او په دوی کې ځینې هغه دي چې تا ته غوږ ږدي تر دې چې کله ستا له خوا نه بهر ووځي، (نو) هغو کسانو ته وایي چې علم ورته ورکړی شوی دی: ده (محمدﷺ) اوس څه وویل؟ دغه هغه کسان دي چې الله د دوی په زړونو مهر لگولی دی او دوی د خپلو خواهشاتو پیروي کړې ده

۱۷:۴۷ - او هغه کسان چې هدایت یې موندلی دی، هغه (الله) دوی ته هدایت ورزیات کړی دی او دوی ته یې د دوی پرهېزگاري ورکړې ده

۱۸:۴۷ - نو دوی انتظار نه کوي مگر د قیامت (یعنې) چې په دوی ناڅاپه راشي، نو یقینًا د ده نښې راغلې دي، نو د دوی لپاره به د دوی پند اخیستل څنگه (مفید) وي چې کله په دوی (قیامت) راشي

۱۹:۴۷ - نو ته پوه شه چې بېشکه شان دا دی چې د عبادت هېڅ لایق نشته مگر الله دی او د خپلې گناه مغفرت وغواړه او د مومنو سړیو او مومنو ښځو لپاره هم، او الله ستاسو په گرځېدنځی او اوسېدنځی عالِم دی

۲۰:۴۷ - او هغه کس چې ایمان یې راوړی دی، وایي: ولې یو (داسې) سورت نه نازلول کېږي (چې

د جهاد حکم په کې وي)، نو کله چې يو محکم سورت نازل کړی شي او په هغه کې جنګ ياد کړی شوی وي (نو) ته به هغه کسان وينې چې د هغوی په زړونو کې (د نفاق) مرض دی، چې تا ته به ګوري د هغه کس د کتو په شان چې په هغه د مرګ له وجې بې هوشي راغلې وي، نو د دوی لپاره دې هلاکت وي

۲۱:۴۷ - (دوی وايي: زمونږ کار) اطاعت دی او نېکه خبره کول دي، نو کله چې کار (د جهاد) فرض (او لازم) شي، نو که دوی له الله سره صدق کړی وی (نو) يقيناً دا به د دوی لپاره ډېر غوره و

۲۲:۴۷ - نو ايا تاسو، که چېرې حاکمان شئ، دې ته نژدې يئ چې تاسو به په ځمکه کې فساد وکړئ او خپل قرابتونه (خپلوياني) به پرې کړئ

۲۳:۴۷ - دا هغه کسان دي چې الله په دوی لعنت کړی دی، نو دوی يې کاڼه کړي دي او د دوی سترګې يې ړندې کړې دي

۲۴:۴۷ - ايا نو دوی په قرآن کې فکر نه کوي، بلکې (د دوی) په زړونو د دغو تالې پرتې دي

۲۵:۴۷ - بېشکه هغه کسان چې په خپلو شاګانو (له ايمانه) بېرته ګرځېدلي دي، وروسته له دې چې دوی ته هدايت ښکاره شو، دوی ته شيطان (خپل عملونه) ښايسته کړي دي او دوی ته يې مهلت ښکاره کړی دی

۲۶:۴۷ - دغه په دې سبب چې يقيناً دوی هغو کسانو ته، چې دغه (قرآن) بد ګڼي چې الله نازل کړی دی، وويل: په ځينو کارونو کې به مونږ ژر ستاسو حکم ومنو. او الله د دوی په پټو خبرو پوهېږي

۲۷:۴۷ - نو څنګه حال به وي، کله چې ملايك د دوی روحونه قبض کوي، په داسې حال کې چې دغه (ملايك) به د دوی مخونه او د دوی شاګانې وهي

۲۸:۴۷ - دغه په دې سبب چې يقيناً دوی د هغه شي متابعت وکړ چې الله يې ناراضه کړ او دوی د هغه رضامندي بده وګڼله، نو هغه د دوی عملونه برباد کړل

۲۹:۴۷ - ايا هغه کسان چې د هغوی په زړونو کې (د نفاق) بېماري ده؛ دا ګمان کړی دی چې الله به د دوی پټې کينې له سره نه څرګندوي

۳۰:۴۷ - او که مونږ وغواړو (نو) تا ته به دوی خامخا وښيو، نو ته به دوی خامخا په خپلو خاصو نښو سره وپېژنې او ته به دوی خامخا ضرور د خبرو په اړولو کې وپېژنې. او الله ستاسو په عملونو عالِم دی

۳۱:۴۷ - او مونږ به تاسو خامخا ضرور ازمايو تر دې چې مونږ په تاسو کې جهاد کوونکي وپېژنو (ظاهر کړو) او صبر کوونکي او ستاسو خبرونه وازمايو

۳۲:۴۷ - بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي او د الله له لارې نه منع شوي دي او د رسول مخالفت کوي، وروسته له دې چې دوی ته هدايت ښکاره شو، دوی به الله ته له سره هېڅ شی ضرر ونه رسولی شي او هغه به ضرور د دوی عملونه برباد کړي

۳۳:۴۷ - ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی! تاسو د الله اطاعت کوئ او د رسول اطاعت کوئ او خپل عملونه مه تباه کوئ

۳۴:۴۷ - بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي او د الله له لارې نه منع کېږي، بيا دوی په داسې حال کې مړه شي چې کافران دي، نو الله به دوی ته له سره بخښنه ونه کړي

۳۵:۴۷ - نو تاسو سستي مه کوئ او سولې ته بلنه مه ورکوئ، په داسې حال کې چې همـ تاسو به غالب يئ، او الله له تاسو سره دی او هغه به ستاسو عملونه له سره ضايع (او کمـ) نه کړي

۳۶:۴۷ - بېشکه همـ دا خبره ده چې دنيايي ژوند خو بس لوبې او مشغولتيا ده او که تاسو ايمان راوړئ او پرهېزګاره شئ (نو) هغه به تاسو ته ستاسو اجرونه درکړي او له تاسو نه به ستاسو مالونه ونه غواړي

۳۷:۴۷ - که هغه له تاسو نه دغه (مال) وغواړي، پس په تاسو ښه کوشش وکړي (نو) تاسو به بخل وکړئ، او هغه (الله) به ستاسو پټې کينې راوباسي

۳۸:۴۷ - خبردار شئ! تاسو ای دغو کسانو! تاسو رابللی شئ، د دې لپاره چې تاسو د الله په لاره کې مال ولګوئ، نو په تاسو کې ځينې بخل کوي او څوك چې بخل وکړي، نو يقيناً همـ دا خبره ده چې هغه له خپل ځان نه (د خير په منع کولو سره) بخل کوي او همـ دا الله غني (ښه بې پروا) دی او همـ تاسو فقيران يئ۔ او که تاسو وګرځېدئ (نو) هغه به له تاسو نه غير بل قومـ په بدل کې راولي، بيا به هغوی ستاسو په شان نه وي

## (مدني) بريا - الفتح ۴۸

۱:۴۸ - بېشکه مونږ تا ته فتح درکړې ده، ښکاره فتح

۲:۴۸ - د دې لپاره چې الله تا ته ستا هغه ګناهونه وبخښي چې مخکې تېرې شوي دي او هغه چې وروسته دي او په تا باندې خپل نعمتونه پوره کړي او تا ته نېغه لاره وښيي

۳:۴۸ - او د دې لپاره چې الله ستا مدد وکړي، زبردست مدد کول

۴:۴۸ - دغه (الله) هغه ذات دی چې د مومنانو په زړونو کې يې سکون (اطمينان) نازل کړ، د دې لپاره چې دوی د خپل (مخکيني) ايمان سره د ايمان په لحاظ نور ورزيات شي۔ او خاص الله لره د اسمانونو او ځمکې لښکرې دي او الله ښه پوه، ښه حکمت والا دی

۵:۴۸ - د دې لپاره چې هغه مومنان سړي او مومنې ښځې داسې جنتونو ته داخل کړي چې د هغو له لاندې ولې بهېږي، چې دوی به په هغو کې تل ترتله وي او (د دې لپاره چې) هغه (الله) له دوی نه د دوی ګناهونه لرې کړي، او دغه د الله په نیز ډېره لویه کامیابي ده

۶:۴۸ - او د دې لپاره چې منافقو سړیو او منافقو ښځو او مشرکو سړیو او مشرکو ښځو ته عذاب ورکړي، هغه چې په الله باندې ګمان کوونکي دي، بدګمان، په دوی دې د بدۍ راګرځېدل وي، او الله په دوی باندې غضب کړی دی او په دوی یې لعنت کړی دی او د دوی لپاره یې جهنم تیار کړی دی او هغه د ورتلو بد ځای دی

۷:۴۸ - او خاص د الله لپاره د اسمانونو او ځمکې لښکرې دي او الله له ازله ښه غالب، ښه حکمت والا دی

۸:۴۸ - بېشکه مونږ ته شاهد او زېری ورکوونکی او وېروونکی لېږلی یې

۹:۴۸ - د دې لپاره چې تاسو (ای خلقو!) په الله او د هغه په رسول ایمان راوړئ او د هغه (الله) مدد وکړئ او د هغه تعظیم وکړئ او سبا او بېګا د هغه تسبیح بیان کړئ

۱۰:۴۸ - بېشکه هغه کسان چې له تا سره بیعت کوي، بېشکه همدا خبره ده چې دوی خو له الله سره بیعت کوي۔، د الله لاس د دوی د لاسونو له پاسه دی، نو هغه چا چې (دا بیعت) مات کړ، نو بېشکه همدا خبره ده چې د خپل ځان په ضرر یې ماتوي او هغه څوك چې په هغه څه وفا وکړي چې په هغه یې له الله سره عهد کړی دی، نو ده ته به هغه خامخا ډېر لوی اجر ورکړي

۱۱:۴۸ - ژر ده چې تا ته په اَعرابو کې وروسته پاتې کړی شوي کسان ووایي: مونږ خپلو مالونو او خپلوکورنیو مشغول کړي وو، لهٰذا ته زمونږ لپاره بخښنه وغواړه۔، دوی په خپلو ژبو سره هغه خبرې وایي چې د دوی په زړونو کې هغه نشته، ته (دوی ته) ووایه: نو تاسو لپاره د الله (له عذاب) نه څوك د څه شي اختیار لرلی شي، که هغه (الله) تاسو ته د ضرر رسولو اراده وکړي، یا تاسو ته د نفعې رسولو اراده وکړي، بلکې الله په هغو کارونو چې تاسو یې کوئ؛ ښه خبردار دی

۱۲:۴۸ - بلکې (اصل خبره دا ده چې) تاسو دا ګمان کړی و چې رسول او مومنان به خپلو کورنیو ته هېڅ کله هم بېرته له سره را ونه ګرځي او دغه خبره ستاسو په زړونو کې ښایسته کړی شوه او تاسو ګمان وکړ، بدګمان، او تاسو هلاکېدونکی قوم شوئ

۱۳:۴۸ - او هر څوك چې په الله او د هغه په رسول ایمان رانه وړي، نو بېشکه مونږ د کافرانو لپاره لمبې وهونکی اور تیار کړی دی

۱۴:۴۸ - او خاص د الله لپاره د اسمانونو او ځمکې باچایي ده، چا ته چې وغواړي بخښنه کوي او چا ته چې وغواړي عذاب ورکوي او الله ډېر بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۱۵:۴۸ - ژر به وروسته پاتې کړی شوي کسان ووايي، کله چې تاسو غنیمتونو ته روان شئ، د دې لپاره چې هغه راونیسئ: تاسو مونږ پرېږدئ چې تاسو پسې روان شو، دوی غواړي چې د الله کلام بدل کړي، ته (دوی ته) ووایه: تاسو به زمونږ پسې له سره رانشئ، الله همداسې مخکې له دې نه فرمایلي دي: بیا به ژر چې دوی ووايي: بلکې تاسو زمونږ سره حسد کوئ. (داسې نه ده) بلکې دوی نه پوهېدل مگر ډېر لږ څه

۱٦:۴۸ - په اعرابو کې وروسته پاتې کړی شویو کسانو ته ووایه: ژر ده چې تاسو به له داسې قوم سره (د جنگ کولو) لپاره راوبللی شئ، چې د ډېر سخت جنگ والا دي، تاسو به له هغوی سره جنگ کوئ، یا به هغوی مسلمانېږي، نو که تاسو اطاعت وکړئ، الله به تاسو ته ډېر ښه اجر درکړي او که تاسو وګرځېدئ، لکه چې له دې نه مخکې ګرځېدلي وئ. (نو) هغه به تاسو ته ډېر دردوونکی عذاب درکړي

۱۷:۴۸ - نه په ړانده باندې څه ګناه شته او نه په ګوډ باندې څه ګناه شته او نه په بېمار باندې څه ګناه شته. او څوك چې د الله او د هغه د رسول اطاعت وکړي (نو) هغه (الله) به دغه (کس) داسې جنتونو ته داخل کړې چې د هغو له لاندې ولې بهېږي او څوك چې (د الله له احکامو نه) مخ واړوي (، نو) هغه (الله) به ده ته ډېر دردوونکی عذاب ورکړي

۱۸:۴۸ - یقینًا یقینًا الله له مومنانو نه راضي شو کله چې دوی له تا سره د ونې لاندې بیعت کاوه، پس ده ته هغه څه معلوم وو چې د دوی په زړونو کې وو، بیا هغه په دوی اطمینان نازل کړ او دوی ته یې په عوض کې نژدې بری ورکړ

۱۹:۴۸ - او ډېر غنیمتونه چې دوی به هغه راحاصل کړي. او الله له همېشه ډېر غالب، ښه حکمت والا دی

۲۰:۴۸ - الله له تاسو سره د ډېرو غنیموتونو وعده کړې ده چې تاسو به هغه واخلئ، پس دا (غنیمت) یې تاسو ته ژر درکړ او د خلقو لاسونه یې له تاسو نه بند کړل او د دې لپاره چې دا (کار) د مومنانو لپاره یو نښه شي او د دې لپاره چې هغه تاسو ته نېغه لار وښیي

۲۱:۴۸ - او نور داسې (غنیمتونه) دي چې تاسو لا په هغو قادر شوي نه یئ، یقینًا الله هغه راګېر کړي دي. او الله په هر شي باندې ښه قادر دی

۲۲:۴۸ - او که کافران شویو کسانو له تاسو سره جنګ کړی وی (نو) دوی به خامخا شاګانې ګرځولې وی، بیا به دوی نه څوك کارساز موندلی و او نه کوم مددګار

۲۳:۴۸ - الله هغه طریقه جاري کړې ده چې له دې نه مخکې تېره شوې ده او ته به د الله طریقې لره له سره څه تبدیلې ونه مومې

۲۴:۴۸ - او دی همغه ذات دی چې له تاسو نه یې د هغوی لاسونه بند کړل او له هغوی نه یې

ستاسو لاسونه بند کړل، د مکې په داخل کې، وروسته له دې چې تاسو یې پر هغوی غالب کړئ، او الله هغه څه لره چې تاسو یې کوئ؛ ښه لیدونکی دی

۲۵:۴۸ - دوی هغه کسان دي چې کفر یې کړی دی، او تاسو یې له مسجد حرام نه منع کړي یئ او قرباني (د هدي څاروي هم)، په دې حال کې چې له دې نه بندې کړی شوي دي چې خپل د حلالې ځای ته ورسېږي. او که چېرې څه مومن سړي او څه مومنې ښځې نه وی، چې تاسو دوی نه پېژندل، دا چې تاسو به دوی پایمال کړئ، بیا به تاسو ته د دوی په وجه گناه ورسېږي (، نو د جنگ اجازت به یې درکړی و، خو در یې نه کړ) د دې لپاره چې الله په خپل رحمت کې هغه څوك داخل کړي چې یې غواړي، که دغه (مسلمانان له کفارو نه) جدا شوي وی، نو مونږ به خامخا په دغو (د مکې په اوسېدونکو) کسانو کې کافران شویو خلقو ته ډېر دردووونکی عذاب ورکړی و

۲۶:۴۸ - کله چې کافران شویو خلقو په خپلو زړونو کې غیرت واچاوه، د جاهلیت غیرت، نو الله خپل اطمینان په خپل رسول او په مومنانو باندې نازل کړ او په دوی پورې یې د تقویٰ خبره لازمه (ټینگه) کړه او دوی د دغې ډېر حقدار او د دغې اهل وو. او الله همېشه په هر شي ښه پوه دی

۲۷:۴۸ - یقینًا یقینًا الله خپل رسول ته خوب په حقه سره رښتیا کړ، چې تاسو به، که الله وغواړي، مسجد حرام ته په امن او ارام سره ننوځئ، چې خپل سرونه به خرووونکي یئ او کمووونکي به یئ، په داسې حال کې چې تاسو به نه وېرېږئ، پس هغه ته معلوم دي هغه څه چې تاسو ته معلوم نه دي، نو له دغې نه مخکې یې نژدې بری عطا کړ

۲۸:۴۸ - دی همغه ذات دی چې خپل رسول یې په هدایت او حق دین سره رالېږلی دی، د دې لپاره چې هغه (الله) دغه (دین) په ټولو دینونو باندې غالب کړي او هم الله کافي دی ښه گواه

۲۹:۴۸ - محمد د الله رسول دی. او هغه کسان چې له ده سره دي، په کافرانو باندې ډېر سخت دي، په خپل مینځ کې ډېر مهرباني کوونکي دي.، ته به دوی وینې چې رکوع کوونکي، سجده کوونکي دي، له الله نه فضل او رضامندي غواړي.، د دوی (د دینداری) نښې د دوی په مخونو کې دي. د سجدو له اثر نه.، دغه په تورات کې د دوی مثال دی او په انجیل کې د دوی مثال دی.، لکه هغه فصل چې خپل تېغ راوباسي، بیا هغه قوي کړي، بیا هغه (فصل، تېغ) پیړ او کلك شي بیا دغه (فصل) په خپلو پنډیو (او بېخونو) ودرېږي، په داسې حال چې زمېنداران (کروندگر) په تعجب کې اچوي، د دې لپاره چې په دغو سره کافران په غصه کړي، الله له هغو کسانو سره چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي، چې دغه (اصحابان) دي؛ د بخښنې او د ډېر لوی اجر وعده کړې ده

۱:۴۹ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو د الله او د هغه د رسول په مخکې مه وړاندې کېږئ، او له الله نهووېرېږئ، بېشکه الله ښه اورېدونکی، ښه پوه دی

۲:۴۹ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو خپل اوازونه د نبي د اواز له پاسه مه پورته کوئ، او مه ده ته په اوچت اواز خبره کوئ، لکه ستاسو د ځینو له ځینو نورو سره د اواز اوچتولو په شان۔، له دې وجې چې ستاسو عملونه به برباد شي او تاسو به پوه نه وئ

۳:۴۹ - بېشکه هغه کسان چې د الله د رسول په وړاندې خپل اوازونه ټیټوي؛ دغه هغه کسان دي چې الله د دوی زړونه د تقوىٰ (او پرهېزګارۍ) لپاره ازمایلي دي۔، د دوی لپاره بخښنه او ډېر لوی اجر دی

۴:۴۹ - بېشکه هغه کسان چې تا ته له حجرو نه د باندې چغې وهي، د دوی اکثره عقل نه لري

۵:۴۹ - او که یقینًا دوی صبر کړی وی، تر دې چې ته دوی ته راوتلی وی (نو) یقینًا دا به د دوی لپاره ډېره غوره و۔: او الله ډېر بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۶:۴۹ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! که تاسو ته کوم فاسق (بدکار کس) خبر راوړي، نو تاسو ښه تحقیق کوئ، په دې چې تاسو به یو قوم ته په ناخبرۍ سره تکلیف ورسوئ، بیا به تاسو په خپلو کړو باندې پښېمانه شئ

۷:۴۹ - او تاسو پوه شئ چې یقینًا په تاسو کې د الله رسول موجود دی، که هغه په ډېرو کارونو کې ستاسو پیروي کړې وی (نو) تاسو به په مشقت کې غورځېدلي وی او لېکن الله تاسو ته ایمان محبوب وګرځاوه او هغه یې ستاسو په زړونو کې ښایسته کړ او تاسو ته یې کفر او فسق او نافرماني کول ناخوښه وګرځول۔، هم دغه کسان په نېغه لار دي

۸:۴۹ - د الله له جانبه د فضل او نعمت په وجه۔ او الله ښه پوه، ښه حکمت والا دی

۹:۴۹ - او که په مومنانو کې دوه ډلې په خپل مینځ کې جنګ شروع کړي، نو تاسو د دغو دواړو په مینځ کې سوله (روغه) وکړئ، نو که په دغو دواړو کې یوې په بلې باندې زیاتی (او ظلم) وکړ، نو تاسو له هغې ډلې سره وجنګېږئ، چې زیاتی کوي، تر دې چې هغه د الله حکم ته راوګرځي، نو که هغه (له ظلم نه) راوګرځېدله، نو تاسو د دواړو په مینځ کې په انصاف سره سوله وکړئ او تاسو انصاف کوئ، بېشکه الله انصاف کوونکي خوښوي

۱۰:۴۹ - بېشکه هم دا خبره ده چې مومنان خو سره وروڼه دي، نو تاسو د خپلو دواړو وروڼو په مینځ کې سوله کوئ او له الله نه ووېرېږئ، د دې لپاره چې په تاسو رحم وکړی شي

۱۱:۴۹ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! هېڅ قوم دې په بل قوم پورې مسخرې نه کوي، کېدی شي چې هغوی له ده نه ډېر غوره وي، او نه (دې) ښځې په نورو ښځو پورې (مسخرې کوي)، کېدی شي چې هغوی له دوی نه ډېرې غوره وي. او تاسو د خپلو ځانونو عیب جویي مه کوئ او یو بل په بدو لقبونو (او نومونو) سره مه بلئ، له ایمان راوړو نه بعد د فسق نامه بده ده او چا چې توبه ونه وېستله، نو همم دغه کسان ظالمان دي

۱۲:۴۹ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو له ډېرو (بدو) گمانونو نه ځان وساتئ، بېشکه ځینې گمانونه گناه ده. او پټ عیبونه مه لټوئ او ستاسو ځینې دې د ځینو نورو غیبت نه کوي، ایا په تاسو کې یو کس دا خوښوي چې د خپل ورور غوښه وخوري، په دې حال کې چې هغه مړی وي، نو تاسو دغه (خوراك) بدگڼئ او له الله نه ووېرېږئ، بېشکه الله ښه توبه قبلوونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۱۳:۴۹ - ای خلقو! بېشکه مونږ تاسو له یوه سړي او له یوې ښځې پیدا کړي یئ او مونږ تاسو ځانگې او قبیلې گرځولي یئ، د دې لپاره چې تاسو یو بل سره وپېژنئ، بېشکه د الله په نیز په تاسو کې ډېر عزتمن، ستاسو زیات پرهېزگار دی.، بېشکه الله ښه پوه، ښه خبردار دی

۱۴:۴۹ - بانډېسیانو (صحرایي خلقو) وویل: مونږ ایمان راوړی دی، ته (دوی ته) ووایه: تاسو ایمان نه دی راوړی. او لېکن تاسو ووایئ چې مونږ اسلام راوړی دی. او ایمان لا تر اوسه ستاسو په زړونو کې نه دی ننوتی. او که تاسو د الله او د هغه د رسول اطاعت وکړئ، نو هغه (الله) به ستاسو له عملونو نه هېڅ شی کم نه کړي، بېشکه الله ډېر بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۱۵:۴۹ - بېشکه مومنان خو هغه کسان دي چې په الله او د هغه په رسول یې ایمان راوړی دی، بیا یې شك نه دی کړی او د الله په لاره کې یې په خپلو مالونو او خپلو ځانونو سره جهاد کړی دی، همم دغه کسان رښتیني دي

۱۶:۴۹ - ته (دوی ته) ووایه: ایا تاسو پر خپل دین باندې الله خبروئ، حال دا چې الله پوهېږي په هر هغه څه چې په اسمانونو کې دي او په هر هغه څه چې په ځمکه کې دي، او الله په هر شي باندې ښه پوه دی

۱۷:۴۹ - دوی په تا د دې احسان کوي چې اسلامم یې راوړی دی، ته (ورته)، ووایه: تاسو په ما باندې د خپل اسلامم راوړلو احسان مه کوي، بلکې الله پر تاسو باندې احسان کوي دا چې تاسو ته یې د ایمان راوړلو هدایت وکړ.، که تاسو رښتیني یئ

۱۸:۴۹ - بېشکه الله د اسمانونو او ځمکې په غیبو پوهېږي او الله هغه څه لره چې تاسو یې کوئ، ښه لیدونکی دی

۱:۵۰ - قٓ، قسمـ دی په قرآن مجید باندې (چې ته یقینًا پیغمبر یې خو دوی ایمان نه راوړي)

۲:۵۰ - بلکې دوی له دې نه تعجب کوي چې دوی ته له همدوی نه یو وېرووونکی راغی، نو کافرانو وویل: دا خو یو عجیب شی دی

۳:۵۰ - ایا کله چې مونږ مړه شو او مونږ خاورې شو. (بیا به همـ ژوندي کېږو؟) دغه بېرته راتلل (له عقل نه) ډېر لرې دي

۴:۵۰ - یقینًا مونږ په هغه څه خبر یو چې ځمکه یې د دوی (له وجود) نه کموي او زمونږ سره یو ښه یاد ساتونکی کتاب دی

۵:۵۰ - بلکې دوی د حق تکذیب کړی دی کله چې دوی ته راغی، نو دوی په ګډو وډو خبرو (اضطراب اچوونکي کار) کې دي

۶:۵۰ - ایا نو دوی د خپل ځان له پاسه اسمان ته نه دي کتلي چې څنګه مونږ هغه جوړ کړی دی او (څنګه) مونږ هغه ښایسته کړی دی، او په ده کې هېڅ چاودونه نشته

۷:۵۰ - او ځمکې لره، مونږ هغه غوړولې ده او په دې کې مو پاخه غرونه غورځولي دي او مونږ په دې کې له هر قسمه ښکلې زرغونې نه زرغون کړي دي

۸:۵۰ - د هر رجوع کوونکي بنده د لاربښوونې او نصیحت لپاره

۹:۵۰ - او مونږ له بره نه ډېرې برکتي اوبه نازلې کړې دي، نو په دغو (اوبو) سره مونږ باغونه او د فصل دانې رازرغونې کړې

۱۰:۵۰ - او د کجورو ونې، چې اوږدې لوړې دي، په دې حال ګې چې هغو لره لاندې باندې وړې دي

۱۱:۵۰ - د بنده ګانو د روزۍ لپاره او مونږ په دغو (اوبو) سره مړ ښار ژوندی کړی دی، همداسې (له قبرونو نه د مړیو) راوتل دي

۱۲:۵۰ - له دوی نه مخکې د نوح قومـ او د کوهي والاو او ثمودیانو تکذیب کړی دی

۱۳:۵۰ - او عادیانو او فرعون او د لوط ورونو

۱۴:۵۰ - او د ځنګله والاو او د تبع قومـ. (د دوی) هر یو د رسولانو تکذیب کړی و، نو زما عذاب (پرې) ثابت شو

۱۵:۵۰ - ایا نو مونږ په اول پیدا کولو باندې ستړي شوي یو، بلکې دوی له نوي پیدا کولو نه په

شك کې دي

۱٦:۵۰ - او يقينًا مونږه دا انسان پيدا کړی دی، په داسې حال کې چې مونږ په هغه څه پوهېږو چې د ده نفس په هغه سره وسوسه (او خطره) کوي او مونږ ده ته (د ده) د ورمېږ له رګ نه زيات نژدې يو

۱۷:۵۰ - (ياد کړه) هغه وخت چې دوه اخيستونکي اخلي، چې يو له ښي اړخ نه او (بل) له چپ اړخ نه ناست وي

۱۸:۵۰ - (دغه بنده) هېڅ خبره نه کوي مګر له ده سره حاضر ساتونکی دی

۱۹:۵۰ - او د مرګ بې خودۍ (سختۍ) حق راوړ، دغه (مرګ) هغه دی چې تا به له ده نه څنګ کاوه

۲۰:۵۰ - او په شپېلۍ کې به پوکی وکړی شي. دغه د وعيد (وېرولو) ورځ ده

۲۱:۵۰ - او هر نفس به راځي، په داسې حال کې چې له ده سره به يو شړونکی او يوګواه وي

۲۲:۵۰ - يقينًا يقينًا ته له دې (ورځې) نه په غفلت کې وې، نو مونږ له تا نه ستا پرده لرې کړه، نو ستا نظر نن ورځ ډېر تېز دی

۲۳:۵۰ - او د ده ملګری (مَلَك) به ووايي: دا دی هغه شی چې زما سره حاضر دی

۲۴:۵۰ - (دواړو ملايکو ته به ووېل شي:) هر ډېر عناد کوونکی کافر په دوزخ کې وغورځوئ

۲۵:۵۰ - چې د خير منع کوونکی، زياتي کوونکی، (او) شك کوونکی دی

۲٦:۵۰ - هغه چې له الله سره يې بل معبود مقرر کړی دی، نو تاسو دا په ډېر سخت عذاب کې وغورځوئ

۲۷:۵۰ - د ده ملګری (شيطان) به ووايي: ای زمونږه ربه! دا ما نه دی ګمراه کړی او لېکن دا پخپله په ډېرې لرې ګمراهۍ کې و

۲۸:۵۰ - (الله به) ووايي: تاسو زما په وړاندې جګړه سره مه کوئ او يقينًا ما تاسو ته وعيد (وېرول) مخکې درلېږلی و

۲۹:۵۰ - زما په نيز (په دې باره کې) خبره نشي بدلېدی او زه په بنده ګانو هېڅرې ظلم کوونکی نه يم

۳۰:۵۰ - (ياده کړه) هغه ورځ چې مونږ به جهنم ته ووايو: ايا ته ډك شوې؟ او هغه به وايي: ايا نور هم زياتي شته؟

۳۱:۵۰ - او پرهېزګارو ته به جنت ښه رانژدې کړی شي، چې لرې به نه وي

۳۲:۵۰ - دا هغه دي چې له تاسو سره به يې وعده کولی شوه، د هر ډېر رجوع کوونکي، د (حدودو) ساتونکي لپاره

۳۳:۵۰ - د هغه چا لپاره چې له رحمان نه په ناليدلو وېرېږي او په رجوع کوونکي زړه سره راشي

۳۴:۵۰ - (دوی ته به وويل شي:) تاسو دغه (جنت) ته په سلامتۍ سره ننوځئ، دا د همېشه والي ورځ ده

۳۵:۵۰ - د دوی لپاره په دغه (جنت) کې هغه څه دي چې دوی يې غواړي او زمونږ سره نور زيات هم شته

۳۶:۵۰ - او له دوی نه مخکې مونږ څومره پېړۍ هلاکې کړې دي، چې هغوی له دوی نه په قوت (او نيوکه) کې ډېر سخت (او قوي) وو، نو هغوی په ښارونو کې وګرځېدل چې ايا د تېښتې (او پناه) ځای شته؟

۳۷:۵۰ - بېشکه په دغو (کارونو) کې خامخا پند دی، هغه چا ته چې هغه لره زړه وي، يا (نصيحت ته) غوږ کېږدي، په داسې حال کې چې حاضر (او متوجه) وي

۳۸:۵۰ - او يقينًا يقينًا مونږ اسمانونه او ځمکه او هغه څه چې د دواړو په مينځ کې دي، په شپږو ورځو کې پيدا کړي دي، او مونږ ته هېڅ ستوماني نه ده رارسېدلې

۳۹:۵۰ - نو ته په هغو خبرو صبر کوه چې دوی يې وايي او د خپل رب له ستاينې سره تسبيح وايه له لمر ختلو نه مخکې او له لمر ډوبېدلو نه مخکې

۴۰:۵۰ - او د شپې په څه حصه کې، پس د هغه تسبيح وايه او (د لمانځه) له سجدو نه وروسته هم تسبيح وايه

۴۱:۵۰ - او ته په هغې ورځ غوږ کېږده چې اواز کوونکی به له نژدې ځای نه اواز وکړي

۴۲:۵۰ - په هغې ورځ چې دوی به په حقه سره سخته چغه اوري، دغه د (له قبرونو نه د) راوتلو ورځ ده

۴۳:۵۰ - بېشکه هم دا مونږ ژوندي کول کوو او مړه کول کوو او خاص مونږ ته بېرته راګرځېدل دي

۴۴:۵۰ - په هغه ورځ چې له دوی څخه به ځمکه وچوي، په داسې حال کې چې دوی به تلوار کوونکي وي، دغه راژوندي کول مونږ ته ډېر اسان دي

۴۵:۵۰ - مونږ ښه پوه يو په هغو خبرو چې دوی يې وايي، او ته په دوی باندې هېڅ زور کوونکی نه يې، نو ته په قرآن سره هغه چا ته پند ورکړه چې زما له وعيد (او عذاب) نه وېرېږي

# (مکي) گردباد - الذاريات ٥١

١:٥١ - قسم دی په الوځوونکو بادونو، الوځول

٢:٥١ - بیا د (اوبو د) بار په اوچتوونکو وریځو (قسم دی)

٣:٥١ - بیا په اسانۍ سره تلونکو کشتیو (قسم دی)

٤:٥١ - بیا د کار په تقسیمووونکو ملایکو (قسم دی)

٥:٥١ - چې بېشکه هغه څه چې له تاسو سره یې وعده کولی شي یقینًا رښتینې (وعده) ده

٦:٥١ - او بېشکه (د عمل) بدله خامخا واقع کېدونکې ده

٧:٥١ - قسم دی په اسمان چې د لارو والا دی

٨:٥١ - چې بېشکه تاسو یقینًا په ګډه وډه (مختلفه) خبره کې یئ

٩:٥١ - ګرځولی شي له دغه (قرآن، نبي) نه هغه څوك چې (د الله په علم کې مخکې) ګرځول شوی دی

١٠:٥١ - اټکل کوونکي دې هلاك کړی شي

١١:٥١ - هغه کسان چې دوی په ډېر غفلت کې دي، هېرهوونکي دي

١٢:٥١ - دوی پوښتنه کوي چې د بدلې ورځ به کله وي؟

١٣:٥١ - په هغې ورځ کې چې دوی به په اور سره په عذاب کولی شي

١٤:٥١ - (وبه ویل شي!) تاسو خپل عذاب وڅکئ، دا هغه (عذاب) دی چې تاسو به دا جلت غوښته

١٥:٥١ - بېشکه متقیان (پرهېزګاران) به په جنتونو او چینو کې وي

١٦:٥١ - په داسې حال کې چې هغه څه لره به نیوونکي وي چې دوی ته یې د دوی رب ورکوي، بېشکه دوی له دې نه مخکې نېکي کوونکي وو

١٧:٥١ - دوی به د شپې په لږه برخه کې ویده کېدل

١٨:٥١ - او په چرګ بانګونو کې به دوی استغفار کاوه

١٩:٥١ - او د دوی په مالونو کې به د سوالګري او د محروم (مسکین) حق و

٢٠:٥١ - او په ځمکه کې د یقین کوونکو لپاره ډېري نښې دي

٢١:٥١ - او ستاسو په ځانونو کې هم، ایا نو تاسو نه وینئ

۲۲:۵۱ - او په اسمان کې ستاسو روزي ده او هغه څه چې تاسو سره يې وعده کولی شي

۲۳:۵۱ - نو د اسمان او ځمکې په رب مې قسم دی چې بېشکه دا (خبره) يقينًا حق ده، چې د هغې په شان ده چې تاسو خبرې کوئ

۲۴:۵۱ - ايا تا ته د ابراهيم د عزتمنو مېلمنو خبر رارسېدلی دی

۲۵:۵۱ - کله چې دوی په ده ورننوتل، نو ويې ويل: (مونږ په تا سلام اچوو) سلام اچول، ده وويل: (په تاسو دې) سلام (وي او په زړه کې يې تېر شول چې دا) نا اشنا خلق دي

۲۶:۵۱ - نو په تېزۍ سره خپلې ښځې ته لاړ، پس يو (وريت کړی) چاغ سخی يې راوړ

۲۷:۵۱ - نو دغه يې دوی ته ورنژدې کړ، ويې ويل: تاسو ولې نه خورئ!

۲۸:۵۱ - نو له دوی نه يې په زړه کې وېره ومونده، دوی وويل: ته مه وېرېږه او دوی ته يې د ډېر پوه هلك زېری ورکړ

۲۹:۵۱ - نو د ده ښځې په چغې کولو سره مخ ورواړوه، پس خپل مخ يې وواهه او ويې ويل: (زه) زړه شنډه بوډۍ (يم)

۳۰:۵۱ - دوی وويل: همداسې ستا رب ويلي دي، بېشکه هم هغه ښه حکمت والا، ښه پوه دی

۳۱:۵۱ - ده وويل: نو ستاسو څه کار (او مقصد) دی ای رالېږل شويو (ملايکو)؟

۳۲:۵۱ - دوی وويل: بېشکه مونږ د يو مجرم قوم په طرف رالېږل شوي يو

۳۳:۵۱ - د دې لپاره چې مونږ په دوی باندې د خټو کاڼي راوورو

۳۴:۵۱ - چې ستا د رب په نيز له حده وتونکو لپاره نشان داره کړی شوي دي

۳۵:۵۱ - نو مونږ هغه څوك راوويستل چې په دغه (کلي) کې له مومنانو څنې وو

۳۶:۵۱ - پس مونږ په دغه (کلي) کې د مسلمانانو له يو کور نه غير ونه مونده

۳۷:۵۱ - او مونږ په دغه (کلي) کې د هغو کسانو لپاره يوه لويه نښه پرېښوده چې د ډېر دردوونکي عذاب نه وېرېږي

۳۸:۵۱ - او په (قصه د) موسىٰ کې، کله چې مونږ هغه فرعون ته په ښکاره دليل سره ولېږه

۳۹:۵۱ - نو هغه (فرعون) د خپل قوت (اولښکر) سره مخ واړوه او ويې ويل: (دا موسىٰ) کوډګر (جادوګر) دی، يا لېونی دی

۴۰:۵۱ - نو مونږ هغه او د هغه لښکرې راونيولې، نو مونږه دوی ټول په درياب کې وغورځول، په داسې حال کې چې هغه د ملامتۍ کار کوونکی و

۴۱:۵۱ - او په عادیانو کې، کله چې مونږ په دوی باندې (له خیر نه) شنډ باد راخوشې کړ

۴۲:۵۱ - ده به هېڅ داسې شی نه پرېښوده چې دا به پرې راغلی و مګر خو هغه به یې وچ زوړ رژېدلي واښه (یا هډوکي) وګرځاوه

۴۳:۵۱ - او په ثمودیانو کې، کله چې دوی ته وویل شو چې تاسو تر یو وخته پورې نفع واخلئ

۴۴:۵۱ - نو دوی د خپل رب له حکم نه سرکشي وکړه، نو دوی (د) تندر (عذاب) ونیول، په دې حال کې چې دوی کتل

۴۵:۵۱ - بیا نه دوی د ودرېدلو طاقت لاره او نه دوی بدل اخیستونکي وو

۴۶:۵۱ - او له دوی نه مخکې د نوح قوم لره (مونږ هلاك كړی و) بېشکه هغوی یو فاسق قوم و

۴۷:۵۱ - او اسمان مونږ هغه په قوت سره جوړ کړی دی او بېشکه مونږ خامخا پراخوونکي/ پراخه قدرت لرونکي یو

۴۸:۵۱ - او ځمکه، مونږ هغه غوړولې ده، نو (مونږ) ښه غوړوونکي یو

۴۹:۵۱ - او له هر څیز څخه مونږ دوه قسمه جوړې (نر او ښځه) پیدا کړي دي، د دې لپاره چې تاسو پند واخلئ

۵۰:۵۱ - نو تاسو الله ته وتښتئ، بېشکه زه تاسو لپاره د هغه له جانبه ښکاره وېرووونکی یم

۵۱:۵۱ - او تاسو له الله سره بل معبود مه شریکوئ، بېشکه زه تاسو لپاره د هغه له جانبه ښکاره وېرووونکی یم

۵۲:۵۱ - همداسې، هغو کسانو ته چې له دوی نه مخکې وو، هېڅ یو رسول نه و راغلی مګر دوی به ویل: (دا) جادوګر دی، یا لېونی دی

۵۳:۵۱ - ایا دوی په دې (خبرې) سره یو بل ته وصیت کړی دی، بلکې دوی سرکشه قوم دی

۵۴:۵۱ - نو ته له دوی نه مخ واړوه، پس ته هېڅ ملامت کړی شوی نه یې

۵۵:۵۱ - او ته نصیحت کوه، پس بېشکه نصیحت کول مومنانو ته نفع رسوي

۵۶:۵۱ - او ما پېریان او انسانان نه دي پیدا کړي مګر د دې لپاره چې دوی زما عبادت وکړي

۵۷:۵۱ - زه له دوی نه هېڅ رزق نه غواړم او نه دا غواړم چې دوی ما ته خوراك راکړي

۵۸:۵۱ - بېشکه هم دغه الله ښه روزي ورکوونکی، قوت والا، (او) ډېر مضبوط دی

۵۹:۵۱ - د هغو کسانو لپاره چې ظلم یې کړی دی، یقیناً د دوی د ملګرو (د عذاب) د حصې په شان حصه ده، نو دوی دې په ما تلوار نه کوي

۶۰:۵۱ - پس د کافران شویو خلقو لپاره هلاکت دی، د دوی له هغې ورځې نه چې دوی سره یې وعده کولی شي

## (مکي) د یو غره نوم وو - الطور ۵۲

۱:۵۲ - قسم دی په طور غر

۲:۵۲ - او په کتاب لیکل شوي

۳:۵۲ - په پرانستل شوې پاڼه کې

۴:۵۲ - او (قسم دی) په ودان کړی شوي کور

۵:۵۲ - او په پورته کړی شوي چت (چې اسمان دی)

۶:۵۲ - او په ډك (یا بل) کړی شوي سمندر

۷:۵۲ - بېشکه ستا د رب عذاب خامخا نازلېدونکی دی

۸:۵۲ - هغه لره هېڅ دفع کوونکی نشته

۹:۵۲ - هغه ورځ چې اسمان به خوځېږي، سخت خوځېدل

۱۰:۵۲ - او غرونه به روان شي، سخت روانېدل

۱۱:۵۲ - پس په دغې ورځ کې د تکذیب کوونکو لپاره هلاکت دی

۱۲:۵۲ - هغه کسان چې دوی په بېکاره خبرو (جوړولو) کې لوبې کوي

۱۳:۵۲ - هغه ورځ چې دوی به د دوزخ اور ته ټېل وهلی شي، سخت ټېل وهل

۱۴:۵۲ - دا هغه اور دی چې تاسو به دا دروغ ګاڼه

۱۵:۵۲ - ایا نو دا سحر (جادو) دی، یا یې تاسو نه وینئ

۱۶:۵۲ - ورځئ، ده ته ننوځئ، پس تاسو صبر وکړئ، یا صبر مه کوئ، پر تاسو باندې دغه (دواړه کارونه) برابر دي، بېشکه همدا خبره ده چې تاسو ته د هغو عملونو بدله درکولی شي چې تاسو به کول

۱۷:۵۲ - بېشکه پرهېزګاران به په جنتونو او نعمتونو کې وي

۱۸:۵۲ - چې په هغو (نعمتونو) به خوشالېدونکي وي چې دوی ته خپل رب ورکړي دي او خپل رب دوی د دوزخ له عذاب نه بچ ساتلي دي

۱۹:۵۲ - (ورته ویلی به شي:) تاسو خورئ او څښئ په خوند سره، د هغو عملونو په بدل کې چې

تاسو به کول

۲۰:۵۲ - په دې حال کې چې په قطار ايښودل شويو تختونو باندې به تکيه کوونکي وي او مونږ به د دوی نکاح د ښايسته غټ سترګو سپينو سرو حورو سره وکړو

۲۱:۵۲ - او هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی او د دوی اولاد (هم) په ايمان کې د دوی متابعت کړی وي، (نو) مونږ به په دوی پورې د دوی اولاد هم پيوست کړو او مونږ به دوی ته د دوی له عملونو نه هېڅ شی کم نه کړو، هر سړی به د خپلو کړو په بدل ګرو (ګاڼه) وي

۲۲:۵۲ - او مونږ به دوی ته ور زياتې کړو، نورې مېوې او هغه غوښې چې د دوی زړه يې غواړي

۲۳:۵۲ - دوی به په دغه (جنت) کې يو له بله (د شرابو) پيالې راکاږي، نه به په دغو کې عبثې خبرې وي او نه ګناهګار کول

۲۴:۵۲ - او د دوی چاپېره به د دوی غلامان ګرځي، ګويا کې دغه (غلامان) پټې ساتل شوې ملغلرې دي

۲۵:۵۲ - او د دوی ځينې به ځينو نورو ته مخ راواړوي، چې يو له بله به پوښتنې کوي

۲۶:۵۲ - دوی به ووايي چې بېشکه مونږ له دې نه مخکې په خپل اهل کې وېرېدونکي وو

۲۷:۵۲ - نو الله پر مونږ احسان وکړ او مونږ يې د تودوخې (ګرمباد) له عذاب نه وساتلو

۲۸:۵۲ - بېشکه مونږ له دې نه مخکې هم دغه (الله) باله، بېشکه هم دی ډېر احسان کوونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۲۹:۵۲ - نو ته (خلقو ته) نصيحت کوه، پس ته د خپل رب په نعمت سره نه کاهن يې او نه لېونی

۳۰:۵۲ - ايا دوی وايي چې (دی) شاعر دی، مونږ د ده په حق کې د زمانې د حوادثو انتظار کوو

۳۱:۵۲ - ته (دوی ته) ووايه: تاسو انتظار کوئ، پس بېشکه زه له تاسو سره له انتظار کوونکو ځنې يم

۳۲:۵۲ - ايا دوی ته د دوی عقلونه په دې (کار) حکم کوي، يا دوی سرکشه (شرخوښونکی) قوم دی

۳۳:۵۲ - ايا دوی وايي چې دا (قرآن) ده له ځانه جوړ کړی دی (داسې نه ده) بلکې دوی ايمان نه راوړي

۳۴:۵۲ - نو دوی دې د ده په شان خبره راوړي که دوی رښتيني وي

۳۵:۵۲ - ايا دوی بې له څه شي پيدا کړی شوي دي، يا هم دوی، پخپله پيدا کوونکي دي؟

۳۶:۵۲ - ايا دوی اسمانونه او ځمکه پيدا کړي دي؟ بلکې دوی يقين نه کوي

۳۷:۵۲ - ایا له دوی سره ستا د رب خزانې دي، یا همہ دوی واکدران دي

۳۸:۵۲ - ایا د دوی لپاره اندرپایه (پوړۍ) ده چې دوی په هغې باندې (ځېژي او) اورېدل کوي، نو د دوی اورېدونکي دې ښکاره دلیل راوړي

۳۹:۵۲ - ایا د هغه (الله) لپاره لونړه دي او تاسو لپاره زامن دي؟

۴۰:۵۲ - ایا ته له دوی نه څه مزدوري غواړې، پس دوی له تاوانه درانه کړی شوي دي

۴۱:۵۲ - ایا له دوی سره غیب دی (وحي راغلې ده) نو دوی یې لیکي

۴۲:۵۲ - ایا دوی د مکر کولو اراده لري، نو هغه کسان چې کافران شوي دي همہ دوی مکر کړی شوي دي

۴۳:۵۲ - ایا د دوی لپاره له الله نه غیر بل معبود شته؟ الله لره پاکي ده له هغه شي نه چې دوی یې ورسره شریکوي

۴۴:۵۲ - او که دوی یوه ټوټه له اسمانه رالوېدونکې ووینې (، نو) وبه وایې (دا) قط په قط کړی شوې وریځ ده

۴۵:۵۲ - نو ته دوی پرېږده، تر هغه پورې چې دوی له خپلې هغې ورځې سره ملاقات وکړي چې دوی به په هغې کې بې خوده کولی شي

۴۶:۵۲ - هغه ورځ چې له دوی نه به د دوی مکر هېڅ شی (عذاب) لرې نه کړی شي او نه به د دوی مدد کولی شی

۴۷:۵۲ - او بېشکه د هغو کسانو لپاره چې ظلمہ (شرك) یې کړی دی له دغه (عذاب) نه مخکې عذاب دی او لېکن د دوی زیاتره خلق نه پوهېږي

۴۸:۵۲ - نو ته د خپل رب حکمہ ته صبر کوه، پس بېشکه ته زمونږ د سترګو په وړاندې یې او ته د خپل رب له ستاینې سره تسبیح وایه کله چې ته پاځېږې

۴۹:۵۲ - او دشپې په ځینې حصه کې، نو ته د هغه پاکي بیانوه او له ستوریو نه وروسته (د شپې په اخري حصې کې) همہ

## (مکي) ستورى - النجم ۵۳

۱:۵۳ ـ قسم دی په ستوریو کله چې پرېوځي

۲:۵۳ - ستاسو ملګرى نه ګمراه شوی دی او نه (په عقیده کې) بې لارې شوی دی

۳:۵۳ - او دی له خپل خواهش نه خبرې نه کوي

۴:۵۳ - نه دی دا (قرآن) مگر وحي چې (ده ته) وحي کول شي

۵:۵۳ - ده ته (دا) د ډېرو سختو قوتونو والا (جبریل) ښودلی دی

٦:۵۳ - چې د طاقت والا دی، بیا هغه پورته لاړ

۷:۵۳ - او هغه په تر ټولو لوړې غاړې کې و

۸:۵۳ - بیا هغه (جبریل محمدﷺ ته) نژدې شو، پس ښه نژدې شو

۹:۵۳ - نو د دوه لیندو په مسافت شو بلکې (له دې نه هم) ډېر نژدې

۱۰:۵۳ - نو هغه (الله د جبریل په ژبه) خپل بنده ته وحي وکړه، هغه چې وحي یې وکړه

۱۱:۵۳ - د ده (نبي) زړه غلط شوی نه دی په هغه څه کې چې ده ولیدل

۱۲:۵۳ - ایا تاسو له ده سره په هغه څه کې جګړه کوئ چې دی یې ویني

۱۳:۵۳ - او یقینًا یقینًا ده هغه (جبریل) په یو بل ځلي کوزېدو کې لیدلی دی

۱۴:۵۳ - له سدرة المنتهٰی سره

۱۵:۵۳ - دغې سره جنة ةالماویٰ دی

۱٦:۵۳ - کله چې دغه سدرة (د بېرې ونه) هغه څه پټوله چې دا یې پټوله

۱۷:۵۳ - سترګې نه کږې شوې او نه یې له حد نه تېرى وکړ

۱۸:۵۳ - یقینًا یقینًا ده د خپل رب ډېرې لویې نښې ولیدلې

۱۹:۵۳ - نو تاسو ما ته خبر راکړئ د لات او عُزّٰی

۲۰:۵۳ - او منات دریم، د بېخي وروستني

۲۱:۵۳ - ایا تاسو لپاره هلکان دي او د هغه لپاره جینکۍ

۲۲:۵۳ - دغه په دې وخت کې ډېر ظالمانه تقسیم دی

۲۳:۵۳ - دغه (بتان) نه دي مگر تش نومونه چې تاسو او ستاسو پلرونو دغه ایښي دي.، الله په دغو هېڅ دلیل نه دی نازل کړی. دوی پیروي نه کوي مگر د تش گمان او د هغه شي چې نفسونه یې غواړي او یقینًا یقینًا دوی ته د خپل رب له جانبه هدایت راغلی دی

۲۴:۵۳ - ایا د انسان لپاره هغه څه دي چې دی یې تمنا کوي

۲۵:۵۳ - نو خاص د الله لپاره اخرت او دنیا دي

۲٦:۵۳ - او په اسمانونو کې څومره ډېر ملایك دي چې د دوی سفارش هېڅ شی نفع نه ورکوي مگر وروسته له دې چې الله اجازت ورکړي هغه چا ته چې یې وغواړي او (د هغه په شفاعت)

راضي شي

۲۷:۵۳ - بېشکه هغه کسان چې په اخرت ایمان نه لري، خامخا دوی د ښځو په نومونو سره ملايك نوموي

۲۸:۵۳ - حال دا چې دوی ته په دې هېڅ علم نشته، دوی یواځې د تش گمان پیروي کوي او بېشکه گمان له حقه هېڅ شی نشي دفع کولی

۲۹:۵۳ - نو ته د هغه چا نه مخ واړوه چې زمونږ له ذکر نه یې مخ گرځولی دی او یواځې دنیایي ژوندون غواړي

۳۰:۵۳ - دا د دوی د علم انتها ده.، بېشکه ستا رب په هغه چا ښه عالم دی چې د هغه (الله) له لارې نه گمراه شوی دی او هغه ښه عالم دی په هغه چا چې هدایت یې موندلی دی

۳۱:۵۳ - او خاص الله لره دي هغه څه چې په اسمانونو کې دي او هغه څه چې په ځمکه کې دي.، د دې لپاره چې هغو کسانو ته چې بد یې کړي دي، د خپل عمل بدله ورکړي او هغو کسانو ته (هم) ډېره ښه بدله ورکړي چې نېکي یې کړې ده

۳۲:۵۳ - هغه کسان چې له غټو گناهونو او د بې حیایۍ له کارونو نه ځان ساتي، غیر له وړو وړو گناهونه، بېشکه ستا رب د بخښنې وسیع کوونکی دی، هغه په تاسو ښه عالم دی، کله چې یې تاسو له ځمکې نه راپیدا کړئ او کله چې تاسو د خپلو میندو په خېټو کې پټ بچي وئ.، نو تاسو د خپلو ځانونو تزکیه (پاکوالی) مه کوئ.، هغه (الله) ښه عالم دی په هغه چا چې ډېر متقي دی

۳۳:۵۳ - ایا نو تا هغه کس لیدلی چې مخ یې واړوه (له ایمانه)

۳۴:۵۳ - او ډېر لږ (مال) یې ورکړ او منع یې کړ (نور مال)

۳۵:۵۳ - ایا له هغه سره علم غیب دی، پس دی لیدل کوي

۳۶:۵۳ - بلکې ایا دی په هغه څه نه دی خبر کړی شوی چې د موسیٰ په صحیفو کې دي

۳۷:۵۳ - او د ابراهیم هغه چې وفا یې کړې ده

۳۸:۵۳ - چې هېڅ پورته کوونکی د بل بار نه پورته کوی

۳۹:۵۳ - او دا چې د انسان لپاره نشته مگر هغه څه چې ده (یې) کوشش کړی دی

۴۰:۵۳ - او دا چې بېشکه د ده کوشش به عنقریب وښوول شي

۴۱:۵۳ - بیا به ده ته بدله ورکړی شی، ډېره پوره بدله

۴۲:۵۳ - او دا چې بېشکه ستا رب ته (د ټولو مخلوقاتو) ورگرځېدل دي

۴۳:۵۳ - او دا چې بېشکه هم دغه (الله) (خلق) خندوي او ژړوي

۴۴:۵۳ - او دا چې هم دغه (الله) مرګ ورکوي او ژوند ورکوي

۴۵:۵۳ - او دا چې بېشکه دغه (الله) دوه جوړې نر او ښځه پیدا کړې دي

۴۶:۵۳ - له یوه څاڅکي (نطفې) نه، کله چې وڅڅول شي

۴۷:۵۳ - او دا چې بېشکه د ده په ذمه دي (له دې مرګ نه پس) بل ځلې پیدا کول

۴۸:۵۳ - او دا چې بېشکه همدغه (الله) غني کول کوي او خزانې ورکوي

۴۹:۵۳ - او دا چې همدغه (الله) د شِعرٰی ستوري رب (او مالك) دی

۵۰:۵۳ - او دا چې بېشکه همده ړومبني عادیان هلاك كړې دي

۵۱:۵۳ - او ثمودیان هم، نو باقي یې پرې نه ښودل

۵۲:۵۳ - او له دوی نه مخکې یې د نوح قوم هلاك كړ۔ بېشکه دوی، هم دوی، ډېر ظالمان او ډېر سرکشان وو

۵۳:۵۳ - او اړول شوي کلي یې ښکته راوغورځول

۵۴:۵۳ - نو دغه هغه شي پټ کړ چې دی یې پټ کړ

۵۵:۵۳ - نو (ای انسانه!) ته د خپل رب په کومو نعمتونو کې شك كوې

۵۶:۵۳ - دا (محمدﷺ) له ړومبنیو وېروونکو څنې یو وېروونکی دی

۵۷:۵۳ - قیامت ډېر نژدی راغی

۵۸:۵۳ - دې (قیامت) لره له الله نه غیر هېڅ ښکاره کوونکی نشته

۵۹:۵۳ - ایا نو تاسو له دې خبرې (قرآن) نه تعجب کوئ

۶۰:۵۳ - او خاندئ او نه ژاړئ

۶۱:۵۳ - او تاسو غافلان یئ (لوبې کوونکي یئ)

۶۲:۵۳ - نو تاسو الله ته سجده وکړئ او (د ده) عبادت وکړئ

## (مکي) سپوږمۍ - القمر ۵۴

۱:۵۴ - قیامت ډېر رانژدې شو او سپوږمۍ وچاودله

۲:۵۴ - او که چېرې دوی کوم دلیل ووینې (نو) اعراض کوي او وایي: دا خو راروان (قوي) جادو دی

۳:۵۴ - او تکذيب کوي او د خپلو خواهشاتو پيروي کوي او هر کار قرار نيونکی دی

۴:۵۴ - او يقينًا يقينًا دوی ته له خبرونو څنې هغه راغلي دي چې په هغو کې (د دوی لپاره) زجر او سرزنش و

۵:۵۴ - (دغه) ډېر کامل حکمت دی، پس (دوی ته) وېرووونکي نفع نه رسوي

۶:۵۴ - نو ته له دوی نه مخ وګرځوه. (او ياده کړه) هغه ورځ چې بلونکی به يو ناخوښه، (نااشنا) شي ته بلنه وکړي

۷:۵۴ - په دې حال کې چې د دوی سترګې به خړې خوارې وي، دوی به له قبرونو نه (داسې) راوځي ګويا کې دوی خواره واره ملخان دي

۸:۵۴ - د بلونکي په طرف به تلوار کوونکي وي، کافران به وايي: دا ډېره سخته ورځ ده

۹:۵۴ - له دوی نه مخکې د نوح قوم تکذيب کړی دی، نو دوی زمونږ د بنده (نوح) تکذيب وکړ او ويې ويل: (دا نوح) لېونی دی او (له تبليغه) منع کړی شو (او سخت وځورول شو)

۱۰:۵۴ - نو ده له خپل رب نه دعا وغوښته، داسې چې بېشکه زه مغلوب (او عاجز) يم، نو ته (زما) انتقام (او بدله) واخله

۱۱:۵۴ - نو مونږ د اسمان دروازې په ډېرو راتويدونکو اوبو سره پرانستلې

۱۲:۵۴ - او له ځمکې نه مو چينې روانې کړې، نو اوبه په هغه کار باندې سره يوځای (او ګډې) شوې چې مقرر شوی و

۱۳:۵۴ - او مونږ هغه (په داسې بېړۍ) سور کړ چې د پلنو تختو او پېرو ميخونو والا وه

۱۴:۵۴ - چې زمونږ د سترګو په وړاندې ګرځېدله. (دا طوفان راغلی و) د هغه چا د بدلې (او امداد) لپاره چې بې قدري (او ناشکري) يې کړی شوې وه

۱۵:۵۴ - او يقينًا يقينًا مونږ دغه (بېړۍ) يو دليل پرېښوده، نو ايا څوك پند اخيستونکی شته؟

۱۶:۵۴ - نو زما عذاب او زما وېرول څنګه وو؟

۱۷:۵۴ - او يقينًا يقينًا مونږ دا قرآن (د يادولو او پند اخيستلو لپاره) اسان کړی دی، نو ايا څوك پند اخيستونکی شته؟

۱۸:۵۴ - عاديانو تکذيب وکړ، نو زما عذاب او زما وېرول څنګه وو

۱۹:۵۴ - بېشکه مونږ په دوی باندې ډېر سخت باد راخوشې کړ د ډېر سخت سپېره والي په ورځ کې

۲۰:۵۴ - دغه (باد) به خلق (له ژورو پټو کندو نه) داسې را ايستل ګويا کې دوی له بېخه راوتلو د

کجورو د ونو تنې دي

۲۱:۵۴ - نو زما عذاب او زما وېرول څنګه وو؟

۲۲:۵۴ - او یقینًا یقینًا مونږ قرآن د پند اخیستلو لپاره اسان کړی دی، نو ایا څوك پند اخیستونکی شته؟

۲۳:۵۴ - ثمودیانو د وېروونکو (نبیانو) تکذیب وکړ

۲۴:۵۴ - پس دوی وویل: ایا د یو داسې بشر چې زمونږ څنې دی (او) یو دی، مونږ به د ده پیروي کوو؟ بېشکه مونږ به په دغه وخت کې خامخا په ګمراهۍ او لېونتوب کې یو

۲۵:۵۴ - ایا زمونږ له مینځه په ده باندې وحي راوغورځولی شوه؟ (داسې نه ده) بلکې دی ډېر دروغجن دی، ډېر خود پسند (متکبر) دی

۲۶:۵۴ - ژر به دوی سبا ته پوه شي چې ډېر دروغجن، ډېر تکبر کوونکی څوك دی

۲۷:۵۴ - بېشکه مونږ د دوی د ازمېښت لپاره اوښې لره لېږونکي یو، نو ته دوی ته منتظر اوسه او ښه صبر کوه

۲۸:۵۴ - او دوی ته خبر ورکړه چې بېشکه اوبه د دوی په مینځ کې تقسیم دي۔ هر وار د اوبو ته به حاضري کول شي

۲۹:۵۴ - او دوی خپل ملګري ته اواز وکړ، نو هغه توره راواخیسته، پس د هغې لېنګي یې پرې کړل (بیا یې مړه کړه)

۳۰:۵۴ - نو زما عذاب او زما وېرول څنګه وو؟

۳۱:۵۴ - بېشکه مونږ پر هغوی باندې یوه چغه راخوشې کړه، نو د شپول جوړوونکي د مات (او چوره) کړی شویو وښو په شان شول

۳۲:۵۴ - او یقینًا یقینًا مونږ قرآن د پند اخیستلو لپاره اسان کړی دی، نو ایا څوك پند اخیستونکی شته؟

۳۳:۵۴ - د لوط قوم د وېروونکو تکذیب وکړ

۳۴:۵۴ - بېشکه مونږ پر هغوی باندې کاڼي ویشتونکی باد راخوشې کړ ـ د لوط له کورنۍ نه غیر، مونږ دوی ته په پېشلمي کې نجات ورکړ

۳۵:۵۴ - زمونږ له جانبه د مهربانۍ په وجه۔، همداسې مونږ هغه چا ته بدله ورکوو چې شکر وباسي

۳۶:۵۴ - او یقینًا یقینًا هغه (لوط) دوی زمونږ له نیولو نه وېرولي وو۔، پس دوی (د هغه) په وېرولو

کې شك وکړ

۳۷:۵۴ - او یقینًا یقینًا دوی له ده نه د ده د مېلمنو غوښتنه وکړه، نو مونږ د دوی سترګې (محوه) ړندې کړې، پس (دوی ته وویل شو چې) تاسو زما عذاب او زما وېرول وڅکئ

۳۸:۵۴ - او یقینًا یقینًا په دوی باندې سهار وختي ثابت (او قرار نیونکی) عذاب راغی

۳۹:۵۴ - نو تاسو زما عذاب او زما وېرول وڅکئ

۴۰:۵۴ - او یقینًا یقینًا مونږ قرآن د پند اخیستلو لپاره اسان کړی دی، نو ایا څوك پند اخیستونکی شته؟

۴۱:۵۴ - او یقینًا یقینًا ال فرعون ته وېروونکي راغلي وو

۴۲:۵۴ - (نو) دوی زمونږ د ټولو دلیلونو (معجزو) تکذیب وکړ، نو مونږ دوی ونیول، د ډېر غالب او ښه ذات په نیولو سره

۴۳:۵۴ - (ای عربو!) ایا ستاسو کفار له دغو (ړومبنو کفارو) نه ډېر غوره دي، یا تاسو لپاره په کتابونو کې خلاصی (راغلی) دی؟

۴۴:۵۴ - یا دوی وایي چې مونږ بدله اخیستونکې ډله یو

۴۵:۵۴ - دغه جمع (ډله) به یقینًا یقینًا ماته کړی شي او دوی به شاګانې وګرځوي

۴۶:۵۴ - بلکې قیامت د دوی د وعدې ځای دی او قیامت ډېر سخت او ډېر تریخ دی

۴۷:۵۴ - بېشکه مجرمان په ګمراهۍ او لمبې وهونکي اور کې دي

۴۸:۵۴ - په هغې ورځ کې چې دوی به په خپلو مخونو په اور کې راښکلی شي (او ویلی به شي چې) تاسو د دوزخ رسېدل وڅکئ

۴۹:۵۴ - بېشکه مونږ هر شي لره، مونږ هغه په (ازلي) اندازې سره پیدا کړی دی

۵۰:۵۴ - او زمونږ امر نه دی مګر یو ځل دی، لکه د سترګو رپول

۵۱:۵۴ - او یقینًا یقینًا مونږ ستاسو مشابه (او نظایر) هلاك کړي دي، نو ایا څوك پند اخیستونکی شته؟

۵۲:۵۴ - او هر هغه شی (کار) چې دوی کړی دی، په کتابونو کې دی

۵۳:۵۴ - او هر وړوکی او لوی (عمل) لیکل شوی دی

۵۴:۵۴ - بېشکه متقیان به په باغونو او ویالو کې وي

۵۵:۵۴ - د راستۍ په مجلس کې به وي، له لوی قدرت لرونکي بادشاه سره

# (مکي)  رحم کوونکی - الرحمن ۵۵

۱:۵۵ - ډېر زيات مهربان ذات

۲:۵۵ - (دا) قرآن ښودلی دی

۳:۵۵ - هغه انسان پيدا کړی دی

۴:۵۵ - ده ته يې بيان (او وينا) کول ښودلي دي

۵:۵۵ - لمر او سپوږمۍ په حساب سره (روان) دي

۶:۵۵ - او ستوري / وابښه او ونې دواړه سجدې کوي

۷:۵۵ - او اسمان لره، دا هغه پورته (اوچت) کړی دی او تله يې اېښې (مقرر کړې) ده

۸:۵۵ - (د دې لپاره) چې تاسو په تله کې تېری ونه کړئ

۹:۵۵ - او تاسو په انصاف سره وزن برابروئ او په تول کې کمی مه کوئ

۱۰:۵۵ - او ځمکې لره، هغه دا د ژونديو لپاره غوړولې ده

۱۱:۵۵ - په دې کې مېوې دي او د پوښونو والا د کجورو ونې دي

۱۲:۵۵ - او د وښو (بوسو) والا دانې دي او خوشبويه ګلان دي

۱۳:۵۵ - نو (ای انسانانو او پېريانو!) تاسو دواړه د خپل رب په نعمتونو کې د کوم يوه تکذيب کوئ (او ترې منکرېږئ)

۱۴:۵۵ - انسان يې د کودرې په شان له وچې کړنګېدونکې خټې نه پيدا کړی دی

۱۵:۵۵ - او جان (د پېريانو پلار) يې د اور له خالصې (بې لوګي) شغلې نه پيدا کړی دی

۱۶:۵۵ - نو تاسو (ای انسانانو او پېريانو) دواړه د خپل رب په نعمتونو کې د کوم يوه تکذيب کوئ؟

۱۷:۵۵ - (هغه د ژمي او د اوړي) د دواړو مشرقونو رب دی او (د ژمي او د اوړي) د دواړو مغربونو رب دی

۱۸:۵۵ - نو تاسو (ای انسانانو او پېريانو) دواړه د خپل رب په نعمتونو کې د کوم يوه تکذيب کوئ؟

۱۹:۵۵ - هغه دوه سمندرونه بهولي دي، په دې حال کې چې يوله بله سره ميلاوېږي

۲۰:۵۵ - د دواړو په مينځ کې يوه پرده ده، چې په يو بل باندې نه ورګډېږي

۲۱:۵۵ - نو تاسو (ای انسانانو او پېريانو!) دواړه د خپل رب په نعمتونو کې د کوم يوه تکذيب کوئ؟

۲۲:۵۵ - له دواړو (د سمندرونو) نه ملغلرې او مرجان راوځي

۲۳:۵۵ - نو تاسو (ای انسانانو او پېريانو) د خپل رب په نعمتونو کې د کوم يوه تکذيب کوئ؟

۲۴:۵۵ - او خاص هغه لره دي په سمندر کې بادبان پورته کړی شوې بېړۍ، لکه غرونه

۲۵:۵۵ - نو تاسو (ای انسانانو او پېريانو!) دواړه د خپل رب په نعمتونو کې د کوم يوه تکذيب کوئ؟

۲۶:۵۵ - هر هغه څوك چې په دې (ځمکې) باندې دي؛ فاني کېدونکي دي

۲۷:۵۵ - او باقي به پاتې شي ستا د رب مخ (ذات) چې د جلال او د عزت خاوند دی

۲۸:۵۵ - نو (ای انسانانو او پېريانو!) تاسو دواړه د خپل رب په نعمتونو کې کوم يو دروغ گڼئ؟

۲۹:۵۵ - له ده نه سوال کوي هر هغه څوك چې په ا سمانونو او ځمکه کې دي.، هر وخت هغه په يوکار کې دی

۳۰:۵۵ - نو تاسو (ای انسانانو او پېريانو!) د خپل رب په نعمتونو کې د کوم يوه تکذيب کوئ؟

۳۱:۵۵ - ژر ده چې مونږ به تاسو ته وزگار شو، ای دوه درنو قبيلو (انسانانو او پېريانو!)

۳۲:۵۵ - نو تاسو (ای انسانانو او پېريانو!) د خپل رب په نعمتونو کې د کوم يوه تکذيب کوئ؟

۳۳:۵۵ - ای د پېريانو او انسانانو ډلې! که چېرې تاسو د دې طاقت لرئ چې تاسو د اسمانونو او ځمکې له غاړو نه بهر ووځئ، نو ووځئ. او تاسو به بهر ونه وتلی شئ مگر په قوت (او زور) سره

۳۴:۵۵ - نو (ای پېريانو او انسانانو!) تاسو د خپل رب په نعمتونو کې د کوم يوه تکذيب کوئ؟

۳۵:۵۵ - په تاسو دواړو (ډلو) باندې به د اور خالصې لمبې او لوگی درخوشې کړی شي، بيا به تاسو يوله بل سره مدد نشئ کولی

۳۶:۵۵ - نو تاسو دواړه (ای پېريانو او انسانانو!) د خپل رب په نعمتونو کې له کوم کوم نه انکار کوئ؟

۳۷:۵۵ - بيا چې کله اسمان څيرې شي، نو سور رنگه گل به شي، لکه د سرې څرمنې

۳۸:۵۵ - نو تاسو دواړه (ای پېريانو او انسانانو!) د خپل رب په نعمتونو کې د کوم يوه تکذيب کوئ؟

۳۹:۵۵ - نو په دغې ورځ کې به د خپلې گناه په باره کې نه له انسان نه پوښتنه کولی شي او نه له پېري نه

۴۰:۵۵ - نو (ای پېريانو او انسانانو!) تاسو دواړه د خپل رب په نعمتونو کې د کوم يوه تکذيب کوئ؟

۴۱:۵۵ - مجرمان به په خپلو نښو سره پېژندلی شي، نو (د مجرمانو) وچولي او قدمونه به ونيولی شي

۴۲:۵۵ - نو (ای پېريانو او انسانانو!) تاسو د خپل رب په نعمتونو کې د کوم يوه تکذيب کوئ

۴۳:۵۵ - دا هغه دوزخ دی چې مجرمانو (کافرانو) به دا دروغ ګاڼه

۴۴:۵۵ - دوی به د دغه (دوزخ) په مينځ کې او د ډېرو ګرمو اوبو په مينځ کې ګرځي

۴۵:۵۵ - نو (ای پېريانو او انسانانو!) تاسو دواړه د خپل رب په نعمتونو کې د کوم يوه انکار کوئ؟

۴۶:۵۵ - او د هغه چا لپاره چې د خپل رب په واړندې له ودرېدلو نه وېرېږي، دوه جنتونه دي

۴۷:۵۵ - نو تاسو (ای پېريانو او انسانانو!) د خپل رب په نعمتونو کې د کوم يوه تکذيب کوئ؟

۴۸:۵۵ - (دغه جنتونه) د ډېرو ډېرو څانګو والا دي

۴۹:۵۵ - نو تاسو (ای پېريانو او انسانانو!) د خپل رب په نعمتونو کې کوم کوم دروغ ګڼئ

۵۰:۵۵ - په دغو دواړو (جنتونو) کې دوه چينې دي چې بهېږي

۵۱:۵۵ - نو تاسو (ای پېريانو او انسانانو!) د خپل رب په نعمتونو کې له کوم يو نه انکار کوئ

۵۲:۵۵ - په دغو (جنتونو) کې له هرې مېوې نه دوه دوه قسمه دي

۵۳:۵۵ - نو تاسو (ای پېريانو او انسانانو!) د خپل رب په نعمتونو کې د کوم يوه تکذيب کوئ

۵۴:۵۵ - په داسې حال کې چې دوی به په داسې فرشونو باندې تکيه وهونکي وي چې د هغو استرونه به له پېړو ورېښمو څخه وي او د دواړو جنتونو مېوې به نژدې وي

۵۵:۵۵ - نو تاسو (ای انسانانو او پېريانو!) د خپل رب په نعمتونو کې د کوم يوه تکذيب کوئ

۵۶:۵۵ - په دغو (جنتونو) کې به د سترګو رامنع کوونکې حورې وي، چې له دغو (جنتي خاوندانو) نه به مخکې دوی ته نه بل انسان لاس وروړی وي او نه پېري

۵۷:۵۵ - نو تاسو (ای پېريانو او انسانانو!) د خپل رب په نعمتونو کې د کوم يوه تکذيب کوئ

۵۸:۵۵ - ګويا کې دغه (حورې) ياقوت لعل دي، يا مرجان دي

۵۹:۵۵ - نو تاسو د خپل رب په نعمتونو کې د کوم يوه تکذيب کوئ

٦٠:۵۵ - د احسان بدل نه دی مګر احسان (او نېکي) کول

٦١:۵۵ - نو تاسو د خپل رب په نعمتونو کې د کوم يوه تکذيب کوئ

۶۲:۵۵ - او له دغو دواړو نه غير دوه نور جنتونه دي

۶۳:۵۵ - نو تاسو د خپل رب په نعمتونو کې د کوم یوه تکذيب کوئ

۶۴:۵۵ - تك تور دي (له ډېر شين والي او خړوب والي نه)

۶۵:۵۵ - نو تاسو د خپل رب په نعمتونو کې د کوم یوه تکذيب کوئ

۶۶:۵۵ - په دغو دواړو کې دوه جوش وهونکې چینې دي

۶۷:۵۵ - نو تاسو د خپل رب په نعمتونو کې د کوم یوه تکذيب کوئ

۶۸:۵۵ - په دغو دواړو کې مېوې او کجورې او انار دي

۶۹:۵۵ - نو تاسو د خپل رب په نعمتونو کې د کوم یوه تکذيب کوئ

۷۰:۵۵ - په دغو (جنتونو) کې ډېرې غوره (نېك سيرتې) ډېرې ښکلې حورې دي

۷۱:۵۵ - نو تاسو د خپل رب په نعمتونو کې د کوم یوه تکذيب کوئ

۷۲:۵۵ - په خېمو کې محفوظې ساتلې شوې حورې به وي

۷۳:۵۵ - نو تاسو د خپل رب په نعمتونو کې د کوم یوه تکذيب کوئ

۷۴:۵۵ - چې له دغو (جنتي خاوندانو) نه به مخکې دوی ته نه انسان لاس وروړی وي او نه پېري

۷۵:۵۵ - نو تاسو د خپل رب په نعمتونو کې د کوم یوه تکذيب کوئ

۷۶:۵۵ - په داسې حال کې چې تکیه کوونکي به ـوي په شین رنګه بالښتونو او په ډېرو نفیسو ښکلو فرشونو باندې

۷۷:۵۵ - نو تاسو د خپل رب په نعمتونو کې د کوم یوه تکذيب کوئ

۷۸:۵۵ - ډېر برکتي دی ستا د رب نوم، چې د جلال او د اکرام (عزت ورکولو) والا دی

## (مکي) پېښه - الواقعة ۵۶

۱:۵۶ - کله چې واقع کېدونکې (قيامت) واقع شي

۲:۵۶ - د ده پېښېدو لره هېڅ دروغجنوونکی نشته

۳:۵۶ - (دا) ښکته کوونکی، (او) اوچتوونکی دی

۴:۵۶ - کله چې ځمکه وخوځولی شي، خوځول

۵:۵۶ - او غرونه ورژول شي، رژول

٥٦:٦ - نو دغه (غرونه) به یوه خوره شوې دوړه شي

٥٦:٧ - اوتاسو به درې قسمونه شئ

٥٦:٨ - نو د ښي لاس والا (خلق) ـ، څه (ښه) دي د ښې لاس والا خلق!

٥٦:٩ - او د چپ لاس والا خلق.، څه (بد) دي د چپ لاس والا خلق؟

٥٦:١٠ - او ړومبی کېدونکي (همدوی) ړومبی کېدونکي دي

٥٦:١١ - همې دوی نژدې کړی شوي دي (الله ته)

٥٦:١٢ - د نعمتونو په جنتونو کې به وي

٥٦:١٣ - لویه ډله به د ړومبنو خلقو څنې وي

٥٦:١٤ - او لږ به د وروستنو خلقو څنې وي

٥٦:١٥ - په (زرو او ملغلرو سره) بُېل شویو تختونو باندې به (ناست) وي

٥٦:١٦ - چې په دغو باندې به یو بل ته مخامخ تکیه وهونکي وي

٥٦:١٧ - په دوی باندې به (د خدمت لپاره) تل پاتې (همېشني) هلکان گرځي

٥٦:١٨ - د گلاسونو او کوزو سره او د جاري (بهېدونکو) شرابو پیالو سره

٥٦:١٩ - چې له دغو (شرابو) نه به نه د دوی سر خوږېږي او نه به بې خوده (نشه) کېږي

٥٦:٢٠ - او له هغه قسمه مېوو سره چې دوی یې خوښوي

٥٦:٢١ - او د مرغانو له هغه قسمه غوښو سره چې د دوی زړونه یې غواړي

٥٦:٢٢ - او (د دوی لپاره) پیمخې غټ سترگې حورې دي

٥٦:٢٣ - د پټو ساتل شویو ملغلرو په شان

٥٦:٢٤ - د هغو عملونو د بدلې ورکولو لپاره چې دوی به کول

٥٦:٢٥ - دوی به په دغه (جنت) کې نه عبث خبرې اوري او نه د گناه (خبرې)

٥٦:٢٦ - لېکن سلامې، سلامې ویل (به اوري)

٥٦:٢٧ - او د ښي اړخ والا، څه دي د ښي اړخ والا

٥٦:٢٨ - په بې اغزیو بېرو کې به وي

٥٦:٢٩ - او له بېخه تر سره ډکو کړی شویو (د) کیلو (په ونو) کې به وی

٥٦:٣٠ - او په اوږد کړی شویو همېشني سیورو کې به وي

۳۱:۵٦ - او په راتوی کړی شویو اوبو کې به وي

۳۲:۵٦ - اوپه ډېرو زیاتو مېوو کې به وي

۳۳:۵٦ - چې نه به قطع کولی شي او نه به منع کولی شي

۳۴:۵٦ - او په اوچت کړی شویو فرشونو کې به وي

۳۵:۵٦ - بېشکه مونږ دغه (ښځې/حورې) پیدا کړې دي، خاص پیدا کول

۳٦:۵٦ - نو مونږ دغه (حورې) پېغلې گرځولې دي

۳۷:۵٦ - په خپلو خاوندانو مینانې (او) همزولې

۳۸:۵٦ - د ښي اړخ والاو لپاره

۳۹:۵٦ - (د ښي اړخ والا به) لویه ډله وي له ړومبنو خلقو نه

۴۰:۵٦ - او بله لویه ډله به له وروستنیو خلقو نه وي

۴۱:۵٦ - او د چپ اړخ (گس) والا، څه دي د چپ اړخ والا

۴۲:۵٦ - (دوی به) په گرم باد او ډېرو تودو اوبو کې وي

۴۳:۵٦ - او د تك تور لوگي په سیوري کې به وي

۴۴:۵٦ - چې نه به یخ وي او نه به د عزت وي

۴۵:۵٦ - بېشکه دوی له دې نه مخکې (په دنیا کې) په نعمتونو کې پالل شوي وو

۴٦:۵٦ - او دوی په ډېره لویه گناه (کفر) باندې دوام (او اصرار) کاوه

۴۷:۵٦ - او دوی به ویل: ایا کله چې مونږ مړه شو او خاورې او هډوکي شو، ایا په رښتیا او یقینًا به مونږ بیا راژوندي کولی شو

۴۸:۵٦ - او ایا زمونږ ړومبني پلرونه هم!

۴۹:۵٦ - ته (دوی ته) ووایه چې بېشکه ړومبني او وروستني خلق

۵۰:۵٦ - دوی به خامخا د معلومې ورځې مقرر وخت ته راجمع کولی شي

۵۱:۵٦ - بیا به یقینًا تاسو ای گمراهانو، تکذیب کوونکو!

۵۲:۵٦ - خامخا خوړونکي به یئ د زقوم له ونې نه

۵۳:۵٦ - نو له هغې نه به خېټې ډکوونکي یئ

۵۴:۵٦ - بیا به تاسو د دغه (خوړل شوي زقوم) له پاسه تودې اوبه څښونکي یئ

۵۵:۵٦ - نو د ډېرو تږو اوښانو د څښلو په شان به څښونکي يئ

۵٦:۵٦ - دا د بدلې په ورځ د دوی مېلمستیا ده

۵۷:۵٦ - مونږ تاسو پيدا کړي يئ، نو ولې تاسو تصديق نه کوئ!

۵۸:۵٦ - نو تاسو ما ته خبر راکړئ! هغه نطفه چې تاسو يې توېوئ

۵۹:۵٦ - ايا تاسو (له) دغې (نطفې نه بشر) پيدا کوئ، يا همم دا مونږ يې پيدا کوونکي يو

٦۰:۵٦ - بېشکه مونږ ستاسو په مينځ کې مرګ مقدر کړی دی او مونږ عاجز کړی شوي نه يو

٦۱:۵٦ - له دې نه چې مونږ ستاسو په شان (نور خلق ستاسو) په بدل کې پيدا کړو او تاسو په هغو (صورتونو) سره پيدا کړو چې تاسو پرې علم نه لرئ

٦۲:۵٦ - او يقينًا يقينًا تاسو په ړومبني پيدا کولو عالمان شوي يئ، نو ولې تاسو پند نه اخلئ!

٦۳:۵٦ - نو تاسو ما ته خبر راکړئ! هغه تخم چې تاسو يې کرئ

٦۴:۵٦ - ايا تاسو دغه (کرل شوی) زرغونوئ، يا همم دا مونږ يې زرغونوونکي يو

٦۵:۵٦ - که مونږ وغواړو (نو) خامخا دغه به وچ او ذره ذره کړو، بيا به تاسو حيران شئ

٦٦:۵٦ - (او وايئ به) بېشکه مونږ خامخا په تاوان کې غورځول شوي يو

٦۷:۵٦ - بلکې مونږ محروم کړی شوي يو

٦۸:۵٦ - نو تاسو ما ته خبر راکړئ! هغه اوبه چې تاسو يې څښئ

٦۹:۵٦ - ايا تاسو دغه له سپينو ورېځو نه نازلې کړې دي، يا همم دا مونږ يې نازلوونکي يو؟

۷۰:۵٦ - که مونږ وغواړو، دغه به تروې ترخې وګرځوو، نو تاسو ولې شکر نه وباسئ!

۷۱:۵٦ - نو تاسو ما ته خبر راکړئ! هغه اور چې تاسو يې بلوئ

۷۲:۵٦ - ايا تاسو د ده ونه پيدا کړې ده، يا همم دا مونږ يې پيدا کوونکي يو؟

۷۳:۵٦ - مونږه دغه (اور) تذکره (نصيحت) او د مسافرو لپاره نفعمن ګرځولی دی

۷۴:۵٦ - نو ته د خپل عظيمم رب د نومم پاکي بيانوه

۷۵:۵٦ - نو زه د ستوريو د پرېوتو په ځايونو باندې قسمم خورمم

۷٦:۵٦ - او بېشکه دا يقينًا ډېر لوی قسمم دی که تاسو پوهېږئ

۷۷:۵٦ - بېشکه دا خامخا ډېر عزتمن قرآن دی

۷۸:۵٦ - په پټ ساتل شوي کتاب کې دی

۷۹:۵٦ - چې ده لره نه مسه کوي مګر ښه پاك کړی شوي خلق (ملايك)

۸۰:۵٦ - د رب العلمين له جانبه نازل کړی شوی دی

۸۱:۵٦ - ايا نو تاسو د دې حديث (قرآن) سپکاوی کوونکي يئ

۸۲:۵٦ - او تاسو خپله برخه دا ګرځوئ چې لازمًا تاسو يې تکذيب کوئ (دروغ يې ګڼئ)

۸۳:۵٦ - نو ولې يې نه (راګرځوئ) کله چې ساه ستوني ته ورسېږي

۸۴:۵٦ - او په دغه وخت کې تاسو ګورئ

۸۵:۵٦ - او مونږ ده ته له تاسو نه ډېر نژدې يو او لېکن تاسو نه وينئ

۸٦:۵٦ - نو ولې يې نه (راګرځوئ) که تاسو محکومان نه يئ

۸۷:۵٦ - (نو ولې) دغه ساه (نه) راګرځوئ۔ که تاسو رښتيني يئ

۸۸:۵٦ - نو که چېرې (دغه مړی) له مقربينو څخه وي

۸۹:۵٦ - نو (د ده لپاره) راحت او ښه رزق او له نعمتونو ډك جنت دی

۹۰:۵٦ - او که د ښي اړخ والاو څنې وي

۹۱:۵٦ - نو (ورته ويلی به شي:) تا ته سلام دی۔ (ای) له ښي اړخ والاو څنې!

۹۲:۵٦ - او که چېرې (دا مړی) د تکذيب کوونکو ګمراهانو څنې وي

۹۳:۵٦ - نو (د ده لپاره) د ډېرو اېشېدلو اوبو مېلمستيا ده

۹۴:۵٦ - او دوزخ ته ننه اېستل دي

۹۵:۵٦ - بېشکه دا خبره يقينًا هم دا حقه يقيني ده

۹٦:۵٦ - پس ته د خپل عظيم رب د نوم پاکي بيانوه

## (مدني) وسپنه - الحديد ۵۷

۱:۵۷ - د الله پاکي بيانوي هر هغه شی چې په اسمانونو او ځمکه کې دی او هم دی ښه غالب، ډېر حکمت والا دی

۲:۵۷ - خاص هم ده لپاره د اسمانونو او ځمکې بادشاهي ده، دی ژوندي کول کوي اومړه کول کوي اوهم دی په هر شی باندې ښه قادر دی

۳:۵۷ - هم دغه (الله) اول دی (هيڅ شی له هغه نه مخکې نه و) او اخر دی (له ده نه بعد هيڅ شی نشته) او لوړ دی (په هر شي بره دی) او باطن دی (له ده په وړاندې هيڅ شی پټ نه دی) او

هغه په هر شي باندې ښه پوه دی

۴:۵۷ - دی هغه ذات دی چې اسمانونه او ځمکه یې په شپږو ورځو کې پیدا کړي دي، بیا دی په عرش باندې برقراره شو.، دی عالم دی په هر شي چې په ځمکه کې ننوځي او په هر هغه شي چې له دې نه راوځي او په هر هغه شي چې له اسمانه راکوزېږي او په هر هغه شي چې په ده کې پورته خېژي او دغه (الله د خپل شان لایق) له تاسو سره دی، هر چېرې چې تاسو یئ. او الله هغو کارونو لره چې تاسو یې کوئ، ښه لیدونکی دی

۵:۵۷ - خاص هم ده لره د اسمانونو او ځمکې بادشاهي ده او خاص الله ته ټول کارونه ورگرځولی شي

۶:۵۷ - دی شپه په ورځ کې ننباسي او ورځ په شپه کې ننباسي او دی د سینو په پټو خبرو ښه عالم دی

۷:۵۷ - ای خلقو! تاسو په الله او د هغه په رسول ایمان راوړئ او له هغه (مال) څخه څه خرچ کړئ چې هغه (الله) تاسو په دغه (مال) کې (د نورو خلقو) ځای ناستي (خلیفه گان) جوړ کړي یئ.، نو هغه کسان چې له تاسو نه یې ایمان راوړی دی او انفاق یې کړی دی، د دوی لپاره ډېر لوی اجر دی

۸:۵۷ - او تاسو ته څه عذر دی چې په الله ایمان نه راوړئ، حال دا چې (د الله) رسول تاسو ته بلنه درکوي دې ته چې تاسو په خپل رب ایمان راوړئ او یقینًا هغه (الله له تاسو نه) ستاسو پخه وعده اخیستې ده.، که چېرې تاسو مومنان یئ

۹:۵۷ - دی همغه ذات دی چې په خپل بنده باندې ښکاره ښکاره آیتونه (دلیلونه) نازلوي، د دې لپاره چې دغه (الله) تاسو له تیارو نه رڼا ته وباسي او بېشکه الله پر تاسو باندې یقینًا ډېر نرمي کوونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۱۰:۵۷ - او تاسو ته څه مانع (او عذر) دی چې د الله په لاره کې خپل مال) نه لگوئ، حال دا چې د اسمانونو او ځمکې میراث خاص د الله لپاره دی. په تاسو کې هغه څوك نه دي برابر چا چې (د الله په لاره کې) له فتحې نه مخکې انفاق کړی دی او جنگ یې کړی دی.، دغه خلق د درجې په لحاظ له هغو کسانو نه ډېر لوی دي چې له دغې (فتحې) نه یې وروسته (د الله په لاره کې) انفاق کړی وي او جنگ یې کړی وي او (په دوی کې) له هر یو سره الله د ښېگنې (جنت) وعده کړې ده. او الله په هغو کارونو چې تاسو یې کوئ، ښه خبردار دی

۱۱:۵۷ - څوك دی هغه کس چې الله ته قرض ورکړي، ډېر ښکلی قرض (حسن) نو چې هغه (الله) دغه (قرض) د ده لپاره دوه چنده کړي او د ده لپاره ډېر د عزت اجر دی

۱۲:۵۷ - هغه ورځ (یاده کړه) چې ته به مومنان سړي او مومنې ښځې وینې چې د دوی رڼا به د

دوی مخې ته او د دوی ښي اړخ ته منډې وهي، ستاسو زېرى نن ورځ داسې جنتونه دي چې د هغو له لاندې ولې بهېږي، چې په هغو کې به تل اوسېدونکي یئ.، همدغه ډېره لویه کامیابي ده

۱۳:۵۷ - (ای نبي! ته) هغه ورځ (یاده کړه) چې منافق سړي اومنافقې ښځې به ایمان داره کسانو ته وایي: مونږ ته وګورئ (انتظار وکړئ) چې ستاسو له رڼا نه رڼا واخلو (، نو) دوی ته به وویل شي چې خپلې شا ته وګرځئ، نو (هلته) رڼا ولټوئ، نو د دوی په مینځ کې به یو داسې دېوال وواهه شي چې د هغه به دروازه (هم) وي، د دغه (دېوال) دننه طرف، په هغه کې به رحمت وي او د دغه (دېوال) د باندې طرف، له دغه جانبه به عذاب وي

۱۴:۵۷ - دوی به دغو (مومنانو) ته اواز وکړي: ایا مونږ له تاسو سره نه وو؟ نو دوی (مومنان) به ووایي: ولې نه! او لېکن تاسو خپل ځانونه په فتنه کې اچولي وو او تاسو انتظار کاوه او شك مو کاوه او (خپلو) ارزوګانو دوکه کړي (تېرایستلي) وئ، تر هغه پورې چې د الله امر راغی او تاسو د الله په باره کې ډېر دوکه کوونکي دوکه کړي وئ

۱۵:۵۷ - نو نن ورځ به نه له تاسو نه څه فدیه (معاوضه) اخیستلی شي او نه له کافران شویو کسانو نه.، ستاسو استوګنه اور دی، هغه (اور) ستاسو دوست (او لایق) دی او هغه د ورتلو بد ځای دی

۱۶:۵۷ - ایا هغو کسانو ته چې ایمان یې راوړی دی (دغه) وخت نه دی راغلی چې د دوی زړونه نرم (او په وېره) شي د الله ذکر ته او هغه حق ته چې نازل شوی دی! او د هغو کسانو په شان نشي چې له دې نه مخکې ورته کتاب ورکړی شوی و، نو په دوی باندې زمانه اوږده شوه، پس د دوی زړونه سخت شول او په دوی کې ډېر فاسقان (نافران) دي

۱۷:۵۷ - تاسو پوه شئ چې بېشکه الله ځمکه د هغې له مرګ (وچوالي) نه پس ژوندۍ کوي، یقینًا مونږ تاسو ته ایتونه بیان کړي دي، د دې لپاره چې تاسو له عقل نه کار واخلئ

۱۸:۵۷ - بېشکه خیرات کوونکي سړي او خیرات کوونکې ښځې او هغه چې الله ته قرض ورکوي، ښه قرض، د دوی لپاره (دغه قرضِ حسن) دوچند کولی شي او د دوی لپاره ډېر د عزت اجر دی

۱۹:۵۷ - او هغه کسان چې په الله او د هغه په رسولانو یې ایمان راوړی دی همدغه کسان ډېر رښتني دي او د خپل رب په وړاندې شاهدان دي.، د دوی لپاره د دوی اجر او د دوی رڼا ده او هغه کسان چې کافران شوي او زمونږ ایتونو ته یې دروغ ویلي دي.؛ دغه کسان د دوزخ ملګري دي

۲۰:۵۷ - تاسو پوه شئ چې بېشکه دنیایي ژوند یواځې لوبې او عبث او زینت او په خپل مینځ یو په بل باندې فخر کول دي او په یو بل باندې په مالونو او اولادونو کې ډېر والی کول دي. د هغه باران په شان چې کرونکي (کروندګر) لره د هغه (باران) زرغونه خوشاله کړي، بیا هغه (زرغونه) وچېږي، نو ته دغه زرغونه تکه زېړه وینې، بیا هغه رېزه رېزه شي او په اخرت کې (د اخرت منکرانو ته) ډېر

سخت عذاب دی او (منونکو ته) د الله له جانبه بخښنه او رضامندي ده، او دنیايي ژوند نه دی مگر د دوکې (او غولېدلو) سامان دی

۲۱:۵۷ - تاسو تلوار وکړئ د الله له جانبه مغفرت ته او داسې جنت ته چې د هغه پلنوالی د اسمان او ځمکې د پلنوالي په شان دی، د هغو کسانو لپاره تیار کړی شوی دی چې په الله او د هغه په رسولانو ایمان لري، دغه د الله فضل دی، چا ته چې وغواړي دغه ورکوي او الله د ډېر لوی فضل والا دی

۲۲:۵۷ - نه رسېږي په ځمکه کې او نه ستاسو په ځانونو کې کوم مصیبت مگر (دا) په کتاب کې دي مخکې له دې نه چې دغه (ځانونه) پیدا کړو، بېشکه الله ته دا ډېره اسانه ده

۲۳:۵۷ - لپاره د دې چې تاسو په هغه څه خفه نشئ چې له تاسو فوت شول او په هغه څه خوشاله نشئ چې تاسو ته هغه درکړل او الله نه خوښوي هېڅ کبرجن (او) فخر کوونکی

۲۴:۵۷ - هغه کسان چې (پخپله) بخل کوي او (نورو) خلقو ته (هم) د بخل کولو حکم کوي او هغه څوك چې مخ یې وگرځاوه، نو بېشکه الله، هم دی ښه بې پروا.، ډېر ستایل شوی دی

۲۵:۵۷ - یقینًا یقینًا مونږ خپل رسولان په ښکاره دلیلونو سره لېږلي دي او له دوی سره مونږ کتاب او تله نازل کړي دي، د دې لپاره چې خلق په انصاف ودرېږي او مونږ اوسپنه نازله کړې ده، په دې کې (قوت د) سخت جنگ دی او د خلقو لپاره گټې دي. او د دې لپاره چې الله په هغه چا باندې پوه شي چې د ده او د ده د رسولانو په نالیدلو مدد کوي، بېشکه الله ډېر قوي، ښه غالب دی

۲۶:۵۷ - او یقینًا یقینًا مونږ نوح او ابراهیم رسولان لېږلي وو او د دغو دواړو په اولاده کې مو نبوت او کتاب ایښی و، نو په دوی کې ځینې هدایت موندونکي دي او په دوی کې ډېر زیات فاسقان دي

۲۷:۵۷ - بیا مونږ د دوی د قدمونو په اثارو پسې خپل رسولان راولېږل او ورپسې مو راوست عیسیٰ زوی د مریمې او مونږ ده ته انجیل ورکړی و. او مونږ د ده د پیروي کوونکو په زړونو کې نرمي او مهرباني کول ایښي وو او رهبانیت چې دغه دوی له ځانه ایجاد کړی و، مونږ په دوی باندې لازم کړی نه و لیکن (دوی غوره کړی و) د الله د رضامندۍ لټولو لپاره، نو دوی د هغه (رهبانیت) رعایت ونه کړ، حق رعایت، نو په دوی کې هغو کسانو ته چې ایمان یې راوړی و؛ مونږ د دوی اجر ورکړ او په دوی کې ډېر زیات فاسقان وو

۲۸:۵۷ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو له الله نه ووېرېږئ او د هغه په رسول ایمان راوړئ هغه (الله) به تاسو ته له خپل رحمت نه دوه حصې درکړي او تاسو لپاره به رڼا پیدا کړي چې تاسو به له هغې سره (په پل صراط) ځئ او تاسو به وبخښي او الله ډېر بخښونکی، بې

حده رحمہ کوونکی دی

۲۹:۵۷ - د دې لپاره چې اهل کتاب (په دې) ښه پوه شي چې دوی د الله له فضله په هېڅ شي باندې قادر نه دي او دا چې بېشکه فضل د الله په لاس کې دی، چا ته چې وغواړي هغه ورکوي او الله د ډېر لوی فضل والا دی

## (مدني) ګړار- المجادلة ۵۸

۱:۵۸ - یقینًا الله د هغې ښځې خبره واورېدله چې له تا سره یې د خپل خاوند په باره کې بحث (او سوال و جواب) کاوه او الله ته یې شکایت کاوه۔ او الله ستاسو د دواړو سوال او جواب اورېده، بېشکه الله ښه اورېدونکی، ښه لیدونکی دی

۲:۵۸ - هغه کسان چې په تاسو کې له خپلو ښځو نه ظهار کوي (ورته وايي چې ته په ما باندې د خپلې مور د شا په شان یې، نو) دغه (ښځې) د دوی میندې نه دي.، د دوی میندې نه دي مګر هغه چې دوی یې زېږولي دي۔ او بېشکه یقینًا دوی یوه خرابه خبره او دروغ وايي او بېشکه یقینًا الله ډېر معافي کوونکی، ډېر بخښونکی دی

۳:۵۸ - او هغه کسان چې له خپلو ښځو نه ظهار کوي، بیا دوی (ماتولو د) هغې خبرې ته راګرځي چې ویلې وه، نو د یو مریي ازادول (لازمہ) دي، مخکې له دې چې دوی یو بل سره مسه کړي (کور والی وکړي) دغه (حکمہ) دی، تاسو ته په ده سره پند درکاوه شي۔ او الله په هغو کارونو چې تاسو یې کوئ ښه خبردار دی

۴:۵۸ - نو چا چې (مریی) ونه مونده، نو (په هغه) دوه میاشتې پرله پسې روژه نیول (لازمہ) دي، مخکې له دې چې دوی یو بل سره مسه کړي، نو هغه څوك چې (د دې) توان نه لري، نو (په ده) شپیتو مسکینانو ته خوراك ورکول (لازمہ) دي۔ دا (حکمہ) د دې لپاره دی چې تاسو په الله او د هغه په رسول ایمان راوړئ او دغه د الله (مقرر کړي) حدونه دي او د کافرانو لپاره ډېر دردوونکی عذاب دی

۵:۵۸ - بېشکه هغه کسان چې د الله او د هغه د رسول مخالفت کوي، دوی به هلاك کړی شي، لکه چې هلاك کړی شوي وو هغه کسان چې له دوی نه مخکې وو۔ او یقینًا مونږ ډېرې روښانه نښې (او دلایل) نازلې کړې دي او د کافرانو لپاره سپکوونکی عذاب دی

٦:۵۸ - (یاده کړه) هغه ورځ چې الله به دوی ټول ژوندي راپورته کړي، پس دوی به په هغو کارونو خبر کړي چې دوی کړي دي، الله هغه محفوظ کړي دي او دوی هغه هېر کړي دي او الله په هر شي باندې ښه شاهد (ګواه) دی

۷:۵۸ - ایا ته نه یې خبر چې بېشکه الله پوهېږي په هر هغه څه چې په اسمانونو کې دي او په هر هغه څه چې په ځمکه کې دي.، نه وي هېڅ پټه مشوره د درې کسانو مگر هغه (الله) د دوی څلورم وي او نه د پنځو کسانو مگر هغه د دوی شپږم وي او نه له دې نه د کمو وي او نه (له دې نه) د زیاتو مگر هغه له دوی سره وي.، دوی چې هرچېرې وي.، بیا به هغه د قیامت په ورځ دوی په هغو عملونو خبر کړي چې دوی کړي دي.، بېشکه الله په هر شي باندې ښه پوه دی

۸:۵۸ - ایا تا هغه کسان نه دي کتلي چې له پټو مشورو نه منع کړی شوي وو، بیا دوی هغه څه ته راگرځي چې له هغه نه منع کړی شوي وو او دوی د گناه او ظلم او د رسول د نافرمانۍ په هکله پټې مشورې کوي. او کله چې دوی تا ته راشي (نو) تا ته په هغه (کلمې) سره سلام کوي چې په هغې سره الله تا ته سلام نه دی (مقرر) کړی. او دوی په خپلو نفسونو (زړونو) کې وايي: الله مونږ ته په هغه څه ولې عذاب نه راکوي چې مونږ یې وایو.، دوی ته جهنم بس دی، چې دوی به هغه ته ننوځي، پس هغه د ورتلو بد ځای دی

۹:۵۸ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! کله چې تاسو په خپل مینځ کې پټې خبرې (او مشورې)، کوئ، نو دگناه کولو او ظلم او د رسول د نافرمانۍ په هکله یو له بله سره پټې مشورې مه کوئ او د نیکۍ او تقویٰ په هکله یو له بل سره پټې مشورې کوئ. او تاسو له هغه الله نه ووېرېږئ چې تاسو به خاص هغه ته ورجمع کولی شئ

۱۰:۵۸ - بېشکه (د گناه) پټې مشورې یواځې د شیطان له اړخه دي، د دې لپاره چې دی هغه کسان غمجن کړي چې ایمان یې راوړی دی، حال دا چې دغه (شیطان) دوی ته هېڅ شی ضرر رسوونکی نه دی مگر د الله په اذن (او ارادې) سره. او لازم ده چې مومنان خاص په الله باندې توکل وکړي

۱۱:۵۸ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! کله چې تاسو ته وویل شي: تاسو په مجلس کې ځای ارت کړئ، نو تاسو ځای ارت کړئ، الله به تاسو ته ځای ارت کړي او کله چې تاسو ته وویل شي چې (کوم نېك کار ته) پورته شئ، نو پورته شئ، الله به په تاسو کې هغه کسان په درجو کې اوچت کړي چې ایمان یې راوړی دی او هغه کسان چې هغوی ته علم ورکړی شوی دی. او الله په هغو کارونو چې تاسو یې کوئ ښه خبردار دی

۱۲:۵۸ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! کله چې تاسو له رسول سره پټه خبره کول غواړئ، نو تاسو له خپلې پټې مشورې نه مخکې صدقه ورانديې کړئ، دا تاسو لپاره ډېر غوره او ډېر پاکیزه دي.، نو که تاسو (صدقه) ونه مومئ، نو بېشکه الله ډېر بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۱۳:۵۸ - ایا تاسو له دې نه ووېرېدئ چې له خپلې پټې مشورې نه مخکې صدقې ورانديې کړئ، نو

کله چې تاسو (دا کار) ونه کړ او الله پر تاسو باندې رجوع وکړه، نو تاسو لمونځ قايموئ او زکات ورکوئ او د الله او د هغه د رسول اطاعت کوئ او الله په هغو عملونو چې تاسو يې کوئ ښه خبردار دی

۱۴:۵۸ - ايا تا هغو کسانو ته نه دي کتلي چې له داسې قوم سره دوستي کوي چې الله پر هغوی باندې غضب کړی دی، دغه کسان (منافقان) نه ستاسو څخه دي او نه له هغوی (کافرانو) څخه دي او دوی په دروغو باندې قسمونه خوري، حال دا چې دوی پوهېږي

۱۵:۵۸ - الله د دوی لپاره ډېر سخت عذاب تيار کړی دی، بېشکه دوی (چې دي) بد دی هغه (کار) چې دوی به کاوه

۱۶:۵۸ - دوی خپل قسمونه ډال ګرځولي دي، نو دوی (خلق) د الله له لارې نه منع کړل، نو د دوی لپاره سپکوونکی عذاب دی

۱۷:۵۸ - د دوی لپاره به د الله په مقابله کې نه د دوی مالونونه هېڅ شی پکار راشي او نه د دوی اولادونه، دغه کسان د اور ملګري دي، دوی به په هغه کې تل تر تله وي

۱۸:۵۸ - (ياده کړه) هغه ورځ چې الله به دوی ټول ژوندي راپورته کړي، نو دوی به هغه (الله) ته قسمونه خوري، لکه څنګه چې تاسو ته قسمونه خوري او دوی به ګمان کوي چې يقينًا دوی په يو (نفعمن) شي (لار) باندې دي، خبردار شئ! بېشکه همم دوی دروغجنان دي

۱۹:۵۸ - په دوی باندې شيطان غالب شوی دی، نو هغه له دوی نه د الله ذکر هېر کړی دی، دغه کسان د شيطان لښکر دی، خبردار شئ! بېشکه د شيطان لښکر (چې دی)، همم دوی زيان کاران دي

۲۰:۵۸ - بېشکه هغه کسان چې د الله او د هغه د رسول مخالفت کوي، دغه کسان په ډېر زياتو ذليلو (خلقو) کې دي

۲۱:۵۸ - الله ليکلي دي چې خامخا (او) لازمًا به زه غالب کېږمم او زما رسولان، بېشکه الله ډېر قوي، ښه غالب دی

۲۲:۵۸ - ته به داسې قوم ونه مومې چې په الله او په ورځ د اخرت ايمان لري، چې دوی به له هغو کسانو سره دوستي کوي چې د الله او د هغه د رسول مخالفت کوي، اګر چې دغه خلق د دوی پلرونه وي، يا د دوی زامن، يا د دوی ورونه، يا د دوی قبيله وي، دغه کسان دي چې هغه (الله) د دوی په زړونو کې ايمان ليکلی دی او دوی يې په هغه روح سره قوي کړي دي چې د ده له جانبه دی او هغه به دوی داسې جنتونو ته داخل کړي چې د هغو له لاندې ولې بهېږي، چې دوی په هغه کې تل تر تله وي، الله له دوی نه راضي شو او دوی له هغه نه راضي شول، دغه کسان د الله لښکر دی، اګاه شئ! بېشکه د الله لښکر، همم دوی کامياب دي

# (مدني) ګډون - الحشر ۵۹

۱:۵۹ - د الله لپاره پاکي بیانوي هر هغه څه چې په اسمانونو کې دي او هر هغه څه چې په ځمکه کې دي او همہ دی ښه غالب، ډیر حکمت والا دی

۲:۵۹ - دی هغه ذات دی چې کتابي کافران یې له خپلو کورونو نه وویستل. په اول وېستلو کې، تاسو دا ګمان نه کاوه چې دوی به ووځي او دوی ګمان کاوه چې د دوی قلاګاني دوی لره د الله (له عذاب) نه منع کوونکې (او ساتونکې) دي.، نو الله دوی ته له هغه ځایه راغی چې دوی (یې) خیال همہ نه کاوه. او د دوی په زړونو کې یې رعب واچاوه.، دوی خپل کورونه په خپلو لاسونو او د مومنانو په لاسونو ورانول، نو ای د سترګو خاوندانو! تاسو عبرت واخلئ

۳:۵۹ - او که الله په دوی باندې بې کوره کېدل نه وی لیکلي (نو) یقینًا دوی ته به یې په دنیا کې عذاب ورکړی و او د دوی لپاره په اخرت کې د اور عذاب دی

۴:۵۹ - دا ځکه چې یقینًا دوی د الله او د هغه د رسول مخالفت کړی و او هغه څوک چې د الله مخالفت وکړي، نو بېشکه الله د ډیر سخت عذاب والا دی

۵:۵۹ - د کجورو هره هغه ونه چې تاسو پرې کړه، یا مو هغه په خپلو بېخونو ولاړه پرېښوده، نو (دغه) د الله په حکمہ سره دي او د دې لپاره چې هغه (الله) دغو فاسقانو (کافرانو) لره رسوا (او ذلیله) کړي

۶:۵۹ - او هغه (مال) چې الله له دوی نه په خپل رسول باندې راګرځولی دی، نو تاسو په دغه (مال) باندې نه اسونه ځغلولي دي او نه اوښان. او لېکن الله خپل رسولان مسلط کوي په هر هغه چا باندې چې یې وغواړي. او الله په هر شي باندې ښه قادر دی

۷:۵۹ - هغه شی چې الله په خپل رسول باندې د کلیو له اوسېدونکو نه راګرځولی دی، نو (هغه) الله لره او (د الله) رسول لره دی او (او د رسول) خپلوانو او یتیمانو او مسکینانو اومسافرو لره دی، د دې لپاره چې دغه (مال) په تاسو کې د غنیانو په مینځ کې ګردش کوونکی ونه ګرځي. او رسول چې تاسو ته څه همہ درکړي، نو هغه واخلئ او له څه نه چې هغه تاسو منع کړي، نو تاسو منع شئ او له الله نه ووېرېږئ، بېشکه الله ډیر سخت عذاب والا دی

۸:۵۹ - (دغه مالونه) د هغو فقیرو هجرت کوونکو لپاره دي چې له خپلو کورونو او خپلو مالونو نه اېستل شوي دي، په داسې حال کې چې دوی د الله فضل او رضامندي لټوي او د الله او د هغه د رسول مدد کوي.، همدغه کسان رښتیني دي

۹:۵۹ - او د هغو کسانو لپاره دي چې دوی له دغو (مهاجرینو) نه مخکې په دغه کور (مدینه) کې او په ایمان کې ځای نیولی دی.، دوی له هغو کسانو سره مینه کوي چې دوی ته یې هجرت کړی

دی. او دوی په خپلو سینو (زړونو) کې هېڅ غصه (او حسد) نه مومي د هغه (مال) په وجه چې دغو (مهاجرینو) ته ورکړی شو او دوی په خپلو ځانونو باندې (هجرت کوونکو ته) ترجیح ورکوي اگر که په دوی باندې تنگي (او حاجت مندي) وي او هر هغه څوك چې د خپل نفس له بخیلۍ نه بچ کړی شو، نو همدغه کسان کامیاب (او په مراد رسېدلي) دي

۱۰:۵۹ - او د هغو کسانو لپاره دي چې له دوی (هجرت کوونکو او انصارو) نه وروسته راغلي دي،؛ دوی وایي: ای زمونږه ربه: ته مونږ ته مغفرت وکړه او زمونږ هغو وروڼو ته چې زمونږ نه یې په ایمان سره سبقت (او وړومبی والی) کړی دی او ته زمونږ په زړونو کې د هغو کسانو لپاره هېڅ بغض (او کینه) مه پیدا کوه چې ایمان یې راوړی دی. ای زمونږه ربه! بېشکه ته ډېر نرمي کوونکی، بې حده رحم کوونکی یې

۱۱:۵۹ - ایا تا نه دي کتلي هغو کسانو ته چې منافقان شوي دي،، دوی خپلو هغو وروڼو ته چې په اهل کتابو کې کافران شوي دي؛ وایي: قسم دی که تاسو وویستل شئ (نو) خامخا ضرور به مونږ هم له تاسو سره وځو او ستاسو په باره کې به د هیچا خبره هیڅکله هم ونه منو او که چېرې له تاسو سره جنگ شروع کړی شي (نو) مونږ به خامخا ضرور ستاسو مدد کوو. او الله گواهي ورکوي چې بېشکه دوی یقینًا دروغجن دي

۱۲:۵۹ - قسم دی که دوی وویستل شي (نو) دوی به له دغو سره نه وځي او یقینًا که دوی سره جنگ وکړی شي (نو) دوی به د هغو امداد نه کوي او خامخا که دوی د هغوی مدد وکړي (، نو) ضرور (او) خامخا به دوی خپلې شاگانې (په تېښته) وگرځوي، بیا به د دوی مرسته نه کېږي

۱۳:۵۹ - خامخا تاسو (ای مومنانو!) د دوی په سینو (زړونو) کې د وېرې په لحاظ له الله نه زیات سخت یئ،، دغه (وېره) په دې سبب ده چې بېشکه دوی داسې قوم دی چې نه پوهېږي

۱۴:۵۹ - دوی به له تاسوسره ټول په گډه جنگ ونه کړي مگر په کلابندو کلیو کې، یا د دیوالونو شا ته،، د دوی په خپل مینځ کې جنگ ډېر سخت دی،، ته به په دوی گمان کوې چې سره یو (ملگري) دي، حال دا چې د دوی زړونه بېل بېل دي، دا په دې وجه چې بېشکه دوی داسې قوم دی چې له عقل نه کار نه اخلي

۱۵:۵۹ - (د دوی مثال په ایمان نه راوړو کې) د هغو کسانو په شان دی چې له دوی نه مخکې په نژدې زمانه کې وو، چې هغوی د خپلو بدو چارو سزا (په دنیا کې) وڅکله او د هغوی لپاره (په اخرت کې) ډېر دردوونکی عذاب دی

۱۶:۵۹ - (د منافقانو مثال د وعدې په مخالفت کې) د شیطان په شان دی کله چې هغه انسان ته ووایي چې کافر شه، نو کله چې هغه (انسان) کافر شي، دی (ورته) وایي: بېشکه زه له تا نه بېزاره (او جدا) یم،، بېشکه زه له الله رب العالمین نه وېرېږم

۱۷:۵۹ - نو د دغو دواړو عاقبت (او انجام) دا دی چې بېشکه دوی دواړه په اور کې دي، چې په ده کې به تل ترتله وي او دغه د ظالمانو بدله ده

۱۸:۵۹ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو له الله نهووېرېږئ. او هر نفس دې هغه شي ته وګوري چې ده د سبا ورځې (قیامت) لپاره مخکې لېږلی دی. او تاسو له الله نه ووېرېږئ ،، بېشکه الله په هغو عملونو ښه خبردار دی چې تاسو یې کوئ

۱۹:۵۹ - او تاسو د هغو کسانو په شان مه کېږئ چې الله یې هېر کړی دی، نو هغه (الله) له دوی نه خپل ځانونه هېر کړل،، همدغه کسان نافرمانه دي

۲۰:۵۹ - د دوزخ والا او د جنت والا سره برابر نه دي،، جنت والا چې دي؛ هم دوی کامیاب (او په مراد رسېدلي) دي

۲۱:۵۹ - که مونږ دا قرآن په یوه غره باندې نازل کړی وی (نو) تا به خامخا هغه (غر) لیدلی وی، چې وېرېدونکی او د الله له وېرې نه ټوټې ټوټې کېدونکی به وی او دغه مثالونه (دي) چې مونږ یې د خلقو لپاره بیانوو، د دې لپاره چې دوی فکر وکړي

۲۲:۵۹ - دغه الله هغه ذات دی چې له ده نه غیر بل هېڅ حق معبود نشته، په غیبو او په ښکاره و عالم دی،، هم دی ډېر مهربان، بې حده رحم کوونکی دی

۲۳:۵۹ - دغه الله هغه ذات دی چې نشته هېڅ حق معبود مګر هم دی دی، چې (حقیقي) بادشاه دی، ښه پاك دی، سلامتي ورکوونکی (او) امان ورکوونکی دی، نګهبان (محافظ) ښه غالب (او زورور)، ډېر عظمت والا، ډېر لویي والا دی،، الله پاك دی له هغو (شیانو) نه چې دوی یې ورسره شریکوي

۲۴:۵۹ - هم دغه الله پیدا کوونکی، (له نیشت نه وجود ته) راوېستونکی، صورت ورکوونکی دی، خاص هم ده لپاره تر ټولو ښکلي نومونه دي،، د ده پاکې بیانوي هر هغه شی چې په اسمانونو او ځمکه کې دی، او هم دی ښه غالب، ډېر حکمت والا دی.

## (مدني) ازمویل شوی - الممتحنة ٦٠

۱:٦٠ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو زما دښمنان او خپل دښمنان دوستان مه نیسئ، چې تاسو دوی ته مینه وروړاندې کوئ، حال دا چې دوی په هغه حق باندې کافران شوي دي چې تاسو ته راغلی دی، دوی رسول او تاسو په دې سبب (له خپل وطنه) وباسي چې تاسو په خپل رب الله باندې ایمان راوړی دی،؛ که چېرې یئ تاسو چې زما په لاره کې د جهاد لپاره او زما د رضامندۍ د غوښتلو لپاره راوتلي یئ،، تاسو دوی ته په پټه سره (پیغام د) دوستي لېږئ، حال

دا چې زه په هغه څه ښه عالم یم چې تاسو یې پټوئ او په هغه څه چې تاسو یې ښکاره کوئ او په تاسو کې چې هر څوك دغه (کار) وکړي، نو یقینًا هغه له نېغې لارې نه بې لارې شو

۲:٦٠ - كه چېرې دوی په تاسو برى ومومي (، نو) تاسو لپاره به دښمنان شي او تاسو ته به در اوږده کړي خپل لاسونه او خپلې ژبې په بدۍ سره او دوی خوښوي چې تاسو کافران شئ

۳:٦٠ - تاسو ته به له سره نفع در ونه رسوي ستاسو خپلوياڼې او نه ستاسو اولاد،، د قیامت په ورځ به هغه (الله) ستاسو په مینځ کې فیصله کوي. او الله هغو کارونو لره چې تاسو يې کوئ؛ ښه لیدونکی دی

۴:٦٠ - یقینًا تاسو لپاره یوه ښکلې طریقه په ابراهیم او په هغو کسانو کې ده چې له هغه سره ملګري وو کله چې هغوی خپل قوم ته وويل: بېشکه مونږ له تاسو نه او له هغو څیزونو نه چې تاسو يې له الله نه غیر عبادت کوئ، سخت بېزاره (او جدا) یو، مونږ پر تاسو باندې منکران شوي یو. او زمونږ په مینځ کې او ستاسو په منځ کې عداوت (دښمني) او بغض د تل لپاره څرګند (او واقع) شوی دی،، تر هغه پورې چې تاسو په الله باندې ایمان راوړئ چې ایکې یواځې دی. خو خپل پلار ته د ابراهیم د دې (استغفار له) خبرې نه غیر چې: ''زه به تا لپاره خامخا ضرور استغفار غواړم''، او زه تا لپاره د الله په مقابله کې د هېڅ شي اختیار نه لرم ،، ای زمونږه ربه! خاص په تا باندې مونږ توکل کړی دی او خاص تا ته مو رجوع کړې ده او خاص تا ته بېرته درتګ دی

۵:٦٠ - ای زمونږه ربه! ته مونږ د کافران شويو خلقو لپاره (ځای د) فتنې مه ګرځوه. او ته مونږ ته مغفرت وکړه ای زمونږ ربه! بېشکه هم دا ته ډېر غالب، ښه حکمت والا یې

٦:٦٠ - یقینًا یقینًا تاسو لپاره په دغو کې ډېر ښکلې (قابلِ اقتدا) طریقه ده، د هغه چا لپاره چې د الله او د اخري ورځې امېد لري او هر هغه څوك چې مخ واړوي، نو بېشکه الله، هم دی غني (ډېر بې پروا)، ښه ستایل شوی دی

۷:٦٠ - امېد دی چې الله ستاسو په مینځ کې او د هغو کسانو په مینځ کې دوستي پیدا کړي چې تاسو ورسره دښمني کړې ده او الله ښه قادر دی، او الله ډېر بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۸:٦٠ - الله تاسو له هغو کسانو نه نه منع کوي چې له تاسو سره یې په دین کې نه جنګ کړی دی او نه یې تاسو له خپلو کورونو نه وېستلي يئ دا چې تاسو له هغوی سره نېکي وکړئ او له دوی سره انصاف وکړئ،، بېشکه الله انصاف کوونکي خوښوي

۹:٦٠ - بېشکه الله تاسو یواځې له هغو کسانو نه منع کوي چې له تاسو سره یې په دین کې جنګ کړی دی او تاسو یې له خپلو کورونو نه ایستلي يئ او ستاسو په ایستلو کې یې یو له بل سره مدد کړی دی، دا چې تاسو له دوی سره دوستي وکړئ او هر هغه څوك چې له دوی سره

دوستي وکړي، نو هم دغه کسان ظالمان دي

۱۰:٦۰ - ای هغو کسانوچې ایمان یې راوړی دی! کله چې تاسو ته مومنې ښځې راشي، چې هجرت کوونکې وي، نو تاسو دوی وازمایئ، الله د دوی په ایمان ښه عالم دی.، نو که تاسو دوی مومنې وپېژنئ (معلومې کړئ)، نو تاسو دوی کافرانو ته بېرته مه لېږئ، ـ دوی د هغوی (کافرانو) لپاره حلالې نه دي او نه هغوی د دغو (مومنو ښځو) لپاره حلال دي او تاسو (د دغو مومنو ښځو) دغو (کافرو خاوندانو) ته هغه څه ورکړئ چې دوی لګولي دي. او پر تاسو باندې په دې کې هېڅ ګناه نشته چې تاسو له دوی سره نکاح وکړئ (خو په دې شرط) کله چې تاسو دوی ته د دوی مهرونه ورکړئ. او تاسو د کافرو ښځو په عصمتونو منګولې مه لګوئ (په نکاح کې یې مه ساتئ) او تاسو هغه څه وغواړئ چې تاسو (په دغو کافرو ښځو) لګولي دي. او دوی (کافر خاوندان) دې هم هغه څه وغواړي چې دوی (په دغو مهاجرو ښځو باندې) لګولي وي.، دغه د الله حکم دی، الله ستاسو په مینځ کې (په ده سره) فیصله کوي او الله ښه عالم، ښه حکمت والا دی

۱۱:٦۰ - او که چېرې ستاسو په ښځو کې کومه ښځه ستاسو له لاسه ووځي (او) کافرو ته (لاړه شي) بیا ستاسو وار راشي (غزا وکړئ نو غنیمت واخلئ) نو تاسو هغو کسانو ته چې د هغوی ښځې تللې وي هومره (مال) ورکړئ چې هغوی (پر هغو ښځو) لګولی دی او تاسو له هغه الله نه ووېرېږئ چې تاسو په هغه ایمان لرونکي یئ

۱۲:٦۰ - ای نبي! کله چې تا ته مومنې ښځې راشي چې له تا سره په دې خبره بیعت کوي چې له الله سره به هېڅ شی نه شریکوي او غلا به نه کوي او زنا به نه کوي او خپل اولاد به نه وژني او نه به داسې بهتان لګوي چې هغه د خپلو لاسونو او خپلو پښو په وړاندې جوړوي. او په معروفو (نېکو چارو) کې به ستا نافرماني نه کوي، نو ته دوی بیعت کړه او د دوی لپاره د الله مغفرت (بخښنه) وغواړه، بېشکه الله ډېر بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

۱۳:٦۰ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! له هغه قوم سره دوستي مه کوئ چې الله پر هغوی باندې غضب کړی دی، ـ یقیناً دوی له اخرته داسې نا امېده شوي دي لکه کفار چې د قبرونو والاو (له راژوندي کېدو) نه نا امېده شوي دي

## (مدني) قطار - الصف ٦١

۱:٦١ - د الله پاکي بیانوي هر هغه څه چې په اسمانونو کې دي او هر هغه څه چې په ځمکه کې دي او هم دی ښه غالب، ډېر حکمت والا دی

۲:٦١ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو هغه (خبره) ولې وایئ چې نه یې کوئ!

۳:٦١ - دا (خبره) د الله په نیز د غضب په لحاظ لویه ده چې تاسو هغه (خبره) ووایئ چې نه یې کوئ

۴:٦١ - بېشکه الله هغه کسان خوښوي چې د هغه په لاره کې صف تړلي جنګېږي، ګویاکې دوی په قلعي سره په یو بل پورې ټینګ کړی شوی (ښه محکم) عمارت دي

۵:٦١ - او (یاد کړه) هغه وخت چې موسیٰ خپل قوم ته وویل: ای زما قومه! تاسو ما ته ولې ضرر رارسوئ، حال دا چې تاسو پوهېږئ چې یقینًا زه تاسو ته د الله رسول یم.، نو کله چې دوی (د الله له حکم نه) کاږه شول، نوالله د دوی زړونه کاږه کړل. او الله نافرمانه قوم ته هدایت نه کوي

٦:٦١ - او (یاده کړه) هغه وخت چې د مریمې زوی عیسیٰ وویل: ای بني اسرائیلو! بېشکه زه تاسو ته د الله رسول یم، چې د هغه څه تصدیق کوونکی یم چې له ما نه مخکې تېر شوی دی، چې تورات دی او د داسې رسول زېری درکوونکی یم چې له ما نه وروسته به راځي، چې د هغه نوم احمد دی.، نو کله چې دوی ته دغه (رسول) له ښکاره معجزو سره راغی (نو) دوی وویل: دا ښکاره جادو دی

۷:٦١ - او له هغه چا نه لوی ظالم څوك دی چې په الله پورې له ځانه دروغ تړي، حال دا چې هغه اسلام ته بللی شي. او الله ظالم قوم ته هدایت نه کوي

۸:٦١ - دوی غواړي چې په خپلو خولو سره د الله رڼا مړه کړي. او الله د خپلې رڼا پوره کوونکی دی. اګر که کافران (دا کار) بد ګڼي

۹:٦١ - دغه (الله) هغه ذات دی چې خپل رسول یې په هدایت او حق دین سره لېږلی دی، د دې لپاره چې دغه (الله) دغه (حق دین) ته په نورو ټولو دینونو باندې غلبه ورکړي.، اګر که مشرکان دغه (کار) بد ګڼي

۱۰:٦١ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! ایا زه تاسو ته داسې تجارت (سوداګري) وښیم چې تاسو ته به له ډېر دردونکي عذاب نه نجات درکوي

۱۱:٦١ - تاسو په الله او د هغه په رسول ایمان لرئ او د الله په لاره کې په خپلو مالونو او خپلو ځانونو سره جهاد کوئ.، دا تاسو لپاره ډېر غوره دي. که تاسو پوهېږئ

۱۲:٦١ - هغه به تاسو ته ستاسو ګناهونه وبخښي او تاسو به داسې جنتونو ته داخل کړي چې د هغو له لاندې ولې بهېږي او د تل اوسېدنې په جنتونو کې په ډېرو پاکېزه استوګنو کې (به مو داخل کړي) .، دغه ډېره لویه کامیابي ده

۱۳:٦١ - او بل (نعمت) چې تاسو یې خوښوئ، د الله له جانبه مرسته او نژدې بری دی او ته مومنانو ته زېری ورکړه

۱۴:۶۱ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو د الله مدد کوونکي شئ، لکه چې د مریمې زوی عیسٰی حواریانو (خپلو ملګرو) ته ویلي وو: د الله طرف ته زما مدد کوونکي څوك دي؟ حواریانو وویل: مونږ د الله مدد کوونکي یو، نو په بني اسرائیلو کې یوې ډلې ایمان راوړو او بله ډله کافره شوه، نو مونږ هغو کسانو ته د خپل دښمن په خلاف قوت ورکړو چې ایمان یې راوړی و، نو دوی غالبه شول

## (مدني) یوځای - الجمعة ٦٢

۱:۶۲ - د الله لپاره پاکي بیانوي هر هغه څه چې په اسمانونو کې دي او هر هغه څه چې په ځمکه کې دي، (د هغه الله چې) بادشاه دی، ډېر پاك دی، ښه غالب دی، ډېر حکمت والا دی

۲:۶۲ - دغه (الله) همغه ذات دی چې امیانو ته یې له همدوی څنې یو رسول لېږلی دی، چې دوی ته د هغه (الله) ایتونه تلاوت کوي او د دوی تزکیه کوي او دوی ته کتاب او حکمت (سنت) ښیي او بېشکه شان دا دی چې دوی له ده نه مخکې یقینًا په ښکاره ګمراهۍ کې وو

۳:۶۲ - او له دوی څخه نورو ته (هم) چې لا تر اوسه دوی هغو (پخوانیو) ته نه دي رسېدلي او هم دی ښه غالب، ډېر حکمت والا دی

۴:۶۲ - دغه د الله فضل دی چې دا هغه چا ته ورکوي چې یې وغواړي او الله د ډېر لوی فضل والا دی

۵:۶۲ - د هغو کسانو حال چې په هغوی باندې تورات وربار کړی شوی و (د تورات مکلف کړی شوي وو)، بیا دوی هغه پورته نه کړ؛ د هغه خره د حال په شان دی چې کتابونه یې په شا کړي وي، د هغو کسانو بد مثال (حال) دی چې د الله د ایتونو تکذیب کوي او الله ظالم قوم ته هدایت نه کوي

۶:۶۲ - ته (دوی ته) ووایه: ای هغو کسانو چې یهودیان شوي دي! که تاسو دا (غلطه) عقیده لرئ چې یقینًا تاسو له نورو خلقو نه غیر د الله دوستان یئ، نو تاسو د مرګ ارزو وکړئ، که چېرې تاسو رښتیني یئ

۷:۶۲ - او دوی به د دغه (مرګ) ارزو هیڅکله هم ونه کړي، په سبب د هغو (کارونو) چې د دوی لاسونو مخکې لېږلي دي۔ او الله په ظالمانو باندې ښه پوه دی

۸:۶۲ - ته (دوی ته) ووایه: بېشکه هغه مرګ چې تاسو له هغه نه تښتئ، پس یقینًا هغه له تاسو سره ملاقات کوونکی دی، بیا به تاسو د غیبو او ښکاره و عالم ذات ته بوتلی شئ، نو هغه به تاسو په هغو عملونو خبر کړي چې تاسو به کول

۹:٦۲ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! کله چې د جمعې د ورځې د لمانځه لپاره اذان وویلی شي، نو تاسو د الله ذکر ته منډې وهئ او اخیستل خرڅول پرېږدئ.، دا تاسو لپاره ډېر غوره دي که تاسو پوهېږئ

۱۰:٦۲ - نو کله چې لمونځ ادا کړی شي، نو تاسو په ځمکه کې خواره شئ او د الله له فضل څخه (څه) ولټوئ او تاسو الله ډېر زیات یادوئ، د دې لپاره چې تاسو کامیاب شئ

۱۱:٦۲ - او کله چې دوی تجارت (سوداګري)، یا تماشه ولیدله (نو) دوی هغې ته خواره شول او ته یې ولاړ پرېښودلې.، ته (دوی ته) ووایه: هغه څه چې له الله سره دي له دغې تماشې نه او له دغې سوداګرۍ نه ډېر غوره دي. او الله تر ټولو ښه رزق ورکوونکی دی

## (مدني) دوه مخي - المنافقون ٦۳

۱:٦۳ - (ای نبي!) کله چې تا ته منافقان راشي (نو دوی وایي: مونږ شاهدي ورکوو چې بېشکه ته یقینًا د الله رسول یې او الله پوهېږي چې ته بېشکه (او) یقینًا د هغه رسول یې. او الله شاهدي ورکوي چې بېشکه منافقان یقینًا دروغ ویونکي دي

۲:٦۳ - دوی خپل قسمونه ډال ګرځولي دي، نو دوی د الله له لارې نه منع شول، بېشکه دوی چې دي، بد دی هغه کار چې دوی یې کوي

۳:٦۳ - دا ځکه چې یقینًا دوی ایمان راوړ، بیا کافر شول، نو د دوی په زړونو باندې مهر ولګول شو، پس (اوس نو) دوی نه پوهېږي

۴:٦۳ - او کله چې ته دوی ووینې (نو) تا د دوی جسمونه (تنې) په تعجب کې اچوي. او که دوی خبرې کوي، (نو) ته د دوی خبرو ته غوږ ږدې، حال دا چې ګویاکې دوی ودرول شوي وچ لرګي دي.، هر اوچت غږ دخپل ځان په خلاف ګڼي.، هم دوی دښمنان دي، لهذا ته له دوی نه محتاط اوسه.، الله دې دوی هلاك کړي، څرنګه دوی ګرځولی شي

۵:٦۳ - او کله چې دوی ته وویل شي: تاسو راشئ چې د الله رسول ستاسو لپاره مغفرت وغواړي (نو) دوی خپل سرونه تاو کړي. او ته دوی وینې چې اعراض کوي، په داسې حال کې چې تکبر کوونکي وي

٦:٦۳ - د دوی لپاره یو شان ده که ته د دوی لپاره مغفرت (بخښنه) وغواړې، یا ته دوی لپاره مغفرت ونه غواړې، الله به دوی هېڅ کله هم ونه بخښي، بېشکه الله نافرمان قوم ته هدایت نه کوي

۷:٦۳ - هم دوی هغه کسان دي چې وایي: تاسو په هغو کسانو باندې مال مه لګوئ چې له

رسول الله سره دي، تر دې چې دوی خواره شي. او خاص د الله لپاره د اسمانونو او ځمکې خزانې دي او لېکن منافقان نه پوهېږي

۸:٦۳ - دوی وايي چې قسم دی که مونږ مدينې ته بېرته وګرځو (نو) تر ټولو عزتمن (خلق) به له دغې (مدينې) نه تر ټولو ذليله (خلق) خامخا ضرور وباسي او عزت (خو) خاص د الله لپاره دی او د هغه د رسول لپاره دی او د مومنانو لپاره دی او لېکن منافقان پوهه نه لري

۹:٦۳ - ای هغو کسانو چې ايمان يې راوړی دی! تاسو دې د الله له ذکر نه نه خپل مالونه غافله کړي او نه خپل اولادونه. او هغه څوك چې دا کار وکړي، نو همدغه زيانکاران (تاوانيان) دي

۱۰:٦۳ - او تاسو له هغه (مال) نه چې مونږ تاسو ته درکړی دی څه انفاق کوئ، مخکې له دې نه چې په تاسو کې يو کس ته مرګ راشي، بيا دا ووايي: ای زما ربه! ته ما تر نژدې مودې پورې ولې نه وروسته کوې، پس چې زه خيرات (صدقه) وکړم او له صالحانو (نېکانو) څخه شم

۱۱:٦۳ - او الله هېڅ يو نفس نه وروسته کوي کله چې د هغه اجل (نېټه) راشي. او الله په هغو عملونو ښه خبردا دی چې تاسو يې کوئ

## (مدني) دوکه - التغابن ٦۴

۱:٦۴ - د الله پاکي بيانوي هر هغه څه چې په اسمانونوکې دي او هر هغه څه چې په ځمکه کې دي، خاص د هغه لپاره بادشاهي ده او خاص د هغه لپاره ټول د کمال صفتونه دي او هغه په هر شي باندې ښه قادر دی

۲:٦۴ - هم دغه (الله) هغه ذات دی چې تاسو يې پيدا کړي يئ، نو په تاسو کې ځينې کافر دي او ځينې په تاسو کې مومن دي. او الله هغو کارونو لره چې تاسو يې کوئ ښه ليدونکی دی

۳:٦۴ - ده اسمانونه او ځمکه په حقه سره پيدا کړي دي او ستاسو صورتونه يې جوړ کړل، پس ستاسو صورتونه يې ډېر ښکلي کړي دي او خاص ده ته بېرته ورتګ دی

۴:٦۴ - دی پوهېږي په هر هغه څه چې په اسمانونو اوځمکه کې دي او پوهېږي په هغه څه چې تاسو يې پټوئ او په هغه څه چې تاسويې څرګندوئ. او الله د سينو په (پټو) خبرو هم ښه عالم دی

۵:٦۴ - ايا تاسو ته د هغو خلقو خبر نه دی راغلی چې له دې نه مخکې کافران شوي وو، نو هغوی د خپل عمل سزا وڅکله او د هغوی لپاره ډېر دردوونکی عذاب دی

٦:٦۴ - دا په دې سبب چې بېشکه شان دا دی چې دوی ته به د دوی رسولان له ښکاره معجزو سره راتلل، نو دوی به ويل چې ايا مونږ ته به بشر (انسانان) لاره ښيي، نو دوی کافر شول او مخ

يې وګرځاوه او الله استغنا وکړه او الله ډېر بې پروا، ښه ستايل شوى دى

۷:۶۴ - کافران شوي کسان (دا غلطه) عقيده ساتي چې دوى به له سره بيا راژوندي نه کړى شي.، ته (دوى ته) ووايه: ولې نه! زما په خپل رب قسم دى چې تاسو به خامخا ضرور بيا راژوندي کړى شئ، بيا به تاسو ته خامخا ضرور د خپلو کړو عملونو خبر درکولى شي او دا (کارونه) الله ته ډېر اسان دي

۸:۶۴ - نو تاسو په الله او د هغه په رسول او په هغې رڼا (قرآن) باندې ايمان راوړئ چې مونږ نازله کړې ده او الله په هغو کارونو چې تاسو يې کوئ؛ ښه خبردار دى

۹:۶۴ - (ياده کړه) هغه ورځ چې تاسو به دى (الله) د جمع کېدلو ورځې ته راجمع کړي.، دغه د تاوان د ښکاره کېدو ورځ ده او هغه څوك چې په الله ايمان راوړي او نېك عمل وکړي (، نو) هغه به له هغه نه د هغه ګناهونه لرې کړي او داسې جنتونو ته به يې داخل کړي چې د هغو له لاندې ولې بهېږي، چې دوى به په هغو کې تل ترتله وي.، دغه ډېره لويه کاميابي ده

۱۰:۶۴ - او هغه کسان چې کافران شوي دي او زمونږ د ايتونو تکذيب يې کړى دى دغه کسان د اور والا دي، چې په ده کې به همېشه وي او هغه د ورتلو بد ځاى دى.

۱۱:۶۴ - هېڅ يو مصيبت نه رسېږي مګر د الله په حکم سره او هغه څوك چې په الله ايمان راوړي (، نو) هغه به د ده زړه ته هدايت وکړي او الله په هر شي باندې ښه عالم دى

۱۲:۶۴ - او تاسو د الله اطاعت وکړئ او د رسول اطاعت وکړئ، نو که تاسو وګرځېدئ، نو يقينًا زمونږ د رسول په ذمه خو يواځې ښکاره پيغام رسونه ده

۱۳:۶۴ - الله (چې دى) نشته هېڅ لايق د عبادت مګر هم دى دى او لازم ده چې مومنان خاص په الله باندې توکل وکړي

۱۴:۶۴ - اى هغو کسانو چې ايمان يې راوړى دى! بېشکه ستاسو په ښځو او اولادونو کې ځينې ستاسو دښمنان دي، نو تاسو له دوى نه محتاط اوسئ او که چېرې تاسو معافي وکړئ او تېر شئ او بخښنه وکړئ، نو بېشکه چې الله ډېر بخښونکى، بې حده رحم کوونکى دى

۱۵:۶۴ - بېشکه هم دا خبره ده چې ستاسو مالونه او ستاسو اولادونه ازموينه (او فتنه) ده او الله (چې دى) له هغه سره ډېر لوى اجر دى

۱۶:۶۴ - نو تاسو له الله نه ووېرېږئ څومره چې تاسو کولى شئ او واورئ او اطاعت وکړئ او انفاق کوئ.، (دا به) ستاسو د ځانونو لپاره خير وي. او هغه څوك چې د خپل نفس له د بخيلۍ نه وساتل شو، نو هم دغه خلق کامياب دي

۱۷:۶۴ - که چېرې تاسو الله ته قرض ورکړئ، ښه قرض، (نو) دى به دغه (قرض) تاسو لپاره دوه

چنده کړي او تاسو ته به بخښنه وکړي او الله ښه قدردان، ښه تحمل والا دی

۱۸:۶۴ - د غیبو او ښکاره و عالم دی، ښه غالب، ښه حکمت والا دی

## (مدني) بېلتون - الطلاق ٦٥

۱:٦٥ - ای نبي! (دوی ته ووایه) کله چې تاسو (خپلې) ښځې طلاقول غواړئ، نو دوی په خپل (مناسب) وخت د عدت کې طلاقې کړئ او عدت وشمېرئ او له خپل رب الله نه ووېرېږئ. (او) تاسو دغه (خپلې ښځې) د دوی له کورونو نه مه وباسئ او دوی دې (پخپله) هم نه وځي مګر په دې حال کې چې دوی ښکاره بې حیايي وکړي. او دغه د الله حدونه دي او هر څوك چې د الله له حدونو نه تېر شي، نو یقینًا ده په خپل ځان ظلم وکړ، (ای طلاق ورکوونکیه!) ته نه پوهېږې، کېدی شي چې الله له دغه نه وروسته کوم (ښه) کار پیدا کړي

۲:٦٥ - نو کله چې دغه (ښځې) خپلې نېټې ته رسېږي، نو (یا) خو تاسو دوی په نېکه طریقه (په رجوع کولو سره په خپل نکاح کې) وساتئ، یا په نېکه طریقه له دوی نه جدا شئ. او په تاسو کې دوه عدل والا کسان (په دې کار) ګواهان ونیسئ او تاسو (ای ګواهانو) ګواهي د الله لپاره ادا کړئ.، دا (حکم چې دی) په ده سره هغه چا ته نصیحت کاوه شي چې په الله او د اخرت په ورځ ایمان لري او هغه څوك چې له الله نه ووېرېږي، (نو) هغه به د ده لپاره د وتلو څه ځای پیدا کړي

۳:٦٥ - او ده ته به له هغه ځایه رزق ورکړي چې دی به ګمان هم نه کوي. او هغه څوك چې په الله باندې توکل وکړي، نو همدی د ده لپاره بس (او کافی) دی، بېشکه الله خپل کار ته رسېدونکی دی.، یقینًا الله د هر شي لپاره یوه اندازه مقرر کړې ده

۴:٦٥ - او هغه ښځې چې ستاسو په ښځو کې د حیض له راتلو نه نااميده شوي دي. که چېرې تاسو شك وکړئ.، نو د دوی عدت درې میاشتې دی او هغه (جینکۍ) چې لا حایضه شوي نه وي. او امېدوارې (حامله) ښځې (چې دي) د دوی عدت دا دی چې حمل (بچی) وزېږوي. او هغه څوك چې له الله نه ووېرېږي، هغه به د ده لپاره په کار کې ډېره اساني پیدا کړي

۵:٦٥ - دغه د الله حکم دی، چې تاسو ته یې دغه نازل کړی دی. او هغه څوك چې له الله نه ووېرېږي، هغه به له ده نه د ده ګناهونه لرې کړي او د ده لپاره به اجر ډېر لوی کړي

٦:٦٥ - تاسو دغه ښځې (په عدت کې) د خپل طاقت سره سم د هغه ځای په څه حصه کې اوسوئ چې تاسو (په کې) اوسېږئ. او تاسو دوی ته ضرر مه رسوئ، د دې لپاره چې تاسو په دوی باندې تنګسیا راولئ. او که چېرې دغه (ښځې) امېدوارې (حامله) وي، بیا نو تاسو په دوی باندې خرچه کوئ تر هغه پورې چې دوی خپل حمل وزېږوي.، نو که دوی ستاسو (اولاد) لپاره تی ورکړي، نو تاسو دوی ته د دوی مزدوري ورکړئ او تاسو په خپل مینځ کې په ښې طریقې سره یو

له بله سره مشوره کوئ. او که تاسو یو له بل سره سختي وکړئ، نو ده (اولاد) ته به عنقریب بله ښځه تی ورکړي

۷:٦٥ - د فراخۍ والا دې له خپلې فراخۍ نه خرچه وکړي او هغه څوك چې په هغه باندې خپل رزق تنگ کړی شوی وي، نو هغه دې له هغه (مال) نه څه خرچ کړي چې الله ده ته ورکړی دی.، الله هېڅ یونفس نه مکلف کوي مگر هومره چې ده ته یې ورکړی دی.، ژر ده چې الله به له تنگۍ نه پس اساني راولي

۸:٦٥ - او ډېر کلي وو چې د خپل رب او د هغه د رسولانو له حکمہ نه یې سرکشي کړې وه، نو مونږ له هغوی سره حساب وکړ، ډېر سخت حساب کول. او مونږ هغوی ته عذاب ورکړ ډېر ناکاره عذاب ورکول

۹:٦٥ - نو هغوی د خپل کار سزا وڅکله او د دوی د کار انجامہ زیان (او تاوان) شو

۱۰:٦٥ - الله د دوی لپاره ډېر سخت عذاب تیار کړی دی.، نو تاسو له الله نهووېرېږئ ای د خالصو عقلونو خاوندانو، هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی، یقینًا الله تاسو ته ذکر (قرآن) نازل کړی دی

۱۱:٦٥ - (او) رسول (یې رالېږلی دی) چې تاسو ته د الله ایتونه لولي، چې ښه څرگندوونکي دي، د دې لپاره چې دغه (الله) هغو کسانو لره چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي، له تیارو نه رڼا ته وباسي. او هغه څوك چې په الله ایمان راوړي او نېك عمل وکړي (نو) دی به دغه کس داسې جنتونو ته داخل کړي چې د هغو له لاندې ولې بهېږي، چې دوی به په هغو کې تل ترتله وي.، یقینًا الله د ده لپاره رزق ډېر ښه کړی دی

۱۲:٦٥ - الله هغه ذات دی چې اوه اسمانونه یې پیدا کړي دي او له ځمکې نه همہ د دغو په مثل.، (د الله) امر د دوی په مینځ کې نازلېږي، د دې لپاره چې تاسو پوه شئ چې یقینًا الله په هر شي باندې ښه قادر دی او دا چې یقینًا الله د علمہ په لحاظ هر شی راگېر کړی دی

## (مدني) بندیز - التحریم ٦٦

۱:٦٦ - ای نبي! ته ولې هغه شی حراموې (بندوې) چې الله تا ته حلال کړی دی؟ ته د خپلو ښځو خوشحالول (او راضی کول) غواړې. او الله ډېر بخښونکی، بې حده رحمہ کوونکی دی

۲:٦٦ - یقینًا الله تاسو لپاره ستاسو د قسمونو حلالوالی مقرر کړی دی. او الله ستا مددگار دی، او همہ دی ښه پوه، ښه حکمت والا دی

۳:٦٦ - او (یاد کړه) هغه وخت چې نبي په خپلو ښځو کې کومې ته په راز کې یوه خبره وویله.، نو

کله چې هغې په دې سره (بلې ته) خبر ورکړ. او الله ده ته دغه (خبره) ښکاره کړه (نو) ده ځینې خبره وښودله او له ځینې نه یې اعراض وکړ.، نو کله چې ده هغه (ښځه) په دې خبره کړه (نو) هغې وویل: ته په دې باندې چا خبر کړې؟ ده وویل: ما ته ډېر پوه (او) ښه خبردار ذات خبر راکړ

۴:٦٦ - که چېرې تاسو دواړه الله ته توبه وباسئ، نو یقیناً ستاسو د دواړو زړونه مایله شوي دي او که د ده (نبي) په خلاف تاسو یوه له بلې سره مدد وکړئ، نو بېشکه چې الله، همغه د ده مددگار دی. او جبریل او صالح مومنان او ملایك له دې نه پس مددگاران دي

۵:٦٦ - که دی تاسو ته طلاق درکړي (، نو) امېد دی چې د ده رب به ده ته په بدل کې له تاسو نه ډېرې غوره ښځې ورکړي، چې مسلمانانې، مومنانې، اطاعت گزارې، توبه اېستونکې، عبادت کوونکې، روژه نیوونکې، (هجرت کوونکې) څښتن لیدلې او پېغلې به وي

٦:٦٦ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو خپل ځانونه او خپل اهل له داسې اور نه بچ وساتئ چې د هغه خشاك خلق او کاڼي دي، په ده باندې ډېر سخت خویه، قوتناك ملایك مقرر دي، چې دوی په هغه څه کې د الله نافرماني نه کوي چې دوی ته یې حکم کړی وي. او دوی هغه څه کوي چې دوی ته یې حکم کولی شي

٧:٦٦ - ای هغو کسانو چې کافران شوي دي! تاسو نن ورځ عذرونه مه وړاندې کوئ.، بېشکه همدا خبره ده چې تاسو ته به د هغه څه بدله درکولی شي چې تاسو به کول

٨:٦٦ - ای هغو کسانو چې ایمان یې راوړی دی! تاسو الله ته توبه وباسئ خالصه رښتینې توبه.، امېد دی چې ستاسو رب به له تاسو نه ستاسو گناهونه ورژوي او تاسو به داسې جنتونو ته داخل کړي چې د هغو له لاندې ولې بهېږي.، په هغه ورځ کې چې الله به نبي او هغه کسان چې له ده سره یې ایمان راوړی دی رسوا نه کړي.، د دوی رڼا به د دوی په وړاندې او د دوی په ښي اړخ منډې وهي.، دوی به وایي: ای زمونږه ربه! ته مونږ ته زمونږ رڼا پوره کړه او مونږ وبخښه.، بېشکه ته په هر شي باندې ښه قادر یې

٩:٦٦ - ای نبي! ته له کافرانو او منافقانو سره جهاد کوه او په دوی باندې سختي کوه. او د دوی استوگنه جهنم دی او هغه د ورتلو بد ځای دی

١٠:٦٦ - الله د هغو کسانو لپاره مثال بیانوي چې کافران شوي دي: د نوح ښځه او د لوط ښځه، دا دواړه زمونږ په بنده گانو کې ددوه نیکو بنده گانو لاندې وې، نو دغو دواړو (ښځو) له هغو سره خیانت وکړ، نو هغوی د الله په مقابله کې د دوی هېڅ په کار رانغلل. او دغو دواړو (ښځو) ته وویل شول چې تاسو اور ته له ننوتونکو سره ننوځئ

١١:٦٦ - او الله د ایمان راوړونکو لپاره یو بل مثال بیانوي: د فرعون ښځه ده، کله چې هغې وویل: ای زما ربه! ته ما ته زما لپاره خپلې خوا کې په جنت کې یو کور جوړ کړه او ته ما له فرعون او د

هغه له عمل نه خلاصه کړه او ته ما ته له ظالم قوم نه نجات راکړه

۱۲:٦٦ - او د عمران لور مریم ده، هغه چې د خپل شرم ځای حفاظت يې کړی و، پس مونږ له خپل روح نه په ده کې پوکی وواهه او دې د خپل رب د کلمو (خبرو) او د هغه د کتابونو تصدیق کړی و او دا له حکم منونکو څنې وه

## (مکي) واکمن - الملك ٦٧

۱:٦٧ - ډېر برکت والا دی هغه ذات چې خاص د هغه په لاس کې بادشاهي ده، او هغه په هر شي باندې ښه قادر دی

۲:٦٧ - هغه ذات چې مرگ او ژوند يې پیدا کړی دی، د دې لپاره چې تاسو وازمايي چې په تاسو کې د عمل په لحاظ کوم يو ډېر ښه دی. او هم دی ښه غالب، ډېر بخښونکی دی

۳:٦٧ - هغه (الله) چې اوه اسمانونه يې طبقې طبقې (لاندې باندې) پیدا کړي دي، ته به د رحمٰن په پیداکونه کې هېڅ خلل (او فرق)، ونه وینې.، پس سترگې بېرته راواړه.، ایا ته کوم څیرې والی (او چاود) وینې

۴:٦٧ - بیا سترگې راواړه دوه ځلې.، تا ته به سترگې بېرته راوگرځي، چې ذلیله به وي، په دې حال کې چې ستړې ستومانه به وي

۵:٦٧ - او یقینًا یقینًا مونږ دا تر ټولو نژدې اسمان په ډېوو (ستوریو) سره ښایسته کړی دی او مونږ دغه (ډېوې، یعنې ستوري) د شیطانانو د وېشتلو لپاره ذریعې جوړې کړې دي او مونږ د دوی لپاره ډېر سوځوونکی عذاب تیار کړی دی

٦:٦٧ - او د هغو کسانو لپاره چې په خپل رب باندې کافران شوي دي د جهنم عذاب دی او هغه د ورتلو بد ځای دی

۷:٦٧ - کله چې دوی په ده کې وغورځول شي دوی به د ده (لکه د خر) بد اواز واوري، په داسې حال کې چې دا به خوټکېږي

۸:٦٧ - نژدې به وي چې دی له غصې نه ټوټې شي، هر واري چې په ده کې یوه ډله وغورځول شي (نو) له دوی نه به د دغه (دوزخ) څوکیداران پوښتنه وکړي چې ایا تاسو ته وېروونکی (پېغمبر) نه و راغلی؟

۹:٦٧ - دوی به وايي: ولې نه! یقینًا مونږ ته وېروونکی راغلی و، پس مونږ (د هغه) تکذیب وکړ (هغه مو دروغجن وگاڼه) او مونږ وویل چې الله هېڅ شی هم نه دی نازل کړی.، نه يئ تاسو مگر په ډېره لویه گمراهۍ کې

۱۰:٦٧ - او دوی به وايي: که چېرې مونږ اورېدل کولی، يا مو له عقل نه کار اخيستلی (نو) مونږ به (نن) د دوزخ په ملګرو کې نه وی

۱۱:٦٧ - نو دوی د خپلو ګناهونو اقرار وکړ، نو د دوزخ والاو لپاره (د الله له رحمت نه) لرې والی دی

۱۲:٦٧ - بېشکه هغه کسان چې له خپل رب نه په غيبو (نالېدلو) سره وېرېږي، د دوی لپاره مغفرت او ډېر لوی اجر دی

۱۳:٦٧ - او تاسو خپله خبره پټه وکړئ، يا تاسو هغه ښکاره وکړئ، بېشکه هغه (الله) د سينو په پټو خبرو هم ښه عالم دی

۱۴:٦٧ - ايا هغه ذات به نه پوهېږي چې يې (هر څه) پيدا کړي دي (ولې نه!) او هم دی ډېر باريك بين، ښه خبردار دی

۱۵:٦٧ - دی همغه ذات دی چې تاسو لپاره يې ځمکه تابع ګرځولې ده، نو تاسو د دې په اوږو (اطرافو، لارو) کې ګرځئ او د دغه (الله) له رزق نه خورئ او خاص ده ته (ستاسو) بيا ژوندي راپورته کېدل دي

۱٦:٦٧ - ايا تاسو په امن (او بې وېرې) شوي يئ له هغه ذات نه چې په اسمان کې دی، له دې نه چې هغه تاسو په ځمکه کې ښکته ننباسي، بيا دغه (ځمکه) ناڅاپه لړزان شروع کړي

۱۷:٦٧ - ايا تاسو له هغه ذات، نه چې په اسمان کې دی په امن (او بې وېرې) شوي يئ، له دې نه چې پر تاسو باندې د کاڼو باران راخوشې کړي، نو چې تاسو به ژر پوه شئ چې زما وېرول څنګه دي

۱۸:٦٧ - او يقينًا يقينًا هغو کسانو (د خپلو رسولانو) تکذيب کړی و چې له دغو خلقو نه مخکې وو، نو زما انکار او عذاب څنګه وو؟

۱۹:٦٧ - او ايا دوی د خپل (سر) له پاسه مرغانو ته نه دي کتلي، په داسې حال کې چې خپل وزرونه پرانستونکي وي او ټولوي يې، دوی (له پرېوتلو نه) نه راټينګوي مګر رحمن ذات، بېشکه هغه هر شي لره ښه ليدونکی دی

۲۰:٦٧ - ايا څوك دی هغه کس (ای مشرکانو!) چې هغه ستاسو لپاره لښکر دی چې له رحمٰن نه غير به ستاسو مدد وکړي، کافران نه دي مګر په دوکه (او غولېدلو) کې

۲۱:٦٧ - ايا څوك دی هغه ذات چې تاسو ته به روزي درکړي که چېرې هغه (الله) خپل رزق بند کړي. بلکې دوی په سرکشۍ او تېښته کې ننوتلي (او پاخه شوي) دي

۲۲:٦٧ - ايا نو هغه څوك چې په خپل مخ باندې نسکور ځي ښه لار موندونکی دی، يا هغه څوك چې په نېغه لار سم برابر روان دی؟

۲۳:٦۷ - ته (دوی ته) ووایه: دغه (الله) هغه ذات دی چې تاسو یې پیدا کړي یئ او تاسو لپاره یې غوږونه او سترګې او زړونه پیدا کړي دي۔ (خو) تاسو ډېر لږ شکر وباسئ

۲۴:٦۷ - ته (دوی ته) ووایه چې دغه (الله) هغه ذات دی چې تاسو یې په ځمکه کې خواره کړي یئ او خاص ده ته به تاسو ورجمع کولی شئ

۲۵:٦۷ - او دوی وایي چې دغه (د قیامت) وعده به کله وي، که تاسو رښتیني یئ؟

۲٦:٦۷ - ته (دوی ته) ووایه چې بېشکه (د قیامت) علم خو یواځې الله ته دی او بېشکه زه خو یواځې ښکاره وېروونکی یم

۲۷:٦۷ - نو کله چې دوی دغه (عذاب) ډېر نژدې ووینې (نو) د هغو کسانو مخونه به بدشکله (او تور) شي چې کافران شوي وو او وبه ویل شي چې دا هغه (عذاب) دی چې تاسو به دا ژر غوښته

۲۸:٦۷ - (ای نبي!) ته (دوی ته) ووایه: تاسو ما ته خبر راکړئ! که چېرې الله ما او هغه کسان چې زما سره دي، هلاك (او مړه) کړي، یا پر مونږ رحم وکړي، نو څوك دی چې کافران به له ډېر دردونکي عذاب نه بچ کړي؟

۲۹:٦۷ - ته (دوی ته) ووایه: هم دغه (الله) رحمٰن دی، مونږ په ده ایمان راوړی دی او مونږ خاص په ده باندې توکل کړی دی، نو تاسو به ژر پوه شئ چې هغه څوك دی چې په ښکاره ګمراهۍ کې دی

۳۰:٦۷ - ته (دوی ته) ووایه چې تاسو ما ته خبر راکړئ! که چېرې ستاسو اوبه (په ځمکه کې) ډېرې ښکته لاړې شي۔، نو څوك دی چې تاسو ته به رواني اوبه راولي؟

## (مکي) لیکانې - القلم ٦۸

۱:٦۸ - نون۔، قسم دی په قلم او په هغه څه چې دوی یې لیکي

۲:٦۸ - چې ته د خپل رب په نعمت (او فضل) سره هېڅ لېونی نه یې

۳:٦۸ - او بېشکه چې خاص تا لره یقینًا داسې اجر دی چې قطع کولی به نشي

٤:٦۸ - او بېشکه چې ته یقینًا په ډېرو لویو اخلاقو باندې (فایز) یې

٥:٦۸ - پس ژر به ته ووینې (ای نبي!) او دوی به هم ووینې

٦:٦۸ - چې په تاسو کې کوم یو لېونی دی

۷:٦۸ - بېشکه ستا رب په هغه چا ښه پوه دی چې د ده له لارې نه ګمراه شوی دی او هم دی په هدایت موندونکو باندې ښه عالم دی

۸:٦۸ - نو ته د تکذیب کوونکو خبره مه منه

۹:٦۸ - دوی خوښوي چې کاشکې ته نرم شې، نو دوی به هم نرم شي

۱۰:٦۸ - او ته د هر ډېر سوګند خوړونکي، سپك، خبره مه منه

۱۱:٦۸ - چې ډېر عیب ویونکی، چغلی لره ډېر چلوونکی دی

۱۲:٦۸ - خیر لره ډېر منع کوونکی، له حده تېرېدونکی، سخت ګناهګار دی

۱۳:٦۸ - ډېر بد خویه دی (او) له دغو (عیبونو) نه پس بد اصله (حرامي هم) دی

۱٤:٦۸ - په دې وجه چې دی د مال او زامنو والا دی

۱۵:٦۸ - کله چې ده ته زمونږ ایتونه ولوستل شي (نو) دی وایي: (دا) د ړومبنو خلقو باطلې قصې دي

۱٦:٦۸ - ژر ده چې مونږ به د ده په خلتم (پوزه) باندې داغ کېږدو

۱۷:٦۸ - بېشکه مونږ دوی وازمایل، لکه چې مونږ د باغ خاوندان ازمایلي وو، کله چې هغوی قسمونه وخوړل چې دوی به خامخا ضرور دغه (د باغ مېوې) پرې کړي، په دې حال کې چې سبا کوونکي به وي

۱۸:٦۸ - او دوی استثنا نه کوله (ان شاء الله يې ونه وایه)

۱۹:٦۸ - نو په دغه (باغ) باندې ستا د رب له جانبه یوه طواف کوونکې بلا راچاپېره شوه، په داسې حال کې چې دوی ویده وو

۲۰:٦۸ - نو دغه (باغ داسې) شو، لکه رېبل شوی فصل

۲۱:٦۸ - نو دوی یو بل ته اواز وکړ، په داسې حال کې چې سبا کوونکي وو

۲۲:٦۸ - داسې چې خپل فصل ته سبا وختي ورشئ که چېرې تاسو لَو کوونکي یئ

۲۳:٦۸ - نو دوی روان شول، په داسې حال کې چې یو له بل سره یې پټې پټې خبرې کولې

۲٤:٦۸ - (داسې) چې دې (باغ) ته دې پر تاسو باندې نن ورځ بېخي هېڅ مسکین داخل نه شي

۲۵:٦۸ - او دوی د نه ورکولو په ارادې سره سهار لاړل، په داسې حال کې چې دوی (په خپل خیال کې) قادر وو

۲٦:٦۸ - نو دوی چې کله هغه (باغ) ولیده، ویې ویل: بېشکه مونږ یقینًا لار ورکي یو

۲۷:٦۸ - بلکې مونږ محروم کړی شوي یو

۲۸:٦۸ - د دوی منځني (غوره) کس وویل: ایا ما تاسو ته نه و ویلي! ولې تاسو تسبیح نه وایئ

۲۹:٦٨ - (نو) دوی وویل: پاکي ده زمونږ رب لره، بېشکه مونږ ظالمان وو

۳۰:٦٨ - نو د دوی ځینو ځینو نورو ته مخ واړوه، چې یو بل یې ملامته کول

۳۱:٦٨ - دوی وویل: ای زمونږ هلاکته! یقینًا مونږ سرکشان وو

۳۲:٦٨ - امېد دی چې زمونږ رب به مونږ ته له دې (باغ) نه غوره په بدل کې راکړي، بېشکه مونږ خپل رب ته رغبت کوونکي یو

۳۳:٦٨ - همداسې عذاب وي او یقینًا د اخرت عذاب تر ټولو لوی دی، که چېرې دوی پوهېدلی

۳۴:٦٨ - بېشکه د پرهېزګارو لپاره د خپل رب په نیز د نعمتونو جنتونه دي

۳۵:٦٨ - ایا نو مونږ به مسلمانان د مجرمانو په شان کړو؟

۳٦:٦٨ - په تاسو څه شوي دي؟ تاسو څنګه فیصله کوئ!

۳۷:٦٨ - ایا تاسو سره کتاب دی چې په هغه کې تاسو (دا) لولئ؟

۳۸:٦٨ - چې بېشکه تاسو لپاره په دغه (کتاب) کې هغه څه دي چې تاسو یې خوښوئ

۳۹:٦٨ - ایا تاسو لپاره زمونږ په ذمه څه قسمونه (وعدې) شته چې د قیامت د ورځې پورې رسېدونکي دي چې یقینًا تاسو لپاره به خامخا هغه څه وي چې تاسو یې فیصله کوئ

٤۰:٦٨ - ته له دوی نه پوښتنه وکړه چې په دوی کې کوم یو د دغه کار ضامن دی؟

٤۱:٦٨ - ایا د دوی لپاره شریکان شته دی، نو دوی دې خپل (دغه) شریکان راولي، که چېرې دوی رښتیني وي

٤۲:٦٨ - او (یاده کړه) هغه ورځ چې پنډۍ به بربنډه کړی شي او دوی به سجدې کولو ته راوبلل شي، نو دوی به توان ونه لري

٤۳:٦٨ - په داسې حال کې چې د دوی سترګې به ذلیله (او ټیټې) وي، دوی به ذلت راګېر کړي وي او یقینًا دوی به سجدې کولو ته رابللی شول، په داسې حال کې چې روغ رمټ به وو

٤٤:٦٨ - نو ته ما او هغه څوک پرېږده چې د دغه حدیث (قرآن) تکذیب کوي، ژر به مونږ دوی په استدراج کې واچوو (ورو به یې ورو راونیسو) له هغه ځایه چې دوی به نه پوهېږي

٤٥:٦٨ - او زه دوی ته مهلت ورکوم، بېشکه زما حیله (چل) مضبوط (او محکم) دی

٤٦:٦٨ - ایا ته له دوی نه مزدوري غواړې، نو دوی له (دغه) تاوانه، درانه کړی شوي دي

٤۷:٦٨ - ایا له دوی سره علم غیب دی، نو چې دوی یې لیکي

٤٨:٦٨ - نو ته د خپل رب حکم ته صبر کوه او د کب (مهي) والا (یونس) په شان مه کېږه، کله

چې ده اواز وکړ، په داسې حال کې چې له غم نه ډك و

۴۹:۶۸ - که چېرې داسې نه وی چې ده ته د خپل رب مهرباني ورسېدله (نو) دی به خامخا په سپېره میدان کې غورځول شوی و، په داسې حال کې چې دی به مذموم (ملامت کړی شوی) و

۵۰:۶۸ - نو دی خپل رب غوره کړ، پس دی یې له صالحانو څخه وګرځاوه

۵۱:۶۸ - او بېشکه شان دا دی چې کافران شوي خلق نژدې وو چې تا په خپلو سترګو سره خامخا وښیوي، کله چې دوی ذکر (قرآن) واورېده او دوی وایي چې بېشکه دی خامخا لېونی دی

۵۲:۶۸ - حال دا چې دغه (قرآن) نه دی مګر د عالمونو لپاره نصیحت

## (مکي) رښتیاتوب - الحاقة ٦٩

۱:۶۹ - دغه (قیامت) خامخا واقع کېدونکی

۲:۶۹ - دغه لازمًا واقع کېدونکی څه شی دی

۳:۶۹ - او ته څه شي پوه کړې چې دغه قیامت څه شی دی

۴:۶۹ - ثمودیانو او عادیانو د ټکوونکي (قیامت) تکذیب کړی و

۵:۶۹ - نو هر چې ثمودیان وو، پس هغوی په سخت اواز سره هلاك کړی شول

۶:۶۹ - او هر چې عادیان وو، نو دوی په ډېر سخت اواز، له حده وتونکي باد سره هلاك کړی شول

۷:۶۹ - (الله) دغه (باد) په دوی باندې اوه شپې او اته ورځې متواتر (پرله پسې د دوی د هلاکت لپاره) مسخر کړی و، نو تا به دغه قوم په دغه (شپو ورځو، کورونو، باد) کې لویدلي مړه پراته لیدل، ګویاکې دوی د زړو کجورو تش ډېرونه دي

۸:۶۹ - نو ایا ته دوی لره څه باقي پاتې شوي وینې

۹:۶۹ - او فرعون او هغه چا چې له ده نه مخکې وو او چپه کړی شویو کلیو غټ جرم (شرك) وکړ

۱۰:۶۹ - نو دوی د خپل رب د رسول نافرماني وکړه، نو هغه دوی ونیول، ډېر سخت نیول

۱۱:۶۹ - بېشکه مونږ، کله چې اوبه له حده ووتې، (نو) مونږ تاسو په بېړۍ کې سواره کړئ

۱۲:۶۹ - د دې لپاره چې مونږ دغه (بېړۍ) تاسو لپاره پند وګرځوو او یاد ساتونکي غوږونه دغه (پند) یاد ولري

۱۳:۶۹ - نو کله چې په شپیلۍ کې پوکی وکړی شي۔، یو پوکی

۱۴:۶۹ - او ځمکه او غرونه پورته کړی شي، پس دغه دواړه ریزه ریزه کړی شي، یو ځلې ریزه کول

۱۵:٦٩ - نو په دغې ورځ کې به واقع کېدونکی (قیامت) واقع شي

۱٦:٦٩ - او اسمان به وچوي، نو دغه (اسمان) به په دغې ورځ کې سست وي

۱۷:٦٩ - او ملایك به د ده د څنډو له پاسه وي او په دغې ورځ کې به ستا د رب عرش اتو (ملایکو) د دوی له پاسه اوچت کړی وي

۱۸:٦٩ - په دغې ورځ کې به تاسو وړاندې کولی شئ، ستاسو له پټو (عملونو) نه به هېڅ (شی) پټ پاتې نشي

۱۹:٦٩ - نو هر چې هغه څوك دی چې هغه ته خپل کتاب (عمل نامه) د ده په ښي لاس کې ورکړی شوه، نو دی به وايي: چې واخلئ! زما عمل نامه ولولئ

۲۰:٦٩ - بېشکه ما دا یقین کاوه چې زه به خامخا له خپل حساب سره مېلاوېدونکی یم

۲۱:٦٩ - نو دغه (کس) به په خوشاله ژوند کې وي

۲۲:٦٩ - په اوچت جنت کې

۲۳:٦٩ - چې د هغه مېوې به نژدې وي

۲۴:٦٩ - تاسو ښه په مزې سره خورئ او څښئ، د هغو عملونو په بدل کې چې تاسو په تېرو شویو ورځو کې مخکې لېږلي وو

۲۵:٦٩ - او هر چې هغه کس دی چې ده ته خپل کتاب د ده په چپ لاس کې ورکړی شي، نو دی به وايي: ای کاشکې ما ته زما کتاب (عمل نامه) نه وی راکړی شوې

۲٦:٦٩ - او زه نه وی خبر شوی چې زما حساب څه دی

۲۷:٦٩ - ای کاشکې چې هغه (مرگ) فیصله کوونکی وی

۲۸:٦٩ - زما مال زما هېڅ په کار رانغی

۲۹:٦٩ - له ما نه زما بادشاهي برباده شوه

۳۰:٦٩ - (وبه ويل شي:) دی ونیسئ، پس دی په زلونو سره وتړئ

۳۱:٦٩ - بیا دی دوزخ ته داخل کړئ

۳۲:٦٩ - بیا په یو ځنځیر کې چې د هغه گزونه (اوږدوالی) اویا گزه وي، پس دی ننه باسئ

۳۳:٦٩ - بېشکه ده په ډېر لوی الله باندې ایمان نه راوړ

۳۴:٦٩ - او مسکین ته په طعام ورکولو یې ترغیب نه ورکاوه

۳۵:٦٩ - نو د ده لپاره دلته نن ورځ هېڅ دوست نشته

۳٦:٦۹ - او نه څه طعام، سوا له غِسلین (د دوزخیانو د زخمونو د وینې او زوې) نه

۳۷:٦۹ - چې دغه نه خوري مګر (دغه) خطاکاران

۳۸:٦۹ - نو زه قسم خورم په هغو شیانو چې تاسو یې وینئ

۳۹:٦۹ - او په هغو چې تاسو یې نه وینئ

۴۰:٦۹ - بېشکه دا (قرآن) یقینًا د ډېر عزتمن رسول خبره ده

۴۱:٦۹ - او دا د کوم شاعر خبره بېخي نه ده، تاسو ډېر لږ ایمان راوړئ

۴۲:٦۹ - او نه د کاهن (ترویتي) خبره ده، تاسو ډېر لږ پند اخلئ

۴۳:٦۹ - (دغه قرآن) د رب العلمین نازلول دي

۴۴:٦۹ - او که ده پر مونږ باندې له ځانه ځینې خبرې جوړې کړې وی

۴۵:٦۹ - (نو) مونږ به د ده ښی لاس نیولی وی

۴٦:٦۹ - بیا به مونږ خامخا د ده د زړه رګ پرې کړی وی

۴۷:٦۹ - نو په تاسو کې به هیڅوك له ده نه منع کوونکي نه وو

۴۸:٦۹ - او بېشکه دا (قرآن) د پرهېزګارانو لپاره پند (او نصیحت) دی

۴۹:٦۹ - او بېشکه مونږ خامخا پوهېږو چې یقینًا په تاسو کې تکذیب کوونکي دي

۵۰:٦۹ - او بېشکه دغه (قرآن) په کافرانو باندې د پښېمانۍ سبب دی

۵۱:٦۹ - او بېشکه دغه (قرآن) خامخا یقیني حق دی

۵۲:٦۹ - نو ته د خپل عظیم رب د نوم تسبیح وایه

## (مکي) اوچت - المعارج ۷۰

۱:۷۰ - یو غوښتونکي هغه عذاب وغوښت چې واقع کېدونکی دی

۲:۷۰ - په کافرانو باندې، دغه (عذاب) لره هیڅوك دفع کوونکی نشته

۳:۷۰ - د الله له جانبه دی، چې د اوچتو زینومالك دی

۴:۷۰ - چې د ده په طرف پورته ملایك او روح ورخېژي، په هغې ورځ کې چې د هغې مقدار پنځوس زره کاله دی

۵:۷۰ - نو ته صبر کوه، ډېر ښه صبر

۶:۷۰ - بېشکه دوی (منکران) دغه (عذاب، قیامت) ډېر لرې ویني

۷:۷۰ - او مونږه دی ډېر نژدې وینو

۸:۷۰ - په هغې ورځ چې اسمان به د ویلې کړی شوې قلعي په شان شي

۹:۷۰ - او غرونه به د رنګدارې وهل شوې وړی په شان شي

۱۰:۷۰ - او یو دوست به له بل دوست نه پوښتنه نه کوي

۱۱:۷۰ - حال دا چې دوی ته به هغوی ښودلی شي، مجرم (کافر) به ارزو کوي چې د دغې ورځې له عذابه خپل زامن په عوض کې ورکړي

۱۲:۷۰ - او خپله ښځه او خپل ورور

۱۳:۷۰ - او خپله هغه قبیله چې ده ته به یې ځای ورکاوه

۱۴:۷۰ - او هر هغه څوك چې په ځمکه کې دي ټول، بیا ده ته (دا کار) نجات ورکړي

۱۵:۷۰ - کله هم داسې نه ده، بېشکه دغه (د دوزخ اور) لمبې وهونکی دی

۱۶:۷۰ - چې (د سر، لاسونو او پښو) پوستکي وېستونکی دی

۱۷:۷۰ - دا (دوزخ) به راغواړي هغه څوك چې شا کړې یې وي او مخ یې اړولی وي

۱۸:۷۰ - او جمع (د مال) یې کړې وي، نو ساتلی یې وي

۱۹:۷۰ - بېشکه انسان بې صبره پیدا کړی شوی دی

۲۰:۷۰ - کله چې ده ته شر (مصیبت) ورسېږي (نو) ډېر فریاد کوونکی وي

۲۱:۷۰ - او کله چې ده ته خیر (او خوشحالي) ورسېږي (نو)، ډېر منع کوونکی (او بخل کوونکی) وي

۲۲:۷۰ - (خو) له لمونځ ګزارو نه غیر

۲۳:۷۰ - هغه کسان چې دوی په خپلو لمونځونو باندې همېشه والی کوونکي وي

۲۴:۷۰ - او هغه کسان چې د دوی په مالونو کې معلومه برخه (مقرر) ده

۲۵:۷۰ - د سوالګر او محروم لپاره

۲۶:۷۰ - او هغه کسان چې د بدلې د ورځې تصدیق (او باور) کوي

۲۷:۷۰ - او هغه کسان چې دوی د خپل رب له عذاب نه وېرېدونکي دي

۲۸:۷۰ - بېشکه د دوی د رب عذاب داسې دی چې بې وېرې کېدل ترې نشته

۲۹:۷۰ - او هغه کسان چې هغوی د خپل شرمې ځایونو حفاظت کوونکي دي

۳۰:۷۰ - مګر له خپلو ښځو او خپلو وینځو نه، نو بېشکه دوی ملامت کړی شوي نه دي

۳۱:۷۰ - نو هغه څوك چې له دغو نه علاوه غواړي، نو همې دغه کسان له حده تېرېدونکي دي

۳۲:۷۰ - او هغه کسان چې دوی د خپلو امانتونو او خپلو وعدو لحاظ ساتونکي دي

۳۳:۷۰ - او هغه کسان چې دوی په خپلو شهادتونو (ګواهیو) باندې قایمې (او ولاړ) دي

۳۴:۷۰ - او هغه کسان چې دوی په خپلو لمونځونو همېشه والی (او پابندي) کوي

۳۵:۷۰ - دغه کسان به په باغونو کې وي، عزتمن کړی شوي به وي

۳٦:۷۰ - نو (ای نبي!) په دغو کافران شویو کسانو څه شوي دي چې ستا په طرف منډې راوهونکي دي

۳۷:۷۰ - له ښي اړخ نه او له چپ اړخ نه ډلې ډلې

۳۸:۷۰ - ایا په دوی کې هر یو سړی دا طمع لري چې دی به د نعمتونو جنت ته ننه اېستل شي؟

۳۹:۷۰ - هیڅکله نه! بېشکه همدا مونږ دوی له هغه څه نه پیدا کړي دي چې دوی یې پېژني

۴۰:۷۰ - نو زه د مشرقونو او مغربونو په رب قسمې خورمې چې بېشکه (او) یقینًا مونږ قادر یو

۴۱:۷۰ - په دې باندې چې مونږ له دوی نه غوره (مخلوق) په بدل کې راولو اومونږ عاجز کړی شوي نه یو

۴۲:۷۰ - نو ته دوی پرېږده چې په باطلو او عبثو خبرو کې مشغولېږي او لوبې کوي۔ تر هغه پورې چې دوی له خپلې هغې ورځې سره ملاقات وکړي چې دوی ته یې وعده ورکړی شوې ده

۴۳:۷۰ - هغه ورځ چې دوی به له قبرونو نه داسې په منډه (او تېزی) سره راوځي ګویاکې دوی هدف ته په منډه ځغلي

۴۴:۷۰ - په داسې حال کې چې د دوی سترګې به خوارې وي۔، دوی به ذلت (راګېر) او پټ کړي وي، دا هغه ورځ ده چې دوی ته به د دې وعده ورکول کېده

## (مکي) نوح - نوح ۷۱

۱:۷۱ - بېشکه مونږ نوح خپل قومې ته په دې سره لېږلی و چې ته خپل قومېووېروه، مخکې له دې چې په دوی دېر دردوونکی عذاب راشي

۲:۷۱ - (نو) ده وویل: ای زما قومه! بېشکه زه ستاسو لپاره ښکاره وېروونکی یمې

۳:۷۱ - چې تاسو د الله عبادت کوئ او له ده نه ووېرېږئ او زما اطاعت وکړئ

۴:۷۱ - دی به تاسو ته ستاسو ځینې ګناهونه وبخښي او ترټاکلې نېټې پورې به تاسو وروسته (او باقي پاتې) کړي، بېشکه د الله نېټه چې کله راشي (نو) وروسته کېدی نشي، که چېرې تاسو پوهېږئ

۵:۷۱ - ده وویل: ای زما ربه! بېشکه ما شپه او ورځ خپل قوم (توحید ته) راوباله

٦:۷۱ - نو دوی ته زما بلنې زیاته نه کړه مګر تېښته

۷:۷۱ - او بېشکه زه چې هر واري دوی د دې لپاره راوبلم چې ته دوی وبخښې (نو) دوی خپلې ګوتې په خپلو غوږونو کې ننباسي او په خپلو جامو سره ځان (مخ) پټ کړي او په کفر باندې اصرار (او همېشه والی) کوي او لویي کوي ډېر غټه لویي

۸:۷۱ - بیا یقینًا ما دوی ښه په جار (په اوچت اواز سره) راوبلل

۹:۷۱ - بیا یقینًا ما دوی ته څرګند (او ښکاره) دعوت ورکړ او ما دوی ته په پټه هم دعوت ورکړ، ښه په پټه

۱۰:۷۱ - نو ما (دوی ته) وویل: تاسو له خپل رب نه بخښنه وغواړئ بېشکه دی ډېر بخښونکی دی

۱۱:۷۱ - دی به په تاسو ښه ورېدونکی باران راخوشې کړي

۱۲:۷۱ - او تاسو ته به مالونه او زامن درزیات کړي، او تاسو ته به باغونه پیدا کړي او تاسو ته به ولې پیدا کړي

۱۳:۷۱ - په تاسو څه شوي دي چې د الله لپاره د لویي عقیده نه ساتئ؟

۱۴:۷۱ - حال دا چې ده تاسو قسما قسم پیدا کړي یئ

۱۵:۷۱ - ایا تاسو نه دي کتلي چې الله اوه اسمانونه لاندې باندې پیدا کړي

۱٦:۷۱ - او په دغو کې یې سپوږمۍ روښانه جوړه کړه او لمر یې بَله (ځلېدونکې) ډیوه جوړه کړه

۱۷:۷۱ - او الله تاسو په خاصو زرغونولو سره له ځمکې نه رازرغون کړئ

۱۸:۷۱ - بیا به دی تاسو په دې کې ننباسي او راوبه موباسي په خاصو را اېستلو سره

۱۹:۷۱ - او الله تاسو لپاره ځمکه فرش جوړه کړې ده

۲۰:۷۱ - د دې لپاره چې تاسو د دې په ارتو لویو لارو باندې لاړ شئ

۲۱:۷۱ - نوح وویل: ای زما ربه! بېشکه دوی زما نافرماني وکړه، او دوی د هغه چا پیروي وکړه چې دغه (کس) ته د ده مال او د ده اولاد زیاته نه کړه مګر زیانکاري (او تاوان)

۲۲:۷۱ - او دغو خلقو ډېر لوی مکر وچلاوه

۲۳:۷۱ - او ویې ویل (خپلو خلقو ته): تاسو خپل معبودان مه پرېږدئ او تاسو مه پرېږدئ (عبادت د) وَد، او نه (د) سُواع او نه (د) یغوث او یعوق اونسر

۲۴:۷۱ - او یقینًا دغو (خلقو) ډېر کسان گمراه کړي دي او ته ظالمانو ته مه زیاتوه مگر گمراهي

۲۵:۷۱ - دوی د خپلو گناهونو په سبب غرق (ډوب) کړِی شول، نو اور ته داخل کړی شول، نو دوی د خپلو ځانونو لپاره له الله نه غیر هېڅ مدد کوونکي ونه موندل

۲۶:۷۱ - او نوح وویل: ای زما ربه! ته د ځمکې له پاسه (د ځمکې په سر) په کافرانو کې هېڅ یو گرځېدونکی مه پرېږده

۲۷:۷۱ - یقینًا ته که دوی پرېږدې، نو دوی به ستا بنده گان گمراه کړي او دوی نه زېږوي مگر فاجر (بدکاره)، ډېر ناشکره

۲۸:۷۱ - ای زما ربه! ته ما وبخښه او زما مور او پلار او هغه څوك (هم) چې زما کور ته داخل شي، چې ایمان لرونکی وي اوه مومن سړي او مومنې ښځې (وبخښه) او ظالمانو ته مه زیاتوه مگر هلاکت

# (مکي) پېرى - الجن ۷۲

۱:۷۲ - ته (دوی ته) ووایه چې ما ته وحي شوې ده چې بېشکه شان دا دی چې په پېریانو کې یو ټولي (ډلې) (زما قراءت) په غور سره واورېده، (نو کله چې خپل قوم ته لاړل)، نو دوی وویل: بېشکه مونږ یو عجیبه قرآن واورېده

۲:۷۲ - چې نېغې لارې ته هدایت کوي، نو مونږ په ده ایمان راوړ، او مونږ به هیڅکله له خپل رب سره هیڅوك شریك نه کړو

۳:۷۲ - او بېشکه شان دا دی چې زمونږ د رب شان ډېر اوچت دی، ده نه ښځه نیولې ده او نه اولاد

۴:۷۲ - او بېشکه شان دا دی چې زمونږ ناپوهو (بېوقوفو) په الله باندې زیاتي (او بې حقیقته) خبرې ارولې

۵:۷۲ - او یقینًا مونږ دا خیال کاوه چې په الله باندې به انسانان او پېریان هیڅکله دروغ ونه وایي

۶:۷۲ - او بېشکه شان دا دی چې په انسانانو کې ډېر داسې سړي وو چې په پېریانو کې په ځینو سړیو پورې به یې پناه نیوله، نو دغو خلقو دغو (پېریانو) ته سرکشي ورزیاته کړه

۷:۷۲ - او دا چې یقینًا دوی گمان کړی و لکه چې تاسو گمان کړی دی چې الله به هرگز هیڅوك

بيا ژوندي راپورته نه کړي

۸:۷۲ - او دا چې بېشکه مونږ اسمان ته ورسېدو، نو مونږ هغه وموندە چې په ډېرو سختو څوکیدارانو او سوځوونکو شغلو (ستوریو) سره ډك کړی شوی دی

۹:۷۲ - او دا چې بېشکه مونږ به د اورېدلو لپاره له دې (اسمان) نه د کېناستو په ځایونو کې کېناستو، نو هغه څوك چې اوس غواړي چې واوري (نو) دی به د ځان لپاره د اور لمبه منتظره ومومي

۱۰:۷۲ - او دا چې یقینًا مونږ نه پوهېږو چې له هغه چا سره د شر (او بدی) اراده شوې ده چې په ځمکه کې دي، یا له دوی سره د دوی رب د لاربښوونې (او خیر) اراده کړې ده

۱۱:۷۲ - او دا چې بېشکه پر مونږ کې ځینې نېکان (او صالحه خلق) دي او پر مونږ کې له دغو نه لاندې هم شته.، مونږ په مختلفو لارو روان يو

۱۲:۷۲ - او دا چې بېشکه مونږ یقین وکړ چې مونږ به په ځمکه کې الله له سره عاجز نه کړی شو او مونږ به دی له سره په تېښتې سره عاجز نه کړی شو

۱۳:۷۲ - او دا چې بېشکه مونږ چې کله هدایت واورېده (، نو) مونږ په ده ایمان راوړ، نو هغه څوك چې په خپل رب ایمان راوړي، نو دی به نه له نقصان نه وېرېږي او نه (د چا) له ظلم نه

۱۴:۷۲ - او دا چې بېشکه په مونږ کې ځینې مسلمانان دي او ځینې په مونږ کې ظالمان دي، نو هغه چې اسلام راوړي، نو دغو خلقو د نېغې لارې قصد (او طلب) وکړ

۱۵:۷۲ - او هر چې ظالمان دي، نو دوی به د جهنم لرگي (خشاك) وي

۱۶:۷۲ - او (بله وحي ما ته دا راغلې ده چې) که دوی په نېغې لارې باندې سم ودرېږي (نو) مونږ به په دوی ډېرې اوبه وڅښوو

۱۷:۷۲ - د دې لپاره چې مونږ دوی په دغه (نعمت) کې وازمایو او هغه څوك چې د خپل رب له ذکر (قرآن) نه مخ واړوي، نو هغه (رب) به دی سخت عذاب ته داخل کړي

۱۸:۷۲ - او دا چې یقینًا جوماتونه خاص د الله لپاره دي، نو تاسو له الله سره بل هیڅوك مه بلئ

۱۹:۷۲ - او دا چې یقینًا شان دا دی چې کله د الله بنده (محمدﷺ لمانځه ته) ودرېده، چې دغه (الله) یې باله، (نو) دوی نژدې وو چې په ده باندې په یو بل پسې ورپرېوتونکي شي

۲۰:۷۲ - ته (دوی ته) ووایه: یقینًا زه خو یواځې خپل رب بولم او زه به له ده سره هیڅوك شریك نه کړم

۲۱:۷۲ - ته (دوی ته) ووایه: بېشکه زه تاسو لپاره نه د هېڅ ضرر مالك (او اختیار من) یم او نه د خیر رسولو

۲۲:۷۲ - ته (دوی ته) ووایه: بېشکه زه چې یم هیڅوك به ما له الله نه له سره خلاص نه کړی شي او زه به له ده نه غیر هېڅ پناه ځای ونه مومم

۲۳:۷۲ - مگر د الله له جانبه د تبلیغ او د هغه د پېغام رسولو (اختیارمن یم) او هغه څوك چې د الله او د هغه د رسول نافرماني وکړي، نو بېشکه د ده لپاره د جهنم اور دی، چې دوی به په هغه کې تل ترتله وي

۲۴:۷۲ - تر هغه پورې چې کله دوی هغه څه ووینې چې له دوی سره یې وعده کولی شي، نو دوی به ژر پوه شي چې د مددگار په لحاظ څوك ډېر کمزوری دی او د شمېر په لحاظ څوك ډېر کم دی

۲۵:۷۲ - ته (دوی ته) ووایه: زه نه پوهېږم چې ایا هغه (عذاب) نژدې دی چې تاسو سره یې وعده کولی شي، یا به د ده لپاره زما رب لرې زمانه مقرره کړي

۲٦:۷۲ - دی عالم الغیب (په غیبو عالم) دی، نو دی په خپلو غیبو باندې هیڅوك نه خبروي

۲۷:۷۲ - مگر هغه چې کوم رسول یې خوښ شي، نو بېشکه دغه (الله) د ده په مخ کې او د ده شا ته ساتونکي (څوکیداران) روانوي

۲۸:۷۲ - د دې لپاره چې دی په دې پوه شي چې دوی د خپل رب پېغامونه رسولي دي. او ده په هغه څه احاطه کړې ده چې له دوی سره دی او ده هر شی ښه په شمېر سره ساتلی دی

## (مکي) څادر - المزمل ۷۳

۱:۷۳ - ای په ځان پورې جامه راتاوونکیه!

۲:۷۳ - په شپه کې لمانځه ته ودرېږه مگر لږه حصه (نه)

۳:۷۳ - چې هغه د دغې (شپې) نیمه (ده)، یا ته له دغې (نیمې) نه لږ څه کم شه

۴:۷۳ - یا ته په دغې (نیمې) باندې څه اضافه وکړه او قرآن ښه ښکاره واضح لوله، واضح لوستل

۵:۷۳ - بېشکه مونږ به خامخا په تا باندې ډېر دروند قول نازلوو

٦:۷۳ - بېشکه د شپې پورته کېدل، دغه (پاڅېدل) د (نفس) د پایمال کولو په لحاظ ډېر سخت دي او د (قرآن د) ویلو په لحاظ ډېر سمووونکي دي

۷:۷۳ - بېشکه تا لره په ورځ کې ډېره اوږده مشغولتیا (مصروفیت) وي

۸:۷۳ - او ته د خپل رب نوم یادوه او ده ته (له هر څه نه) جدا شه، پوره جدا کېدل

۹:۷۳ - (دغه الله) د مشرق او مغرب رب دی.، نشته هېڅ لایق د عبادت مگر هم دی دی، نو ته

دی (خپل) کار ساز ونیسه

۱۰:۷۳ - او ته په هغو خبرو صبر کوه چې دوی يې وايي او ته دوی پرېږده. ډېر ښه پرېښودل

۱۱:۷۳ - او پرېږده ما او دروغ ګڼونکي چې د نعمت والا دي او دوی ته لږ مهلت ورکړه

۱۲:۷۳ - بېشکه زمونږ سره درانه ځنځیرونه (زولنې) او سوځوونکی اور دی

۱۳:۷۳ - او داسې طعام دی چې په مرۍ کې نښتونکی دی او ډېر دردوونکی عذاب دی

۱۴:۷۳ - په هغې ورځ کې چې ځمکه او غرونه به خوځېږي او غرونه به د شګو رواني ډېرۍ شي

۱۵:۷۳ - بېشکه مونږ تاسو ته رسول درلېږلی دی، چې په تاسو (د قیامت په ورځ) شاهد دی، لکه ځنګه چې مونږ فرعون ته رسول لېږلی و

۱۶:۷۳ - نو فرعون د دغه رسول نافرماني وکړه، نو مونږ دغه (فرعون) ونیولو په سختو نیولو سره

۱۷:۷۳ - که تاسو کافر شئ، نو تاسو به ځان له هغې ورځې نه څنګه وساتئ چې (واړه) هلکان به سپین ږیري (بوډاګان) وګرځوي

۱۸:۷۳ - اسمان په دغې (ورځ) کې چاودېدونکی دی.، د دغه (الله) وعده کېدونکې ده

۱۹:۷۳ - بېشکه دا (ایتونه) نصیحت (او پند) دی، نو هغه څوك چې غواړي چې خپل رب ته تلونکې لاره غوره کړي، (نو غوره دې کړي)

۲۰:۷۳ - بېشکه ستا رب یقینًا په دې پوهېږي چې ته د شپې (په درې برخو کې) له دوو نه لږ کم (لمانځه ته) پاڅېږې او (کله) د دې نیمه برخه او (کله) دریمه برخه (هم) او له هغو کسانو نه یوه ډله هم چې له تا سره دي. او الله شپه او ورځ مقدار (او اندازه) کوي.، دی په دې پوه دی چې بېشکه حقیقت دا دی چې تاسو به هرګز د دې طاقت ونه لرئ.، نو ده پر تاسو باندې رجوع وکړه، نو تاسو له قرآنه هومره لولئ چې اسان وي. دی په دې پوه دی چې یقینًا شان دا دی چې په تاسو کې به مریضان وي او نور به په ځمکه کې سفر کوي، چې د الله فضل به لټوي او نور به د الله په لاره کې جنګ کوي، نو تاسو له دغه (قرآنه) هومره لولئ چې (درته) اسان وي او لمونځ قایموئ او زکاۃت ادا کوئ او الله ته قرض ورکوئ، ډېر ښکلی قرض. او هر هغه څه چې تاسو يې د خپلو ځانونو لپاره له څه خیره مخکې لېږئ (نو) هغه به تاسو له الله سره وموموئ. دغه ډېر غوره او د اجر په لحاظ ډېر لوی دي او تاسو له الله نه بخښنه وغواړئ، بېشکه الله ډېر بخښونکی، بې حده رحم کوونکی دی

# (مکي) پېچلی - المدثر ۷۴

۱:۷۴ - ای په جامه کې نغښتونکیه!

۲:۷۴ - ته پورته شه، نو (خلق) ووېروه

۳:۷۴ - او نو د خپل رب لويي بيانوه

۴:۷۴ - او نو خپلې جامې پاکې ساته

۵:۷۴ - او گناه (او بتان) نو ترك کړه

٦:۷۴ - او (داسې) احسان مه کوه چې بدل (او ډېرول) يې غواړې

۷:۷۴ - او خاص د خپل رب لپاره، پس صبر کوه

۸:۷۴ - نو کله چې په شپېلۍ کې پوکی وکړی شي

۹:۷۴ - نو په دغه وخت کې دغه ډېره سخته ورځ ده

۱۰:۷۴ - په کافرانو باندې اسانه نه ده

۱۱:۷۴ - ته پرېږده ما او هغه څوك چې ما دی يواځې پيدا کړی دی

۱۲:۷۴ - او (بيا مې) ده ته ډېر زيات مال ورکړ

۱۳:۷۴ - او زامن حاضر (باشه)

۱۴:۷۴ - او ده ته مې فراخي ورکړه، ډېره فراخي

۱۵:۷۴ - بيا دی طمع لري چې زه به ده ته لا زيات ورکړم

۱٦:۷۴ - هيڅکله هم نه، بېشکه دی زمونږ له ايتونو سره ډېر عناد کوونکی (مخالف) و

۱۷:۷۴ - ژر به زه ده ته ډېر سخت تکليف ورکړم

۱۸:۷۴ - بېشکه ده فکر وکړ او اندازه يې وکړه

۱۹:۷۴ - پس دی دې هلاك کړی شي، ده څنگه اندازه وکړه؟

۲۰:۷۴ - بيا دې هلاك کړی شي، ده څنگه اندازه وکړه

۲۱:۷۴ - بيا يې وکتل

۲۲:۷۴ - بيا يې مخ تريو کړ او وچولی (تندی) يې بوټ کړ

۲۳:۷۴ - بيا يې شا کړه او لويي يې وکړه

۲۴:۷۴ - نو ده ووېل: نه دی دا (قرآن) مګر داسې جادو چې رانقل کولی شي

۲۵:۷۴ - نه دی دا مګر د انسان قول

۲۶:۷۴ - ژر به زه دی د دوزخ اور ته داخل کړم.

۲۷:۷۴ - او ته څه شي پوه کړې چې سقر (د دوزخ اور) څه شی دی

۲۸:۷۴ - دی به نه باقي ساتي او نه به پرېږدي

۲۹:۷۴ - انسان لره ډېر سوځوونکی دی

۳۰:۷۴ - په ده باندې نولس (ملايك) مقرر دي

۳۱:۷۴ - او مونږ د دوزخ څوکيداران نه دي ګرځولي مګر ملايك او مونږ د دوی شمېر نه دی ګرځولی مګر ازمېښت د هغو کسانو لپاره چې کافران شوي دي، د دې لپاره چې هغه کسان يقين وکړي چې کتاب ورته ورکړی شوی دی او د هغو کسانو ايمان زيات شي چې ايمان يې راوړی دی او شك ونه کړي هغه کسان چې کتاب ورته ورکړی شوی دی او مومنان. او د دې لپاره چې هغه کسان ووايي چې د هغوی په زړونو کې مرض دی او کافران: الله په دې سره د مثال په لحاظ څه اراده کړې ده.. همداسې الله ګمراه کوي چا ته چې وغواړي او هدايت ورکوي چا ته چې وغواړي. او ستا د رب لښکرې نه پېژني مګر هم دی. او نه دی دا مګر د خلقو لپاره نصيحت (او پند)

۳۲:۷۴ - هيڅکله داسې نه ده، قسم دی په سپوږمۍ

۳۳:۷۴ - او په شپې باندې کله چې شا کړي

۳۴:۷۴ - او په سبا باندې کله چې روښانه شي

۳۵:۷۴ - بېشکه دغه (اور د سقر) يقينًا په لويو (بلاګانو) کې يو دی

۳۶:۷۴ - چې انسان لره وېروونکی دی

۳۷:۷۴ - هغه چا لره چې په تاسو کې غواړي چې وړاندې شي، يا وروسته شي

۳۸:۷۴ - هر نفس به د خپلو کړو په بدل کې ګاڼه (ګرو) وي

۳۹:۷۴ - غير له ښي اړخ والاو نه

۴۰:۷۴ - (دوی به) په جنتونو کې وي، يو تر بله به پوښتنې کوي

۴۱:۷۴ - د مجرمانو (کافرانو) په باره کې

۴۲:۷۴ - (مومنان به مجرمانو ته وايي:) تاسو په دوزخ کې څه شي داخل کړي يئ؟

۴۳:۷۴ - دوی به ووايي: مونږ له لمونځ کوونکو څنې نه وو

۴۴:۷۴ - او مسکين ته به مو طعام نه ورکاوه

۴۵:۷۴ - او له باطل ويونکو سره به مونږ په باطلو خبرو کې ننوتلو

۴۶:۷۴ - او مونږ به د بدلې ورځ دروغ ګڼله

۴۷:۷۴ - تر دې پورې چې مونږ ته يقين راغی

۴۸:۷۴ - نو دوی ته د سفارش کوونکو سفارش فايده نه رسوي

۴۹:۷۴ - نو په دوی څه شوي دي چې له نصيحت (قرآن) نه مخ ګرځوونکي دي

۵۰:۷۴ - ګويا کې دوی تښتېدونکي ځنګلي خره دي

۵۱:۷۴ - چې له زمري نه تښتي

۵۲:۷۴ - بلکې په دوی کې هر يو سړی غواړي چې ده ته خورې کړی شوې صحيفې (پاڼې) ورکړی شي

۵۳:۷۴ - هيڅکله داسې نه ده. بلکې دوی له اخرت نه نه وېرېږي

۵۴:۷۴ - هيڅکله داسې نه ده.، بېشکه دا (قرآن) نصيحت دی

۵۵:۷۴ - نو څوك چې غواړي (نو) له ده نه دې پند واخلي

۵۶:۷۴ - او دوی نصيحت (او پند) نه اخلي مګر که الله يې وغواړي. هم دی د وېرې لايق دی او د بخښنې اهل دی

## (مکي) د حشر ورځ - القيامة ۷۵

۱:۷۵ - زه د قيامت په ورځې باندې قسم خورم

۲:۷۵ - او زه په ډېر ملامت کوونکي نفس باندې قسم خورم

۳:۷۵ - ايا (کافر) انسان دا ګمان کوي چې مونږ به د ده هډوکي له سره راجمع نه کړو

۴:۷۵ - ولې نه! (جمع به يې کړو)، په داسې حال کې چې مونږ په دې قادر يو چې د ده (هډوکي او د ګوتو بندونه (هم) برابر کړو

۵:۷۵ - بلکې (کافر) انسان اراده لري چې په خپله مخه (راتلونکې زمانه) کې هم نافرماني وکړي

۶:۷۵ - دی تپوس کوي چې د قيامت ورځ به کله وي؟

۷:۷۵ - نو کله چې سترګې خړې (سپينې) شي

۸:۷۵ - او سپوږمۍ توره (بې رڼا) شي

۹:۷۵ - او لمر او سپوږمۍ سره جمع کړی شي

۱۰:۷۵ - نو (کافر) انسان به په دغه وخت کې وايي: د تېښتې ځای چېرته دی؟

۱۱:۷۵ - هيڅکله داسې نه ده، هېڅ پناه ځای نشته

۱۲:۷۵ - په دغې ورځ کې ځای د قرار ستا د رب په طرف دی

۱۳:۷۵ - په دغې ورځ کې به انسان په هغه څه خبر کړی شي چې ده مخکې لېږلي دي او وروسته يې پرېښي دي

۱۴:۷۵ - بلکې انسان په خپل ځان باندې ښه دليل دی

۱۵:۷۵ - اگر که دی خپل عذرونه وړاندې کړي

۱۶:۷۵ - (ای نبي!) ته خپله ژبه په دې (قرآن) سره مه خوځوه، د دې لپاره چې ته دا په تُندۍ سره حاصل کړې

۱۷:۷۵ - بېشکه پر مونږ باندې د ده جمع کول او د ده لوستل دي

۱۸:۷۵ - نو کله چې مونږ دی ولولو، نو ته د ده د لوستلو پيروي کوه

۱۹:۷۵ - بيا يقينًا زمونږ په ذمه د ده بيانول دي

۲۰:۷۵ - هيڅکله داسې نه ده. بلکې تاسو تادي کوونکې (زر تېرېدونکې فاني کېدونکې دنيا) خوښوئ

۲۱:۷۵ - او تاسو اخرت پرېږدئ

۲۲:۷۵ - په دغې ورځ کې به څه مخونه تازه روښانه وي

۲۳:۷۵ - خپل رب ته به کتونکي وي

۲۴:۷۵ - او په دغې ورځ کې به څه مخونه سخت تريو (او سپېره) وي

۲۵:۷۵ - يقين به کوي چې له دوی سره به مَلا ماتوونکی عمل وشي

۲۶:۷۵ - داسې نه ده. کله چې ساه د ستوني هډوکي ته ورسېږي

۲۷:۷۵ - او وبه ويل شي: څوك دی دم کوونکی؟

۲۸:۷۵ - او دی به يقين وکړي چې بېشکه دغه (وخت د) بېلتون دی

۲۹:۷۵ - او يوه پنډۍ به له بلې پنډۍ تاوېږي

۳۰:۷۵ - ستا د رب په لوري به دغې ورځ کې ورتله دي

۳۱:۷۵ - پس ده نه تصديق وکړ او نه يې لمونځ وکړ

۳۲:۷۵ - او لېکن دروغ يې وګڼه (قرآن) او مخ يې وګرځاوه

۳۳:۷۵ - بيا خپل اهل ته لاړ، په داسې حال کې چې تکبر يې کاوه

۳۴:۷۵ - تا ته دي هلاکت (او افسوس) وي، پس هلاکت دې وي

۳۵:۷۵ - بيا دي تا لپاره هلاکت وي، نو هلاکت دې وي

۳٦:۷۵ - ايا (کافر) انسان ګمان کوي چې دی به مهمل (او بې کاره) پرېښودل شي

۳۷:۷۵ - ايا دغه (انسان) د هغې منی يو څاڅکی نه و چې تويولی شي

۳۸:۷۵ - بيا دی د وينې يوه ټوټه وه، نو دغه (الله دی) پيدا کړ، پس برابر يې کړ

۳۹:۷۵ - نو له دغې (منی) نه يې دوه قسمه پيدا کړل (يعنې) سړی او ښځه

۴۰:۷۵ - ايا دغه (الله) په دې قادر نه دی چې مړي راژوندي کړي؟

## (مکي) سړی - الإنسان ۷٦

۱:۷٦ - يقيناً په انسان باندې داسې وخت هم راغلی دی چې دی څه داسې د يادولو (وړ) شی نه و

۲:۷٦ - بېشکه مونږ انسان له ګډې وډې شوې نطفې نه پيدا کړی دی، چې مونږ به دی ازمايو، نو دی مونږ اورېدونکی (او) ليدونکی وګرځاوه

۳:۷٦ - بېشکه مونږ ده ته د نېغې لارې ښوونه کړې ده، يا به دی شکر کوونکی وي او يا به ډېر ناشکره وي

۴:۷٦ - بېشکه مونږ د کافرانو لپاره ځنځيرونه او طوقونه (زلونې) او لمبې وهونکی اور تيار کړی دی

۵:۷٦ - بېشکه نېکان خلق به د شرابو له داسې جامونو نه څښاك کوي چې د هغو ګډونی (امېزش) به کافور وي

٦:۷٦ - چې چينه ده، د الله بنده ګان به له هغې نه څښي.، دوی به هغه بهوي (چېرته چې وغواړي) ښه بهول

۷:۷٦ - دوی نذرونه پوره کوي او له هغې ورځې نه وېرېږي چې د هغې شر ښه ښکاره دی

۸:۷٦ - او دوی د هغه (الله) په مينه کې مسکين او يتيم او بندي ته طعام ورکوي

۹:۷٦ - (دوی وايي:) بېشکه همدا خبره ده چې مونږ تاسو ته د الله له مخه طعام درکوو.، مونږ له تاسو نه څه بدله او شکر نه غواړو

۱۰:۷٦ - بېشکه مونږ له خپل رب نه د تريو مخې ډېرې سختې ورځې (له عذاب) نه وېرېږو

۱۱:۷٦ - نو الله به دوی د دغې ورځې له شر نه بچ وساتي او دوی ته به تازګي او خوشالي ورسوي

۱۲:۷٦ - او دوی ته به د خپل صبر په سبب جنت او ورېښم په بدل کې ورکړي

۱۳:۷٦ - په داسې حال کې چې په تختونو باندې به تکيه وهونکي وي.، دوی به په هغه (جنت) کې نه لمرويني او نه ساړه (يخني)

۱۴:۷٦ - په داسې حال کې چې په دوی باندې به د دغه (جنت د ونو) سيوری نژدې وي او د هغه د مېوو شوکول به مُسخَّر (راټيټ) کړی شوي وي، مُسخرکېدل

۱۵:۷٦ - او په دوی باندې به لوښي د سپينو زرو او ګلاسونه ګرځولی شي چې د شيشو به وي

۱٦:۷٦ - د سپينو زرو شيشې چې دوی به دغه (لوښي) اندازه کړي وي، اندازه کول

۱۷:۷٦ - او په دغه (جنت) کې به په دوی د شرابو داسې جامونه ورڅښول کېږي چې ګډونی به يې زنجبيل وي

۱۸:۷٦ - چې چينه ده په دغه (جنت) کې چې نوم يې سلسبيل اېښودل شوی دی

۱۹:۷٦ - او په دوی باندې به (د خدمت لپاره) همېشني هلکان ګرځي.، کله چې ته دوی ووينې. (نو) ته به دوی خورې کړی شوې ملغلرې ګڼې

۲۰:۷٦ - او کله چې ته وګورې (نو) په دغه ځای کې به نعمتونه او ډېره لويه بادشاهي ووينې

۲۱:۷٦ - د دوی په تن باندې به د نري ورېښمو جامې وي چې شنې به وي او د پېړو ورېښمو (جامې به هم وي) او دوی ته به د سپينو زرو باهوګان واچولی شي. او خپل رب به په دوی ډېر پاکيزه شراب وڅښي

۲۲:۷٦ - بېشکه دا (نعمت) تاسو لپاره بدله ده. او ستاسو سعي (کوشش) قبول کړی شوی دی

۲۳:۷٦ - بېشکه همدا مونږ پر تاسو باندې قرآن نازل کړی دی، ښه نازلول

۲۴:۷٦ - نو ته د خپل رب حکم ته صبر کوه او په دوی کې د هېڅ ګناهګار او سخت ناشکره خبره مه منه

۲۵:۷٦ - او په سبا او بېګاه کې ته د خپل رب نوم يادوه

۲٦:۷٦ - او د شپې په څه حصه کې.، نو ته هغه ته سجده کوه او د هغه تسبيح وايه په اوږده شپه کې

۲۷:۷٦ - بېشکه دغه خلق تادي کوونکې (زر تېرېدونکي دنيا) خوښوي او له خپل ځان وروسته درنه ورځ پرېږدي

۲۸:۷٦ - مونږ دوی پيدا کړي دي او مونږ د دوی بندونه مضبوط کړي دي. او کله چې مونږ وغواړو د دوی مثالونه به په بدل کې راولو، په بدل کې راوستل

۲۹:۷٦ - بېشکه دا (قرآن) نصيحت دی، نو هغه څوك چې غواړي چې خپل رب طرف ته لار ونيسي (نو ودې نيسي)

۳۰:۷٦ - او تاسو اراده نشئ کولی مگر دا چې الله وغواړي.، بېشکه الله ښه عالم، ښه حکمت والا دی

۳۱:۷٦ - چا ته چې وغواړي په خپل رحمت کې يې داخلوي او ظالمان (کافران) چې دي هغهٔ، د دوی لپاره ډېر دردوونکی عذاب تيار کړی دی

## (مکي) استول شوي - المرسلات ۷۷

۱:۷۷ - قسم دی په هغو بادونو چې پرله پسې لېږل شوي دي!

۲:۷۷ - بيا په هغو سختو تېزو چلېدونکو بادونو باندې، تېز تلل

۳:۷۷ - او په خورونکو بادونو باندې، خورول

۴:۷۷ - بيا په هغو بادونو چې جدا والی راولي، جدا کول

۵:۷۷ - بيا په هغو بادونو باندې چې د ذکر اچونکي دي

٦:۷۷ - د عذر لپاره او وېرولو لپاره

۷:۷۷ - بېشکه چې له تاسو سره څه وعده کولی شي يقيناً (هغه) واقع کېدونکې ده

۸:۷۷ - نو کله چې ستوري بې رڼا کړی شي

۹:۷۷ - او کله چې اسمان څيرې کړی شي

۱۰:۷۷ - او کله چې غرونه والوزول شي

۱۱:۷۷ - او کله چې رسولانو ته وخت وټاکل شي

۱۲:۷۷ - د کومې ورځې لپاره دغه (څيزونه) وروسته کړی شوي دي؟

۱۳:۷۷ - د فيصلې د ورځې لپاره

۱۴:۷۷ - او ته څه شي پوه کړې چې د فيصلې ورځ کله ده

۱۵:۷۷ - د دروغ ګڼونکو لپاره په دغې ورځ کې هلاکت دی

۱٦:۷۷ - ايا مونږ ړومبني (مجرمان) نه دي هلاك كړي

۱۷:۷۷ - بيا مونږ په دوی پسې وروستني خلق ورلېږو

۱۸:۷۷ - همداسې كار مونږ له مجرمانو (كافرانو) سره كوو

۱۹:۷۷ - په دغې ورځې کې د تکذيب کوونکو (دروغ ګڼونکو) لپاره هلاکت دی

۲۰:۷۷ - ايا مونږ تاسو له سپکو اوبو نه يئ پيدا کړي

۲۱:۷۷ - پس مونږ دغه (اوبه) په مضبوط ځای کې کېښودلې

۲۲:۷۷ - تر مقررې نېټې (اندازې) پورې

۲۳:۷۷ - نو مونږ قادر يو، پس (مونږ) ښه قدرت لرونکي يو

۲۴:۷۷ - په دغې ورځې کې د دروغ ګڼونکو لپاره هلاکت دی

۲۵:۷۷ - ايا مونږ ځمکه نه ده ګرځولې راجمع کوونکې

۲٦:۷۷ - ژونديو لره او مړيو لره

۲۷:۷۷ - او مونږ په دې کې اوچت لوی غرونه پيدا کړي دي او په تاسو مو خوږې تنده ماتوونکې اوبه څښلي

۲۸:۷۷ - په دغې ورځ کې د دروغ ګڼونکو لپاره هلاکت دی

۲۹:۷۷ - تاسو ځئ لاړ شئ هغه څيز ته چې تاسو به هغه دروغ ګاڼه

۳۰:۷۷ - تاسو ځئ لاړ شئ هغه سيوري ته چې د دريوڅانګو والا دی

۳۱:۷۷ - چې نه يخ دی او نه د اور لمبې لرې کولی شي

۳۲:۷۷ - بېشکه دغه (اور) داسې سرې سکروټې ولي (غورځوي)، لکه اوچتې ماڼۍ

۳۳:۷۷ - ګويا کې دغه (سکروټې، بڅرکي) زېړ تور بخن اوښان دي

۳۴:۷۷ - په دغې ورځ کې د دروغ ګڼونکو لپاره هلاکت دی

۳۵:۷۷ - دغه ورځ ده چې دوی به (په کې) خبرې نشي کولی

۳٦:۷۷ - او دوی ته به اجازت ورکولی نشي، پس چې دوی عذر وکړي

۳۷:۷۷ - په دغې ورځ کې د دروغ ګڼونکو لپاره هلاکت دی

۳۸:۷۷ - دغه د فيصلې ورځ ده، مونږ، تاسو او ړومبني خلق راجمع کړي دي

۳۹:۷۷ - نو که له تاسو سره څه چل مکر وي، نو زما سره (دغه) چل مکر وکړئ

۴۰:۷۷ - په دغې ورځ کې د دروغ ګڼونکو لپاره هلاکت دی

۴۱:۷۷ - یقینًا پرهېزګاران به په سیورو او چینو کې وي

۴۲:۷۷ - او په داسې مېوو کې چې دوی یې غواړي

۴۳:۷۷ - (ملایك به مومنانو ته وایي:) تاسو خورئ او څښئ، په داسې حال کې چې خوند اخیستونکي یئ د هغو عملونو په بدل کې چې تاسو به کول

۴۴:۷۷ - بېشکه همداسې مونږ نېکي کوونکو ته بدله ورکوو

۴۵:۷۷ - په دغې ورځ کې د دروغ ګڼونکو لپاره هلاکت دی

۴۶:۷۷ - تاسو خورئ او فایده واخلئ لږه.، بېشکه تاسو مجرمان یئ

۴۷:۷۷ - په دغې ورځ کې د تکذیب کوونکو (دروغ ویونکو) لپاره هلاکت او تباهي ده

۴۸:۷۷ - او کله چې دوی ته وویل شي تاسو رکوع کوئ (نو) دوی رکوع نه کوي

۴۹:۷۷ - په دغې ورځ کې د تکذیب کوونکو لپاره هلاکت دی

۵۰:۷۷ - نو له دې (قرآن) نه وروسته دوی په څه شي ایمان راوړي؟

## (مکي) اړینه وینا - النبأ ۷۸

۱:۷۸ - دوی د څه شي په باره کې یو له بل پوښتنه کوي؟

۲:۷۸ - د ډېر لوی خبر په باره کې

۳:۷۸ - هغه چې دوی په هغه کې سره اختلاف کوونکي دي

۴:۷۸ - نه دې کوي (دغه اختلاف او پوښتنې)، ژر به دوی پوه شي

۵:۷۸ - بیا هیڅکله دې نه کوي، ژر به دوی پوه شي

۶:۷۸ - ایا مونږ ځمکه فرش نه ده ګرځولې؟

۷:۷۸ - او غرونه (مو) میخونه

۸:۷۸ - او مونږ تاسو پیدا کړي یئ جوړې (نر او ښځه)

۹:۷۸ - او مونږ ستاسو خوب (تاسو لپاره) راحت ګرځولی دی

۱۰:۷۸ - او شپه مو لباس ګرځولې ده

۱۱:۷۸ - او ورځ مو د روزۍ لټولو وخت ګرځولی دی

۱۲:۷۸ - او ستاسو له پاسه مو اوه ډېر مضبوط اسمانونه جوړ کړي دي

۱۳:۷۸ - او مونږ روښانه ځلېدونکې ډېوه پیدا کړې ده

۱۴:۷۸ - او مونږ له ډکو وریځو نه ډېرې تویېدونکې اوبه نازلې کړې دي

۱۵:۷۸ - د دې لپاره چې مونږ په دغو (اوبو) سره دانې او زرغونه راوباسو

۱٦:۷۸ - او باغونه یو له بل سره نژدې

۱۷:۷۸ - بېشکه د فیصلې ورځ مقرر وخت دی

۱۸:۷۸ - هغه ورځ چې پوکی به ووهل شي په شپېلۍ کې، نو تاسو به ډلې ډلې راځئ

۱۹:۷۸ - او اسمان به پرانستل شي، نو دی به دروازې دروازې وي

۲۰:۷۸ - او غرونه به روان کړی شي، نو دوی به سراب شي

۲۱:۷۸ - بېشکه دوزخ به د انتظار ځای (کمین ځای) شي

۲۲:۷۸ - د سرکشو لپاره د ورتللو ځای

۲۳:۷۸ - چې دوی به په هغه کې زمانې زمانې (همېشه) پاتې کېږي

۲٤:۷۸ - دوی به په هغه کې نه څه یخوالی څکي او نه څه اوبه

۲۵:۷۸ - غیر د اېشېدلو تودو اوبو او بهېدونکو وینو زوو نه

۲٦:۷۸ - بدله به ورکولی شي د عملونو سره برابره موافقه

۲۷:۷۸ - بېشکه دوی به د حساب امېد نه کاوه

۲۸:۷۸ - او زمونږ ایتونه به یې دروغ ګڼل، سخت دروغ ګڼل

۲۹:۷۸ - او هر شی، مونږ هغه په کتاب (لوح محفوظ) کې شمېرلی (او محفوظ کړی) دی

۳۰:۷۸ - نو تاسو (خپله سزا) وڅکئ، پس مونږ به تاسو ته له سره زیات نه کړو مګر عذاب

۳۱:۷۸ - بېشکه خاص د متقیانو لپاره کامیابي ده

۳۲:۷۸ - (چې) باغونه او انګور دي

۳۳:۷۸ - او انارسینه همځولې پېغلې دي

۳٤:۷۸ - او ترڅنډو پورې ډکې د شرابو پیالې دي

۳۵:۷۸ - دوی په دغه (جنت) کې نه لغوه (بېکاره) خبره اوري او نه دروغ

۳٦:۷۸ - د رب له جانبه به بدله ورکولی شي. (د عملونو) په حساب سره ډېره ورکړه

۳۷:۷۸ - چې د اسمانونو او ځمکې رب دی او د هغه څه چې د دغو دواړو په مینځ کې دي، چې ډېر زيات مهربان دی، دوی له هغه سره د خبرو کولو اختيار (او قدرت) نه لري

۳۸:۷۸ - په هغې ورځ کې چې روح او ملايك به صفونه صفونه ودرېږي.، دوی به خبرې نشي کولی مګرهغه څوك چې هغه ته رحمٰن اجازت ورکړي او ده (په دنيا کې) حقه خبره (لا إله الا الله) ويلې وي

۳۹:۷۸ - دغه حق ورځ ده، نو هغه څوك چې د خپل رب په طرف د ورتلو ځای نيسي (نو ودې نيسي)

۴۰:۷۸ - بېشکه مونږ تاسو له نژدې (راتلونکي) عذاب څخه ووېرولئ، په هغه ورځ کې چې هر سړی به هغه څه ته ګوري چې د ده لاسونو مخکې لېږلي دي او کافر به وايي: ای کاشکې چې زه خاورې وی

## (مکي) را وښکونکي - النازعات ۷۹

۱:۷۹ - قسم دی په (ملايکو) راوښکونکو (روحونو د کفارو لره)، راوښکل

۲:۷۹ - او په (ملايکو) اسان راوښکونکو (د مومنانو روحونو لره)، اسان راوښکل

۳:۷۹ - او په تېزو تلونکو (ملايکو)، تېز تلل

۴:۷۹ - پس په وړاندې کېدونکو (ملايکو)، وړاندې کېدل

۵:۷۹ - بيا د کار په تدبير جوړونکو (ملايکو) چې تاسو به خامخا بيا راژوندي کړی شئ(

٦:۷۹ - په هغه ورځ چې لړځېدونکې به ولړځېږي

۷:۷۹ - په دې پسې به راځي ورپسې راتلونکې

۸:۷۹ - (د مجرمانو) زړونه به په دغه ورځ کې رپېدونکي (درزېدونکي) وي

۹:۷۹ - د دغو سترګې به ښکته وي

۱۰:۷۹ - دوی به وايي: ايا په رښتيا (او) يقينًا به مونږ رومبني حالت ته ګرځولی شو (بيا به ژوندي کېږو؟(

۱۱:۷۹ - ايا کله چې مونږ زاړه رژېدونکي هډوکي شو

۱۲:۷۹ - دوی وويل: دغه (ګرځېدل) به په هغه وخت کې زيانمن ګرځېدل وي

۱۳:۷۹ - پس ښېشکه دغه خو بس یوه چغه ده

۱۴:۷۹ - نو ناڅاپه به دوی د ځمکې په مخ وي

۱۵:۷۹ - ایا تا ته د موسیٰ خبره راغلې ده

۱۶:۷۹ - کله چې ده ته خپل رب په پاکې دَرې (ناو) ''طُوٰی'' کې اواز وکړ

۱۷:۷۹ - ته فرعون ته لاړ شه، ښېشکه ده سرکشي شروع کړې ده

۱۸:۷۹ - نو ته (ورته) ووایه: ایا ته دا خوښوې چې ته پاك شې

۱۹:۷۹ - او دا چې زه تا ته ستا د رب په طرف ښوونه وکړم، پس چې ته ووېرېږې

۲۰:۷۹ - نو ده (موسیٰ) دغه (فرعون) ته تر ټولو لویه نښه وښودله

۲۱:۷۹ - نو ده تکذیب وکړ او نافرماني یې وکړه

۲۲:۷۹ - بیا یې شا کړه (او) په ډېره بېړه سره لاړ

۲۳:۷۹ - نو ده (جادوګر) راجمع کړل، پس اواز یې وکړ

۲۴:۷۹ - نو ویې ویل: زه ستاسو رب یم، تر ټولو اوچت (رب)

۲۵:۷۹ - نو دی الله راونیوه په عذاب د اخرت او دنیا سره

۲۶:۷۹ - ښېشکه په دغه (غرقولو او سوځولو) کې یقینًا د هغه چا لپاره عبرت دی چې (له الله نه) وېرېږي

۲۷:۷۹ - ایا تاسو د پیدا کولو په لحاظ ډېر سخت یئ، یا که اسمان، دغه هغه (الله) جوړ کړی دی

۲۸:۷۹ - د ده چت یې اوچت کړی دی، نو دغه یې ښه برابر جوړ کړی دی

۲۹:۷۹ - او د ده شپه یې توره تیاره کړې ده او د ده رڼا یې راوېستلې ده

۳۰:۷۹ - او ځمکه یې له ده نه وروسته غوړولې ده

۳۱:۷۹ - ده له دغې (ځمکې) نه د دې اوبه او د دې واښه رااېستلي دي

۳۲:۷۹ - او غرونو لره، ده دغه محکم کړي دي

۳۳:۷۹ - ستاسو او ستاسو د څاریو د فایدې لپاره

۳۴:۷۹ - نو کله چې تر ټولو لویه بلا (قیامت) راشي

۳۵:۷۹ - په هغه ورځ چې انسان به هغه څه یادوي چې ده کړي وي

۳۶:۷۹ - او دوزخ به هغه چا ته ښکاره کړی شي چې یې ویني

۳۷:۷۹ - نو هر چې هغه څوك دی چې سرکشي يې کړې وي

۳۸:۷۹ - او دنيايي ژوند ته يې ترجيح ورکړې وي

۳۹:۷۹ - نو بېشکه چې همـ دا دوزخ (د ده) استوګنه ده

۴۰:۷۹ - او هر چې هغه څوك دی چې د خپل رب په وړاندې له ودرېدلو نه وېرېدلی وي او نفس (ځان) يې له خواهشاتو نه منع کړی وي

۴۱:۷۹ - نو بېشکه چې همـ دا جنت (د ده) استوګنه ده

۴۲:۷۹ - (ای نبي!) دوی له تا نه د قيامت په باره کې پوښتنه کوي چې د ده واقع کېدل به کله وي

۴۳:۷۹ - ته د ده له ياده (علمه) په څه کې يې

۴۴:۷۹ - خاص ستا رب ته د دغه (قيامت) انتها ده

۴۵:۷۹ - بېشکه ته خو يواځې د هغه چا وېروونکی يې چې له ده (قيامت) نه وېرېږي

۴۶:۷۹ - ګوياکې دوی به په هغې ورځې کې چې دوی دغه (قيامت) ويني (داسې به وي لکه چې دوی (په دنيا، يا په قبر کې) نه دي ايسار شوي مګر د ورځې اخر، يا څاښت

## (مکي) بې ګڼې - عبس ۸۰

۱:۸۰ - ده تندی تريو کړ او مخ يې وګرځاوه

۲:۸۰ - په دې وجه چې ده ته ړوند راغی

۳:۸۰ - او ته څه شي پوه کړی يې، ښايي چې دی پاك شي

۴:۸۰ - يا به دی نصيحت (او پند) واخلي، نو ده ته به پند نفع ورسوي

۵:۸۰ - هر چې هغه څوك دی چې استغنا يې کړې ده

۶:۸۰ - نو ته په هغه پسې کېږې

۷:۸۰ - حال دا چې په تا هېڅ الزامـ نشته چې هغه پاك نشي

۸:۸۰ - او هر چې هغه څوك دی چې تا ته په منډو راځي

۹:۸۰ - په داسې حال کې چې دی (له الله نه) وېرېږي

۱۰:۸۰ - نو ته له هغه نه مشغولېږې

۱۱:۸۰ - داسې کله همـ مه کوه، بېشکه دا (سورت) يو پند (او نصيحت) دی

۱۲:۸۰ - نو هغه څوك چې غواړي (نو) دی دې ومني

۱۳:۸۰ - (دغه) په عزتمنو پاڼو کې دی

۱۴:۸۰ - چې پورته کړی شوې، ښې پاکې کړی شوې دي

۱۵:۸۰ - د لیکونکو (ملایکو) په لاسونو کې

۱۶:۸۰ - چې ډېر عزتمن، ډېر نېك دي

۱۷:۸۰ - انسان دې هلاك کړی شي، دی څومره ډېر ناشکره دی!

۱۸:۸۰ - دی دغه (الله) له څه شي نه پیدا کړی دی؟

۱۹:۸۰ - له نطفې نه، دی یې پیدا کړی دی، پس دی یې اندازه کړی دی

۲۰:۸۰ - بیا یې ده ته لاره ور اسانه کړې ده

۲۱:۸۰ - بیا یې دی مړ کړ، نو دی یې په قبر کې کېښود

۲۲:۸۰ - بیا چې کله وغواړي دی به ژوندی کړي

۲۳:۸۰ - داسې نه ده، دغه (انسان) هغه کار نه دی کړی چې دغه (الله) ده ته حکم کړی دی

۲۴:۸۰ - نو انسان دې خپل طعام ته وگوري

۲۵:۸۰ - چې بېشکه مونږ اوبه راتوی کړې دي، راتویول

۲۶:۸۰ - بیا مونږ ځمکه څیرې کړې ده، څیرول

۲۷:۸۰ - نو مونږ په دې کې دانې را زرغونه کړي دي

۲۸:۸۰ - او انگور او ترکاریانې

۲۹:۸۰ - او زیتون او کجورې

۳۰:۸۰ - او گڼ باغونه

۳۱:۸۰ - او مېوې او گیاه (واښه)

۳۲:۸۰ - ستاسو او ستاسو د څارویو د فایدې لپاره

۳۳:۸۰ - نو کله چې سخت اواز راشي

۳۴:۸۰ - په هغه ورځ چې سړی به له خپل وروره تښتي

۳۵:۸۰ - او له خپلې مور او خپل پلاره

۳۶:۸۰ - او له خپلې ښځې او خپلو زامنو نه

۳۷:۸۰ - په دوی کې د هر سړي لپاره به په دغه ورځ کې يو حال وي چې دی به (له نورو نه) بې پروا (بې غوره) کوي

۳۸:۸۰ - څه مخونه به په دغې ورځ کې روښانه وي

۳۹:۸۰ - خندېدونکي (او) خوشاله به وي

۴۰:۸۰ - او څه مخونه به په دغې ورځ کې پر هغو به ګرد پروت وي

۴۱:۸۰ - دغه (مخونه) به توروالي پټ کړي وي

۴۲:۸۰ - دغه (تور مخي) خلق هم دوی کافران (او) فاجران (بدکاران) دي

## (مکي) غونډېدنه - التکوير ۸۱

۱:۸۱ - کله چې لمر ونغښتل شي

۲:۸۱ - او کله چې ستوري خړ شي

۳:۸۱ - او کله چې غرونه روان کړل شي

۴:۸۱ - او کله چې د لسو مياشتو بلاربې اوښې معطلې (ازادې) پرېښودی شي

۵:۸۱ - او کله چې وحشي څناوران راجمع کړل شي

۶:۸۱ - او کله چې دريابونه بل کړی شي

۷:۸۱ - او کله چې نفسونه جوړه کړل شي

۸:۸۱ - او کله چې ژوندۍ خښه کړی شوې جينۍ وپوښتی شي

۹:۸۱ - چې دا په کومې ګناه وژل شوې ده

۱۰:۸۱ - او کله چې اعمال نامې وغوړولی شي

۱۱:۸۱ - او کله چې له اسمان نه پوستکی ووېستل شي

۱۲:۸۱ - او کله چې دوزخ بلې لمبې کړی شي

۱۳:۸۱ - او کله چې جنت ښه نژدې کړی شي

۱۴:۸۱ - هر نفس به په هغه شي پوه شي چې ده حاضر کړی وي

۱۵:۸۱ - نو زه قسم خورم په هغو (ستوريو) چې بېرته ګرځېدونکي دي

۱۶:۸۱ - په روانو، پټېدونکو باندې

۱۷:۸۱ - او قسم خورم په شپې کله چې شروع شي

۱۸:۸۱ - او په سبا کله چې دی ساه واخلي (روښانه شي)

۱۹:۸۱ - بېشکه دا (قرآن) خامخا د ډېر عزتمن رسول قول دی

۲۰:۸۱ - چې د عرش د مالك په نیز د قوت والا (او) د مرتبې والا دی

۲۱:۸۱ - منلی شوی دی هلته، امین دی

۲۲:۸۱ - او ستاسو ملګری (محمدﷺ) له سره لېونی نه دی

۲۳:۸۱ - او یقینًا یقینًا ده دغه (جبریل د اسمان) په ښکاره غاړه کې لیدلی و

۲۴:۸۱ - او دی د وحي په بیانولو کې له سره بخل کوونکی نه دی

۲۵:۸۱ - او بېخي نه دی دا (قرآن) خبره د شیطان رټل شوي

۲۶:۸۱ - نو تاسو (ای کافرانو!) چېرته ځئ؟

۲۷:۸۱ - نه دی دا (قرآن) مګر د عالمونو لپاره نصیحت (او پند)

۲۸:۸۱ - د هغه چا لپاره چې په تاسو کې غواړي چې دی نېغ برابر شي

۲۹:۸۱ - او تاسو د (د سمې لارې) اراده نشئ کولی مګر دا چې الله رب العلمین یې اراده وکړي

## (مکي) ماتونه - الإنفطار ۸۲

۱:۸۲ - کله چې اسمان وچوي

۲:۸۲ - او کله چې ستوري ګډوډ شي (او) راولوېږي

۳:۸۲ - او کله چې دریابونه یو ځای روان کړی شي

۴:۸۲ - او کله چې قبرونه لاندې باندې کړی شي

۵:۸۲ - هر نفس به په هغه څه پوه شي چې ده وړاندې لېږلي دي او وروسته یې پرېښې دي

۶:۸۲ - ای (کافره) انسانه! ته په خپل کریم (او سخي) رب باندې څه شي دوکه کړی یې

۷:۸۲ - هغه چې ته یې پیدا کړې، نو ته یې ښه برابر کړې

۸:۸۲ - په هر صورت (شکل) کې چې هغه غوښتل، ته یې پیوند (او جوړ) کړې

۹:۸۲ - داسې بېخي نه ده، بلکې تاسو د بدلې ورځ (قیامت) دروغ ګڼئ

۱۰:۸۲ - په داسې حال کې چې پر تاسو باندې ساتونکي (ملایك) مقرر دي

۱۱:۸۲ - چې عزتمن لیکونکي دي

۱۲:۸۲ - دوی په هغه څه پوهېږي چې تاسو يې کوئ

۱۳:۸۲ - بېشکه نېکان (مومنان) به خامخا په نعمتونو کې وي

۱۴:۸۲ - او بېشکه چې بدکاران (کافران) به خامخا په جهنم کې وي

۱۵:۸۲ - دوی به ده ته د بدلې په ورځ ننوځي

۱۶:۸۲ - او دوی به له دغه (دوزخ) نه له سره پټېدونکي نه وي

۱۷:۸۲ - او ته څه شي پوه کړې چې د بدلې ورځ (قيامت) څه شی دی؟

۱۸:۸۲ - بيا ته څه شي پوه کړې چې د بدلې ورځ څه شی دی

۱۹:۸۲ - (ياده کړه) هغه ورځ چې هېڅ يو نفس به د بل نفس لپاره د هېڅ شي اختيار ونه لري. او په دغې ورځ کې به امر (حکم) خاص الله لره وي

## (مکي) لږ خرڅونکي - المطففين ۸۳

۱:۸۳ - (په تول او پيمانه کې) کمي کوونکو لره هلاکت دی

۲:۸۳ - هغه کسان چې دوی له خلقو نه ځان ته پيمانه اخلي (، نو) پوره (يې) اخلي

۳:۸۳ - او کله چې دغو (خلقو) ته پيمانه ورکوي، يا يې دوی ته تلي (، نو) کمی کوي

۴:۸۳ - ايا دغه خلق يقين نه کوي چې بېشکه دوی به بيا راژوندي کول شي

۵:۸۳ - په ډېره لويه ورځ کې (د حساب لپاره)

۶:۸۳ - هغه ورځ چې خلق به ''رب العلمين'' ته ودرېږي

۷:۸۳ - هيڅکله داسې نه ده په کار، بېشکه د فاجرانو (کافرانو) کتاب (ليکل شوي عملونه خامخا په سجين کې دي

۸:۸۳ - او ته څه شي پوه کړې چې سجين څه شی دی

۹:۸۳ - يو دفتر (کتاب) دی ليکل شوی

۱۰:۸۳ - په دغې ورځ کې د دروغ ګڼونکو لپاره هلاکت دی

۱۱:۸۳ - هغه کسان چې د بدلې ورځ دروغ ګڼي

۱۲:۸۳ - او دغه (ورځ) دروغ نه ګڼي مګر هر زياتي کوونکی، سخت ګناه ګار

۱۳:۸۳ - کله چې ده ته زمونږ ایتونه تلاوت کولی شي؛ دی وايي: (دا) د ړومبنیو (خلقو) باطلې قصې دي

۱۴:۸۳ - داسې نه ده، بلکې د دوی په زړونو باندې هغو (د گناه عملونو) زنگ لگولی دی چې دوی به کول

۱۵:۸۳ - داسې نه ده په کار، بېشکه دوی به په دغې ورځ کې له خپل رب نه یقینًا په حجاب (بند) کړی شوي وي

۱۶:۸۳ - بیا بېشکه دوی یقینًا دوزخ ته ننوتونکي دي

۱۷:۸۳ - بیا به (دوی ته) ویلی شي: دا هغه (دوزخ) دی چې تاسو به دا دروغ گاڼه

۱۸:۸۳ - داسې نه ده، بېشکه د نېکانو (خلقو) عملنامې (لیکلی کتاب) خامخا په ''علِّیین'' کې دي

۱۹:۸۳ - او ته څه شي پوه کړې چې ''علّیون'' څه شی دی

۲۰:۸۳ - یو دفتر (کتاب) دی چې لیکل شوی دی

۲۱:۸۳ - چې ده ته مقرب (بنده گان او ملایك) حاضرېږي

۲۲:۸۳ - بېشکه نېکان خلق یقینًا په نعمتونو کې دي

۲۳:۸۳ - دوی به په تختونو باندې (ناست) وي، گوري به

۲۴:۸۳ - (ای کتونکیه!) ته به د دوی په مخونو کې د نعمتونو تازگي وینې

۲۵:۸۳ - په دوی به مُهر (ټاپه) کړی شوي خالص شراب څښولی شي

۲۶:۸۳ - چې د دغو مُهر (ټاپه) به مشك وي، او په دغه (نعمتونو) کې، پس په کار ده چې رغبت کوونکي رغبت وکړي

۲۷:۸۳ - د دغو (شرابو) گډون له تسنیم (چینې) څخه دی

۲۸:۸۳ - چې یوه چینه ده چې له دې نه به (د الله) مقربین څښي

۲۹:۸۳ - بېشکه هغه کسان چې جرم (د کفر) یې کړی دی.، دوی به په هغو کسانو پورې خندا کوله چې ایمان یې راوړی و

۳۰:۸۳ - او کله چې به د دوی (مومنانو) په خوا کې تېرېدل (نو) په خپلو منځونو کې به یې سترگکونه وهل

۳۱:۸۳ - او کله چې به دوی خپلو کورونو ته واپس کېدل (نو) خوشاله به واپس کېدل

۳۲:۸۳ - او کله چې به دوی دغه (مسلمانان) ولیدل (نو) ویل به یې: بېشکه دغه خلق یقینًا

گمراهان دي

۳۳:۸۳ - حال دا چې دوی په دغو (مومنانو) باندې نگرانان (څوکيداران) نه وو لېږل شوي

۳۴:۸۳ - نو په نن ورځ به هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی؛ په کافرانو پورې خندا کوي

۳۵:۸۳ - په تختونو باندې به ناست وي، چې گوري به

۳۶:۸۳ - يقينًا کافرانو ته د هغه څه بدله ورکړی شوه چې دوی به کول

## (مکي) څيره ونه - الانشقاق ۸۴

۱:۸۴ - کله چې اسمان څيرې شي

۲:۸۴ - او خپل رب ته غوږ کېږدي او دی (اسمان) د همدې لايق دی

۳:۸۴ - او کله چې ځمکه رابنکلی شي

۴:۸۴ - او هغه څه د باندې وغورځوي چې په دې کې دي او خالي شي

۵:۸۴ - او خپل رب ته غوږ کېږدي او دا د همدې لايق ده

۶:۸۴ - ای انسانه! بېشکه ته په پوره کوشش سره کار کوونکی يې تر خپل ربه (سره د ملاقات پورې)، بنه په کوشش سره کار کول، پس ته له دغه (خپل عمل) سره ملاقات کوونکی يې

۷:۸۴ - نو هر چې هغه څوك دی چې هغه ته خپل کتاب (عمل نامه) په بني لاس کې ورکړی شي

۸:۸۴ - نو ژر ده چې له ده سره به حساب وکړی شي، ډېر اسان حساب

۹:۸۴ - او دی به خپل اهل ته خوشاله وگرځي

۱۰:۸۴ - او هر چې هغه څوك دی چې هغه ته خپل کتاب (عمل نامه) له خپلې شا نه وروسته ورکړی شي

۱۱:۸۴ - نو دی به ژر هلاکت ته چغې کړي

۱۲:۸۴ - او د دوزخ بل اور ته به ننوځي

۱۳:۸۴ - بېشکه دی په خپل اهل کې خوشاله و

۱۴:۸۴ - بېشکه ده يقين کړی و چې دی به له سره بېرته (الله ته) ونه گرځي

۱۵:۸۴ - ولې نه! بېشکه د ده رب ده لره تل بنه ليدونکی و

۱۶:۸۴ - نو زه قسم خورم په شفق (له مابنام نه پس په سوروالي)

۱۷:۸۴ - او په شپه او په هغه څه چې دې راجمع کړي دي

۱۸:۸۴ - او په سپوږمۍ کله چې دا کامله شي

۱۹:۸۴ - چې تاسو به خامخا ضرور رسېږئ يو حال ته وروسته له بل حال نه

۲۰:۸۴ - نو په دوی څه شوي دي چې دوی ايمان نه راوړي

۲۱:۸۴ - او کله چې په دوی باندې قرآن لوستی شي دوی سجده نه کوي

۲۲:۸۴ - بلکې هغه کسان چې کافران شوي دي؛ هغوی تکذيب کوي

۲۳:۸۴ - او الله ښه عالم دی په هغه څه چې دوی يې پټ ساتي

۲۴:۸۴ - نو ته دوی ته د ډېر دردوونکي عذاب زېری ورکړه

۲۵:۸۴ - غير له هغو کسانو نه چې ايمان يې راوړی دی او نېك عملونه يې کړي دي، د دوی لپاره نه ختمېدونکی اجر دی

## (مکي) برجونه - البروج۸۵

۱:۸۵ - قسم دی په اسمان چې خاوند د برجونو دی

۲:۸۵ - او په وعده کړی شوې ورځې (د قيامت)

۳:۸۵ - او په ګواه يا حاضرېدونکي او په هغې (ورځې) چې هغې ته حاضري کولی شي (چې د قيامت ورځ ده)

۴:۸۵ - هلاك دې کړی شي خاوندان د خندق

۵:۸۵ - چې (په کې) اور و د بلېدلو (او لرګو) والا

۶:۸۵ - کله چې دوی په (غاړو د) هغو ناست وو

۷:۸۵ - او دوی هغه څه ته چې دوی به په مومنانو باندې کول؛ حاضر وو

۸:۸۵ - او دوی له دغو (مومنانو) نه هېڅ عيب نه ليده مګر دا چې دوی په الله باندې ايمان راوړی و، چې ډېر غالب، ښه ستايل شوی دی

۹:۸۵ - هغه (الله) چې خاص د هغه لپاره د اسمانونو او ځمکې بادشاهي ده او الله په هر شي باندې ښه خبردار (او ګواه) دی

۱۰:۸۵ - بېشکه هغه کسان چې مومنان سړي او مومنې ښځې يې په فتنه (عذاب) کې اچولي وي، بيا يې توبه نه وي ايستلې، نو د دوی لپاره د جهنم (دوزخ) عذاب دی او د دوی لپاره د ډېر

سوځوونکي اور عذاب دی

۱۱:۸۵ - بېشکه هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي د دوی لپاره داسې جنتونه دي چې د هغو له لاندې ولې بهېږي، همدغه ډېره لویه کامیابي ده

۱۲:۸۵ - بېشکه ستا د رب نیول یقینًا ډېر سخت دي

۱۳:۸۵ - بېشکه هم دغه (الله) اول ځلې پیدا کوي او دویم ځلې پیدا کوي

۱۴:۸۵ - او هم دی ډېر بخښونکی، ډېر محبت کوونکی دی

۱۵:۸۵ - د عرش مالك دی، لوی شان (او عزت) والا دی

۱۶:۸۵ - ډېر کوونکی دی هغه څه لره چې دی یې اراده وکړي

۱۷:۸۵ - ایا تا ته د لښکرو خبر راغلی دی؟

۱۸:۸۵ - چې فرعونیان او ثمودیان وو

۱۹:۸۵ - بلکې هغه کسان چې کافران شوي دي په دروغ ګڼلو کې (لګیا) دي

۲۰:۸۵ - او الله د دوی له چاپېره نه راګېروونکی دی

۲۱:۸۵ - بلکې دغه د لوی قدر والا قرآن دی

۲۲:۸۵ - په لوح محفوظ کې دی

## (مکي) تپېدنه - الطارق ۸٦

۱:۸٦ - قسم دی په اسمان او د شپې په راتلونکي

۲:۸٦ - او ته څه شي پوه کړې چې د شپې راتلونکی څه شی دی؟

۳:۸٦ - ځلېدونکی ستوری دی

۴:۸٦ - نشته هېڅ یو نفس مګر په هغه باندې څارونکی (ساتونکی) شته

۵:۸٦ - نو انسان دې وګوري چې دی له څه شي نه پیدا کړی شوی دی؟

٦:۸٦ - دی له ټوپ وهونکو اوبو نه پیدا کړی شوی دی

۷:۸٦ - چې د شا او له سینو د هډوکو له مینځ نه راوځي

۸:۸٦ - بېشکه دغه (الله) د دغه (انسان) په بیا راژوندي کولو یقینًا قادر دی

۹:۸٦ - په هغې ورځ چې د پټو څیزونو به (په کې) څېړنه (او څرګندونه) کولی شي

۸۶:۱۰ - نو د دغه (انسان) لپاره به نه هېڅ قوت وي او نه څوك مدد كوونكى

۸۶:۱۱ - قسم دى په اسمان چې خاوند د باران دى

۸۶:۱۲ - او په ځمكه چې د (زرغوني راوتلو لپاره) چاودېدلو والا ده

۸۶:۱۳ - بېشكه دا (قرآن) يقينًا (د حق او باطل) بېلونكې وينا ده

۸۶:۱۴ - او دا هيڅكله عبثه (او د ټوقو) خبره نه ده

۸۶:۱۵ - بېشكه دوى مكر او چل كوي، يو چل كول

۸۶:۱۶ - او زه هم يو تدبير كوم، تدبير كول

۸۶:۱۷ - نو ته كافرانو ته مهلت وركړه، ته دوى ته لږ مهلت وركړه

## (مكي) ډير ښه - الأعلى ۸۷

۸۷:۱ - ته پاكي بيان كړه د خپل رب د نامې چې تر ټولو اوچت دى

۸۷:۲ - هغه چې پيدا يې كړل ټول شيان، پس ښه يې برابر كړل

۸۷:۳ - او هغه (رب) چې اندازه يې وكړه، پس لاره يې وښووله

۸۷:۴ - او هغه ذات چې تازه گياه يې را ايستلې ده

۸۷:۵ - بيا يې هغه وگرځوله وچه توره

۸۷:۶ - ژر ده چې مونږ به په تا باندې (قرآن) ولولو، نو ته به يې نه هېروې

۸۷:۷ - مگر هغه چې الله يې وغواړي، بېشكه دغه (الله) په ښكاره و پوهېږي او په هغه څه چې پټ وي

۸۷:۸ - او مونږ به تا ته اساني لارې ته اسانتيا دركوو

۸۷:۹ - نو ته نصيحت (پند) كوه كه نصيحت كول نفع رسوي (يا بېشكه نصيحت كول نفع رسوي)

۸۷:۱۰ - ژر ده چې هغه څوك به پند واخلي چې وېرېږي

۸۷:۱۱ - او له دغه (نصيحت) نه به تر ټولو بدبخته ډېره كوي

۸۷:۱۲ - هغه چې تر ټولو لوى اور ته به ننوځي

۸۷:۱۳ - بيا به دى په دغه (اور) كې نه مري او نه به ښه ژوند لري

۱۴:۸۷ - یقینًا هغه څوك کامیاب شو چې پاك شو

۱۵:۸۷ - او د خپل رب نامه يې یاده کړه، پس لمونځ يې وکړ

۱۶:۸۷ - بلکې تاسو (په اخرت باندې) دنیایي ژوند غوره کوئ

۱۷:۸۷ - حال دا چې اخرت ډېر غوره او تل ترتله دی

۱۸:۸۷ - بېشکه دا (خبرې) یقینًا په ړومبنیو صحیفو کې هم دي

۱۹:۸۷ - د ابراهیم او موسی په صحیفو کې

## (مکي) پوښښ شوی - الغاشیة ۸۸

۱:۸۸ - ایا تا ته (یعنې خلقو لره) د پټوونکي (قیامت) خبر راغلی دی؟

۲:۸۸ - څه مخونه به په دغې ورځ کې خوار (او) وېرېدونکي وي

۳:۸۸ - سخت کار کوونکي، ستړي کېدونکي به وي

۴:۸۸ - ډېر ګرم اور ته به ننوځي

۵:۸۸ - په دوی به له ډېرې ګرمې چینې نه اوبه څښولی شي

۶:۸۸ - د دوی لپاره به طعام نه وي مګر له اغزنې ترخې ونې نه

۷:۸۸ - چې نه څربول کوي او نه هېڅ لوږه لرې کوي

۸:۸۸ - څه مخونه به په دغې ورځ کې تروتازه وي

۹:۸۸ - په خپل کوشش به راضي (خوشاله) وي

۱۰:۸۸ - په اوچت جنت کې به وي

۱۱:۸۸ - دوی به په دغه (جنت) کې هېڅ بېکاره خبره نه اوري

۱۲:۸۸ - په دغه (جنت) کې روانه چینه ده

۱۳:۸۸ - په دغه (جنت) کې اوچت تختونه دي

۱۴:۸۸ - او (په اندازې سره) ایښودل شوي جامونه دي

۱۵:۸۸ - او په قطار کې ایښودل شوي بالښتونه دي

۱۶:۸۸ - او غوړول شوي اعلی فرشونه دي

۱۷:۸۸ - ایا نو دوی اوښانو ته نه ګوري چې دوی څرنګه پیدا کړی شوي دي؟

۱۸:۸۸ - او اسمان ته چې دی څنګه اوچت کړی شوی دی؟

۱۹:۸۸ - او غرونو ته چې دوی څنګه ودرول شوي دي؟

۲۰:۸۸ - او ځمکې ته چې څنګه غوړول شوې ده؟

۲۱:۸۸ - نو ته پند ورکړه، بېشکه ته خو یواځې پند ورکوونکی یې

۲۲:۸۸ - ته په دوی باندې مسلط کړی شوی نه یې

۲۳:۸۸ - مګر هغه څوك چې (له ایمانه) وګرځي او کافر شي

۲۴:۸۸ - نو الله به ده ته عذاب ورکړي تر ټولو لوی عذاب

۲۵:۸۸ - بېشکه خاص مونږ ته د دوی بېرته راتګ دی

۲۶:۸۸ - بیا یقینًا د دوی حساب زمونږ په غاړه دی

## (مکي) ګهیځ - الفجر ۸۹

۱:۸۹ - قسم دی په فجر (سبا) باندې

۲:۸۹ - او په لسو شپو باندې

۳:۸۹ - او په جفت او طاق باندې

۴:۸۹ - او په شپه باندې کله چې روانه وي

۵:۸۹ - ایا په دغو (قسمونو) کې خاوند د عقل لره (کوم قانع کوونکی) قسم شته؟

۶:۸۹ - ایا تا نه دي کتلي چې ستا رب څه وکړل له ''قوم عاد'' سره؟

۷:۸۹ - چې ارم و د ستنو والا

۸:۸۹ - هغه چې په ښارونو کې د دوی په مثل نه و پیدا کړی شوی

۹:۸۹ - او ثمودیانو سره (یې څه وکړل) هغه چې په دره کې یې تیګې غوڅې کړې (تراشلې) وې؟

۱۰:۸۹ - او له میخونو والا فرعون سره (یې څه وکړل)

۱۱:۸۹ - هغه کسان چې دوی په ښارونو کې سرکشي کړې وه

۱۲:۸۹ - نو په دغو کې یې فساد ډېر کړی و

۱۳:۸۹ - نو ستا رب په دوی باندې د عذاب قمچینه (کروړه) نازله کړه

۱۴:۸۹ - بېشکه ستا رب یقینًا په ځای د انتظار کې دی

۱۵:۸۹ - نو هر چې انسان دی، کله چې ده لره خپل رب وازمايي، پس ده ته عزت ورکړي او ده ته نعمت ورکړي، نو دی وايي: زما رب ما ته عزت راکړ

۱٦:۸۹ - او خو هر کله چې دی وازمايي، پس په ده باندې د ده رزق تنگ کړي، نو دی وايي: زما رب زه سپك كړم

۱۷:۸۹ - داسې نه ده، بلکې تاسو د یتیم (سره احسان او د هغه) عزت نه کوئ

۱۸:۸۹ - او مسکین ته په طعام ورکولو یو بل ته ترغیب نه ورکوئ

۱۹:۸۹ - او تاسو د میراث (پردی) مال خورئ، په خوړلو ټولو سره

۲۰:۸۹ - او تاسو له مال سره مینه کوئ، ډېره زیاته مینه

۲۱:۸۹ - داسې نه ده. کله چې ځمکه وټکولی شي، په ټکولو ماتولو سختو سره

۲۲:۸۹ - او ستا رب راشي او ملایك قطار قطار (راشي)

۲۳:۸۹ - او په دغې ورځ کې به دوزخ راوستی شي.، په دغې ورځ کې به انسان نصیحت (او پند) اخلي او (په دغه وخت کې) د ده لپاره نصیحت به څنگه (نفعمن) وي

۲۴:۸۹ - دی به وايي: ای کاشکې ما د خپل ژوند لپاره مخکې (څه نېك عملونه) لیږلي وی

۲۵:۸۹ - نو په دغې ورځ کې به د ده (یعنې د رب) د عذاب په شان هیڅوك عذاب نه ورکوي

۲٦:۸۹ - او د ده د تړلو په شان به هیڅوك تړل نه کوي

۲۷:۸۹ - ای اطمینان نیوونکیه نفسه!

۲۸:۸۹ - ته وگرځه خپل رب ته، په داسې حال کې چې خوشاله او راضي کړی شوی به یې

۲۹:۸۹ - نو ته زما په بنده گانو کې داخل شه

۳۰:۸۹ - او زما جنت ته ننوځه

## (مکي) هېواد - البلد ۹۰

۱:۹۰ - زه قسم خورم په دې ښار باندې

۲:۹۰ - په داسې حال کې چې ته په دې ښار کې اوسېدونکی یې

۳:۹۰ - او په زېږوونکي باندې او په هغه باندې چې ده زېږولي دي

۴:۹۰ - یقینًا یقینًا مونږ انسان په مشقت کې پیدا کړی دی

۵:۹۰ - ایا دغه (کافر انسان) خیال کوي چې بېشکه شان دا دی چې په ده باندې به هیڅوك قادر

نشي

٦:٩٠ - دی وايي: ما ډېر زيات مال خرڅ کړی (لګولی) دی

٧:٩٠ - ايا دی خيال کوي چې ېشکه دی هيچا نه دی ليدلی

٨:٩٠ - ايا مونږ ده ته دوه سترګې نه دي ورکړي

٩:٩٠ - او يوه ژبه او دوه شونډې

١٠:٩٠ - اومونږ ده ته دوه لارې ښودلي دي

١١:٩٠ - نو ده د غونډۍ په ختلو کې هېڅ تکليف ونه وېست

١٢:٩٠ - او ته څه شي پوه کړې چې (ختل د) غونډۍ څه شی دی؟

١٣:٩٠ - خلاصول د څټ (ازادول د مريي) دي

١٤:٩٠ - او طعام ورکول دي په داسې ورځ کې چې د لوږې والا ده

١٥:٩٠ - يتيم ته چې د خپلوۍ خاوند وي

١٦:٩٠ - يا مسکين ته چې په خاورو ککړ وي

١٧:٩٠ - بيا دغه له هغو کسانو څنې وي چې ايمان يې راوړی وي او يو بل ته د صبر وصيت کوي او يو بل ته د مهربانۍ (او شفقت) کولو وصيت کوي

١٨:٩٠ - دغه کسان دښي اړخ والا دي

١٩:٩٠ - او هغه کسان چې زمونږ په ايتونو باندې کافران شوي دي۔ دوی د چپ (ګس) اړخ والا دي

٢٠:٩٠ - په دوی باندې به سرپوښ کړی شوی اور وي

## (مکي) لمر - الشمس ٩١

١:٩١ - قسم دی په لمر باندې او د هغه په رڼا باندې

٢:٩١ - اوسپوږمۍ باندې کله چې په ده پسې وروسته راځي

٣:٩١ - او په ورځ باندې کله چې دغه (لمر) ښکاره کاندي

٤:٩١ - او په شپه باندې کله چې دغه (لمر) پټ کاندي (په خپلو تيارو کې)

٥:٩١ - او په اسمان باندې او په هغه ذات چې دغه يې جوړ کړی دی

۶:۹۱ - او په ځمکه باندې او په هغه ذات چې دغه (ځمکه) يې غوړولې ده

۷:۹۱ - او په نفس باندې او په هغه ذات چې دغه يې ښه برابر کړی دی

۸:۹۱ - نو ده ته يې د ده بدي او د ده تقوىٰ (نېکي) الهام کړې (او وربښودلې) ده

۹:۹۱ - چې يقيناً کامياب شو هغه څوك چې دغه (نفس) يې پاك كړ

۱۰:۹۱ - او يقيناً نامراده شو هغه څوك چې دغه (نفس) يې په خاورو کې پټ کړ

۱۱:۹۱ - ثموديانو د خپلې سرکشۍ په سبب (د رسولانو) تکذيب کړی و

۱۲:۹۱ - کله چې د دوی لوی بدبخت راپورته شو

۱۳:۹۱ - نو دوی ته د الله رسول وويل: تاسو د الله اوښه او د هغې اوبه څښل پرېږدئ

۱۴:۹۱ - نو دوی د هغه تکذيب وکړ (دروغجن يې وګاڼه) نو دوی د هغې پړکي (لينګي) پرې کړل (او مړه يې کړه) نو په دوی باندې د دوی رب د خپلو ګناهونو په سبب راګېرووونکی عذاب راولېږه، نو دغه (ټول) يې (په هلاکت کې) برابر کړل

۱۵:۹۱ - او دی (الله) د دغه (هلاکت او عذاب) له انجام نه نه وېرېږي

## (مکي) شپه - الليل ۹۲

۱:۹۲ - قسم دی په شپه کله چې دا (هر شی) پټ کړي

۲:۹۲ - او په ورځ باندې کله چې روښانه شي

۳:۹۲ - او په هغه ذات باندې چې نر او ښځه يې پيدا کړي دي

۴:۹۲ - چې بېشکه ستاسو سعي (او عمل) خامخا بېل بېل دی

۵:۹۲ - نو هر چې هغه څوك دی چې ورکړه کوي او وېرېږي

۶:۹۲ - او د ډېرې ښکلې کلمې تصديق کوي

۷:۹۲ - نو مونږ به ضرور ده ته د اسانۍ لارې اسانتيا ورکړو

۸:۹۲ - او هر چې هغه څوك دی چې بخيلي کوي او بې پروايي کوي

۹:۹۲ - او د ډېرې ښکلې کلمې تکذيب کوي (دروغ يې ګڼي)

۱۰:۹۲ - نو مونږ به ضرور ده ته د سختۍ لارې اسانتيا ورکړو

۱۱:۹۲ - او کله چې دی په کنده کې غورځېږي (هلاکېږي، نو) د ده مال به د ده هېڅ په کار رانشي

۱۲:۹۲ - بېشکه خاص زمونږ په ذمه خامخا لاره ښوول دي

۱۳:۹۲ - او بېشکه خاص زمونږ لپاره اخرت او دنیا ده (د دواړو اختیار دی)

۱۴:۹۲ - نوما تاسو له داسې اوره وویرولئ چې لمبې وهي

۱۵:۹۲ - ده ته به نه ننوځي مگر ترټولو بدبخته

۱۶:۹۲ - هغه چې تکذیب یې کړی او مخ یې (له حقه) گرځولی دی

۱۷:۹۲ - او له ده نه به خامخا لرې ساتلی شي ښه وېرېدونکی

۱۸:۹۲ - هغه چې خپل مال د دې لپاره ورکوي چې پاك شي

۱۹:۹۲ - او له ده سره (د ده په غاړه) د هیچا لپاره څه نعمت (او احسان) نشته چې بدله یې ورکولی شي

۲۰:۹۲ - مگر د خپل رب د مخ لټونې لپاره چې تر ټولو اوچت دی

۲۱:۹۲ - او خامخا ژر به دی راضي شي`

## (مکي) څاښت - الضحی ۹۳

۱:۹۳ - قسم دی په څاښت باندې

۲:۹۳ - او په شپه باندې کله چې قراره شي

۳:۹۳ - چې ته خپل رب نه پرېښی یې او نه یې (درسره) بغض ساتلی دی

۴:۹۳ - او خامخا اخرت تا لپاره له دنیا نه ډېر غوره دی

۵:۹۳ - او خامخا ژر به تا ته ستا رب درکړي، نو ته به راضي (خوشحاله) شې

۶:۹۳ - ایا ته یې یتیم نه وې موندلی؟ پس پناه ځای یې درکړ

۷:۹۳ - او ته یې ناخبره (او ناپوه) وموندلې، نو لار ښوونه یې (درته) وکړه

۸:۹۳ - او ته یې فقیر وموندلې، نو غني یې کړې

۹:۹۳ - نو هر چې یتیم دی، نو ته (ده ته) قهر مه کوه

۱۰:۹۳ - او هر چې سوالگری دی، نو ته یې مه رټه

۱۱:۹۳ - او پاتې شو (نعمت) نو ته د خپل رب نعمت بیانوه

## (مکي) څرګند - الشرح ۹۴

۱:۹۴ - ایا مونږ تا لره ستا سینه نه ده فراخه کړې

۲:۹۴ - او له تا نه مو ستا دروند بار کوز کړی

۳:۹۴ - هغه (بار) چې ستا شا یې کږه (او) درنه کړې وه

۴:۹۴ - او تا لپاره مو ستا ذکر اوچت کړ

۵:۹۴ - نو بېشکه له سختۍ سره اساني شته

٦:۹۴ - بېشکه له سختۍ سره اساني شته

۷:۹۴ - نو کله چې ته فارغ شې، نو (په عبادت کې) ځان ستړی کوه

۸:۹۴ - او خاص خپل رب ته رغبت (او زاري) کوه

## (مکي) اینځر - التین ۹۵

۱:۹۵ - قسم دی په انځر او زیتون (ښووون) باندې

۲:۹۵ - او په طور سینین (غره) باندې

۳:۹۵ - او په دې امان ورکوونکي/امن والا ښار باندې

۴:۹۵ - چې یقینًا یقینًا مونږ انسان په ډېر ښکلي صورت (او اعتدال) کې پیدا کړی دی

۵:۹۵ - بیا دی مونږ وګرځاوه د ښکتو ډېر ښکته

٦:۹۵ - مګر هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړې دي، نو د دوی لپاره نه ختمېدونکی اجر دی

۷:۹۵ - نو (ای د قیامت منکره!) له دې نه وروسته تا څه شی د قیامت په هکله دروغ ګڼلو ته اماده کوي؟

۸:۹۵ - ایا الله تر ټولو لوی حاکم نه دی؟

## (مکي) کلک - العلق ۹٦

۱:۹٦ - ته د خپل هغه رب په نامه سره ولوله چې پیدا کړي یې دي (ټول مخلوقات)

۲:۹٦ - ده انسان له پرنې (ټوټې) وینې نه پیدا کړی دی

۳:۹٦ - ته ولوله، په داسې حال کې چې ستا رب تر ټولو لوی کریمـ دی

۴:۹٦ - هغه چې په قلمـ سره یې ښوونه کړې ده

۵:۹٦ - انسان ته یې هغه څه ښودلي دي چې دی پرې نه پوهېده

٦:۹٦ - حقه دا خبره ده چې یقینًا انسان خامخا سرکشي کوي

۷:۹٦ - په دې وجه چې دی خپل ځان ویني چې دی بې پروا (بې حاجته) شو

۸:۹٦ - بېشکه خاص ستا رب ته بېرته ورتلل دي

۹:۹٦ - ته ما ته خبر راکړه د هغه کس چې منع کوي

۱۰:۹٦ - بنده (محمدﷺ) لره کله چې دی لمونځ کوي

۱۱:۹٦ - ته ما ته خبر راکړه که چېرې دغه (بنده) په هدایت وي

۱۲:۹٦ - یا په تقوٰی (پرهېزګارۍ) سره حکمـ کوي

۱۳:۹٦ - ته ما ته خبر راکړه که دغه (منع کوونکی) تکذیب کوي او (له حق نه) مخ اړوي

۱۴:۹٦ - ایا دی نه پوهېږي چې بېشکه الله ویني؟

۱۵:۹٦ - داسې نه ده! قسمـ دی که دی منع نشو، (نو) مونږ به (دی) خامخا ضرور ډېر سخت راکاږو د تندي (وچولي) په وېښتانو سره

۱٦:۹٦ - داسې تندی چې دروغجن (او) خطا کار دی

۱۷:۹٦ - نو دی دې خپل مجلس والا راوبلي

۱۸:۹٦ - ژر ده چې مونږ به ډېر سخت تند خویه ملایك راوبلو

۱۹:۹٦ - داسې نه ده ته د ده خبره مه منه، او (الله ته) سجده کوه او (الله ته) ښه نژدې شه

## (مکي) اندازه - القدر ۹۷

۱:۹۷ - بېشکه مونږ دا (قرآن) د قدر په شپه کې نازل کړی دی

۲:۹۷ - او ته څه شي پوه کړې چې د قدر شپه څه شی دی؟

۳:۹۷ - د قدر شپه له زرو میاشتو نه غوره ده

۴:۹۷ - په دغه (شپه) کې (نور) ملایك او روح (جبریل) د خپل رب په حکمـ سره نازلېږي لپاره (د پوره کولو) د هر (مقرر شوي) کار

۵:۹۷ - (دغه شپه) سلامتیا ده، دغه (شپه) تر سبا ختلو پورې ده

## (مدني) روښان - البینة ۹۸

۱:۹۸ - هغه کسان چې کافران شوي دي، چې کتابیان او مشرکان دي، جدا کېدونکي نه وو تر دې چې دوی ته ښکاره دلیل راشي

۲:۹۸ - چې د الله له جانبه رسول دی، چې (دوی ته) ډېرې پاکې صحیفې لولي

۳:۹۸ - په دغو (صحیفو) کې ډېر سم (او درست) حکمونه (او فریضې) دي

۴:۹۸ - او اهل کتاب په خپل مینځ کې سره جدا (او مختلف) شوي نه وو مګر وروسته له دې چې دوی ته ښکاره دلیل راغی

۵:۹۸ - حال دا چې دوی ته حکم نه و ورکړی شوی مګر په دې چې دوی دې د الله عبادت کوي، په داسې حال کې چې دین (عبادت) دغه (الله) لره خالص کوونکي وي (او) حنیفان (له باطله حق ته راګرځېدونکي) وي، او (د دې چې) دوی دې لمونځ قایموي او زکاة دې ورکوي اوهم دغه ډېر محکم دین دی

۶:۹۸ - بېشکه هغه کسان چې کافران شوي دي، چې اهل کتاب او مشرکان دي، (دوی به) د دوزخ په اور کې وي، چې په ده کې به تل ترتله وي. هم دغه کسان د خلقو بدترین دي

۷:۹۸ - بېشکه هغه کسان چې ایمان یې راوړی دی او نېك عملونه یې کړي دي همدغه کسان د خلقو بهترین دي

۸:۹۸ - د خپل رب په نیز د دوی بدله د تل اوسېدنې جنتونه دي چې د هغو له لاندې ولې بهېږي، چې دوی به په دغو کې تل ترتله همېشه وي، الله له دوی نه راضي شوی دی او دوی له هغه نه راضي شوي دي، دغه (وعده) د هغه چا لپاره ده چې له خپل رب نه وېرېږي

## (مدني) خوځیدنه - الزلزلة ۹۹

۱:۹۹ - کله چې ځمکه وخوزلی شي په خپلو سختو خوزولو سره

۲:۹۹ - او ځمکه خپل درانه بارونه بهر ته راوباسي

۳:۹۹ - او انسان به ووایي چې په دې څه شوي دي

۴:۹۹ - په دغې ورځې کې به دا ځمکه خپلې خبرې (حالات) بیانوي

۵:۹۹ - په دې سبب چې ستا رب به دې ته وحي وکړي

۶:۹۹ - په دغې ورځ کې به خلق بېرته راګرځي، په داسې حال کې چې بېل بېل (او مختلف) به وي، د دې لپاره چې دوی ته خپل عملونه وښودل شي

۷:۹۹ - نو هغه څوك چې د يوې ذرې په اندازه نېك عمل وكړي (، نو) دی به هغه ووينې

۸:۹۹ - او هغه څوك چې د يوې ذرې په اندازه د شر (او بدۍ) عمل كوي (، نو) دی به هغه ووينې

## (مكي) عادي - العاديات ۱۰۰

۱:۱۰۰ - قسم دی په تېزو ځغلېدونكو اسونو، چې له سينو او ګېډو نه اواز ايستونكي دي

۲:۱۰۰ - پس (قسم دی) په هغو اسونو چې په خپلو سُمانو سره تیرې وهي او اور را ايستونكي دي

۳:۱۰۰ - پس (قسم دی) په هغو اسونو چې د سبا په وخت كې لوټمار كوونكي دي

۴:۱۰۰ - نو په دغه وخت كې دغه (اسونه) ګرد پورته كوي

۵:۱۰۰ - پس په دغه وخت كې د لويې ډلې په مېنځ كې ننوځي

۶:۱۰۰ - چې بېشكه انسان د خپل رب ډېر ناشكره دی

۷:۱۰۰ - او بېشكه دی په دې خبره يقينًا ښه خبردار (او ګواه) دی

۸:۱۰۰ - او بېشكه دی د مال په مينه كې يقينًا ډېر سخت دی

۹:۱۰۰ - ايا نو دی نه پوهېږي كله چې هغه (مړي) راوښكل شي چې په قبرونو كې دي؟

۱۰:۱۰۰ - او هغه څه رابښكاره كړی شي چې په سينو كې دي

۱۱:۱۰۰ - بېشكه د دوی رب په دغې ورځ كې په دوی باندې يقينًا ښه خبردار دی۔

## (مكي) تند - القارعة ۱۰۱

۱:۱۰۱ - (د زړونو) ټكوونكې (قيامت)

۲:۱۰۱ - (د زړونو) ټكوونكې څه شی دی؟

۳:۱۰۱ - او ته څه شي پوه كړې چې (د زړونو) ټكوونكې څه شی دی؟

۴:۱۰۱ - (دی به زړونه ټكوي) په هغې ورځ كې چې خلق به د خواره كړی شويو پتنګانو په شان شي

۵:۱۰۱ - او غرونه به د ډاندېس كړی شوي رنګينې وړی په شان شي

۶:۱۰۱ - نو هر چې هغه څوك دی چې د هغه تلې درنې شوې

۷:۱۰۱ - نو دی به په ډېر ښه ژوندون کې وي

۸:۱۰۱ - او پاتې شو هغه کس چې د هغه تلې سپکې شوې

۹:۱۰۱ - نو د ده استوګنځی هاويه ده

۱۰:۱۰۱ - او ته څه شي پوه کړې چې دغه (هاويه) څه شی دی؟

۱۱:۱۰۱ - (دغه) ډېر ګرم اور دی

## (مکي) ډېروالی - التکاثر ۱۰۲

۱:۱۰۲ - تاسو غافله کړئ فخر کولو په يو بل باندې په ډېروالي (د مال، اولاد او قام) سره

۲:۱۰۲ - تر هغه پورې چې تاسو هدېرو ته ورشئ

۳:۱۰۲ - داسې نه ده په کار، ژر ده چې تاسو به پوه شئ

۴:۱۰۲ - بيا بېخي داسې نه ده، ژر ده چې تاسو به پوه شئ

۵:۱۰۲ - داسې نه ده که تاسو په علم اليقين سره پوهېدلی

۶:۱۰۲ - تاسو به خامخا ضرور دوزخ وينئ

۷:۱۰۲ - بيا به تاسو خامخا ضرور دغه (دوزخ) د يقين په سترګو وينئ

۸:۱۰۲ - بيا به په دغې ورځ کې له تاسو نه خامخا ضرور د نعمتونو په باره کې تپوس کېږي

## (مکي) مازديګر - العصر ۱۰۳

۱:۱۰۳ - قسم دی په عصر (مازديګر، يا زمانه)

۲:۱۰۳ - چې بېشکه يقينًا انسان په زيان (او تاوان) کې دی

۳:۱۰۳ - غير له هغو کسانو نه چې ايمان يې راوړی دی او نېك عملونه يې کړې دي او يو بل ته يې د حق (دين) وصيت کړی دی، او يو بل ته يې د صبر وصيت کړی دی

## (مکي) غيبت کوونکی - الهمزة ۱۰۴

۱:۱۰۴ - هلاکت دی د هر ډېر غيبت کوونکي، ډېر عيبت لګوونکي لپاره

۲:۱۰۴ - هغه چې مال يې جمع کړی دی او دغه يې بيا بيا شمېرلی (او ذخيره کړی) دی

۳:۱۰۴ - دی خيال کوي چې بېشکه د ده مال به دی تل ژوندی وساتي؟

۴:۱۰۴ - داسې هيڅکله نشي کېدی، دی به خامخا ضرور په حطمه (ماتوونکي او سوځوونکي دوزخ) کې وغورځول شي

۵:۱۰۴ - او ته څه شي پوه کړې چې حطمه څه شی دی؟

۶:۱۰۴ - د الله هغه بل کړی شوی اور دی

۷:۱۰۴ - هغه چې په زړونو راخېژي (او غالب کېږي)

۸:۱۰۴ - بېشکه دغه (اور) به په دوی باندې (له هره جانبه) رابند کړی شوی وي

۹:۱۰۴ - په اوږدو (رابنکلی شويو) ستنو کې

## (مکي) فيل - الفيل ۱۰۵

۱:۱۰۵ - ايا ته نه يې خبر شوی چې ستا رب له فيل والاو سره څنګه کار کړی و؟

۲:۱۰۵ - ايا د هغوی چل (او مکر) يې په ګمراهۍ او زيان کې نه و ګرځولی؟

۳:۱۰۵ - او په دوی باندې يې ډلې ډلې مرغان راخوشې کړل

۴:۱۰۵ - چې دغو (مرغانو) به دوی لره په داسې کاڼو ويشتل چې له خټو نه جوړ، په اور پخ شوي وو

۵:۱۰۵ - نو دغه (خلق) يې د خوړل شويو وښو په شان وګرځول

## (مکي) قريش ټولنه - قريش ۱۰۶

۱:۱۰۶ - د قريشو له يو بل سره د الفت له وجې نه

۲:۱۰۶ - د ژمي او اوړي په سفر کې د دوی د الفت په وجه

۳:۱۰۶ - نو لازم دي چې دوی د دې کور د رب عبادت وکړي

۴:۱۰۶ - هغه (رب) چې دوی ته يې له لوږې نه (د بچ کولو لپاره) طعام ورکړی دی او دوی ته يې له وېرې نه (د ساتلو لپاره) امن (او بې خوفي) ورکړې ده

## (مكي) كمښت - الماعون ۱۰۷

۱:۱۰۷ - ايا تا هغه كس ليدلى چې د بدلي ورځ (قيامت) دروغ ګڼي

۲:۱۰۷ - نو همدغه هغه كس دى چې يتيم ته ديکې وركوي

۳:۱۰۷ - او مسكين ته په طعام وركولو ترغيب نه وركوي

۴:۱۰۷ - نو هلاكت دى لمونځ كوونكو لره

۵:۱۰۷ - هغه كسان چې دوى له خپلو لمونځونو نه غافله (او اعراض كوونكي) وي

۶:۱۰۷ - هغه كسان چې دوى رياكاري كوي

۷:۱۰۷ - او دوى ماعون (د استعمال عام څيزونه هم له يو بل نه) منع كوي

## (مكي) پرېماني - الكوثر ۱۰۸

۱:۱۰۸ - بېشكه مونږ تا ته كوثر دركړى دى

۲:۱۰۸ - نو ته د خپل رب لپاره لمونځ كوه او قرباني كوه

۳:۱۰۸ - بېشكه ستا دښمن هم هغه بې بنياده (او لاولده) دى

## (مكي) پټوونكي - الكافرون ۱۰۹

۱:۱۰۹ - دوى ته ووايه اى پټوونكو

۲:۱۰۹ - زه د هغو (شيانو) عبادت نه كوم چې تاسو يې عبادت كوئ

۳:۱۰۹ - او نه تاسو د هغه ذات عبادت كوونكي يئ چې زه يې عبادت كوم

۴:۱۰۹ - او نه زه د هغه شي عبادت كوونكى يم چې تاسو يې عبادت كړى دى

۵:۱۰۹ - او نه تاسو عبادت كوونكي يئ د هغه ذات چې زه يې عبادت كوم

۶:۱۰۹ - تاسو لپاره ستاسو دين دى او زما لپاره زما دين دى

## (مدني) مرسته - النصر ۱۱۰

۱:۱۱۰ - كله چې د الله مدد راشي او فتح

۲:۱۱۰ - او ته خلق ووينې چې د الله په دين کې ډلې ډلې داخلېږي

۳:۱۱۰ - نو ته پاکي بيانوه د خپل رب له ستاينې سره او له ده نه مغفرت غواړه، بېشکه دی تل ښه توبه قبلوونکی دی

## (مکي) رسۍ - المسد ۱۱۱

۱:۱۱۱ - د ابو لهب دواړه لاسونه دې هلاك شي او دی هلاك شو

۲:۱۱۱ - د ده هيڅ په کار رانغی د ده مال او (نه) هغه څه چې ده گټلي وو

۳:۱۱۱ - ژر ده چې دی به لمبې وهونکي اور ته داخل شي

۴:۱۱۱ - او د ده ښځه هم، (زه د دغې) د لرگو اوچتوونکې (مذمت کوم)

۵:۱۱۱ - د دې په غاړه کې د کجورې د پټ مضبوطه رسۍ ده

## (مکي) رښتيا والی - الإخلاص

۱:۱۱۲) دوی ته ووايه چې الله يو دی

۲:۱۱۲ - هم دا الله بې نياز (بې حاجته) دی

۳:۱۱۲ - نه يې (څوك) زېږولی دی او نه دی (له چا) زېږول شوی دی

۴:۱۱۲ - او د ده هيڅوك سيال (او) برابر نشته

## (مکي) لمر خرك - الفلق ۱۱۳

۱:۱۱۳ ) - ووايه زه په رب د سبا پورې پناه نيسم

۲:۱۱۳ - د هر هغه شي له شر نه چې ده پيدا کړی دی

۳:۱۱۳ - او د تيارې شپې له شر نه کله چې تکه توره (او خوره) شي

۴:۱۱۳ - او له شره د هغو (جادوگرو) ښځو چې په غوټو کې پوکي وهونکې دي

۵:۱۱۳ - او د حسد کوونکي له شر نه کله چې دی حسد (شروع او ښکاره) کړي

# (مکي) وګړي - الناس ۱۱۴

۱:۱۱۴) - ووایه زه د خلقو په رب پورې پناه نیسم

۲:۱۱۴ - چې د خلقو بادشاه دی

۳:۱۱۴ - د خلقو (حقیقي) معبود دی

۴:۱۱۴ - له شره د وسوسې اچوونکي، تښتېدونکي

۵:۱۱۴ - هغه چې د خلقو په سینو کې وسوسې اچوي

٦:۱۱۴ - چی (دغه وسوسې اچوونکي) له پېریانو او انسانانو څنې دي